وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِن مُّدَّكِرٍ

تفسیر

# احسن الکلام

بلغت البشتو

الجزء الاول

اول جزء

د سورة فاتحه نه د سورة بقره آیت نمبر ۱۷۶ پورې


الناشر

جامعة عربية لإشاعة التوحيد والسنة

پنج پیر پشاور

وَلَقَدْ يَسَّرْنَا الْقُرْآنَ لِلذِّكْرِ فَهَلْ مِنْ مُدَّكِرٍ

تفسير

# أحسن الكلام

بلغة البشتو

للشيخ أبي زكريا عبد السلام الرستمي

الجزء الاول

اوّل جزء

از سورة فاتحه تا سورة بقره آيت نمبر 176

الناشر:
جامعة عربية لإشاعة التوحيد والسنة
بده بير - پشاور

دکتاب نوم: تفسير احسن الکلام جز: اول

مؤلف: شيخ القرآن علامه سيد عبد السلام رستمی حفظه الله

کاتب: ارقم جان خدره خيل پشاور

تاريخ طباعت: يوولسم ايډيشن (11) جولائی 2006ء جمادی الثانی 1427ھ

دملاويدو پته: ايوب اسلامی مکتبه وکيسټ مرکز پشت قصه خوانی بازار پشاور

ناشر: دار التفسير جامعه عربيه، سيفن چوک کوهات روډ پيښور

# فهرست د ضروری مضامینو د جلد اول د تفسیر احسن الکلام

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

# مقدمه

الحمد لله الذی انزل الکتاب بیاناً وتبیاناً وجعله هدیً ونوراً لا وبرهاناً ط وصلی الله تعالیٰ علیٰ رسوله خاتم الانبیاء الذی جعله رحمةً واماماً واماناً وعلیٰ آله واصحابه الذین هم حجةٌ علیٰ من کانوا صماً وعمیاناً ط

**امابعد:** - هرکله چه زهٔ دَ جون دَ میاشتے په ۲۰ نیټه کال (۱۹۹۰)ء کښې مردان په جیل کښې دَ ظالمانو دلاسه محبوس کړے شوم۔ نو څلور میاشتے دَ حالاتو دَ ناسازئ په وجه خو اطمینان او فراغت نه وو۔ بیا بعضِ دوستانو توجه راکړه چه دَدے فرصت په وخت کښې دَ قرآن کریم تفسیر په پښتو ژبه لیکل پکار دی نو ما هم دغه فرصت غنیمت اوګڼلو۔ چونکه دغه وخت کښې زما ښے لاس هم معذور وو۔ نو دَ تفسیر املاء م په خپل څوئي سید عبد الصبور او خپل ملګری مولوی عبد الله (چه زما سره په دغه معامله کښې په جیل کښې وو) شروع کړه۔ دَ جیل نه په اُوومه میاشت دَ رهائیٔ پورے تفسیر دَ سورهٔ یونس پورے اولیکلے شو۔ چونکه په جیل کښې دَ نورو تفاسیرو او نورو کتابونو نه استفاده مشکله وه۔ دَ دے وجے نه دغه تفسیر مختصر اولیکلے شو۔ بیا دَ هغے نه روستو اګرچه دَ ډیرو مشاغلو په وجے سره چه فرصت ډیر کم ملاویدو لیکن سرهٔ دَ دینه کوشش جاری وو او په فضل او توفیق دَ الله تعالیٰ سره تفسیر اختتام ته اورسید لو۔ بیا دَ ملګرو ډیره مطالبه وه چه اول جلد کښې (چه په جیل کښې لیکلے شوے وو) ډیر اختصار کړے شوے دے پکار داده چه په دے کښې مناسب تفصیل اوکړے شی۔ نو دَ دے وجے نه په اول جلد کښې تفصیل شروع کړے شویدے دَ الله تعالیٰ نه سوال او دُعا ده چه دَ هغے دَ پوره کولو احسن توفیق را اوبښی (آمین)

دَ دے تفسیر خصوصیات او اصطلاحات دَ کتونکو په وړاندے پیش کول ضروری دی۔

**خصوصیات دا سے دی:** - (۱) دَ توحید او سنّت دَ لارے ترجمانی کول۔ (۲) دَ غلطو عقیدو او دَ بعضِ بدعاتو، رواجونو نشاندهی کول دَ دے دَ پاره چه

مسلمانان رونړه دَ هغې نه ځان بچ اوساتي -(۳) دَ هرسورت په اول کښې نوم، نومونه (چه ثابت دي) ليکل -(۴) دَ هرسورت دَ تيرشوي سورت سره مناسبت اوربط ذکرکول -(۵) دَ هرسورت دعوئ (اهمه مسئله، موضوع) ليکل چه سورت ټول په هغې باندے راجمع کيږي -(۶) دَ هرسورت اجمالي خلاصه دَ هغې په سرکښې ليکل او په ترتيب دَ بابونو سره، تفصيلي خلاصه دَ هرباب په اول کښې ذکرکول -(۷) دَ هرايت په سرکښې دَ هغې عنوان ليکل -(۸) دَ هرايت دَ مخکښې ايت سره ربط (مناسبت) صراحةً يا اشارةً ذکرکول -(۹) اقوالو دَ مفسرينو ته اشاره کول اوکوم قول چه ماته غوره ښکاره شوي دے دَ هغې ذکرکول -(۱۰) په مناسب ځايونوکښې په تفسيرونو او نوروکتابونو باندے حوالے ورکول اګرچه طرز تفسير داسے دے چه حوالو ورکولو ته زيات ضرورت نه پيښيږي دا دَ دے دَ مطالعے نه معلوميږي -(۱۱) دَ يوسفزو په محاورے سره دَ پښتو ترجمه اوتشريح ليکل -(۱۲) دَ ډيرضرورت په ځائے کښې سبب نزول ليکل شوي دے -او په عاموايا تونو کښې اسباب نزول ته تعرض نه دے کړے شوے -(۱۳) دَ مشکل اياتونو دَ حل دَپاره مناسب کوشش کول او مختصرحل ذکرکول -(۱۴) دَ بعضے ضروري مسائلو (مسئله دَ صفاتو دَ الله تعالىٰ -اومسئله دَ حيلو او مسئله دَ اُجرت اخستلو په طاعاتو باندے -اومسئله دَ عصمت دَ انبياؤ عليهم السلام -اومسئله دَ سحر- اومسئله دَ تقليد اومسئله دَ وسيلے اومسئله دَ سماع موتىٰ (دَ مړو اوريدل يا نه اوريدل) اومسئله دَ قبر (برزخي ژوند) کښې مناسبه تشريح کول دَ پاره دَ افادے دَ عامو مسلمانانو-

## اصطلاحات او ضروري اصول دَ دے تفسير

(۱) دَ قرآن کريم تعريف (پيژندګلي) دا کلام الله دے مخلوق نه دے الله تعالىٰ نازل کړيدے په محمد رسول الله صلى الله عليه وسلّم باندے په واسطه دَ جبرائيل عليه السّلام سره په دروي‍شت ۲۳ کاله کښې او په صحف دَ ملائکو او صحابه کرامو سره په مختلفو پاڼو، ګټو، هډوکو، څرمنوکښې ليکلے شويدے او دَ نبي صلى الله عليه وسلّم او صحابه کرامو او دَ ډيرو مسلمانانو په سينو کښې محفوظ دے -او په تواتر سره رارسيدلے دے او دَ هرقسم تغيير اوتحريف اوتبديل نه پاک دے او پاک ساتلے شويدے -دَ دے الفاظ او حرفونه او معانے ټول کلام الله دي کوم چه لوستلے کيږي اوريدلے کيږي ليکلے کيږي -

دا توول کلام د الله تعالیٰ او غیر مخلوق دی او صفت د الله تعالیٰ دے. چا چه دا تکلف او بدعت کړے چه کلام لفظي کلام الله نه دے بلکه صرف دلالت کوونکے دے او کلام نفسي کلام الله دے نو دا عقیده او دا تقسیم د سلف صالحینو د منهاج نه بالکل مخالف او غلط دے

(۲) **نومونه د قرآن کریم** :- ع۱ الکتاب ع۲ القرآن ع۳ کلام الله ع۴ النور ع۵ الهدیٰ ع۶ رحمت ع۷ فرقان ع۸ شفاء ع۹ موعظه ع۱۰ ذکر ع۱۱ کریم ع۱۲ علیٌ ع۱۳ حکمت ع۱۴ حکیم ع۱۵ مُهَیْمِنٌ ع۱۶ مبارك ع۱۷ حبل الله ع۱۸ الصراط المستقیم ع۱۹ القیّم ع۲۰ الفصل ع۲۱ النباء العظیم ع۲۲ احسن الحدیث ع۲۳ القرآن العظیم ع۲۴ القرآن المجید ع۲۵ التنزیل ع۲۶ الروح ع۲۷ وحی ع۲۸ المثانی ع۲۹ عربی ع۳۰ القول ع۳۱ البصائر ع۳۲ البیان ع۳۳ العلم ع۳۴ الحق ع۳۵ العجب ع۳۶ تذکره ع۳۷ ذکرٰی ع۳۸ العروة الوثقیٰ ع۳۹ المتشابه ع۴۰ الصدق ع۴۱ عدل ع۴۲ الایمان ع۴۳ المنادی ع۴۴ امر الله ع۴۵ بشرٰی ع۴۶ الزبور ع۴۷ المبین ع۴۸ بشیر ع۴۹ نذیر ع۵۰ عزیز ع۵۱ بلاغ ع۵۲ القصص ع۵۳ ایات بینات ع۵۴ الحکم ع۵۵ سبیل الله ع۵۶ کلمة الرب ع۵۷ الحدیث ع۵۸ فضل الله ع۵۹ صُحف ع۶۰ مکرمه ع۶۱ مرفوعه ع۶۲ مُطهره ع۶۳ برهان ع۶۴ بینه ع۶۵ مفصل ع۶۶ نعمت الله ع۶۷ الکوثر ع۶۸ المیزان ع۶۹ الحجة البالغه ع۷۰ التبیان ع۷۱ مُواقع النجوم ع۷۲ النجم ع۷۳ مصدق ع۷۴ المنزل ع۷۵ کلمات الله .

**حکمتونه د نزول د قرآن کریم** :- هدایت د پاره د عامو خلقو، هدایت د پاره د متقیانو، شفاء د عامو مرضونو ، شفاء د پاره د مرضونو د زړونو، رحمت د پاره د مؤمنانو ، موعظه د پاره د خلقو ، انذار ورکول د عذاب الله نه ، بشارت ورکول ، بلاغ د پاره د عامو خلقو ، د پاره د تدبر کولو ، د پاره د تذکره او تذکرا و ذکرٰی ، د پاره د راویستلو د خلقو د تیاره نه رڼا ته ، د پاره د تبیان (وضاحت) د اختلافی مسائلو ، د پاره د فیصلو کولو په مینځ د خلقو کښ، د پاره د فرق کولو په مینځ د حق او باطل کښ ، د پاره د دلیل تیولو د حق ثابتولو او نور هم بے شماره فائدے او حکمتونه دی- او دا ټول د قرآن کریم په مختلفو ایاتونو کښ ذکر دی-

**موضوع او لوئے مقصد د قرآن کریم** :- علمونه او مقاصد د قرآن کریم بے شماره دی- لیکن دا سے مقصد او علم چه د ټولو بنیاد او مرجع وی هغه اثبات د توحید دے په ټولو قسمونو سره ، او رد کول د اقسامو د شرک او کفر دی،

دا مقصد په سورة هود ۲ او ۱۲ او په سورة ابراهیم ۵۲ کښ ذکر دے۔ او نورو علماؤ لکه (ملا علی قاری رح او ابن قیم رح) په دے باب کښ تصریحات کړی دی۔

دَ قرآن کریم اهم مقاصد سره دَ توحید نه شپږ دی نور مسائل هغوی ته راګرځی۔ (۱) توحید (۲) دَ رسول صدق ثابتول (۳) دَ قرآن صدق ثابتول (۴) دَ بعث بعد الموت اثبات کول۔ (۵) او دا مقصد ونه په عالم کښ جاری کول او غالب کول په ذریعه دَ جهاد او دعوت او په ذریعه دَ قتال۔ (۶) او په ذریعه دَ انفاق فی سبیل الله سره۔ او هر یو دَ دے نه په قرآن کریم کښ په ښه تفصیل سره ذکر کړے شوی دے، مونږ دَ هغے بعضے طریقے په طور دَ نمونے سره ذکر کوو۔

**معنیٰ دَ توحید:** عقیده ساتل چه الله موجود دے او شریک ئے نیشته نه په ذات او نه په نومونو او صفاتو کښ او نه په حقونو او عباداتو کښ۔

**دَ توحید اقسام:** مشهور اقسام دَ توحید درے دی۔

(الف) توحید دَ ربوبیت او تصرف۔ او توحید دَ ذات په دے کښ داخل دے۔

(ب) توحید دَ اسماء او صفاتو، توحید دَ علم غیب په کښ داخل دے۔

(ج) توحید دَ عباداتو او دَ طاعاتو او تحلیل او تحریم هم په دے کښ داخل دے۔

(۱) **توحید دَ ربوبیت:** دا دے چه عقیده او یقین لری چه الله تعالیٰ په خپل وجود کښ چا ته محتاج نه دے او پیدا کوونکے دَ هر څه دے، مالک او تصرف کوونکے، قدرت لرونکے په هر څه باندے، او دَ ټول عالم تدبیر او دَ ټول عالم انتظام کوونکے دے، او دَ ټول عالم پالنه کوونکے دے، دَ پالنے دَ پاره بارانونه وروونکے او بوټی راویستونکے دے، دَ خوراک، څښاک او پوشاک څیزونو پیدا کوونکے دے۔ که دَ دے نه دَ یو کار او صفت عقیده دَ غیر الله دَ پاره او لرګشی نو دا شرک دے په ربوبیت کښ۔ مثلاً بعض خلق وائی چه دَ تمرخته کولو قدرت دَ شمس تبریز بابا سره وو، یا وائی چه لوئے بابا دَ کشتئ دَ غرقیدلو او دَ سورلو دَ مرګیدلو نه دولس کاله روسته کشتئ راویستله او هغه مړی ئے بیا ژوندی کړل، یا څوک وائی چه لوئے بابا دَ الله تعالیٰ دستګیری کړے ده او کوی یا څوک او وائی چه دَ دنیا نظام قطبان او غوثان چلوی، یا ارواح دَ بزرګانو دَ دنیا تدبیر او انتظام چلوی دا ټول شرک دے په ربوبیت کښ دَ مکے دَ مشرکانو نه هم دا اوسنی مشرکان زیات دی په شرک کښ ځکه چه هغوی تدبیر کوونکے دَ ټول عالم الله تعالیٰ منلو لکه په سورت یونس ۳ او ۳۱ کښ چه دی۔

(ب) **توحید دَ اسماء او صفاتو**:- دا دے چه عقیده او یقین او لری چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ کوم نومونه او صفتونه حقیقیه فعلیه دَځان دَپاره ذکر کړیدی یا دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلّم په احادیثو صحیحو کښ چه کوم نومونه او صفتونه دَ الله تعالیٰ دَپاره ذکر کړے شویدی هغه دَ الله تعالیٰ دَپاره ثابت دی. او دَ هغے په صفتی معانیو باندے هم عقیده او یقین لری، او هغه دَ الله تعالیٰ نه سیوا هیچا دَپاره نه منی او دارنګ کوم نومونه او صفتونه چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ دَځان نه سلب او نفی کړی وی یا په احادیثو صحیحو کښ سلب او نفی کړے شوے وی نو هغه دَ الله تعالیٰ نه سلب کوی او په هغه سلب باندے عقیده او یقین لری او په دے کښ دَ الله تعالیٰ سره شریک نه منی. او بله ضروری خبره دا ده چه نومونه او صفتونه په معنیٰ ظاهری سره محکم ګنړی. او دَ الله تعالیٰ دَپاره ئے منی. او دَ کیفیت په لحاظ سره ئے متشابه ګنړی په هغے کښ تاویل او تحریف نه کوی. او دارنګ دَ هغے تمثیل او تشبیه هم دَ مخلوق سره نه کوی. مثال ئے دا دے چه دَ الله تعالیٰ اسم اَلْحَیُّ دے په دے به عقیده لری چه دا نوم او صفت دَحیات دَ الله تعالیٰ دَپاره ثابت او یقینی دے لیکن دَ دے تشبیه به دَ مخلوق دَ ژوند سره نه ورکوی. دا سے به نه وائی چه روح دَ بنده په بدن دَ هغه کښ دے او ژوندے دے. او الله تبارک وتعالیٰ هم دا سے دے. دارنګ السمیع والبصیر ټولو صفتونو کښ. نو دا سے صفات په قرآن کریم کښ اُولس[۱۷] دی. نفس په قرآن شریف کښ څلور[۴] کرته. وَجه (مخ) پنځه[۵] کرته. عَیْن (سترګه) یو کرت. اَعْیُن (سترګے) څلور[۴] کرته. ید (لاس) اته[۸] کرته. یدان (دوه لاسونه) دوه[۲] کرته. اَیْدِیْ (لاسونه) یو[۱] کرت. یمین (ښی لاس) یو[۱] کرت. فوق (پورته. بره) درے[۳] کرته. علو او اعلیٰ او علی او تعالیٰ او متعال شپږ ویشت[۲۶] کرته. اِستواء علی العرش (په عرش باندے برابریدل) اووه[۷] کرته. ساق (پنډۍ) یو کرت. مجیٔ (راتییان) (راتلل) پنځه[۵] کرته. قرب (نیزدیکت) پنځه[۵] کرته. جنب (اړخ) یو[۱] کرت. معیت عامه (ورسره) دوه کرته او معیت خاصه پنځلس[۱۵] کرته.

دَ بعضے علماؤ په نیز وجه او معیت دَ متشابهاتو نه دی او دغه غوره قول دے په دے ټولو کښ به دا سے عقیده لری چه دا په اعتبار دَ معنیٰ ظاهری سره الله تعالیٰ لره ثابت دی بغیر دَ تاویل او تحریف نه، لیکن تشبیه او تمثیل به ئے

دَ مخلوق سره نشي ورکيدے او دا دَ ټولو سلف صالحينو او ائمه مجتهدينو مسلک دے۔

پوهه شه چه صفتونه دَ الله تعالیٰ اګرچه ډير دي ليکن خلاصه دَ هغې دوه صفاتو کښ راځي -(۱) کارسازي (خلق، تدبير، تصرف، قدرت)- (۲) علم دَ غيب او علم په هر څيز باندے. دَ دے وجے نه دَ شرک دوه قسمونه پيدا شول۔ ۱ شرک په تصرف کښ ۲ شرک په علم کښ۔ او په قرآن کريم کښ دَ دے تفصيلي ترديد په ډيرو اياتونو کښ موجود دے چه دَ هغې مناسب ذکر په کتاب تنشيط الاذهان کښ مونږ کړيدے. بعض تفصيل ئے دا دے۔

**شرک په تصرف** کښ دا دے چه دَ الله تعالیٰ څرنګ تصرف، واکداري، قدرت، اختيار، تدبير چه په قرآن کريم او صحيح حديث کښ ذکر شويدے۔ په هغې صفت کښ بل څوک (لکه نبي، ولي، ملک، جن وغيره) دَ الله تعالیٰ سره شريک، حصه دار، برخه والا او ګڼړي، لکه دا عقيده او ساتي چه مرضونه اولياء راولي او دَ مرضونو شفاء اولياء ورکوي۔ يا خير او برکت اولياء ورکوي يا ئے اخلي وغيره نو دا شرک دے په تصرف کښ۔

**شرک په علم** کښ دا دے چه دَ الله تعالیٰ علم چه څه رنګ په غيب باندے دے يعني بے سببه علم دے او په هر څه باندے علم لري دَ هغه دَ علم نه هيڅ ذره په اسمانونو کښ او په زمکو کښ بهر نه ده په ځنګلو کښ دَ پاڼړو بوټو شماره په دريابونو کښ دَ اوبو مقدار او دَ مهيانو شماره، دَ کاڼړو، شګو شمار دَ الله تعالیٰ په علم کښ دے نو دَ داسے علم چه دَ نبي، ولي، جن، ملک دَپاره عقيده اولري۔ لکه دا عقيده اولري چه ولي او پير صاحب زمونږ دَ زړونو په حال باندے عالم دے. يا په عالم کښ دَ ذرات، پاڼړے، کاڼړي، شګے په شمار علم لري نو دا شرک دے په علم کښ۔

پوهه شه چه غيب دوه قسمه دے۔

**يو غيب حقيقي** چه دَ هغې دَ علم دَپاره هيڅ سبب نشي کيدلے نه په وحي سره نه په عقل سره، نه په حواسو سره، نو دَ هغې علم ته علم غيب وئيلے کيږي، هغه دَ الله تعالیٰ صفت خاصه دے لکه پدے ايت کښ قُلْ لَّا يَعْلَمُ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ الْغَيْبَ اِلَّا اللّٰهُ ؕ سورة النمل ۶۵

**دويم غيب اضافي** دے چه دَ هغې علم نبي ته په ذريعه دَ وحي ورکړے شي يا

دَعقل یا دَحواسو په واسطه معلوم شی اگرچه وړاندې دَدې سببونو نه هغه غائب او پټ وی۔ دغه علم په مخلوق کښې په مختلفو مرتبو سره شته. لیکن دَشرعې په اصطلاح کښې هغه علم ته علم غیب نه دے وئیلے شوے۔ او نه هغه علم غیب دے۔ الله تعالیٰ رسولانو ته دَ تمام مخلوق نه زیات علم ورکړے او بیا آخری رسول محمد رسول الله صلی الله علیه وسلّم ته ئې دَ ټولو رسولانو او ملائکو نه زیات علم ورکړے دے، لیکن هغه علمونه دَ رسالت سره مختص علمونه دی، کوم کاروته، خبرے چه دَ رسالت دَ رسول سره تعلق نه لری دَ هغې علم ئې ورته نه دے ورکړے او نه ئې ورته ضرورت شته نو علم دَ هغوی په کل ما کان او ما یکونُ باندې نشته نه ذاتی او نه عطائی۔

(ج) **توحید دَ عبادتونو او اطاعتونو** :- دَ دې درې قسمونه دی۔

(۱) توحید فی العبادات (۲) توحید فی الدعاء (۳) توحید فی الحکم (یعنی تحلیل او تحریم)

(۱) **توحید فی العبادات** :- دا دې چه هره بندګی او تعظیم چه دَ زړه سره تعلق لری۔ یا دَ بدن دَ قوتونو سره، یا دَ مال سره هغه الله تعالیٰ لره خاص کول، په هغې کښې دَ الله تعالیٰ سره بل چا لره حصه نه ورکول۔ دَ زړه عبادات: توکل، خشیت او خشوع، اخلاص، محبت، رجاء (اُمید) دی او قرآن کریم کښې دَ دې ټولو تخصیص په الله تعالیٰ پورې ذکر شوید ې۔ لکه علیه فلیتوکل المتوکلون، ولم یخش الا الله۔ نحن له مخلصون۔ والذین آمنوا اشدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ۔ مالکم لا ترجون لله وقارًا ط ویرجون رحمته۔ دَ دې پنځو نه علاوه نور حالات او اوصاف دَ زړهٔ دیته راجع دی۔

**دَ بدن عبادات** : قیام، رکوع، سجده، روژه نیول، حج کول، جهاد کول وغیره دی۔

**پوهه شه** چه حواس ظاهریه دَ انسان پنځه دی۔

(۱) قوة باصره (یعنی لیدل) (۲) قوة سامعه (یعنی اوریدل) (۳) قوة شامه (بویه ول) (۴) قوة ذائقه (یعنی سکل) په دیکښې خوراک او څښاک داخل دی (۵) قوة لامسه : یعنی مسه کول، دا دَ بدن دَ ظاهر سره تعلق لری۔ او اکثر لمس په لاس سره کیږی په دې پنځه قوتونو سره طاعت دَ الله تعالیٰ په پنځو طریقو سره کول، فرض، سنت مؤکده، مستحب، حرام نه یې کیدل۔ مکروه تحریمی نه یې کیدل۔ او مثالونه دَ دې ډیر تفصیل غواړی لیکن په غور او فکر سره هغه معلومیږی۔

دَمال په ذریعه عبادات : صدقه فرضی یا نفلی ورکول دَپاره دَ رضا دَ الله تعالیٰ۔ ذبح کول په نوم دَ الله تعالیٰ نذر کول دَ الله تعالیٰ په نوم بانددے وغیره. په دے مال خرچ کولو کښ هم پنځه اقسام جاری کیږی ، فرض ، سنت ، مستحب دا رنګ دَحرام او مکروه تحریمی نه ځان دَ الله تعالیٰ دَ ویرے نه بچ ساتل په دے عبادا تو کښ چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل چا لره (نبی ، ولی ، پیری ، ملك پیر ، فقیر وغیره لره) یو عبادت هم ادا کیږی نو دا شرک دے۔

(۲) توحید فی الدعاء :- یعنی مدد غوښتل حاجت طلب کول او دَ زړه دَ تسلئ دَپاره یا الله ، یا رحمٰن (دا رنګ په نورو اسمائے حسنیٰ سره الله تعالیٰ یادول) ثناء دَ الله تعالیٰ او ذکر کول دَ الله تعالیٰ هم په دے کښ داخل دی۔

پوهه شه دعا اګرچه عبادت بدنیه دَ ترے دے. لیکن هر کله چه دا دَعبادا تو مقصد او مغز دے او دا رنګ اکثر مشرکان په شرك فی الدعاء کښ ګرفتار دی۔ دَ دے وجے نه دا په قرآن کریم کښ په مستقل طریقے سره ذکر کړے شوے دے۔ دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل څوک چه حاجت پوره کوونکے ، او واکدار او عالم الغیب اوګنړی او هغه ته یا فلان را مدد شه اُ وائی ، حاجت پوره کیدل ترے نه او غواړی ، نو دا شرک فی الدعاء او فی الاستعانت دے۔

بعض خلق وائی چه دا غائبانه چغے دَ محبت دَ وجے نه جائز دی۔

جواب دا دے چه په حال دَ محبت کښ به هم انسان دَ احکامو شرعیو پابند او تابع وی۔ او دلیل شرعی دَ جواز دَ دغه چغے کولو نشته بلکه دا تشبیه دَ اهل شرك سره ده۔

تنبیه :- توحید فی العبادات ته توحید فی الالوهیة هم وئیلے شی هغه مصداق دے دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ او دَ دے دَ پوهے دَپاره تفصیل دَ معنیٰ دَ اِلٰه ضروری دے چه هغه به روسته بیانیږی۔

(۳) توحید فی الحکم : مراد ترینه حکم تشریعی دے۔ مطلب دا دے چه عقیده اولری چه شرع جوړوونکے الله تعالیٰ دے دَ هغه حلال به حلال او دَ هغه حرام به حرام ګنړو۔ چه دَ هغے خبر مونږ ته رسول الله صلی الله علیه وآله وسلم را کړے دے۔

او که څوک دَ الله تعالیٰ حرامو ته حلال وائی۔ یا دَ الله تعالیٰ حلالو ته حرام وائی یا دَ الله تعالیٰ دَ رسول صلی الله علیه وسلم په مقابله کښ او دَ شرعی

دلیل په مخالفت کښ دَ یو پیر او ملا، امام، استاذ وغیره په تحلیل او تحریم او ثواب او عذاب کښ طاعت او تقلید کوی نو دا شرک دے او دا سے شرک په یهود یا نو او نصارا ؤ کښ موجود وؤ)۔ یا دَ الله تعالیٰ او دَ رسول صلی الله علیه وسلم دَ حکم مقابله کښ دَ یو صاحب اقتدار یا بادشاه قانون منی۔ او دَ قانون او حکم شرعی نه انکار کوی نو دا هم شرک او کفر دے۔

(۲) صدق دَ رسول: دا هم ډیره اهمه مسئله ده۔ ځکه چه توحید او ایمان تفصیلی بغیر دَ صدق دَ رسول نه نه معلومیږی۔ قرآن کریم کښ دَ رسول دَ رشتینوالی ثابتولو دَ پاره ډیرے طریقے دی۔ چه دَ هغے تفصیل په تنشیط الاذهان کتاب کښ په څوارلس طریقو سره ذکر شویدے چه دَ هغے نه بعضے طریقے دا دی چه رسول الله صلی الله علیه وسلم خبرونه دَ غیب (راتلونکی او تیر شوی) ورکړیدی او حال دا چه هغه حاضر او ناظر نه دے او نه وو او دغه خبرونه بالکل رشتینی دی۔

دا رنګ هغه امی وو او دَ هیچا نه ئے لوستل نه وؤ کړی۔ او نه ئے خط زده کړے وؤ او سره دَ دے نه لوئے فصیحان، بلیغان دَ عربو دَ هغه دَ مقابلے کولو نه عاجز وؤ۔ او دا رنګ مخالفینو چه څومره اعتراضونه په رسول صلی الله علیه وسلم باندے کړی دی دَ هغے ټولو جوابونه په قرآن کریم کښ ورکړے شوی دی۔

(۳) صدق دَ قرآن کریم:۔ دا هم دَ اهمو مسائلو نه ده۔ ځکه چه دا دَ صدق دَ رسول او دَ اثبات دَ توحید دَ تفصیل دَ پاره اصل ذریعه ده۔ دَ قرآن کریم دَ صدق دَ ثابتولو دَ پاره په کتاب التنشیط کښ شپاړس طریقے ذکر کړے شویدی چه دَ هغے نه بعضے دا دی چه قرآن پاک معجز دے۔

آیتونه دَ تحدی (طلب دَ مقابلے) قرآن کریم کښ شته دے لیکن تر اوسه پورے هیچا دَ قرآن کریم مقابله نه ده کړے شوے۔ او نه ئے کولے شی۔ او چا چه مقابله کښ څه عربی شعرونه وغیره وئیلے وؤ نو هغوی پورے خندا کړے شوے ده۔ دا رنګ الله تعالیٰ فرمائیلے دی "لوکان من عند غیرالله لوجدوا فیه اختلافا کثیرا: النساء ۸۲:

(که چرے دا قرآن دَ غیرالله جوړ شوے کتاب وے نو ضرور موندلے به وے خلقو په دے کښ غلطۍ ډیرے)۔ لیکن هیڅ غلطی پکښ تر اوسه نه ده ثابت کړے شوے۔ نو معلومه شوه چه دا دَ الله تعالیٰ جل جلاله کتاب دے ځکه چه دَ بنده په کتاب کښ خامخا غلطی یا نقصان وی۔

(۴) **ایمان په آخرت او بعث بعد الموت**:- په ایمانیاتو کښ یو اهمه مسئله بعث بعد الموت او د قیامت په تفصیلاتو باندے ایمان راوړل دی. قرآن کریم کښ د دے آیتونه په شپږو تعبیرونو سره دی۔

اول **تعبیر** دا دے چه ایمان په آخرت باندے د مؤمنانو عقیده ده۔ او د دین د ضروریاتو نه ده او د خائسته صفاتو د پاره منشاء ده او د نجات ذریعه ده۔ دویم **تعبیر** دا دے چه انکار کول د آخرت نه جرړه او بیخ د عیبونو دے او سبب د مصیبتونو او د دنیوی او اُخروی تباهئ او د عذابونو دے۔

دریم **تعبیر** طریقے د انکار د منکرینو او اقسام د شبهاتو او اعتراضونو د هغوی. او په هغے کښ د دوی د انکار هیڅ دلیل نشته دے سیوا د دے نه چه دوی ئے د خپلو ناقصو عقلونو په بنا بعید او محال گنړی. **څلورم تعبیر** طریقے د اثبات د آخرت او جوابونه د شبهاتو د هغوی. طریقے د اثبات ئے اُوه دی.

(۱) دویم ژوند په اول ژوند باندے قیاس کول۔ (۲) دویم ژوند قیاس کول په پیدائش د آسمانونو او د زمکو باندے۔ (۳) دوباره ژوند قیاس کول د دنیا په بعضے نا آشنا واقعاتو باندے چه په هغے کښ پس د مرګ کولو نه بیا ژوندی کول دی او پس د اوږد خوب کولو نه لکه واقعه د اصحاب کهف شوه۔ (۴) دوباره ژوند قیاس کول د زمکے په شنه کیدلو په اوبو او بوټو سره پس د اوچ والی نه۔ (۵) ثابتول د دوباره ژوند په دلیل د قدرت او تصرفاتو د الله تعالیٰ په عالم کښ۔ (۶) ثابتول د بعث په قسم کولو د الله تعالیٰ سره په خپل ذات باندے په قرآن کریم کښ څلور کرته سورة یونس ۵۳ او سورة مریم ۶۸ او سورة سبا ۳ او سورة تغابن ۷۔ (۷) ذکر د آخرت په ډیرو او مختلفو الفاظو سره چه هغه شپاړس (۱۶) دی او ذکر کړی دی مونږ په تنشیط الاذهان کتاب کښ

**پنځم تعبیر** ذکر کول د ورځے د قیامت په درے دیرشو (۳۳) نومونو سره او هغه ټول صفتی نومونه دی۔ **شپږم تعبیر** احوال د ورځے د قیامت او ذکر د هیبتونو د هغے په تفصیل سره چه هغه د قرآن کریم په څلور پنځوس سورتونو کښ ذکر دی۔

(۵) **جهاد فی سبیل الله تعالیٰ**:- د تیرشوو څلورو مقصدونو د نشرو اشاعت د پاره د هر قسم طاقت صرف کول او محنت کولو ته جهاد وئیلے کیږی. او د مخالف باطل قوتونو کمزوری او د توحید او اسلام غالب کولو ته قتال

فی سبیل اللہ وئیلے کیږی۔ هرکله چه دَ جهاد او قتال مقصد ډیر لوئے دے نو دَ دے وجے نه جهاد او قتال هم ډیره اهمه مسئله ده۔ قرآن کریم کښ دَ هغے قسمونه او مقصدونه، اداب او اسباب وغیره ذکر کړے شوی دی۔ دَ هغے پوره تفصیل زما په کتاب ترتیب الجهاد کښ لیکلے شوے دے۔ او دا رنګ په کتاب تنشیط الاذهان کښ هم شته او په مختلفو سورتونو دَ قرآن کښ دا مسئله ذکر ده۔

دَ جهاد او قتال نه مخکښ تهذیب دَ اخلاقو او نفسونو دَ پاره په سورة بقره کښ لس[10] اُمور، په سورة العمران کښ یو دیرش[31] اُمور او دَ تدبیر منزل دَ پاره په سورة بقره کښ اتلس[18] اُمور او په سورة النساء کښ نولس[19] اُمور او دَ سیاست مدنیه دَ پاره په سورة بقره کښ دَ امن دَ پاره څلور[4] امور او په سورة النساء کښ حکومتی او فوجی نظام دَ پاره نهه[9] اُمور ذکر دی او دَ مسلمانانو دَ نظم او امن او دَ نشر و اشاعت دَ پاره سورة العمران کښ پنځه[5] اُمور او په سورة حجرات کښ اووه[7] اُمور ذکر دی۔

(۶) انفاق فی سبیل الله تعالیٰ: دا په اصل کښ جهاد بالمال دے یعنی مالی قوت سره دَ دین نشر او اشاعت کول او غالب کول دے ته انفاق فی سبیل الله وائی۔ دا فریضه دَ زکوٰة او صدقات واجبو نه علاوه ده ځکه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ان فی المال حقا سوی الزکوٰة۔ او دَ علماؤ په نیز جهاد او طلب دَ علم دَ دین او نشر دَ دین ته هم جهاد فی سبیل الله وئیلے کیږی۔ قرآن کریم کښ دَ دے انفاق فرضیت او دَ هغے مصارف او ترغیبات او مثالونه ډیر ذکر کړی شوی دی۔ دَ هغے تفصیل په تنشیط الاذهان کتاب کښ ذکر کړے شوے دے۔

فائده: قرآن کریم کښ دَ یهودیانو او دَ نصاراؤ او دَ عامو مشرکانو او دَ منافقانو په تفصیل سره تردید دے دَ هغوی قبائح او بد صفات او هغوی ته زجرونه په تفصیل سره ذکر شوی دی په مکی سورتونو کښ دَ مشرکانو تردید دے او دَ هغوی ناکاره صفات ذکر دی۔ او دَ نورو ډلو ذکر په کښ ډیر کم دے او په مدنی سورتونو کښ دَ دے نورو ډلو تفصیل ذکر دے۔ زما دَ شمار مطابق دَ یهودیانو ټول قبائح دوه سوه یویشت[221] ذکر دی او دَ نصاراؤ شپیږ دیرش[36] دی۔ او دَ منافقانو دوه سوه درے[203] دی۔

اُصول او قواعد دَ سورت: دَ فهم او پوهے دَ پاره په هر سورت کښ

راتلونکې اثه خبرې معلومول ضروري دي. یا به په سورت کښې پټولې وي یا به پکښې بعضې وي. ۱ دعوی دَ سورت پیژندل. ۲ دلیلونه دَ دعوې دَ ثابتولو دَپاره درې قسمونه دي. (ا) عقلي دلیلونه شپږ قسمه دي. (ب) نقلي دلیلونه هم شپږ قسمه دي. (ج) او وحي دلیلونه کله په یو سورت کښې درې واړه قسمونه وي او کله بعضې بعضې. دَ عقلي دلیلونو مطلب دا دے چه دَ الله تعالیٰ دَ قدرت او دَ تصرفاتو او علمونو ذکر په داسې طریقې سره اوکړے شي چه صحیح عقل دَ هغې په ذریعې سره الله تعالیٰ مني او دَ هغه دَ توحید عقیده اولري یا ئې رد نشي کولے. دَ نقلي دلیلونو مطلب دا دے چه دَ حق او دَ مسئلې دَ توحید نسبت داسې مخلوق ته اوکړے شي چه هغوی هرچاته مسلّم او منلے شوے وي، یا په حقیقت کښې رشتیني وي او چه په هغوی باندې دَ دروغو وئیلو تصور هم نشي کیدلے. او دَ وحي دلیلونو مطلب دا دے چه دَ خبرې نسبت الله تعالیٰ ته اوکړے شي چه دا دَ هغه امر یا نهي یا قول (وینا) او وحي ده مونږ دَ ځان نه نه ده وئیلې.

(۳) زجر (زورنه) یعنې دَ منکرینو وغیره په ناجائزه وینا یا عمل باندې زورنه ورکول.

(۴) تخویف (ویره) یعنې دَ انکار دَ وجې نه عذاب دَ دنیا یا عذاب دَ اٰخرت ذکر کول.

(۵) بشارت (زیرے) یعنې دَ حق دَ منلو په وجه سره دَ دُنیاوي یا اُخروي خوشحالو او نعمتونو زیرے او خوشخبري ورکول.

(۶) تسلّي یعنې دعوت کوونکي ته په وخت دَ مصیبتونو او تکلیفونو کښې تلقین دَ صبر ورکول او دَ هغه دَ زړه نه غم لرې کول یا کمول.

(۷) تشجیع او ترغیب یعنې دَ توحید دَ بیان او دعوت دَپاره یا دَ قرآن یا دَ جهاد په باره کښې تیزي او دَ ځان ګیرنه ورکول او بهادر کول او رغبت ورکول.

(۸) تزهید فی الدنیا یعنې دَ دنیا سره مینه نه کول دَ دنیا نه بے رغبتي بیانول او دَ هغې فنا او زوال ذکر کول یا دَ هغې دَ دهوکے او غرورنه تنبیه ورکول.

فائده ۱ طریقه دَ تفسیر دَ هر سورت دا ده چه په هر سورت کښې پنځه خبرے ضروري دي اوله خبره ربط (مناسبت) دَ هر سورت دَ مخکښې سورت سره.

دویمه خبره دعوای دَ هر سورت او دَ هغې مأخذ۔
دریمه خبره دَ هر سورت اجمالي او تفصيلي **خلاصه** بیانول په ترتیب دَ بابونو سره۔
څلورمه خبره حل دَ مشکل اٰیاتونو او دَ مکرراتو او ذکر دَ حکمتونو۔
پنځمه خبره **امتیازات** دَ هر سورت دَ نورو سورتونو نه۔
**فائده ۲**: اصول الایمان ذکر دی په (سورة البقره ۱۷۷ او سورة النساء ۱۳۶ کښې.
اصول الحقوق ذکر دی په (سورة البقره ۸۳ او سورة النساء ۳۶) کښې۔
اصول السدیانات ذکر دی په (سورة الانعام ۱۵۱، ۱۵۲، ۱۵۳) کښې۔
اصول المحرمات په عقیده او عمل کښې (په سورة الاعراف ۳۳ کښې)
اصول المحرمات په خوراک کښې (سورة البقره ۱۷۳، سورة المائده ۳، سورة الانعام ۱۴۵ او سورة النحل ۱۱۵) دا په ټولو اسماني دینونو کښې مشترک اصول دی۔
**فائده ۳** نصاب تبلیغ دَ عوامو په سورة الانعام ۱۵۱، ۱۵۲ او ۱۵۳ کښې.
نصاب تبلیغ دَ بنی اسرائیلو په سورة البقره ۴۰، ۴۱، ۴۲، ۴۳، ۴۴، ۴۵ کښې
نصاب تبلیغ دَ اهل کتابو په سورة آل عمران ۶۴، ۶۵، ۷۰ او ۷۱ کښې۔
نصاب تبلیغ دَ نصاراؤ په سورة المائدة ۶۸، ۷۲، ۷۳، ۷۴ او ۷۷ کښې۔
**فائده ۴**: نسخ په څلورو معانو سره ده۔ اول په معنیٰ دَ لیکلو سره په سورة الجاثیه ۲۹ کښې۔ دویم ورانول او زائیلول په سورة الحج ۵۲ کښې.
دریمه معنیٰ بدلول دَ ایت یا دَ حکم په بل سره په سورة البقره ۱۰۶ کښې
څلورمه معنیٰ نقل کول او دا په قرآن کښې نه ده مستعمل شوے۔
مناسخه دَ علم میراث او تناسخ دَ ارواحو په عقیده دَ هندوانو کښې . دَ دے څلورمے معنے سره تعلق لري۔
نسخ دَ شریعت په اصطلاح کښې بدلول دَ ایت یا حکم دَ ابت یا دَ دوارو دی اصلاً یا صفةً یعنی دَ سره ئے بدل کړي. یا په مطلق کښې قید اولګوي، یا عام لره خاص کړي یا په عکس سره وي. یا دَ واجب نه مستحب ته راکوز شي او دا دَ مخکنو علماؤ اصطلاح ده۔ په دے معنیٰ سره دَ هغوی په نیز په قرآن کښې دَ پنځه سوه ۵۰۰ اٰیاتونو نه زیات منسوخ دی، یعنی په اعتبار دَ حکم سره۔ بله معنیٰ دا ده چه مخکښې ثابت شوے حکم زائله کړي په بل نص سره په داسے طریقے سره چه په مخکنی باندے عمل کول جائز نه وی

اودا معنیٰ دَ روستنو علماؤ په اصطلاح کښ ده۔ او بنا په دے باندے علامه سیوطی رح په اتقان کښ وئیلی دی چه یویشت [21] ایتونه منسوخ دی او امام شاه ولی الله دهلوی رح په الفوز الکبیر کښ وئیلی دی چه پنځه ایتونه منسوخ دی۔ او زمونږ په نظر کښ دغه ایتونو کښ ټول حکمونه او ټولے معانے منسوخ نه دی په اعتبار دَ یو معنیٰ سره منسوخ دی او په اعتبار دَ بلے معنے سره منسوخ نه دی یا پکښ اختلاف وی دَ سلف صالحینو یا دَ واجب نه مستحب ته راکوز شوی وی او هغے ته تحقیق وئیلے شی دَ ایت پوره بیخ کندی دَ حکمونو نه نه وی شوی۔

**مسئله دَ الٰه** : دَ دے دَ پاره قرآن کریم کښ دولس [12] تعبیرات دی.

اول : کلمه دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ دوه ځله رسورة الصافات [35] او سورة محمد [19] کښ)

دویم : تعبیر کلمه دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ دیرش [30] کرته۔

دریم : کلمه دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنْتَ یو کرت په سورة الانبیاء [87] کښ۔

څلورم : کلمه دَ لَآ اِلٰهَ اِلَّآ اَنَا درے ځله (په سورة النحل [2]، سورة طٰهٰ [14] او سورة الانبیاء [25] کښ)۔

پنځم: کلمه دَ لا اله الا الذی یو ځل په سورة یونس [90] کښ۔

شپږم : کلمه دَ مَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّا اللّٰهُ دوه کرته په سورة ال عمران [62] [65] کښ.

اُوم : کلمه دَ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ یو کرت په سورة المائده [73] کښ۔

اتم : کلمه دَ مالکم من اِلٰهٍ غیره نهه کرته په سورة الاعراف [59]، [65]، [73]، [85]، سورة هود [50]، [61]، [84] او سورة المؤمنون [23]، [32] کښ۔

نهم : کلمه دَ ءَاِلٰهٌ مع الله اته کرته په سورة النمل [60] نه تر [64] پورے، سورة القصص [71]، [72] او سورة الطور [43] کښ۔

لسم : کلمه دَ مَنْ اِلٰهٌ غیر الله یو کرت په سورة الانعام [46] کښ۔

یوولسم : کلمه دَ اِلٰهکم اِلٰهٌ واحد شپږ کرته په سورة البقرة [163]، سورة النحل [22]، سورة الکهف [110]، سورة الانبیاء [108]، سورة الحج [34] او سورة حٰمٓ سجده [6] کښ۔

دولسم : کلمه دَ اِنَّمَا هو الله واحد څلور کرته په سورة النساء [171]، سورة الانعام [19]، سورة ابراهیم [52] او سورة النحل [51] کښ۔

دَ اله دوه معانے دی یو خاص ده (حقدار دَ بندګئ او معبود بالحق)

دا دَ اِلٰهٗ یا لٰهٗ نه اخستلے شوے دے په معنیٰ دَ عبد یَعْبُدُ سره نو الٰه په معنیٰ
دَ معبود دے لیکن په عرف دَ شرعے کښ خاص دے په معبود بالحق
پورے په دے مخکښې ټولو کلماتو کښ دا معنیٰ مراد ده۔
دریمه معنیٰ دَ اِلٰه حاجت پوره کوونکے پناه ورکوونکے چه اُمید او خوف دَ
هغه نه کیږی او اعتماد په هغه باندے کیږی او دے معانو ته علماؤ اشاره
کړیده په تفسیر بیضاوی کښ او شیخ عبد القادر جیلانی رحمة الله په فتح
الربانی ص۵۷۵ کښ او نورو اهل لغت هم دے معانو ته اشاره کړیده۔ او دا معانی مراد کیدے شی په سورة
الانعام س۴۶ کښ چه اختیار دَ غوږونو او سترګو او زړونو (عقلونو) صرف
دَ یو الله تعالیٰ دے او په سورة النمل س۶۰ کښ پیدا کوونکے دَ زمکو او باران
ورونکے دَ اسمان نه۔ او دَ زمکے نه ګڼړ او تازه باغونه راټوکوونکے یو
الله تعالیٰ دے او په س۶۱ کښ چه زمکه شته کوونکے او په هغے کښ نهرونه
سیندونه بهیونکے او کلک غرونه جوړوونکے او دوه قسمه دریابونو کښ
پرده جوړوونکے یو الله تعالیٰ دے۔ او په س۶۲ کښ دَ محتاجو دُعا قبلوونکے او
هر تکلیف او مصیبت لرے کوونکے او انسانانو لره په زمکه کښ په یو بل پسے
اباد وونکے یو الله تعالیٰ دے۔ او په س۶۳ کښ دی چه په تیرو دَ بیابانونو او دریابونو
کښ لار ښودونکے او مختلفے هواګانے دَ باران نه مخکښ رالیږونکے یو الله تعالیٰ
دے او په س۶۴ کښ اول پیدا کوونکے یا پیدائش کوونکے بیا دوباره پیدا کوونکے
او تاسو له روزی درکوونکے دَ اسمان او زمکے نه یو الله تعالیٰ دے۔
او په سورة القصص س۷۱ کښ دی چه نمر راخیژوونکے رڼا لرے
کوونکے یو الله تعالیٰ دے۔ او په س۷۲ کښ دی چه شپه راوستونکے
ورځ لرے کوونکے یو الله تعالیٰ دے۔ نو په کلمه دَ لا اله الا الله
کښ دا ټولے معانے اراده کیدے شی په زړه کښ او هم په ژبه او هم
په دعوت او بیان کښ نو دا توحید دَ الوهیت دے۔

مسئله دَ شفاعت (سفارش کول) دَ شرک او بدعت نه دَ
بچ کیدلو دَ پاره دَ شفاعت شرعیه او شرکیه او بدعیه په مینځ کښ
فرق کول ډیر ضروری دی دَ دے وجے نه دا مسئله دَ قرآن کریم په
رڼړا کښ ذکر کوو۔
پوهه شه چه ماده دَ شفاعت (ش، فا، ع) په قرآن کریم کښ

يو ديرش كرته ذكر شوي ده اوهغه په دوه قسمه ده.

اول شفاعت (سفارش) د بنده ګانو په مينځ کښ چه يو شخص د بل شخص (چه محتاج وي يا مصيبت زده وي) د پاره دريم شخص ته سفارش کوي د هغه د حاجت پوره کولو يا د مصيبت لرے کولو د پاره د اسبابو د لاندے تو پيديږي د جائز کار د پاره سفارش ښه عمل دے او د ناجائز کار د پاره سفارش بد عمل دے. د دے ذکر په سورة النساء ۸۵ کښ دے.

دويم قسم سفارش د يو مخلوق دے د بل شخص د پاره الله تعالى ته او په قرآن کريم کښ الخ په اووڅلوېښت سورتونو کښ ذکر دے په ډيرو طريقو سره.

اوله طريقه: ذکر د عقيدے د مشرکانو په باره د معبودان باطله کښ که ملك وي يا جن وي يا نبي وي يا ولي وغيره دا په سورة يونس ۱۸ کښ او په سورة الزمر ۳۹ ۴۳ کښ ذکر دي او دا عقيده بنياد دے د نورو اقسامو د شرک د پاره.

دويمه طريقه: د مشرکانو د پاره نيشتوالے د دے شفاعت او بلا اذن د الله تعالى نه په نيشتوالي مطلق سره، دا په قرآن کريم کښ په اته آيا تونو کښ ذکر دي سورة البقره ۲۵۴، سورة الانعام ۵۱، ۵۴، ۷۰ سورة الروم ۱۳ سورة سجده ۴ سورة الشعراء ۱۰۰ او سورة الغافر ۱۸.

څلورمه طريقه: نفع نه ورکول د شفاعت دا په درے آيا تونو کښ ذکر دي سورة طه ۱۰۹، سورة سبا ۲۳ او سورة المدثر ۴۸.

پنځمه طريقه: نه قبليدل د شفاعت دا په يو آيت کښ ذکر دے په سورة البقره ۴۸ کښ.

شپږمه طريقه: اغنا نه کول (فائده نه ورکول په دفع کولو د مصيبت سره) د شفاعت دا قسم په دوه آيا تونو کښ ذکر دے. سورة يٰس ۲۳ او سورة النجم ۲۶ کښ.

اوومه طريقه: نيشتوالے په طريقه د استفهام (تپوس) انکاري سره او دا په يو آيت کښ ذکر دے سورة الاعراف ۵۳.

اتمه طريقه: سفارش کول په اذن د الله تعالى سره دا په پنځه آيا تونو کښ ذکر دي. سورة البقره ۲۵۵، سورة يونس ۳، سورة طه ۱۰۹ سورة سبا ۲۳ او سورة النجم ۲۶.

نهمه طریقه: شرط د رضا د الله تعالیٰ د مشفوع له رچه چا د پاره سفارش کیږے شی) د پاره دا په دوه ایاتونو کښ ذکر دی سورة الانبیاء ۲۸ او سورة النجم ۲۶.
لسمه طریقه: استثناء د سفارش کوونکی د شفاعت کولو د پاره دا په یو ایت کښ ذکر دے سورة الزُخرف ۸۶ او د دے د پاره دوه شرطونه ذکر دی.
اول دا چه په دنیا کښ ئے حق طرف ته دعوت ورکړے وی. دویم دا چه عالم وی په حال د مشفوع له چه دے مؤمن دے او که نه دے او دا علم په قیامت کښ حاصلیږی.
یوولسمه طریقه: دا سے دوه ایاتونه دی چه احتمال لری د استثناء د شفیع او مشفوع له. سورة مریم ۸۷ سورة طٰه ۱۰۹.
د دے ایاتونو نه معلومه شوه چه د سفارش کولو یوخو شرطونه دی. اول دا چه د الله تعالیٰ اذن وی. دویم دا چه چا د پاره شفاعت کیږی چه هغه به کافر مشرک نه وی. دریم دا چه شفاعت کوونکے به هغه خوک وی چه په دُنیا کښ ئے حق (توحید او سنت) طرف ته دعوت ورکړے وی. څلورم دا چه الله تعالیٰ د هغه نه رضا وی. پنځم دا چه هغه مشفوع له او پیژنی چه دا مؤمن دے مشرک کافر نه دے.
**شفاعت شرعیه** په ورځ د قیامت کښ حق دے په دغه پنځو شرطونو سره او د دے ډیر قسمونه په شرح عقیدة طحاویه کښ ذکر کړے شوی دی.
او دا سے شفاعت نه منکرین حدیث او معتزله انکار کوی، او هر چه په دنیا کښ وی نو د هغے دوه قسمونه دی. اول قسم یو ژوندے بنده بل ژوندی بنده ته وائی (چه هغه ئے اوری) چه زما د پاره دُعا او غواړه، برابره خبره ده که دے د هغه نه غوره شخص وی او که نه وی غوره او دا د قرآن کریم په سورة ابراهیم ۴۱ کښ او سورة نوح ۲۸ او سورة حشر ۱۰ کښ ذکر دی دویم قسم یو ژوندے شخص د مسلمان مرده د پاره دعا غواړی دغه تیر شوی ایاتونه هم پدے باندے دلیل دے. دا رنګ په دے دواړو قسمونو باندے احادیث صحیحه هم دلالت کوی. او دغه ایاتونه او احادیث دلیل دے په اذن د الله تعالیٰ باندے یعنی دا شفاعت بالإذن دے
**شفاعت غیر شرعیه** (بلا اذن) د دے درے قسمونه دی.
اول: د یو ژوندی شخص د یو مرده د قبر په خوا کښ د هغه نه دُعا

او شفاعت طلب کول او دا په څو وجوهو سره ناجائز دے او بدعت دے بلکه د شرک طرف ته راښکل کوی۔
اوله وجه دا ده چه په قرآن کریم او صحیح حدیث کښی د دے ثبوت نشته نو اذن د الله تعالیٰ نیشته نو معلومه شوه چه دا شفاعت بغیر د اذن نه دے۔
دویمه وجه دا ده چه طلب کوونکے د شفاعت عقیده لری چه دا مړے زما خبرے اوری او د دے د پاره هم صحیح دلیل نیشته او د دے تفصیل موږ په تفسیر د سورة الروم کښی ذکر کړے دے۔
دریمه وجه دا ده چه دا سے خلق عقیده لری چه د قبر په خوا کښی دُعا ښه قبلیږی نو دا هم بے دلیله خبره ده په شرع کښی د دُعا د اجابت خاص ځایونه په احادیثو صحیحو سره ثابت دی او په هغے کښی د قبر په خوا کښی د قبلیدلو ذکر نیشته او د دے په باره کښی مفسر آلوسی په تفسیر د سورة مائده کښی وئیلی دی چه دا اتفاقی ناجائز دی د هیڅ عالم شک نیشته د دے په ناجائز والی کښی۔
دریم قسم د قبر نه په لرے فاصله کښی رچه په ژوند کښی هم په دغه فاصله کښی آورید ل نه کیږی) آواز کوی چه فلانی بزرګه، یا یا زما د پاره د الله تعالیٰ نه دُعا اوغواړه۔ نو دا خو شرک دے په ډیرو وجو سره۔
اوله وجه دا چه عقیده لری چه دا ولی غائبانه آوازونه آوری عالم الغیب دے او دا عقیده ساتل شرک دے نورے وجے هغه دی چه د اول قسم په بیان کښی ذکر شوی دی۔
څلورم قسم قبر د یو ولی ته سجده کوی د هغے طواف کوی د هغے په نوم نذرانے جنډے غلافونه راوړی او نور تعظیمات ئے کوی په دا سے عقیدے سره چه دا ولی په خوشحاله شی او زما فلانے حاجت به په الله تعالیٰ باندے پوره کړی یا فلانے مصیبت به په الله تعالیٰ باندے زما نه لرے کړی یعنی الله تعالیٰ د دے ولی د مینے یا وجاهت (مخور یزئ) نه مجبوره ناچاره ګڼړی او دا شرک د مکے معظمے د مشرکانو وُو چه په سورة یونس سـ۱۸ کښی او په سورة الزُمر سـ۳ کښی د هغے ذکر دے او دا سے تصریح امام رازی په تفسیر کبیر کښی د آیت د سورة یونس په تفسیر کښی کړے ده۔

او نور تفصیل دَ شفاعت په باب دَ وسیله کښې په تفسیر دَ سورة المائدة
کښې مونږ ذکر کړے دے۔

**عرض** دَ دے تفسیر کتونکو او دَ دے نه فائده
اخستونکو ته درخواست دے که تاسو ته په دے
کښې تفسیری یا معنوی یا تحریری غلطی معلومه
شی نو ماته دَ هغے خبر راکړئ یا دَ هغے دَ اصلاح
کوشش اوکړئ او زما دَ معافئ دَپاره دَ الله تعالیٰ نه
دُعا اوغواړئ۔ زه هم الله تعالیٰ ته دُعا غواړم
چه په دے سره مسلمانانو ته فائده ورکړی او زما
گناهونه او غلطئ معاف کړی۔

وما ذالك على الله بعزيز

ابو زکریا عبد السلام غفرله
اول شعبان ۱۴۲۰ھ



سورة الفاتحة مكية | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ﴿١﴾ | اٰياتها ٧ رکوعها ١

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمان او رحیم دے

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ ﴿٢﴾ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ﴿٣﴾

ټول صفتونه د خدائے تعالیٰ خاص الله تعالیٰ لره دی چه پالنه کوُونکے د ټول عالم دے. عام مهربانی والا دے خاص رحم کوونکے دے

مٰلِكِ يَوۡمِ الدِّيۡنِ ﴿٤﴾ اِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَاِيَّاكَ

اختیارمند د ورځ د بدلے (جزا) دے. خاص تا لره بندګی کوو مونږ او خاص ستا نه

نَسۡتَعِيۡنُ ﴿٥﴾ اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِيۡمَ ﴿٦﴾

مدد غواړو (په هر حالت کښې). کلک کړے مونږه په لار نیغه.

صِرَاطَ الَّذِيۡنَ اَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ غَيۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ

لار د هغه کسانو چه نعمت کړیدے تا په هغوی باندے نه دی هغه کسان چه غضب کړے شویدے

عَلَيۡهِمۡ وَلَا الضَّآلِّيۡنَ ﴿٧﴾

په هغوی باندے او نه بے لارے دی.

بسم الله الرحمٰن الرحيم

## سورة فاتحه

الحمد لله رب العالمین والصلوٰة والسلام علیٰ سید الانبیاءِ والمرسلین محمد وعلیٰ آله واصحابه اجمعین.

اما بعد! په توفیق او په فضل د الله تعالیٰ سره په تفسیر د قرآن شروع کووم چه اول تفسیر د سورة فاتحه دے. پوهه شئ چه ما په تفسیر د هر سورت کښې څو خبرو التزام کړیدے اول ربط (تړل) د روستو سورت د مخکښې سورت سره. دویم دعویٰ (موضوع. لوئے مقصد) د سورت، دریم خلاصه د مضامینو د سورت اجمالی او تفصیلی، څلورم تشریح د الفاظِ مفرده او د جملو او مقصد د هر آیت، پنځم حکمتونه او لطائف او فائدے د مفرد الفاظو او د جملو او د آیاتونو، شپږم کوم سورت چه ډیر نومونه لری نو هغه نومونه د سورت په ابتدا کښې ذکر کول. نو د سورة فاتحه ربط ذکر کولو ته حاجت نیشته ځکه چه د دینه مخکښې بل سورت په لیکلی شوي ترتیب کښې

تیشته دا دَ ټولونه په دے ترتیب کښې مخکښې سورت دے۔

**دعوٰی دَ دے سورت:** اعلان دَ توحید اورد دَ شرک دَ ټولو قسمونو دے په لفظ دَ الحمد الله سره او مقصد دَ دے دا دے چه هر انسان او خصوصًا مؤمن دَ خپل رب عظمت اولوئي په داسے طریقے سره اوپیژنی چه دَ الله تعالیٰ نه سیوا بل هیڅوک دَ هغه عظمت حقدار نه ګنړی او دَ خپل رب سره داسے تعلق او محبت پیدا کړی چه دغسے دَ بل هیچا سره تعلق او محبت اونه لری۔

**خلاصه دَ دے سورت:** اول دعوٰی دَ اثبات دَ توحید ده په ت۱ کښې۔ دویم اثبات دَ هغه دعوے دَ په تومونو دَ الله تعالیٰ سره او دیته استدلال بِاَسْمَاءِ الله تعالیٰ وَصِفَاتِهٖ وئیلے شی او دا دَ دلیل عقلی یو قسم دے نو دا درے عقلی دلیلونه شول په ت۲ ت۳ ت۴ کښې۔ دریم نتیجه او تفریع ده په دغه دعوٰی باندے په ت۵ کښې۔ څلورم تعلیم دَ دعا دے دَ پاره دَ هدایت او استقامت په دغه دعوٰی او نتیجه باندے په ت۶ کښې۔ پنځم ذکر دَ درے ډلو دے چه متعلق دی دَ دغه دعوے سره په منلو او په نه منلو سره په ت۷ کښې۔

**حکمتونه او فائدے:** حکمتونه او فائدے دَ الفاظِ مفرده او په هر آیت کښې خو بے شماره دی بعضِ دَ هغے نه خو په وخت دَ تفسیر کولو کښې ذکر کوو (ان شاء الله) لیکن اوس بعضِ فائدے او حکمتونه هغه ذکر کوؤم چه دَ سورت مجموعی حیثیت سره تعلق لری او پشان دَ خلاصے دَ سورت دی او دا هم په طریقه دَ مخمساتو (پنځه پنځه) دَ سورت سره ذکر کوؤم او دا لس مخمسات دی۔

اول مخمس دا دے پنځه اقسام دَ معرفت دَ الله تعالیٰ۔ معرفت دَ ذات دَ الله تعالیٰ په ت۱ کښې معرفت دَ صفاتو دَ هغه په ت۲ ت۳ کښې معرفت دَ حقوقو دَ هغه په ت۴ کښې معرفت دَ هغه لارے چه رسوونکے ده حقوقو ته په ت۵ کښې۔ معرفت دَ اهلِ طریق چه دَ هغوی تابعداری کیدے شی په ت۶ ت۷ کښې۔

دویم مخمس، پنځه انواع دَ توحید۔ اول توحید دَ ذات په ت۱ کښې۔ دویم توحید دَ ربوبیت په ت۲ کښې۔ دریم توحید دَ اسماؤ او صفاتو ت۳ ت۴ کښې۔ څلورم توحید دَ الوهیت ت۵ کښې۔ پنځم توحید دَ حکم او تشریع په ت۶، ۷ کښې۔

دریم مخمس، صراحةً اسماء دَ الله تعالیٰ پنځه۔ الله۔ رب۔ رحمٰن۔ رحیم۔ مالك۔

څلورم مخمس، پنځه صفاتو دَ الله تعالیٰ ته اشاره۔ المحمود۔ المعبود۔ المستعان۔ الهادی۔ المنعم۔

پنځم مخمس، پنځه عبادات۔ تسمیه۔ تحمید۔ تعبّد۔ استعانت۔ دُعا۔

شپږم مخمس، رد په پنځه ګمراهو ډلو باندې۔ مشرکان ټول قسمونه۔ قدریه۔ جبریه
مرجئه۔ روافض شیعه۔ او نور فرق پنځه هم۔ دهریه ټول قسمونه۔ منکرین د
نبوت۔ منکرین د قیامت۔ منکرین د صفاتو (جهمیه) او ټول مبتدعین۔
اووم مخمس، ذکر د پنځو فرقو، صالح (ی) یا غیر صالح، الحامدون۔ العابدون۔ المنعم علیهم
المغضوب علیهم۔ الضالون۔
اتم مخمس، پنځه تخصیصات۔ تخصیص د حمد په الله تعالیٰ پورې۔ او تخصیص
د صفاتو او تخصیص د عبادت او تخصیص د استعانت۔ او تخصیص د هدایت او انعام۔
نهم مخمس، پنځه قسمه جملې۔ جمله خبریه په معنیٰ د انشاء کښې (الحمد لله)
جمله خبریه محضه (ایاك نعبد وایاك نستعین) جمله انشائیه محضه (اهدنا)
جمله اسمیه (الحمد لله) جمله فعلیه (ایاك نعبد)۔
لسم مخمس، (مخکښې ذکر شویدي) دعوی۔ دلیلونه۔ نتیجه۔ دعا۔ درے پړے۔
دا مخمسات د مجموعه سورت سره تعلق لري او دا غیر دي د هغه مخمساتو نه
چه کتاب لطائف القرآن (عربي۔ پښتو) کښې لیکلي شویدي۔

**اسماء (نومونه) د دې سورت:۔** سورة الفاتحه[1]۔ سورة الحمد[2]۔ سورة الصلوٰة[3]۔
سورة النور[4]۔ اعظم السورة[5]۔ سورة الشفاء[6]۔ سورة الرقیه[7]۔ سورة الواقیه[8]۔ سورة الوافیه[9]
سورة الکافیه[10]۔ سورة الشافیه[11]۔ سورة الکنز[12]۔ سورة تعلیم المسئلة[13]۔ السبع المثانی[14]۔
القرآن العظیم[15]۔ سورة اساس القرآن[16]۔ سورة الشکر[17]۔ سورة المناجات[18]۔ سورة التفویض[19]۔
سورة السوال[20]۔ ام الکتاب[21]۔ ام القرآن[22]۔ او دا نومونه په نقل سره ثابت دي او د هر یو
د پاره وجه تسمیه هم شته چه هغه مفسر آلوسي په روح المعاني کښې لیکلې دي۔

**تنبیه:۔** د سورة فاتحه زیاته تشریح ما په کتاب التبیان فی تفسیر ام القرآن
او په لطائف القرآن کښې په عربي ژبه او ترجمه د لطائف القرآن په پښتو ژبه
(دیارلس مخمسات) کښې کړې ده د دې وجې نه دلته به مناسب اختصار کیدیشي۔

**تفسیر:۔** بسم الله الرحمن الرحیم۔ د دې په باره کښې د اهل علمو
ډیر اقوال دي چه دا (بسم الله) آیت مستقله د قرآن نه دے او که نه دے؟ او
د سورة فاتحه نه جزء دے او که نه دے؟ او د هر یو سورت نه جزء دے او که نه دے؟
دغه اقوال په التبیان کښې ما ذکر کړي دي لیکن ظاهره راجحه خبره دا ده چه
د سورة توبه نه علاوه د هر سورت په سر کښې بسم الله الرحمن الرحیم
نازل کړې شویده نو په وخت د تلاوت کښې د دې پریښودل پکار نه دي

هاں په جهر او پټ لوستلو کښې اختلاف دے۔

تشريح د مفرداتو د دے کلمے داده:- باء حرف دے د حروف معاني نه او عمل د جرّ (زير ورکول) کوي تو غوره داده چه دا د پاره د استعانت ده او هر کله چه د دے سورت په نومونو کښې يو نوم تعليم المسئله دے يعنې الله تعالیٰ خپلو بندګانو ته د سوال کولو تعليم ورکړے دے تو بنا په دے دلته "قولوا" پټ مراد دے يعنې اے بندګانو او وايئ بسم الله لره نو اشاره شوه چه ټول بندګان په استعانت کښې يو الله تعالیٰ ته محتاج دي نو په دے اول حرف کښې ردّ دے په شرك في الاستعانت باندے او په روايت د ابن جرير کښې وارد دي چه دا د مشرکانو د ردّ د پاره نازل شوے دے چه هغوی به بسم اللات او بسم العزیٰ وئيل نو الله تعالیٰ او فرمائيل چه بسم الله وايئ۔

اسم کله عَلَم (نوم) ته وئيلے شي کله صفت ته وئيلے شي او کله عام وي دواړو ته دلته عموم مراد دے نو شامل دے د الله تعالیٰ ټولو نومونو او صفتونو ته يعنې په وخت د استعانت کښې د الله تعالیٰ هر نوم او صفت ذکر کول جائز دي په دليل د دے قول د الله تعالیٰ سره وَلِلّٰهِ الْاَسْمَاءُ الْحُسْنٰى فَادْعُوْهُ بِهَا (الاعراف ۱۸۰) قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ اَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ اَيًّا مَّا تَدْعُوْا فَلَهُ الْاَسْمَاءُ الْحُسْنٰى (اسراء ۱۱۰) او مدد غوختل په ژبے سره اداکيږي او په ژبه چه اداکيږي نو هغے ته اسم وئيلے شي د دے وجے نه دلته يئے بسم الله او وئيل او بالله يئے او نه وئيله۔

بسم جار او مجرور متعلق عامل غواړي او هغه په لفظ کښې ذکر نه دے نو پټ مراد دے او په هغے کښې اختلاف دے۔ ابدء۔ ابتداء۔ ابتدائي۔ اقرء۔ ټول جائز دي ليکن غوره داده چه استعينوا امر يا استعين فعل پټ دے او دا عام دے فعل د قراءت او د خوراک څښاک وغيره ټولو ته شامل دے او ضروري داده چه دا فعل به د بسم الله نه روستو مراد وي او د جار مجرور تقديم (مخکښې وا) په عامل باندے اختصاص او حصر فائده کوي يعنې استعانت خاص دے په نوم د الله تعالیٰ پورے او په دے سره د شرك ترديد کيدے شي۔

الله داخاص نوم (عَلَم) د الله تعالیٰ دے، موصوف وي ليکن صفت نه واقع کيږي او د الله تعالیٰ نه سيوا په هيڅ چا باندے اطلاق نشي کيدلے. په دے لفظ کښې د اهل علمو اختلاف دے چه دا مشتق دے او که جامد دے او چه مشتق وي نو بيا اختلاف دے په مبدء د اشتقاق کښې۔ هر طرف ته دليلونه

موجود دی لیکن غوره داده چه لفظ دَ الله په اعتبار دَ لغت عربیه سره مشتق دے او په دے اعتبار سره چه داخاص نوم دَ الله تعالیٰ دے نو مشتق نه دے نو لفظ الله په اصل کښ اِلٰه دے او الف لام په کښ زیاتی دی لیکن لازمی دی۔ او دَ لفظ الله په مبدءِ دَ اشتقاق کښ ډیر اختلاف دے او دَ هغے په وجه سره دَ دے په معنی کښ هم اختلاف دے۔ حاصل دا دے چه دَ الله شرعًا یو خاص معنی ده چه "المعبود بحق" دے یعنی هغه ذات چه حق دَ بندګئ دَ هغه دے نو هم په دے معنی سره په لا اله الا الله کښ مراد دے او دارنګ په مقام دَ توحید کښ دا معنی مراد ده۔ او دویمه عام معنی ده چه هغه دَ سورة نمل دَ نټ ۶۰ ۶۱ ۶۲ ۶۳ ۶۴ او سورة قصص ۷۱ ۷۲ او دَ سورة انعام ۴۶ نه معلومیږی یعنی اختیارمند دَ ټول عالم او حاجات پوره کوونکے او مشکلات لرے کوونکے او تدبیر چلوونکے دَ ټولو موجوداتو دے دَ دے وجے نه ابن قیم الجوزیه رحمة الله علیه ذکر کړیدی چه دا نوم (الله) مستلزم دے ټولو معانی دَ اسماء حسنیٰ لره او دلالت کوی په هغه ټولو اسماءِ حسنیٰ باندے نو لفظ الله اجمال دے او نور اسماءِ حسنیٰ دَ هغے تفصیل دے (بدائع التفسیر ص ۱۳۹/۱) او دَ دے عام معنی ذکر شیخ عبد القادر جیلانی رحمة الله علیه په کتاب الفتح الربانی ص ۵۲ او ص ۷۵ کښ داسے کړیدے چه هر هغه څیز چه ته و ربانه اعتماد کوے او دَ هغه نه خوف کوے او دَ هغه نه اُمید و نه لرے او هغه اختیارمند دَ نفع او ضرر ګڼړے نو هغه ستا اِلٰه دے او په لا اله الا الله کښ هم دا معنی کیدے شی۔

الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ: دا دواړه صیغے دَ مبالغے دی په فاعلیت کښ دَ رحمت نه ماخوذ دی۔ لیکن رحمت دوه قسمه دے یو په صفت دَ الله تعالیٰ کښ او دویم په صفت دَ مخلوق کښ او قاعده دا ده چه په صفاتو دَ الله تعالیٰ او دَ مخلوق کښ مشابهتِ لفظیه خو کیدے شی یعنی الله تعالیٰ رحیم دے او دَ بنده صفت هم رحیم کیدے شی لیکن دَ دوی په معنی او مراد کښ هیڅ قسم تشبیه تمثیل نشی کیدے په دلیل دَ قول دَ الله تعالیٰ سره چه لَیۡسَ کَمِثۡلِهٖ شَیۡءٌ (شوری ۱۱) او لَمۡ یَکُنۡ لَّهٗ کُفُوًا اَحَدٌ (سورة اخلاص ۴) او فَلَا تَضۡرِبُوۡا لِلّٰهِ الۡاَمۡثَالَ (سورة نحل ۷۴) او دارنګ هر صفت دَ الله تعالیٰ په معنی حقیقی سره دے مجاز په اسماؤ او صفاتو دَ الله تعالیٰ کښ باطل دے نو دَ دے قاعدے په بِنا سره دَ رحمت دَ الله تعالیٰ معنی حقیقی فضل او احسان او انعام کول دی بغیر دَ عوض او غرض نه۔

او دَ رحمت دَ مخلوق معنی لغوی رِقة القلب ( ترم والے دَ زړه) دے ۔ نو دا قول دَ بعض مفسرینو باطل دے چه هغوی وائی چه دا صفت دَ الله تعالیٰ دَ پاره په اعتبار دَ مبدء سره نه دے بلکه په اعتبار دَ غایئے سره دے نو دا معنی مجازی شوه او دا قول دَ الله تعالیٰ په صفتونو کښ لوئے نقصان لره مستلزم کیږی. نو معنی دَ الرحمٰن الرحیم دا ده چه ځهر نعمت او احسان او فضل او دَ خیر او برکت مالك او ورکوونکے الله تعالیٰ دے۔

فرق په مینځ دَ الرحمٰن او الرحیم کښ: هر کله چه دَ دے دواړو لفظونو په مینځ کښ فرق دے په الف او په یا سره. او په زیا توالی دَ حروف دَ الرحمٰن دَ الرحیم نه معلومه شوه چه دَ دے دواړو په معنی کښ هم فرق دے او هغه په مختلفو وجوسره دے ۔ اوله وجه دا ده چه رحمٰن دَ ټولو خلقو سره تعلق لری دَ دے وجے دَ استواء علی العرش سره ئے الرحمٰن ذکر کړے دے ځکه استواء هم دَ ټولو خلقو سره متعلق ده، او رحیم خاص دَ مؤمنانو سره تعلق لری په دلیل دَ دے قول دَ الله تعالیٰ وَكَانَ بِالْمُؤْمِنِيْنَ رَحِيْمًا ( احزاب ۴۳) دا قول ابن جریر غوره کړیدے ۔ دویمه وجه دا ده چه رحمٰن دَ نعمتونو ورکولو په معنی دلالت کوی او رحیم دَ مصیبتونو او عذابونو دفع کولو دَ پاره استعمالیږی لکه په سورة انعام ۱۲ او سورة غافر ۷ کښ دی ۔ دریمه وجه دا ده چه رحمٰن دَ دنیا نعمتونه ورکوونکے دے او رحیم دَ آخرت نعمتونه ورکوونکے دے دا قول فراء غوره کړے دے ۔ څلورمه وجه دا ده چه رحمٰن په وسعتِ رحمت باندے دلالت کوی او رحیم په لزوم دَ رحمت باندے دلالت کوی لکه چه دا دواړه قسمونه په سورة اعراف ۱۵۶ کښ او سورة غافر ۷ کښ دی او خصوص او لزوم دَ رحمت په سورة انعام ۵۴ کښ هم ذکر دے ۔ پنځمه وجه دا ده چه رحمٰن دلالت کوی په لویو نعمتونو باندے او رحیم دلالت کوی په واړه نعمتونو باندے ۔ شپږمه وجه دا ده چه رحمٰن دَ اسمانونو والو سره متعلق دے او رحیم دَ زمکے والو سره تعلق لری ۔ اوومه وجه دا ده چه رحمٰن هغه ذات دے چه دَ هغه نه سوال اوکړے شی نو ورکوی او رحیم هغه ذات دے چه بغیر دَ سوال نه ئے هم ورکوی اتمه وجه دا ده چه رحمٰن دلالت کوی په کثرت دَ افراد دَ رحمت باندے او رحیم دلالت کوی په تکرار دَ رحمت باندے دا قول ابو حیان ذکر کړیدے ۔ نهمه وجه دا ده چه رحمٰن هغه ذات دے چه سوال ترینه کیدیشی نو خوشحالیږی او حاجت

پوره کوی او رحیم هغه ذات دے چه سوال تر ینه نه کیږی نو خفه کیږی او غصه کیږی۔
تنبیه :- د لفظ رحمان اطلاق په غیر الله باندے ناجائز دے دا ابن کثیر ابن جریر قرطبی امام راغب وغیره ټولو مفسرینو لیکلی دی او د لفظ رحیم اطلاق په اعتبار د مشاکلة لفظیه سره د بنده په صفت کښ کیدیشی لکه سورة توبه ۱۲۸ کښ د نبی صلی الله علیه وسلم په صفت کښ راغلے دے او هر کله چه د لفظ الله او د لفظ رحمٰن اطلاق په ما سوی الله باندے منع دے د دے وجے نه دواړه ئے یو ځائے ذکر کړے دی۔

فائدے :- چه تعلق لری د مجموعه بسم الله الرحمٰن الرحیم سره۔

اوله فائده :- د الله تعالیٰ اسماءِ حسنیٰ خو ډیر دی لیکن په دے کلمه کښ ئے دا درے اسمونه خاص کړل د دے وجه دا ده چه لفظ الله خو د ټولو اسمائو د پاره مستجمع او مستلزم دے او ټول اسماء خو په بسم الله کښ په یو ځل ذکر کول مشکل دی او په دے کلمه کښ ډیر اوګد والے پیدا کوی نو د هغے په ځائے ئے لفظ الله باندے ئے اکتفاء اوکړه بیا هر کله چه صفات د الله تعالیٰ بعضِ د جمال او د رحمت د پاره دی او بعضِ د جلال او د قهر وغضب د پاره دی او استعانت (مدد غوښتلو) سره خو صفات د رحمت او جمال مناسبت لری د دے وجے نه الرحمٰن الرحیم ئے خاص کړل په ذکر کولو سره۔ ګویا که دا صفتونه د الله تعالیٰ وسیله اوګرځولے شو د پاره د طلب د استعانت د هغه نه۔

دویمه فائده :- هر کله چه اصل مقصد په کلمه د الحمد لله کښ دے او استعانت په نوم د الله تعالیٰ سره وسیله ده او وسیله مخکښ پکاروی د دے وجے بسم الله ئے په الحمد لله باندے مقدم ذکر کړیده۔

دریمه فائده :- مفسر سیوطی په اتقان کښ او بعضو نورو اهل علمو ذکر کړیدی چه بسم الله د ټول قرآن خلاصه ده نو د هغے یو وجه دا ده چه د ټول قرآن اهم مقصد اثبات د احتیاج د مخلوق دے الله تعالیٰ ته او استعانت د مخلوق دے د خالق نه په طریقه د توحید سره او بآء د بسم الله هم د پاره د استعانت ده نو د اول سرنه په حرف د بآء سره دلالت اوکړے شو په مقصد د قرآن باندے۔ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ دا دعوی د دے سورت ده او مراد د دے نه رد دے د ټولو اقسامو د شرك بالله او رد دے په ټولو انواعو د مشرکانو باندے او د دے وجه دا ده چه مبتداء (الحمد) معرفه ده په الف لام سره او خبر هم معرفه دے او لام جاره د پاره

دَ تخصیص دے نو حاصل یې دا دے چه اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ تعالیٰ لَا لِغَيْرِهٖ مِنْ نَبِيٍّ اَوْ مَلَكٍ اَوْ وَلِيٍّ مِنْ اِنْسٍ اَوْ جِنٍّ اَوْ صَنَمٍ وَغَيْرِهَا۔ او دا کلمه دَ پنځه سورتونو په سر کښ ذکر ده سورة انعام۔ سورة کهف۔ سورة سبا۔ سورة فاطر او په دے سورت کښ۔ او دَ دے نه علاوه په اتلس ۱۸ ایاتونو کښ دا کلمه ذکر ده او په طریقه دَ لَهُ الْحَمْدُ سره په سورة روم ۱۸ سورة سبا ۱ او سورة قصص ۷۰ سورة تغابن ۱ او فَلِلّٰهِ الْحَمْد سورة جاثیه ۳۶ کښ ذکر دے او دا هم دلالت کوی په تخصیص باندے ځکه چه خبر یې مقدم کړے دے۔ او دا رنګ کلمه دَ الحمد لله سره نبی صلی الله علیه وسلم ته امر شپږ ایاتونو کښ ذکر دے نو دَ دے لوستل او دَ دے رسول واجب دی۔

الف لام په الحمد کښ دَ پاره دَ جنس دی یا دَ پاره دَ عهد دی ځکه چه علماء عربیت او اصول فقه وئیلے دی چه دا دواړه معنے حقیقی دَ الف لام دی او حقیقت چه څو پورے امکان لری نو مجاز ته تلل نشی کیدے۔

سوال:- که اُوئیلے شی چه الف لام جنسی کښ ماهیت مراد وی او ماهیت دَ حمد (چه مطلق ستائنه کول دی) هغه خو دَ مخلوق دَ پاره هم کیدے شی نو دعوٰی دَ اختصاص او دَ حصر څرنګه صحیح کیدے شی؟۔

جواب:- مراد دَ حمد نه ماهیت شرعی دے لکه چه روستو به انشاء الله ذکر کیږی او حمد په ماهیت شرعی سره په الله تعالیٰ پورے خاص دے۔

سوال:- الف لام عهد خارجی خو هغه وخت صحیح وی چه په خارج کښ معهود فرد موجود وی نو دلته معهود حمد څرنګ موجود دے؟۔

جواب:- معهود حمد هغه دے چه قرآن کریم او احادیثِ صحیحه کښ ذکر دے دَ پاره دَ الله تعالیٰ او هغه حمد شرعی دے نو په الف لام عهدی کښ هغے ته اشاره ده او دَ دے معنے رجعه هم اولے معنے ته کیږی۔ او احتمال شته چه دا الف لام استغراقی شی هغه ټولو افرادو (چه دَ حمد شرعی دی) ته به عام او شامل شی او دا قول ابن کثیر غوره کړیدے په دلیل دَ حدیث اَللّٰهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ كُلُّهٗ وَلَكَ الْمُلْكُ كُلُّهٗ سره۔

حمد معنی لغوی دَ دے په عربئ کښ "اَلثَّنَاءُ الْجَمِيْلُ بِالْجَمِيْلِ الْاِخْتِيَارِيِّ" ده۔ او دَ هغے په فارسی ژبه کښ تعبیر کیږی په "ستودن او ستائش کردن" سره او په پښتو ژبه کښ هغے ته ستائنه کول وئیلے شی او معنی شرعی (اصطلاحی) ستائنه کول دَ الله تعالیٰ په هغه اسمائو او صفاتو سره (عقیدةً او قولاً او عملاً)

کوم چه په قرآن کریم کښې الله تعالیٰ ځان دَ پاره ذکر کړے دی او په احادیثو صحیحو کښې نبی صلی الله علیه وسلم الله تعالیٰ دَ پاره ثابت کړی (ذکر کړی) دی او دَ هغې دَ علم طریقه داده چه په هر سورت کښې اسماء دَ الله تعالیٰ او دا رنګ صفاتِ فعلیه دَ هغه چه ذکر دی نو هغه راجمع کړے شی نو دا ذکر کول په ژبه او دَ هغې عقیده ساتل دَ الله تعالیٰ دَ پاره حمد کول دی لکه چه په دے سورت کښې پنځه اسماء (صراحتًا) او پنځه صفات (اشارةً) (لکه چه په مخمساتو کښې ذکر شول) دَ الله تعالیٰ په ستائنه کښې اوئیلے شی دا رنګ سورة بقره په ۲۱، ۲۲ کښې پنځه صفاتِ فعلیه دَ الله ذکر دی او په ۲۸، ۲۹ کښې اته صفات دَ الله تعالیٰ ذکر دی دا خو په طور دَ مثال سره دی دا رنګ دَ ټول قرآن دَ لوستلو او دَ نظر کولو نه بے شماره نومونه او صفتونه دَ الله تعالیٰ معلومیږی. بیا پوهه شئ چه دَ دغه اسماؤ صفاتو نه تعبیر کیدے شی په صفاتو دَ الوهیت سره او دَ دے وجے نه دَ ابن عباس رضی الله عنهما په یو روایت سره دَ حمد په معنیٰ کښې نقل دی چه "الوحدانية والالوهية لِلّٰهِ وحده" (تفسیر ابن عباس) او دا صفات دَ الوهیت اګرچه ډیر دی لیکن مرجع ئے دوه صفتونو ته کیدے شی اول دا چه ټول تصرفات او تدبیر او قدرت په هر څیز کښې دَ یو الله تعالیٰ دَ پاره دے دویم دا چه په هر څیز او په هر وخت کښې علم صرف یو الله تعالیٰ لره دے لکه چه دا دواړه دَ سورة طلاق په ۱۲ کښې ذکر دی او دا رنګ هر سورت کښې چه دلیلونه عقلی ذکر کوی نو دَ دے دواړه صفتونو نه خالی نه وی. نو دَ دے تفصیل نه روستو معنیٰ دَ الحمد لله دا شوه چه "ټول صفتونه او ستائنے دَ الوهیت (خدائیتوب) خاص یو الله تعالیٰ لره دی" یعنی الله تعالیٰ سره ټول اختیارات تصرفات او قدرت دے او علم دَ غیب او علم دَ هر څیز خاص دَ الله تعالیٰ سره دے دا صفتونه دَ الله تعالیٰ نه سیوا دَ هیڅ نبی، ملك، ولی، جن وانس وغیره سره نیشته. نو په دے سره رد او شو په ټولو مشرکانو او په ټولو اقسامو دَ شرك باندے. وجه داده چه هر مشرك چه دَ غیر الله بندګی کوی دَ هغه نه حاجت غواړی دَ هغه په نوم باندے نذر او منختے کوی په هغه باندے توکل کوی دَ هغه نه اُمید دَ نفعے او دَ ضرر ګنړی نو ضرور هغه لره قدرت او تصرف عام ثابتوی او هغه لره دَ علم دَ غیب عقیده لری او دَ هغه معبود ستائنے کوی چه دے مختار کل دے، غوث اعظم دے، حاضر ناظر دے، په غیبو باندے علم لری نو هر کله چه اُوئیلے شو چه الحمد لله یعنی دغه صفتونه (دَ الوهیت)

خو خاص الله تعالیٰ لره دی نو مشرکان ولے دا صفتونه د خپلو معبودانو د پاره گنړی۔ لِلّٰهِ لام د پاره د اختصاص دے او دا لفظ الله ئے د دے وجے نه راوړو چه حمد خو صفتونه دی او د صفتونو د پاره موصوف ذات وی او الله اسم د ذات دے۔
او بله وجه دا ده چه په نورو نومونو کښ د معنی لغوی په لحاظ سره احتمال د شرکت کیدیشی او لفظ د الله تعالیٰ کښ هیڅ احتمال د شرکت نیشته۔ او الحمد لِلّٰه ئے ذکر کړو او سبحان الله یا الشکر لِلّٰه یا المدح لِلّٰه ئے ذکر نه کړو د دے وجه دا ده چه الحمد لله د دے ټولو کلماتو نه عام او افضل دے ځکه اثبات د صفتونو ثبوتیو د الوهیت مستلزم دے نفی د صفاتو سلبیو (چه د عیب صفتونه دی) لره نو سبحان الله په الحمد لله کښ داخل شو او حدیث صحیح کښ هم دیته اشاره ده چه سبحان الله نصف المیزان او الحمد لله تملأه۔ "د سبحان الله ثواب نیمه د میزان ډکوی او الحمد لِلّٰه ټول میزان لره ډکه وی"۔ او دارنګ الحمد لله غوره دے د الشکر لِلّٰه نه په ډیرو وجوسره، اول دا چه شکر د الله تعالیٰ چه ادا کیږی نو بهتره طریقه د هغے الحمد لله وئیل دی۔ دویم دا چه د شکر په معنی کښ مقابله د نعمت ضروری ده او حمد عام دے که د نعمت مقابله کښ وی او که نه وی۔ دریم دا چه شکر کښ ټول صفتونه د مشکور داخل نه وی او په حمد کښ د محمود ټولو صفتونو د کمال ته اشاره وی۔ او دارنګ حمد د مدح نه غوره دے د ډیرو وجونه اول دا چه حمد مختص دے په ژوندی پورے او مدح خو د مړو او د جماداتو هم کیږی او الله تعالیٰ خو همیشه ژوندے دے نو هغه لره لفظ د حمد ښائیږی۔ دویم دا چه مدح په امورو غیر اختیاریو باندے کیږی او حمد په امورو اختیاریو پورے خاص دے او د الله تعالیٰ صفتونه ټول اختیاری دی نو معلومه شوه چه کلمه د الحمد لله غوره ده۔

**تنبیه:**۔ کوم خلق چه د الله تعالیٰ د صفتونو نه منکر دی معتزله او جهمیه یا د الله تعالیٰ د صفاتو تشبیه د مخلوق سره کوی نو په هغوی باندے په الحمد لِلّٰه سره رد اوکړے شو۔ او الحمد لِلّٰه جمله خبریه ده لفظاً او انشائیه ده په معنی کښ ځکه چه کوم انسان د الله تعالیٰ ستائینه او شکر کوی نو الحمد لله لووائی نو دا پوره شکر دے دا ورته څوک نه وائی چه دا خو تا خبر د حمد نه ورکړو۔

رَبِّ الْعَالَمِیْنَ دا صفت د الله دے او اول دلیل دے د پاره د مخکنی دعوے ځکه چه د عربیت قانون دا دے چه کوم حکم په جمله کښ متعلق شی په موصوف

بالصفت بائدے نو دغه صفت دَ دغه حکم دَپاره علت او دلیل وی او وجه دَ استدلال
دا ده چه ټول عالم په تربیت کښ الله تعالیٰ ته محتاج دے هغه خالق مالك رازق
مدبر اصلاح کوونکے حفاظت کوونکے دَ ټولو موجوداتو دے نو لازم دا شوه
چه دَ صفاتو دَ الوهیت حقدار هم صرف الله تعالیٰ دے او دا دلیل عقلی دے ځکه
چه سلیم عقل والا دا خبره منی چه رب دَ ټول عالم صرف الله تعالیٰ دے په دلیل
دَ سورة مؤمنون ۸۶ ۸۷ سره او دیته استدلال بِاَسْمَاءِ اللهِ تعالیٰ وَصِفَاتِهِم وئیلے شی۔
رب صیغه صفت مشبه ده دَ تربیت ته یا مصدر مبنی للفاعل دے او تربیت په اصل
کښ اِنشاءُ الشَئ حَالًا فَحَالًا اِلیٰ حَدِّ التَّمَام ته وئیلے شی (راغب) او دغسے تبلیغُ الشئ
الیٰ کمالِهٖ شَیْئًا فَشَیْئًا (بیضاوی) یعنی تربیت پیدا کول او لویه ول او کمالِ مناسب ته
رسول دی په دمه دمه۔ نو معلومه شوه چه تربیت په اصل کښ دَ دوه څیزونو نه
مرکب دے اول دَ پالنے څیزونه پیدا کول (باران۔ څیزونه دَ خوراک څښاک او
اسمان او زمکه بوټي او نے میوے وغیره ټول په دے کښ داخل دی) او دا رنګ
دَ خوراک څښاک آلات او اسباب پیدا کول مثلاً انسانانو لره خُله شونډے ژبه
غاښونه مرئی معده وغیره پیدا کول۔ دویم په دغه څیزونو کښ اثر پیدا کول
یعنی دَ خوراک او څښاک په څیزونو سره مړیدل او په بدن کښ ترقی پیدا کیدل
صحت ورکول دے مجموعه ته ربوبیت او تربیت وئیلے کیږی۔ او دا معنی دَ رب
په سورة شعراء کښ دَ ۷۸ نه تر ۸۲ پورے په تفصیل سره ذکر ده او دا رنګ
سورة الواقعة کښ دَ ۵۸ نه تر ۷۳ پورے او سورة عبس کښ دَ ۱۸ نه تر ۳۲ پورے
او سورة بقره ۲۱ ۲۲ کښ هم مواد دَ تربیت ئے ذکر کړی دی چه هغه دَ پیدا ئش
دَ انسان سره زمکه او اسمان باران او بوټي پیدا کول دی۔ دَ لفظ رَبّ په لغت عربی
کښ ډیرے معانی دی۔ مالك۔ سید۔ حاکم۔ انتظام کوونکے۔ اصلاح کوونکے۔ جمع
کوونکے۔ پالنه کوونکے۔ دَ یو حال نه بل حال ته نقل کوونکے۔ معبود۔ انعام کوونکے
صاحب۔ (دا معانی لسان العرب او قاموس او تفسیر قرطبی وغیره علماؤ ذکر کړیدی)
استعمال دَ لفظ رب په قرآن کښ په بعضِ معانو باندے شوے دے۔ په معنی دَ سید
(مولا) لکه په سورة یوسف ۴۲ کښ او په معنی دَ مالك سره لکه په سورة نمل ۹۱
او قریش ۳ کښ او په معنی دَ مصلح او ناصح لکه په سورة هود ۳۴ کښ او په معنی
دَ حاکم (اختیارمند دَ حکم) لکه په سورة العمران ۶۴ او په سورة توبه ۳۱ کښ
او په معنی دَ پالنه کوونکے لکه په سورة بقره ۲۱ کښ او په معنی دَ معبود لکه په

سورة آل عمران ۵ او ۸ کښې۔ او دا ټول معاني په حق د الله تعالیٰ کښې صحیح دي او په حق د مخلوق کښې په معنیٰ د حاکم مطلق او مالك مطلق او معبود وئیل ناجائز دي او شرك دے لکه په سورة آل عمران ۶۴ او ۸ او سورة یوسف ۳۹ کښې او د دے وجے نه مفسرینو اتفاق کړے دے چه لفظ د رب بغیر د اضافتِ خاصه نه په غیر الله باندے اطلاق کول حرام دي (ابن کثیر۔ قرطبي۔ ابن جوزي۔ صاحب قاموس۔ صاحب لسان العرب وغیرهم)۔

اَلْعٰلَمِیْنَ جمع د عالم ده په لغت کښې هغه څیز ته وئیلے شي چه بل څیز پرے معلومیږي یعني علامت او په عرف عام کښې د الله تعالیٰ نه سیوا ټولو څیزونو ته عالم وئیلے شي ملائیك انسانان پیریان حیوانات جمادات نباتات آسمانونه او زمکے وغیره۔ او دا معنیٰ د عالمین په سورة شعراء ۲۳ ۲۴ ۲۸ کښې ذکر شوی ده او د دے وجے د عالمین په ځائے کل شئ هم ذکر کړے دے سورة انعام ۱۶۴ او کله عالمین ذکر شي او مراد ترینه صرف انسانان او پیریان وي لکه سورة فرقان ۱۔ او د رب اضافت لکه چه عالمین ته کړے شوے دے نو دا رنګ د عالمین بعضِ افرادو ته هم شوے دے لکه ربِّ موسیٰ وهارون۔ رب العرش۔ رب السموات والارض وما بینهما۔ ربکم ورب آباءکم الاولین۔ رب المشرق والمغرب۔ رب المشارق والمغارب۔ رب المشرقین والمغربین۔ رب العزة۔ رب الشعریٰ۔ رب الکعبة۔ رب هذه البلدة رب الفلق۔ رب الناس۔

**سوال:**۔ هرکله چه عالم (مفرد) ټول ما سوی الله ته وئیلے کیږي نو بیا د جمع صیغه راوړل څه فائده لري؟۔

**جواب:**۔ هرکله چه په ماسِوی الله کښې ډیر اجناس د عالم دي۔ عالم اعلیٰ۔ عالم اسفل۔ عالم الحیوانات عالم النباتات وغیره نو د تعمیم د پاره یئے دا لفظ په صیغه د جمع سره ذکر کړو۔ او هرکله چه رب یئے مضاف کړو العالمین ته او ربوبیت دلیل د حمد دے نو معلوم شوه چه ټول عالم د الله تعالیٰ حمد وائي لکه چه په سورة اسراء ۴۴ کښې دي۔

الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ دا هم بل دلیل عقلي دے د پاره د دعوی د الحمد لله په ذکر د دوه صفتونو د الله تعالیٰ سره او دا یئے د عطف په طریقه نه دي ذکر کړي اشاره ده چه دا مستقل دلیل او مستقل صفتونه دي د دے څه تحقیق په تفسیر د تسمیه کښې تیر شوے دے او تفسیر د الرحمٰن په سورة الرحمٰن کښې ذکر دے۔

سوال :- دا صفتونه په بسم الله الرحمٰن الرحيم کښ ذکر شول نو بيا د ذکر کولو (چه تکرار دے) کښ څه فائده ده؟

جواب :- دوباره ذکر کولو کښ ډيرے فائدے دی اوله فائده دا ده چه په تسميه کښ دا ذکر وُو د پاره د دليل د استعانت او دلته کښ ذکر شول د پاره د دليل د الحمد لله۔
دويمه فائده دا ده چه دوباره راوړل د پاره د دفع کولو د وهم دی يعنی هر کله چه رب العالمين ذکر شو (يعنی خالق او مالک دے د ټولو نعمتونو) نو وهم راغے چه دا نعمتونه ورکوی او که نه او عام ئے ورکوی او که خاص نو د الرحمٰن الرحيم په راوړلو سره د دے جواب اوشو۔ دريمه فائده دا ده چه په تسميه کښ د ذکر د لفظ د الله تعالیٰ نه وجل او هيبت پيدا کيږی نو د هغے د زائيل کولو د پاره ئے د رحمت د الله تعالیٰ بشارت ذکر کړو او فاتحه کښ د رب العالمين په ذکر سره اُميدونه د انعاماتو پيدا شول نو د الرحمٰن الرحيم په ذکر سره د هغے اُميدونو تائيد اوکړے شو۔
او طريقه د استدلال دا ده چه هر کله ټول رحمتونه او نعمتونه عام او خاص ورکوونکے الله تعالیٰ دے او هيڅ عوض نه غواړی نو د دا سے ذات حمد او شکر فرض او لازم وی او په دے نعمتونو ورکولو کښ د هغه شريک نيشته نو معلومه شوه چه حمد هم په هغه پورے خاص دے۔

مَالِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ دا بل صفت د الله دے په طريقه د دريم دليل عقلی سره د پاره د الحمد لله۔ طريقه د استدلال دا ده چه واکدار د جزا سزا ورکولو صرف الله تعالیٰ دے د بل چا په هغے کښ وَس نه چليږی نو صفات د الوهيت هم په هغے پورے خاص دی۔ او د دے صفت مناسبت د مخکښ سره دا دے چه د مخکښ نه معلومه شوه چه د الله تعالیٰ رحمتونه نعمتونه عام دی څوک د هغے نه محروم نه دی نو وهم راغے چه د هغه نعمتونو صرف کولو او استعمالولو کښ به آزادی وی که څوک په جائز طريقه خرچ کوی يا په ناجائز نو د وهم جواب اوشو چه د نعمتونو په صرف کولو کښ د ورځ د جزا او د حساب فکر او يقين ضروری دے د پاره د دے چه نعمتونه بے ځايه خرچ نه کړے شی۔

تشريح :- مالك د مِلك (په زير د ميم سره) نه ماخوذ دے او د دے معنی په صفت د الله تعالیٰ کښ بيضاوی دا سے ذکر کړے ده چه هُوَ الْمُتَصَرِّفُ فِي الْاَعْيَانِ الْمَمْلُوكَةِ كَيْفَ يَشَاءُ او فراء بغوی وئيلے دی هُوَ الْقَادِرُ عَلٰى اِخْتِرَاعِ الْاَعْيَانِ مِنَ الْعَدَمِ اِلَى الْوُجُوْدِ۔ او په دے معنی سره دا خاص دے په الله تعالیٰ پورے

دَ دے وجے نه قرطبي وئیلي دي چه مالك على الاطلاق بغير دَ الله تعالىٰ نه دَ بل چا دَ پاره نه استعمالیږي او مخلوق ته مالك په معنى مجازي وئیلے شي چه تصرف او اختيار په مملوک چلوي ليکن په مشيت دَ الله تعالىٰ سره نو دا مِن وجه ملکيت دے. او آيا تو نه په اثبات دَ ملکيت (په معنى اول سره) دَ الله تعالىٰ دَ پاره او په نفي دَ دغه ملکيت کښ دَ غير الله نه ډير دي چه هغه په تنشيط الاذهان کتاب کښ په باب دَ رد دَ شرک في التصرف کښ ليکلي شوي دي۔

يَوم دا لفظ قرآن کريم کښ اکثر په معنى دَ ورځ دَ قيامت راغلے دے کله مقيّد وي په لفظ دَ دين۔ حساب۔ آخر۔ قيامت وغيره سره کله يوم مطلق وي ليکن قرينه دلالت کوي چه يوم دَ قيامت مراد دَه او هغه ورځ دَ دويمے شپيلئ نه (چه په هغے سره خلق دَ زمکے نه را اُوځي) تر دخول دَ جنتيانو جنت ته او دخول دَ جهنميانو جهنم ته پورے دَه يا تر غير انتها پورے دَه۔ او دا لفظ کله دَ دنيا دَ ورځ په معنى سره دے لکه يوم سبتهم۔ يوم الفرقان۔ يوم حنين وغيره او هغه شرعًا عبارت دے دَ طلوع دَ فجر نه تر غروب دَ نمر پورے۔ او کله په معنى دَ مطلق دَ زمانه سره راځي چه دَ هغے صحيح مقدار الله تعالىٰ ته معلوم دے لکه په دے قول دَ الله کښ اِنَّ رَبَّكُمُ اللّٰهُ الَّذِیْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ فِیْ سِتَّةِ اَیَّامٍ (اعراف ۵۴) او کله په معنى دَ نعمتونو او عذابونو سره راځي لکه په دے قول کښ ذَکِّرْهُمْ بِاَیّٰىمِ اللّٰهِ (ابراهیم ۵) لَا یَرْجُوْنَ اَیَّامَ اللّٰهِ (جاثيه ۱۴)۔

الدِّیْن دا لفظ قرآن کريم کښ په ډيرو معانو سره استعمال شوے دے۔ اول عقيده دَ زړه۔ دويم شريعت۔ دريم غلبه۔ څلورم قانون۔ پنځم طاعت۔ شپږم حد شرعي، اوم عبادت۔ اتم دُعا۔ نهم حساب او جزا۔ دلته په آخري معنى سره دے۔ يوم الدين ورځ دَ جزا او دَ حساب۔ او يوم الدين قرآن کښ ديارلس کرته په دے معنى سره ذکر دے۔

سوال:۔ الله تعالىٰ خو مالك دَ دنيا او دَ آخرت دواړو دے نو په دے ايت کښ دَ تخصيص په يوم الدين پورے څه حکمت دے؟۔

جواب:۔ اوله وجه دا دَه چه په دنيا کښ ملکيت دَ انسانانو هم ظاهري طور باندے شته او په ورځ دَ آخرت کښ دَ الله تعالىٰ نه سيوا دَ هيڅا ملکيت نه حقيقةً شته او نه مجازًا لکه په سورة انفطار ۱۹ کښ ذکر دي او دا دَ دعوى دَ تخصيص دَ الحمد لله سره پوره مطابق دَه۔ دويمه وجه دا دَه چه په دے کښ رد دے په عقيده دَ شفاعت شرکيه باندے يعني مشرکان عقيده لري چه زمونږ دَ پاره شفعاء شته په ورځ دَ قيامت به مونږ دَ سزا نه ضرور بچ کوي نو دَ هغوي په رد کښ

اوئیلے شول چه په جزا سزا کښ د الله تعالیٰ نه سیوا د هیچا اختیار نه چلیږی.

سوال:- مالك الدين یئے ولے نه دے وئیلے؟

جواب:- اوله وجه داده چه لفظ د دین بغیر د یوم نه د جزا په معنیٰ کښ واضح نه دے. دویمه وجه داده چه په یوم الدین کښ عموم دے په نسبت د الدین یعنی الله تعالیٰ صرف د جزا نه بلکه د ټولے ورځے مالك دے په ورځ د جزا کښ ماسیوا د جزا نه نور احوال هم شته.

سوال:- په دے سورت کښ د دے پنځه صفتونو تخصیص ولے او کړے شو؟

جواب:- ابن قیم رحمة الله علیه وئیلے دی چه دا صفتونه د الله تعالیٰ د ټولو صفتونو مرجع او خلاصه ده. صفات د الوهیت ثبوتی او سلبی ټول داخل دی په لفظ الله کښ او صفات د فعل او قدرت تدبیر او تصرف تعلق لری د صفت د رب سره او صفات د احسان، جود، رأفت او رحمت راجع دی الرحمٰن الرحیم ته او صفات د عدل او حکم د عزت او ذلت ورکولو راجع دی صفت د مالکیت ته. او دارنګ د حمد تعلق صرف د ربوبیت او د رحمت او د جزا ورکولو سره دے لکه چه موږ په مناسبت د جملو کښ هغے ته اشاره کړے ده.

اِيَّاكَ نَعۡبُدُ هر کله چه دعوی سره د دلیلونو ذکر شوه او س د هغے نتیجه او تفریع ذکر کوی نو دا تفریع د توحید فی العبودیت ده په توحید د ربوبیت او په توحید الاسماء والصفات باندے.

سوال:- مخکښ صیغے په طریقه د غائب سره وے او دا یئے مخاطب ذکر کړیدے؟

جواب:- دیته التفات فی الکلام وئیلے شی د دے ډیر قسمونه او ډیر حکمتونه دی چه هغه په علم بلاغت کښ ذکر دی دلته د غائب نه التفات شویدے خطاب ته د دے وجه داده چه مخکښ معرفت د الله تعالیٰ ذکر کیدلو په نومونو او صفتونو سره او معرفت په دغه طریقه په غائب صیغو سره وی اګر چه حاضر وی او په دے (ایاك نعبد) او روستو جملو کښ اقرار او عهد او حاجت پیش کول دی او دا په مخاطبے سره ضروری وی. په دے جمله کښ توحید فی العبودیت او معرفت د حق د الله تعالیٰ دے لکه چه په حدیث د معاذ رضی الله عنه کښ وارد دی چه حق د الله تعالیٰ په بندګانو باندے دا دے "اَنۡ يَّعۡبُدُوۡهُ وَلَا يُشۡرِكُوۡا بِهٖ شَيۡـًٔا".

اِيَّاكَ په دے کښ تخصیص په درے طریقو سره دے اول دا چه مادہ د اَيّ دلالت کوی په تخصیص باندے. دویم دا تقدیم د مفعول کړے په فعل د هغه باندے

اوحق کَ دے روستو ذکر کول دی لیکن دلته مقدم کړی شو نو تقدیم دَمَاحَقُّهُ التَّاخِيْر
فائده کوی حصر او تخصیص لره۔ دریم داچه په تقدیم کَ دے مفعول سره احتمال
دَ عطف دَ غیر په دے باندے ختم شو ځکه چه په داسے حالت کښ په اياك باندے
عطف کول جائز نه دی او کَ اياك په مخکښ کولو کښ بله فائده دا ده چه دَ عابد
نظر اول معبود ته پکار دے روستو خپل عبادت ته دِ نظر کوی۔ او دا تخصیص نه
دَ دوه وجوته او شول اول داچه په ما قبل دعوی کښ تخصیص وَو نو په تفریع
کښ هم تخصیص ضروری دے دویم داچه په دے کښ اهم مقصد رد دے په
شرک باندے ځکه چه دَ نفسِ عبادت (بے توحیده) خو مشرکین هم قائل وُو دَ دے
وجے نه دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت دے چه دَ دے معنی دا ده "نَعْبُدُكَ
وَلَا نَعْبُدُ غَيْرَكَ" او بل روایت کښ دی "لَكَ نُوَحِّدُ وَلَا نُطِيْعُ غَيْرَك"۔
نَعْبُدُ صیغه دَ جمع متکلم په راوړلو کښ اشاره ده چه حق دَ عبادت فرض دے په
ټولو بندګانو باندے دَ یو شخص په اداکولو سره دَ نورو ذمه نه فارغ کیږی۔
بله وجه بیضاوی وغیره دا ذکر کړے ده چه هر عابد خپل عبادت لره دَ نورو
عابدینو په جماعت کښ کَ دے دَ پاره داخلوی چه دَ هغوی دَ عبادت دَ قبولیت دَ وجے نه
دَ ده دَ عبادت هم قبول شی۔ مادة "ع ب د" په اصل لغت کښ ډیر استعمالولو
او سولیدلو ته وئیلے شی کومه لار چه ډیره استعمال شی او دَ خلقو په خپو سره
هواره شی اُو سولیږی نو هغے ته طریق معبّد وئیلے شی او کومه جامه چه
ډیره استعمال شی اُو سولیږی نو هغے ته ثوب معبّد وئیلے شی۔ نو معلومه شوه چه دَ
عبادت په معنی کښ ډیر تذلل ماخوذ دے او په عرف دَ شرع کښ دَ عبادت په معنی کښ
دَ تعبیراتو ډیر اختلاف دے لیکن جامع عبارت دا دے چه الطَّاعَةُ مَعَ غَايَةِ الْخُضُوْعِ
وَالتَّذَلُّلِ عَلٰى وَفْقِ مَا كُلِّفَ بِهٖ مَعَ اِعْتِقَادِ الُوهِيَّةِ الْمَعْبُوْدِ (طاعت کول دی سره
دَ ډیرے عاجزئی نه، په موافق دَ تکلیف شرعی سره، سره دَ عقیدے دَ الوهیت دَ معبود نه)
نو کوم اطاعت چه بغیر دَ خضوع او تذلل نه وی نو هغه عبادت نه دے لکه طاعة
دَ رسول یا دَ امیر او امام بغیر دَ معصیت نه دا عبادت دَ هغه نه دے دارنګ خضوع
تذلل بغیر دَ طاعت نه عبادت نه دے لکه اصحاب باطن او متصوفه چه خضوع الی الله
خو پکښ شته لیکن طاعت دَ هغه نکوی دارنګ طاعت بغیر دَ موافقت دَ قرآن او سنت نه
عبادت نه دے دارنګ طاعت او خضوع بغیر دَ عقیدے دَ الوهیت نه هم عبادت نه دے۔
پوهه شئ چه عبادت هغه داسے طاعت دے چه دَ انسان په هر اندام او قوت بدنیه او مالیه سره

اداکيږي ک دے وجے نه ک عبادت ډير اقسام دي عبادت قلبيه عبادت بدنيه ظاهريه عبادتِ
ماليه. د عبادت قلبيه اقسام مشهور دا دي محبت، رجاء، خوف، اخلاص، توکل، انابت، تفکر،
تصديق، نيت. او عبادتِ بدنيه د ژبے او غوږونو او پوزے او سترګو او لاسونو او ځپو او
قوت ذائقه، لامسه، شامه جدا جدا عبادتونه دي او په هر يو کښ واجب، مستحب
مباح، مکروه، حرام شته دے او دا رنګ په عبادتِ ماليه کښ پنځه قسمونه دي
او د دے تفصيل په بدائع التفسير د ابن قيم رحمة الله عليه د ص ٢١٠/١ نه تر ص ٢٢٣
پورے اوګورئ نو د نَعْبُدُ وئيلو په وخت کښ به مؤمن د دے ټولو قسمونو عباداتو
طرف ته نظر ساتي.

**تنبيه:-** عبادت په لغت کښ او قرآن کښ په ډيرو معنو سره استعمال شويدے
(١) په معنی د اطاعت لکه سورة يٰسٓ ٦٠ کښ (٢) په معنی د مِلك نو عبد په معنی
د مملوك سره لکه سورة نحل ٧٥ (٣) په معنی د ذلت لکه سورة شعراء ٢٢ او مؤمنون
٤٧ (٤) او په معنی د غضب او نفرت سره لکه په سورة زخرف ٨١ کښ بنا په يو تفسير
باندے. (٥) په معنی شرعي سره خو په ډيرو آياتونو کښ راغلے دے. د لته په اياك
نعبد کښ آخري معنی مراد ده.

وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ دا معطوف دے په مخکښ جمله باندے ځکه چه د دواړو په مينځ
کښ مناسبت دے چه عبادت عام دے او استعانت د هغے نه يو فرد خاص دے.
او لفظ اياك ئے دوباره راوړلو په يو باندے اکتفا ونکړله اشاره ده چه تخصيص
د استعانت په الله تعالیٰ پورے مستقل او اهم دے که ذکر د اياك دوباره نه وے
شوے نو وهم به راتلو چه تخصيص د مجموعه عبادت او استعانت دے او د هر يو
جدا جدا تخصيص په الله تعالیٰ پورے نيشته او دا وهم خطا دے.
نَسْتَعِيْنُ دا د عون نه اخستلے شويدے عون امداد کولو ته وئيلے شي او استعانت په
معنی د طلب کولو د عون دے.

**سوال:-** نصرت هم امداد ته وئيلے شي نو نستنصر ئے ولے نه وئيلو؟

**جواب:-** نصرت اکثر په وخت د مقابلے کښ استعماليږي او عون عام دے که
مقابله وي او که نه وي. دا رنګ نصرت اکثر په اسبابو کښ استعماليږي يعنی
طلب د اسبابو د فتح او غلبے. او عون عام دے که اسباب وي او که مقصد وي
نو نستعين عام دے د نستنصر نه نو ځکه دا ئے ذکر کړو.

**تنبيه:-** توفيق. دعا. نصرت. توکل. استعانت دا ټول الفاظ په اثبات د

احتیاج کښ مرادف دی لیکن استعانت دے ټولو ته شامل دے او مفعول د نستعین ئے نه دے ذکر کړے د پاره د تعمیم یعنی نَسْتَعِيْنُ فِي جَمِيْعِ الْحَوَائِجِ وَالْاَحْوَالِ (په ټولو حاجتونو او حالاتو کښ مدد غواړو) یا په قرینه د ما قبل سره مفعول پټ دے یعنی نَسْتَعِيْنُ فِي اَدَاءِ الْعِبَادَاتِ یعنی په ادا د عبادا تو کښ مونږ الله تعالیٰ ته محتاج یو۔ د دے وجے نه په ایاك نعبد کښ رد اُوشو په جبریه باندے چه هغوی بنده ته د هیڅ فعل نسبت کول نه مني او په ایاك نستعین کښ رد اوشو په قدریه باندے چه هغوی انسان لره په خپلو اختیاری کارونو کښ مستقل ګنړی چه الله تعالیٰ ته حاجت نه لری۔ او ابن کثیر د دے دواړه جملو په باره کښ ذکر کړے دی چه دین ټول دے دوه کلموته راجع دے۔ او فاتحه سِرّ د قرآن دے او سِرّ د فاتحے دا دوه کلمے دی ځکه چه ایاك نعبد کښ براءت دے د شرک نه او په ایاك نستعین کښ براءت دے د حول او قوت نه او سپارل دی الله تعالیٰ ته۔

**سوال ۱** هرکله چه استعانت هم عبادت دے نو په ایاك نعبد کښ داخل دے نو دوباره ئے ولے ذکر کړو؟ - **سوال ۲** او هرکله چه عبادت موقوف دے په استعانت باندے نو عبادت ئے ولے مخکښ ذکر کړو د استعانت نه؟ -

**جواب** په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه د پاره د ډیر اهتمام د مسئلے د استعانت ځکه چه مشرکانو اکثر شرک فی الاستعانت کړے دے لکه چه اوس هم اکثر جاهلان په مصیبت او حاجت کښ وائي یا فلانی بابا۔ یا پیره یا غوثه را اورسیږه۔ رامدد شه۔ په نیکئ سره را اورسیږے او بعض جاهلان ختم شریف کوی په دا سے کلمه سره چه یا شیخ عبد القادر شیئاً لله۔ امداد کن امداد کن از بند غم آزاد کن یا شیخ عبد القادر، او دا ټول صریح شرک دے۔ دویمه وجه دا ده چه مقصد د مخلوق حاجت روائي وی او عبادت د هغے د پاره وسیله ده او وسیله مخکښ وی په مقصد باندے او دا دلیل دے چه په دعاګانو کښ وسیله ذکر کول ادب د دعا دے لیکن وسیله شرعیه نه وسیله شرکیه او بدعیه۔ نو خپل عبادت او نیک عمل او ایمان په وسیله کښ پیش کول پکار دی او د قرآن او احادیث په ډیرو دعاګانو کښ دا سے وسیلے موجود دی۔ دریمه وجه هرکله چه نعبد کښ نسبت د عمل او کړے شو بنده ته نو وهم راغے چه دا بنده په دے عمل کښ مستقل قدرت لری دا رنګ وهم د تکبر کولو راغے نو د دے وهمونو د دفع کولو د پاره او ئیلے شو وایاك نستعین۔

څلورمه وجه دا ده چه کمال د عبدیت په دوه څیزونو سره دے یو محنت کول دویم دعا کول ځکه صرف په محنت سره کامیابی نه حاصلیږی لکه محنتونه د بے دینو خلقو. او صرف په دعا سره هم مقصد نه حاصلیږی لکه کارګرمه اهنیتو او د خود ساخته پیرانو او ملنګانو. نو په ایاك نعبد کښ محنت ذکر شو او په ایاك نستعین کښ دُعا ذکر شوه لکه په سورة هود ۱۲۳ کښ او سورة مزمل ۹ کښ ذکر دی.
پنځمه وجه دا ده چه شرعی ادب دے چه د عبادت سره دعا ملګرے کیدے شی لکه چه د مونځ په اخری قاعده کښ دعا سنت ده دا رنګ په فرض مونځونو پسے دعاګانے نقل کړے شویدی لیکن بغیر د هیئت اجتماعیه نه دا رنګ دُعا په وخت د افطار د صوم کښ دا رنګ دعا په حج کښ اشاره ده چه عابد له جائز نه دی چه په خپل عبادت کښ تکبر او غرور کوی بلکه روستو د عبادت نه الله تعالیٰ ته دے عاجزی کوی
فائده ۱: امر په استعانت سره درے کرته په قرآن کښ ذکر دے بقره ۴۵ ۱۵۳ او اعراف ۱۲۸ او تخصیص د استعانت په صفت د الله تعالیٰ کښ په لفظ د المستعان سره دوه ځله ذکر دے سورة یوسف ۱۸ سورة انبیاء ۱۱۲ -
فائده ۲: دا تخصیص د استعانت په الله تعالیٰ پورے صریح دلیل دے په رد د شرك فی الدعا باندے نو دا قول د بعض تفسیرونو والو (په دے زمانه کښ) چه که چرے یو بنده لره مستقل اونګنړی او د هغه په وسیلے سره امداد غواړی نو دا جائز دے نو دا قول باطل او موهم دے ځکه وسیله د ژوندی په دعا سره کیدیشی، د هغه په ذات سره نشی کیدلے.
فائده ۳: سوال:- اعینونی بقوة :من انصاری الی الله: وان استنصروکم فی الدین فعلیکم النصر دا آیاتونه خو دلالت کوی چه مدد غوښتل د غیر الله تعالیٰ نه جائز دی نو په ایاك نستعین کښ څهٔ رنګ دعوی د تخصیص ده؟-
جواب:- په فعل د الله تعالیٰ او په فعل د بندګانو کښ ضرور فرق وی لکه چه په صفاتو کښ فرق دے.- نو نصرت او عون د بندګانو د ظاهری اسبابو په استعمال سره وی او په هغے کښ هم الله تعالیٰ ته محتاج وی او په هغے سره ثواب او عذاب ملاویږی.- او نصرت او عون د الله تعالیٰ بغیر د احتیاج د اسبابو نه دے او اسباب هم هغه پیدا کوی نو په ایاك نستعین کښ حاجات پوره کول او اسباب پیدا کول او توفیق ورکول او مصیبت او مرض لرے کول او صحت او امن وغیره راوستل کدے تخصیص په الله تعالیٰ پورے مراد دے او په دغه نورو آیاتو کښ عون

او تصرت دا دے چه کوم اسباب الله تعالیٰ پیدا کړیدی د هغې استعمال اوشی۔ او د
چا سره دله اوشی یا د چا سره د هغه په غم کښې شریک شی، بوج ور سره اوچت
کړی وغیره نو د دے د ایاك نستعین سره هیڅ مخالفت نیشته او نه په دغه ایاتونو
سره شرک فی الاستعانت ثابتیږی۔

فائده ع۲ استعانت کله مطلق ذکر وی لکه په دے ایت کښې او کله متعدی کړے
شی په حرف د باء سره لکه سورة اعراف ن۱۲۸ کښې او دا رنګ حدیث دے چه واذا
استعنت فاستعن بالله۔ په دے کښې فرق دا دے چه په وخت د متعدی کولو
کښې په حرف د باء سره اشاره ده چه مدد د الله تعالیٰ نه غواړئ خو توسل اوکړئ
په هغه سره یعنی په نومونو او صفتونو د هغه سره لکه چه دا ادب ذکر دے په
سورة اعراف ن۱۸۰ کښې او کله چه بغیر د حرف د باء نه وی نو عام مراد دے که په
وخت د استعانت کښې توسل کوے او که نه یا توسل په نومونو او صفتونو د الله تعالیٰ سره وی
یا په بله شرعی طریقې سره لکه چه توسل کول دی په نیک عملونو سره۔

اِهْدِنَا ربط د دے د ما قبل سره په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه
هر کله اقرار د عبودیت او د احتیاج ذکر شو په ایاك نعبد او ایاك نستعین سره نو
په دے جمله کښې اظهار د عبودیت او د احتیاج دے۔ دویمه وجه دا ده چه هر کله
ایاك نستعین اووئیلے شو نو ګویا چه د الله تعالیٰ د طرف نه اووئیلے شو چه کیف اعینکم
(څنګه امداد اوکړم ستاسو) نو جواب اوشو په اهدنا سره۔ دریمه وجه دا ده
چه هر کله د توحید ټول اقسام ذکر شول چه هغه مصداق د صراط مستقیم دے
نو اوس په هغې باندے د کلکوالی او د دوام دُعا ذکر کوی ځکه چه په توحید باندے
دوام او ثبات نه وی نو هیڅ فائده نه ورکوی۔

اِهْدِ د هدایت نه ماخوذ دے او هدایت په لغت د عرب کښې ښودل دی د خیر
که دنیوی وی او که دینی وی او څوک چه وائي چه هدایت په لغت کښې صرف
(دلالت) ښودلو ته وئیلے شی نو دا قول غلط دے هاں هدایت کله په شر کښې
په طریقه د تهکّم او د سپکوالی سره استعمالیږی لکه په سورة حج ۱۹ ن۴ او سورة
صافات ن۲۳ کښې دی۔ او په قرآن کریم کښې هدایت په نورلس معنو سره استعمال
شویدے او هغه په لطائف القرآن کښې په تفصیل سره ما ذکر کړے دی او په
مشهوره معنیٰ (چه ارشاد الی الحق دے) په درے طریقو سره استعمال شویدے
اوله طریقه متعدی کیدل دی د دویم مفعول ته په الیٰ سره لکه په سورة نحل ن۱۲۱

او سورة شوری ۵۲ او سورة انعام ۸۲ ۱۶۱ او سورة نازعات ۱۹ کښې نو مراد په دیکښې ښودل د لارے حقے دی بل چا ته برابره خبره ده چه که هغه شخص په هغه لار روان شی یا نه او مقصد ته او رسیږی یا نه. دویمه طریقه متعدی کیدل په حرف د لام سره لکه سورة بقره ۲۱۳ او سورة اسراء ۹ او سورة حجرات ۱۷ کښې دی نو مراد په دے کښې ښودل د حقے لارے دی سره د رسولو ته دغه لارے ته برابره خبره ده چه هغه شخص مقصد ته اورسیږی یا اونه رسیږی. دریمه طریقه متعدی کیدل دی بغیر د واسطے ته لکه په سورة نساء ۱۷۵ او سورة قصص ۲۲ او سورة فتح ۲ او سورة صافات ۱۱۸ او په دے آیت د سورة الفاتحه کښې دی نو په دے کښې مراد ښودل د حقے لارے دی او په هغے باندے روانول او مقصد ته رسول دی او دا آخری طریقه خاص ده په الله تعالیٰ پورے او مخکنئ دواړو طریقو سره نسبت کتاب او رسول او الله تعالیٰ ته هم کیدے شی. او هر کله چه په دے آیت کښې روستنئ معنی مراد ده د دے وجے نه دا دُعا خاص ده په الله تعالیٰ پورے او دا هدایت د غیر الله نه نفی کړے شویدے په سورة اعراف ۱۷۸ او سورة یونس ۳۵ او سورة قصص ۵۶ کښې. پوهه شئ! چه هدایت د الله تعالیٰ د طرف نه په اوو مرتبو سره دے او په هره مرتبه باندے د هدایت اطلاق کړے شویدے اوله مرتبه هدایتِ فطریه دے (یعنی الله تعالیٰ هر انسان په توحید باندے پیدا کړے دے لکه په سورة روم ۳۰ کښې دی) او دا مراد دے په سورة طٰهٰ ۵۰ کښې. دویمه مرتبه پیدا کول د ظاهری حواسو او باطنی قوتونو دی د پاره د معلومولو د حق لکه په سورة اعلیٰ ۳ کښې. دریمه مرتبه قوتِ عاقله ورکول دی لکه په سورة اعراف ۱۰ او طٰهٰ ۱۲۸ کښې. څلورمه مرتبه دلیلونه عقلیه په اطرافو د عالم کښې پیدا کول دی چه په هغے کښې حق معلومیږی لکه په سورة بلد ۱۰ او سورة اللیل ۱۲ کښې. پنځمه مرتبه کتابونه او رسولان رالیګل او نور داعیان د حق مقرر کول دی لکه په سورة رعد ۷ او سورة الم سجدة ۲۴ کښې. شپږمه مرتبه توفیق او پوهوالے او دوام ورکول دی په حقه لار باندے لکه په سورة عنکبوت ۶۹ او سورة فتح ۲ کښې دی. اوومه مرتبه په آخرت کښې جنت ته داخلول لکه سورة محمد ۵ او سورة اعراف ۴۳ کښې. نو معلومه شوه چه هدایت په هره مرتبه کښې د الله د طرف نه دے د دے وجے نه طلب او دُعا د هدایت خاص کړے شویده په دے آیت کښې په الله تعالیٰ پورے.

سوال:- هرکله چه بنده د الله تعالیٰ حمد وائي او اقرار د عبودیت کوی نو معلومه شوه چه هغه ته هدایت حاصل شوید ے نو بیا طلب د هدایت خو تحصیلِ حاصل دے او بے فائدے دے؟-

جواب:- د تیر شوی تفصیل نه د دے جواب په دوه طریقو سره معلوم شو اوله طریقه داده چه دلته اهدنا په معنیٰ د توفیق او ثبات او دوام او استمرار سره دے لکه چه ابن جریر ابن کثیر قرطبی وغیرهم دا معانی لیکلے دی نو انسان روستو د هدایت حاصلولو نه د هغے دوام او ثبات ته محتاج دے -دویمه طریقه د جواب داده چه هرکله مرتبے د هدایت ذکر شوے نو کوم انسان چه یوه مرتبه د هدایت حاصل کړے وی نو هغه دویمے مرتبے ته محتاج دے او دویمے والا دریمے مرتبے ته محتاج دے علیٰ هذا القیاس-

الصِّرَاطَ په اصل لغت کښ تیریدلو ته وئیلے شی او په عرف کښ هغه لار چه خلق په هغے باندے تیریږی او مقصد ته رسوونکے وی لکه په سورة اعراف ۸۶ کښ چه دی او د دے وجے نه هغه لار چه جهنمیان به په هغے باندے ځی او جهنم ته به رسیږی نو هغے ته ئے هم صراط الجحیم وئیلے دے لکه په سورة صافات ۲۳ کښ .او په اصطلاح د قرآن کریم کښ هغه لار معنوی چه په هغے باندے خلق عمل کوی او حق ته رسوونکے وی او سیدها وی او محدودوی په شرعی حدودو سره نو هغے ته صراط وئیلے شی او صفت د هغے په استقامت سره په قرآن کریم کښ درے دیرش کرته شوید ے او په سَوِیٌّ سره دوه کرته دا صفتِ مؤکده دے .او هرکله چه لار د شرعے نیغه ده او محدوده په حدودِ شرعیو سره په اعتبار د کم (مقدار) کیف (طریقه) این (وخت) سره د دے وجے نه دلته ئے لفظ صراط ذکر کړو او لفظ د طریق او سبیل کښ دا معنیٰ نه وه نو هغه ئے دلته ذکر نه کړو-

الْمُسْتَقِيمَ په معنیٰ د مستوی سره دے یعنی داسے لار چه نیغه ده کوږوالے په کښ نیشته او مقصد ته رسوونکے ده او درمیانه ده او افراط او تفریط په کښ نیشته او مستقیم په اصل کښ صفت د لارے دے او په صفت د هغه چا کښ استعمالیږی ځوک چه په دغه لار باندے روان وی او مستقیم هغه شخص دے چه په استقامت سره امتثال (تابعداری) کوی د امر د استقم چه الله تعالیٰ په سورة هود ۱۱۲ او سورة شوری ۱۵ او سورة حم سجده ۶ کښ ذکر کړے دے او تفصیل د استقامت په کتاب لطائف القرآن کښ ما ذکر کړے دے .او تفسیر د صراط مستقیم

په قرآن کریم کښې په څلورو طریقو سره ذکر دے اول توحید د ربوبیت او د عبادت دا په سورة العمران ۵۱ او سورة مریم ۳۶ او سورة زخرف ۶۴ او سورة یٰس ۶۱ کښې ذکر دے۔ دویم کتاب الله او دا په سورة انعام ۱۲۶ ۱۵۳ کښې ذکر دے۔ دریم لار د رسولانو دا په سورة یٰس ۳-۴ او سورة زخرف ۴۳ او سورة صافات ۱۱۸ او سورة فتح ۲ کښې ذکر دے څلورم تابعداری کول د رسول صلی الله علیه وسلم او دا په سورة زخرف ۶۱ کښې ذکر دے۔ او مفسرینو هم په مختلف تعبیرا تو سره د صراط مستقیم تفسیر ذکر کړے لیکن هغه هم دغه ذکر شوی څلورو ته راجع دے او هغه تعبیرات دا دی۔ (کتاب الله۔ اسلام۔ صحابه او تابعین۔ لار د رسول الله صلی الله علیه وسلم، حق)۔ (ابن کثیر۔ ابن جریر۔ بغوی په معالم التنزیل کښې او ابن ابی حاتم دا اقوال ذکر کړے دی)۔

**فائدے:**۔ **اوله فائده:** صراط مستقیم ئې مفرد او معرفه ذکر کړے دے ځکه حقه لار د ټولو انبیاء علیهم السلام یوه ده او معلومه معینه ده او خلاف د دے نورے لارے ډیرے دی د دے وجے نه نورے لارے جمع ذکر کیدے شی لکه په سورة انعام ۱۵۳ کښې دی۔

**سوال:**۔ لار د الله تعالیٰ په سورة مائده ۱۶ کښې جمع ذکر شوے ده په لفظ د سبل السلام سره؟

**جواب:**۔ د لارے د الله تعالیٰ اصول او فروع ډیر دی ایمانیات، اعمال، اخلاق او قرآن کریم هغې ته هدایت کوی نو د دے وجے نه هغه ئې جمع ذکر کړه او هر کله چه اصول د ایمانیا تو او د ادیانو د ټولو انبیاؤ یو دی د دے وجے نه مفرد ذکر کیدے شی۔

**دویمه فائده:**۔ هر کله چه صراط مستقیم ډیر اهم او لوئې مقصد دے او په هر لحاظ سره فائده مند دے د دے وجے نه الله تعالیٰ دا په دعا غوښتلو سره مونږ ته خاص کړه۔

**دریمه فائده:**۔ هر کله چه د دعا د استجابت د پاره شرعی وسیله پکار ده نو الله تعالیٰ مونږ ته اول د هغې تعلیم راکړو چه هغه وسیله نیول د الله تعالیٰ په نومونو او صفتونو سره دی او په عبادت سره ده۔ شرعی وسیله هغه ده چه په صحیح دلیل شرعی سره ثابت وی۔ او د بدعی وسیلے هغه الفاظ دی چه په دلیل شرعی کښې د هغې ثبوت نیشته لکه په لفظ د حق او جاه او حرمت او طفیل او برکت وغیره سره دا په وسیله کښې ذکر کول په هیڅ حدیث صحیح سره ثابت نه دی

اوکوم احادیث چه دَحق اوجاه وغیره په باره کښ راغلی دی څه ضعیف اوڅه موضوعی دی او شرکی وسیله داده چه دَ قبرونو اودَ غیرالله عبادتونه (نذرونه طوافونه سجدے وغیره) کوی او په هغے سره عقیده دَ نزدیکت الی الله لری یا صاحب قبرنه حاجت غواړی یا دَ هغه نه دعا کول غواړی دا دَ مشرکانو وسیلے دی دَدے تفصیل به انشاءالله تعالیٰ په تفسیر دَ سورة مائده ۳۵ کښ راشی او بعضِ تفصیل دَ دے په التبیان فی تفسیر ام القرآن کښ ما ذکرکړے دے۔

**څلورمه فائده**:- منع کوونکی دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه پنځه ډلے دی چه په قرآن کریم کښ ذکر دی اول فریق ابلیس دے (اعراف ۱۶ نمل ۲۴) دویمه فرقه ناکاره مُلیان او پیران دی (توبه ۳۴)- دریمه ډله اقتدار والا او مُلایان دی (سورة احزاب ۶۷)- څلورمه فرقه عام مشرکان کافران دی (اعراف ۸۶)- پنځمه فرقه ظالمان معتدون دی (اعراف ۴۵)-

صِرَاطَ الَّذِيْنَ اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ دا بدل دے دَ الصراط المستقیم نه په بدلِ کل سره نو اشاره ده چه په دے لارے سره دوه صفتونه حاصلیږی یو استقامت او بل خاص انعام دَ الله تعالیٰ۔ او دَ دے بدل په راوړلو کښ نورے فائدے هم شته اوله داچه په صراط مستقیم باندے تللو کښ ډیر مصائب دی نو دَ تسلئ ورکولو دَ پاره اوئیلے شو چه په دے مصیبتونو سره نعمتونه حاصلیږی ځکه چه مشهور مَتل دے اَلْعَطَايَا عَلٰی مَتنِ الْبَلَايَا (بخششونه دَ مصیبتونو په شا باندے دی)۔ دویمه فائده داده چه خاوند دَ صراط مستقیم اکثر اوقاتو کښ یوائے وی نو دَ دغے دَ پاره اُوئیلے شول چه دَ دے لارے ملګری شته دے چه مُنعَم علیهم دی۔ دریمه داده چه په دے کښ علامت دَ صراط مستقیم دے دَ پاره دَ دے چه دَ هغے موندل آسان شی۔ څلورمه فائده داده چه مُنعَم عَلَيهِم انبیاء علیهم السلام او اصحاب دَ هغوی دی لکه چه روستو بیان کښ به (انشاءالله تعالیٰ) واضح شی نو معلومه شوه چه دَ صراط مستقیم موندل او په هغے باندے تلل موقوف دی په تابعدارئ دَ انبیاء علیهم السلام او دَ صحابه کرامو باندے۔

اَنْعَمْتَ مصدر دَ دے انعام دے او هغه ماخوذ دے دَ نعمت نه۔ او معنیٰ دَ هغے داده "هر هغه منفعت چه رسیږی غیرته په طور دَ احسان کولو سره او مقصد دَ مُنعِم په کښ ځان له هیڅ فائده اخستل نه وی" دَ دے وجے نه مُنعم په حقیقت کښ صرف دَ الله تعالیٰ دے ځکه چه هر بنده چه انعام په بل چا باندے کوی نو

ضرورځان له يې فائده اخستل مقصد وي اګرچه اجر وثواب يې وي. او په دے
وجے سره قرآن کريم کښ نسبت د انعام الله تعالیٰ ته په طريقه د اضافت يا اسناد
سره شپږ[۴۴] شپيته کرته کړے شوے دے هاں بنده ته د دے نسبت مجازاً
کيديشی لکه په سورة احزاب [۳۷] کښ دے. پوهه شه چه جزئيات د نعمتونو
د الله تعالیٰ په شماره کښ راګيرول د مخلوق د قدرت نه بهر خبره ده الله تعالیٰ
فرمائي وَاِنْ تَعُدُّوا نِعْمَتَ اللّٰهِ لَا تُحْصُوْهَا (سورة ابراهيم [۳۴] سورة نحل [۱۸])
ليکن په دوه جنسونو کښ حصر لري. دنيوی او اُخروی. اخروی خو د جنت
بے شماره ابدی نعمتونه دی او دنيوی دوه قسمونه دی موهبی او کسبی.
موهبی هغه دی چه د هغے حاصلولو کښ د مخلوق کسب کولو د پاره هيڅ دخل
نه وی او هغه بيا دوه قسمه دی روحانی لکه روح اچول په بدن کښ او عقل
ورکول، او جسمانی لکه بدن پيدا کول او په هغے کښ مختلف اندامونه جوړول.
او کسبی هغه دی چه د انسان کسب لره په کښ دخل وی هغه هم دوه قسمونه
دی جسمانی لکه بدن په مختلف هيئتونو او رنګونو سره ښائسته کول او روحانی
لکه نفس او روح لره د رزائلونه پاکول او په دينی علومو سره ښائسته کول.
نو په دے ايت کښ ټول نعمتونه مراد نه دی ځکه دنيوی نعمتونه (موهبی
جسمانی او روحانی او کسبی جسمانی) خو په کافرانو مشرکانو باندے هم شته او
د هغوی صراط خو مستقيم نه ده نو معلومه شوه چه دلته اخروی نعمتونه
او دنيوی روحانی کسبی مراد دی او دينه خاص نعمتونه وئيلے کيدے شی او
د دے نعمتونو خاصو دنيويه ذکر په مختلف قسمونو سره په لاندے ذکر
شوی اياتونو کښ اوګورئ. (۱) کتاب الله او حکمت (بقره [۲۳۱]). (۲) د زړونو
په مينځ کښ الفت پيدا کول (آلعمران [۱۰۳]). (۳) اطاعت د الله تعالیٰ او د رسول (نساء[۶۹])
(۴) حفاظت د دُشمنانو د دين نه (مائده [۱۱]). (۵) نجات ورکول د دُشمن نه (ابراهيم [۶])
(۶) نصرت غيبيه (احزاب [۹]). (۷) نجات د عذاب دنيوی نه (قمر [۳۵]). په دے
اياتونو کښ چه فکر اوکړے شی نو معلوميږی چه دغه نعمتونه په انبياء عليهم
السلام او د هغوی په اصحابو او تابعدارانو باندے کړے شويدی. او دا رنګ هغه
خلق چه الله تعالیٰ په نعمتِ خاصه سره په قرآن کريم کښ ذکر کړے دی هغه
پنځه دی، اول ټول انبياء عليهم السلام لکه په سورة مريم [۵۸] کښ. دويم
خاص خاص انبياء لکه سليمان عليه السلام په سورة نمل[۱۹] او موسیٰ عليه السلام

په سورة قصص ۷۱ کښ او یونس علیه السلام په سورة قلم ۴۹ کښ او عیسیٰ علیه السلام په سورة زخرف ۵۹ کښ او خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم لکه په سورة قلم ۲ کښ. دریم عام صحابه کرام لکه په سورة آلعمران ۱۰۳ کښ. څلورم خاص صحابي لکه په سورة احزاب ۳۷ کښ. پنځم شهداء في سبیل الله لکه په سورة آلعمران ۱۷۱ کښ او دا ټول یې راجمع کړیدي په څلورو قسمونو کښ په سورة نساء ۶۹ کښ. نو د دے ټول تفصیل نه معلومه شوه چه الذین انعمت علیهم نه مراد انبیاء علیهم السلام او صحابه کرام دي. نو دا صریح دلیل دے چه صراط مستقیم صرف د انبیاؤ او صحابو لاره ده او هغې ته اشاره ده په حدیث صحیح کښ (مَا اَنَا عَلَيْهِ وَاَصْحَابِي) نو کومه عقیده یا قول یا عمل چه د نبي یا صحابي نه د هغې ثبوت نه وي نو هغه به صراط مستقیم نه وي بلکه بدعت یا شرک وکفر به وي (الله تعالیٰ دے مونږ د هر شرک وکفر، بدعاتو او ګناهونو نه بچ اوساتي).

فائده :- المنعم علیهم یې نه دي وئیلے بلکه الذین انعمتَ علیهم یې اُوئیل یعني الله تعالیٰ ته یې صریح نسبت اوکړو د دے وجے نه چه عظمت د فاعل دلالت کوي په عظمت د مفعول باندے نو اشاره شوه دغه عظیم نعمتونو او احسانونو ته او بله فائده دا ده چه د دې نه معلومه شوه چه انعام په حقیقت کښ صرف د الله تعالیٰ د طرف نه دے او دا په سورة نحل ۵۳ کښ ذکر دي. نو دلته اسناد حقیقي ذکر کړے شوے دے.

غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ، دا بدل دے د الذین انعمت علیهم نه لیکن په دے باندے ابن قیم رحمة الله علیه په درے وجوسره رد کړے دے په بدائع التفسیر ص ۲۴ / ۱ کښ په تفصیل سره ذکر دي نو غوره دا ده چه دا صفت دے د پاره د الذین. او دا صفتِ موضحه (د پاره د وضاحت) یا صفتِ مادحه (د پاره د مدح) دے او مقصود په دے سره دفع د وهم ده هسے نه چه په الذین انعمت کښ کافران فاسقان داخل شي او صفتِ مخصصه نه دے ځکه چه مخکښ دا ثابته شویده چه د الذین انعمت علیهم نه خاص خلق مراد دي.

سوال :- لفظ د غیر ډیر مبهم دے په اعتبار د مصداق سره نو دے نکره دے چه په اضافت سره نشي معرفه کیدلے او الذین موصول معرفه ده او نکره صفت د پاره د معرفے نه شي واقع کیدلے؟

جواب ۱ :- الذین موصول دے او په موصولاتو کښ ابهام وي نو په دوي کښ

اوکه نه وی. اوغضب کښ داټولے معانے داخل دی. ددے وجے نه دلته کښ صفت دغضب یې خاص کړو۔

**بحث** دمغضوب علیهم، په حدیث د ترمذی اود امام احمد او ابن ابی حاتم (چه ابن کثیر ذکر کړے دی) کښ ذکر دے. مغضوب علیهم یهود دی او الضالین نصاریٰ دی او امام ترمذی وئیلے دی چه دا حدیث حسن غریب دے لیکن ابواسحاق الحوینی په تعلیق د ابن کثیر کښ لیکلے دی چه مدار د دے حدیث په عباد بن حبیش راوی باندے دے او ابن حبان او هیثمی دهغه توثیق کړیدے لیکن ابن قطان او ذهبی هغه مجهول گنړلے دے او دارنګ په سند ددے کښ اختلاف دے۔ زه وایم چه دا وجه ده چه امام ترمذی ددے تصحیح نه ده کړے بلکه صرف حسن یې گرځولے دے کیدے شی چه حسن لغیره مراد وی او کوم موقوف روایات چه د ابن عباس رضی الله عنهما نه ابن جریر نقل کړے دی هغه هم بعض ضعیف او بعض منقطع دی۔ لیکن ددے قول تائید په قرآن کریم کښ موجود دے دغضب ذکر په یهودیانو باندے په سورة بقره ۹۰ کښ او دضلال اطلاق په نصاریٰ باندے په سورة مائده ۷۷ کښ دے. او دویم قول دا دے چه المغضوب علیهم ښکاره کفر کوونکی دی او الضالین منافقان دی دا شربینی په تفسیر سراج المنیر کښ ذکر کړے دے. دریم قول دا دے چه المغضوب علیهم هغه دی چه په اعمالو کښ خطا شوی وی او الضالین هغه دی چه په عقیده کښ غلط شوی وی دا قول امام رازی په تفسیر کبیر کښ ذکر کړے دے. څلورم قول دا دے چه سړے د علم نه گمراه شی هغه مغضوب علیهم دی او چه په جهل سره گمراه شی هغه الضالین دی دا هم امام رازی او ابن کثیر ذکر کړیدے۔ پنځم قول دا دے چه المغضوب علیهم عنادی کافر او الضالین جهلی کافر دی او دا قول څلورم قول ته راجع دے۔

**سوال:**۔ هرکله چه حدیث مرفوع سره ثابت شوه چه دا یهود او نصاریٰ دی نو مفسرینو په ذکر د نورو اقوالو سره د حدیث نه ولے تجاوز کړیدے؟۔

**جواب ۱**: مخکښ ذکر کړے شوه چه په سند د حدیث کښ کلام دے او صحیح نه دے او په آیاتونو کښ ذکر د غضب او ضلال په دواړو فریقو کښ دلالت په تخصیص باندے نه کوی۔

**جواب ۲**: په حدیث کښ ذکر د یهود او نصاری په طریقه د مثال سره دے

اول واجب دادے چه نسبت دَ نعمت مُنعِم ته اوکړے شی او په عقوبت او غضب کښ دا سے نه ده نو هغه ئے په صیغه دَ تعمیم سره ذکر کړو۔

**جواب ع۲** منعم علیهم خو نیکان خلق دی دَ هغوی تعیین او تفصیل دَ حال دلالت کوی دَ هغوی سره په محبت کولو باندے او مغضوب علیهم خو بدان خلق دی دَ هغوی نه نفرت پکار دے نو دَ هغوی په ذکر کښ زیات تعیین او تفصیل مناسب نه دے او الذین کښ سرهٔ دَ صلے نه زیات تعیین دے په نسبت دَ الف لام سره۔

**المغضوب** دا دَ غضب نه دے صیغه دَ مفعول ده او غضب په صفت دَ الله تعالیٰ کښ په معنی دَ عقوبت ورکول او ناراضګی او لعنت کولو سره دے او دا دَ صفاتو دَ جلال او دَ عظمت نه دے او غضب په صفت دَ انسان کښ ناراضګی او غُصه ده چه پیدا کیږی دَ وینے دَ جوش نه او دَ دے وجے نه دَ هغے علاج په اوبو سره او په زمکه باندے پریوتلو سره دے (لکه چه په احادیثو کښ ذکر دی) او ابو حیان وئیلی دی چه غضب تغیّر دَ طبیعت دے دَ وجے دَ مکروه څیز نه او کله اعراض نه هم وئیلے شی (البحر المحیط ص۲۵) نو دا صفت دَ الله تعالیٰ دَ پاره حقیقةً دے او دَ انسان دَ پاره هم حقیقةً دے او دَ الله تعالیٰ او دَ مخلوق په صفاتو کښ مشابهت نیشته۔ او ماده دَ غضب په قرآن کریم کښ په مختلفو تعبیراتو سره څلیر بیشت کرته ذکر کړے شویده کله په صفت دَ الله تعالیٰ کښ هغه پنځلس کرته دے او کله په صفت دَ بنده کښ لکه په سورة اعراف ن۱۵ ن۱۵۴ او طٰهٰ ن۸۶ او سورة انبیاء ن۸۷ شوریٰ ن۳۷ کښ او کله مطلق ذکر دے لکه په سورة بقره ن۹۰ او شوریٰ ن۱۶ کښ او کله مجهول ذکر دے لکه په دے ایت کښ (غیر المغضوب علیهم)۔

**مرادفات** (هم معنی لفظونه) دَ غضب نه علاوه په دے معنی سره۔ قرآن کریم کښ الفاظ دَ انتقام او عذاب او عقاب او لعنت او سخط هم ذکر دی هاں خو دَ دوی په معانو کښ لږ لږ فرق دے۔ انتقام کښ معنی دَ کراهت او نفرت ده سره دَ بدلے اخستلو نه برابره خبره ده که غُصّه وی او که نه۔ او عذاب کښ معنی دَ سزا ورکولو او بنه حالت زائیل کول دی که غصه او کراهت ور سره وی او که نه وی۔ او عقاب کښ معنی دَ سزا ورکولو ده روستو دَ عمل ناکاره نه او عام دے دَ عذاب پشان۔ او لعنت کښ معنی دَ لرے کولو ده دَ رحمت خاصه نه په صفت دَ الله تعالیٰ کښ او دُعا دَ شر په صفت دَ مخلوق کښ که سزا ورکول ور سره وی او که نه۔ او سخط کښ معنی دَ سخت خفګان او غصے ده که سزا ور سره وی

اوکه نه وي. او غضب کښ دا ټولے معانے داخل دي. د دے وجے نه دلته کښ صفت د غضب ئے خاص کړو.

**بحث** د مغضوب علیهم، په حدیث د ترمذي او د امام احمد او ابن ابي حاتم (چه ابن کثیر ذکر کړے دی) کښ ذکر دے. مغضوب علیهم یهود دي او الضالین نصارٰی دي او امام ترمذي وئیلے دي چه دا حدیث حسن غریب دے لیکن ابو اسحاق الحویني په تعلیق د ابن کثیر کښ لیکلے دي چه مدار د دے حدیث په عباد بن حبیش راوي باندے دے او ابن حبان او هیثمي د هغه توثیق کړیدے لیکن ابن قطان او ذهبي هغه مجهول ګڼړلے دے او دا رنګ په سند د دے کښ اختلاف دے. زه وایم چه دا وجه ده چه امام ترمذي د دے تصحیح نه ده کړے بلکه صرف حسن ئے ګرځولے دے کیدے شي چه حسن لغیره مراد وي او کوم موقوف روایات چه د ابن عباس رضي الله عنهما نه ابن جریر نقل کړے دي هغه هم بعض ضعیف او بعض منقطع دي". لیکن د دے قول تائید په قرآن کریم کښ موجود دے د غضب ذکر په یهودیانو باندے په سورة بقره ۹۰ کښ او د ضلال اطلاق په نصارٰی باندے په سورة مائده ۷۷ کښ دے. او دویم قول دا دے چه المغضوب علیهم ښکاره کفر کوونکي دي او الضالین منافقان دي دا شربیني په تفسیر سراج المنیر کښ ذکر کړے دے. دریم قول دا دے چه المغضوب علیهم هغه دي چه په اعمالو کښ خطا شوي وي او الضالین هغه دي چه په عقیده کښ غلط شوي وي دا قول امام رازي په تفسیر کبیر کښ ذکر کړے دے. څلورم قول دا دے چه سړے د علم نه ګمراه شي هغه مغضوب علیهم دي او چه په جهل سره ګمراه شي هغه الضالین دي دا هم امام رازي او ابن کثیر ذکر کړیدے. پنځم قول دا دے چه المغضوب علیهم عنادي کافر او الضالین جهلي کافر دي او دا قول څلورم قول ته راجع دے.

**سوال:-** هر کله چه حدیث مرفوع سره ثابت شوه چه دا یهود او نصارٰی دي نو مفسرینو په ذکر د نورو اقوالو سره د حدیث نه ولے تجاوز کړیدے؟

**جواب ۱** مخکښ ذکر کړے شوه چه په سند د حدیث کښ کلام دے او صحیح نه دے او په آیاتونو کښ ذکر د غضب او ضلال په دواړو فریقو کښ دلالت په تخصیص باندے نه کوي.

**جواب ۲** په حدیث کښ ذکر د یهود او نصارٰی په طریقه د مثال سره دے

تخصیص دَ مصداق نه دے - او تخصیص بالذکر نفی دَ ماسیوا نه کوی او دلیل دَ دے جواب دا دے چه په قرآن کښ ذکر دَ غضب سرۀ دَ اسبابو دَ هغے نه کړے شویدے (چه هغه روستو ذکر کوؤ) او دغه اسباب بغیر دَ یهودو او نصارٰی نه هم موجود دی نو معلومه شوه چه په چا کښ دغه اسباب (ټول یا بعض) موجود وی نو هغه مغضوب علیهم او الضالین کښ داخل دے۔

**اسباب دَ غضب** :- اول تبدیل دَ نعمت دَ الله تعالیٰ، دویم کفر بآیات الله تعالیٰ، دریم قتل دَ انبیاء علیهم السلام، څلورم عصیان دَ الله تعالیٰ، پنځم تجاوز کول دَ حدود دَ شرع نه (بقره ۶۱)، شپږم کفر بالقرآن دَ عناد دَ وجے نه (بقره ۹۰)، اووم قتل دَ مؤمن عمدًا (نساء ۹۳)، اتم نفرت دَ دینِ حق نه او طعن کول په هغے باندے (مائده ۶۴)، نهم په ورځ دَ جنګ (غزا) کښ تښتیدل (انفال ۱۶)، لسم افتراء په الله تعالیٰ باندے (اعراف ۱۵۲)، یوولسم جدال دَ مؤحدینو سره په اسماء شرکیه دَ معبوداتو باطلو کښ (اعراف ۷۱)، دولسم دَ وعدے دَ نبی نه خلاف کول (طٰهٰ ۸۶)، دیارلسم په رزق دَ الله تعالیٰ کښ طغیان کول (طٰهٰ ۸۱)، څوارلسم مرتد کیدل دَ ایمان نه (نحل ۱۰۶)، پنځلسم محاجّه کول په باره دَ الله تعالیٰ کښ (شوریٰ ۱۶)، شپاړسم ناامیدی او انکار کول دَ بعث بعد الموت نه (ممتحنه ۱۳)، اوولسم په الله تعالیٰ باندے بدګمان کول (الفتح ۶)۔ او دا اسباب په مختلفو خلقو کښ موجود دی۔ مشرکان۔ منافقان۔ کافران عنادی۔ مرتدین۔ قاتل دَ مؤمن عمداً۔ یهود۔ دَ میدان جهاد نه تښتیدونکے۔ شرکی نومونو کښ جګړے کوؤنکے۔

وَلَا الضَّالِّين، دا معطوف دے په المغضوب علیهم باندے دَ غیر دَ لاندے دے لَا دَ تاکید دَ نفی دَ پاره دے او که لَا ئے نه وے ذکر کړے نو وهم کیدے شو چه دا معطوف دے په الذین انعمت باندے نو په لَا راوړلو سره دا وهم دفع شو۔ ضلال په لغت دَ عرب کښ په لس معانو سره راغلے دے۔ غائب کیدل[1]۔ برباد یدل[2]۔ مرګ[3]۔ دفن کول[4]۔ پټیدل[5]۔ هیریدل[6]۔ روکیدل[7]۔ غورزیدل[8]۔ تلل[9]۔ جهل[10]۔ دا معانی ابن منظور په لسان العرب کښ او صاحب قاموس ذکر کړے دی۔ او ضلال په عرف دَ شرع کښ اوړیدل دَ لارے دَ حق نه او بے لارے کیدل که عمداً وی یا خطاءً دا په مقابله دَ هدایت کښ راځی۔ قرآن کریم کښ په لس معانو سره مستعمل دے بعض لغوی او یو معنی شرعی ده۔ اول په معنیٰ دَ نسیان (بقره ۲۸۲)، دویم په معنیٰ دَ ساده ګئ سره (یوسف ۸)، دریم په

معنی د ډیر محبت سره (یوسف ۹۵)، شلورم په معنی د حبط او بربادئ سره (کهف ۱۰۴)، پنځم په معنی د غفلت سره (طٰهٰ ۵۲)، شپږم اړول د مقصد نه (فرقان ۴۲)، اووم په معنی د ناخبرئ سره (شعراء ۲۰)، اتم په معنی د ورکیدلو او غائب کیدلو سره (الم سجده ۱۰)، نهم حیرانی او بوائے والے (ضحٰی ۷) په دې ایت د سورة ضحٰی کښې تفسیر قرطبی د دے معنی نه علاوه نورے معانی هم ذکر کړے دی - لسم په مقابل د هدایت کښې او داخو په کثرت سره ذکر ده او په دے ایت (ولا الضالین) کښې روستنۍ معنی مراد ده -

د الضالین مصداق مخکښې ذکر شو یعنی نصاری دی لیکن تخصیص ئے په هغې پورے نیشته ځکه چه اسباب د ضلال په قرآن کریم کښې ډیر ذکر دی او هغه ماسیوا د نصارٰی نه نورو ګمراه خلقو ته هم شامل دی.

**اسباب د ضلال (ګمراهئ)**: داهم اوولس دی پشان د اسبابو د غضب. اول د ایمان په بدله کښې کفر اخستل (بقره ۱۰۸)، دویم په علم باندے عمل نه کول (نساء ۴۴)، دریم د اتباع د رسول نه مخ ګرځول او هغه ته دروغ وئیل په قسم او شهادت کښې (نساء ۶۰)، شلورم هر قسم شرک کول (نساء ۱۱۶)، پنځم د الله تعالٰی د لارے نه خلق منع کول (نساء ۱۶۷)، شپږم په دین کښې غُلو کول (بدعات جوړول)(مائده ۷۷) اووم کفر کول (نساء ۱۳۶)، اتم تابعداری د خواهش کول (سورة الانعام ۵۶)، نهم په نبی باندے اعتراض او طعن کول (اسراء ۴۸)، لسم د الله تعالٰی او د رسول صلی الله علیه وسلم نافرمانی کول (احزاب ۳۶)، یوولسم د اکثریت تابعداری کول بغیر د دلیل شرعی نه (انعام ۱۱۶)، دولسم د الله تعالٰی د رحمت نه نا اُمیدی کول (حجر ۵۶)، دیارلسم غیر الله ته رامد دشه وئیل حاجت رواګرځل (احقاف ۵) څوارلسم د الله تعالٰی د دشمنانو سره دوستانه کول (ممتحنه ۱)، پنځلسم په اخرت باندے دنیا غوره کول (ابراهیم ۳)، شپاړسم د ذکر د الله تعالٰی نه د زړهٔ سخت کیدل (زمر ۲۲)، اوولسم د قیامت په باره کښې شک او جګړے کول (شوری ۱۸).

نو د دے ایاتونو نه په ذکر د اسبابو د ضلال سره معلومه شوه چه الضالون ډیر ډلے دی اول مرتدین دویم مشرکین دریم کافرین شلورم عاصیان د الله تعالٰی او د رسول د هغه پنځم د ستورو عبادت کوونکی شپږم د دشمنانو د الله او د رسول سره دوستانه کوونکی، اووم یهود، اتم نصاری، نهم د رحمت د الله تعالٰی نه نا اُمیدی کوونکی دنیا پرست خلق، لسم تابعداری کوونکی د خواهشاتو. د دے

تفصیل نه معلومه شوه چه الضالین نوم په نصاراؤ پورے خاص نه دے۔
**فائدے** فائده ۱ هر کله چه لفظ دَ غیر صفت یا بدل دے دَ الذین نه
چه مضاف الیه دَ صراط دے نو تقدیر دَ عبارت داسے شو چه صراط غیر المغضوب
علیهم لکه چه قرّاء په معانی القرآن کښ او نورو مفسرینو هم لیکلی دی او کوم چه
ابن کثیر لیکلی دی چه دا اقامت دَ مضاف الیه دے په ځائے دَ مضاف باندے
نو تقدیر دَ عبارت داسے شو چه غیر صراط المغضوب علیهم نو دا تکلف دے ځکه
چه غیر صفت وی دَ الذین دَ پاره یا بدل وی نو هغه معنی هم باطلیږی او دا رنګ
هغه فائدے ته هم نقصان رسیږی کومه چه روستو دویمه فائده کښ مونږ
ذکر کوو (والله اعلم)۔ او بنا په اول باندے معنی دا ده چه "منعم علیهم نه دی
مغضوب علیهم" او بنا په دویم باندے معنی دا ده " نه لار دَ مغضوب علیهم"۔
فائده ۲ دا مخکښ اشارةً ذکر شویده یعنی په لفظ دَ غیر صفتی کښ اشاره ده
چه منعم علیهم (چه انبیاء علیهم السلام او صحابه کرام دی) دوی بالکل مغائر
او مختلف دی دَ اهل غضب او اهل ضلال نه یعنی دوی دَ اسبابو دَ غضب او دَ
اسبابو دَ ګمراهئ نه بچ دی نو انبیاء علیهم السلام خو معصوم دی او صحابه کرام
او دَ هغوی تابعداران محفوظ دی دَ غضب او ضلال دَ اسبابو نه هغوی دَ ګناهونو نه
ځان بچ ساتی او که چرے ګناه او کړی نو په هغے باندے اصرار نه کوی بلکه زر توبه
او باسی او پښیمانه شی او په دے کښ رد دے په هغه چا چه دَ انبیاء علیهم السلامُ
عصمت نه منی او په هغه چا باندے چه صحابه کرامو ته سب وشتم کوی او هغوی
ته په بد نظر سره ګوری۔
فائده ۳ مغضوب علیهم ئے دَ الضالین نه مخکښ ذکر کړیدی دَ څو وجونه
اوله وجه دا ده چه دَ مغضوب اول مصداق چه یهود دی دَ هغوی زمانه مخکښ
وه دَ نصاراؤ نه چه اول مصداق دَ الضالین دی۔ دویمه وجه دا ده چه آبادی
دَ یهودیانو مدینے ته نزدے وه دَ آبادئ دَ نصاراؤ نه۔ دریمه وجه دا ده چه
دَ غضب مقابله دَ نعمت سره ښکاره ده او هر چه ضلال دے نو دَ هغے مقابل
خو هدایت دے او ذکر دَ دوه مقابلینو په لفظ او معنی کښ حُسن پیدا کوی۔
فائده ۴ المغضوب علیهم ئے په صیغه دَ مفعول او الضالین ئے په صیغه دَ
اسم فاعل سره ذکر کړے دی وجه دَ فرق دا ده چه اسباب دَ غضب اګرچه داخل
دی په کسب دَ انسان کښ لیکن نزول دَ غضب په اختیار دَ انسان کښ نیشته

نو په صیغه د مفعول کښ د دوی بے اختیارئ ته اشاره شوه او اهل ضلال چه دی
نو دوی خو کسب د ضلال کړے دے او غوره کړیدے ضلال په هدایت باندے
او که اسم مفعول (المُضَلِّین) ئے وئیلے وے نو وهم پیدا کیدلو چه دوی په ضلال
کښ مجبوره او معذوره دی او داسے خو نه دی۔ نو په دے کښ رد دے په جبریو
باندے چه هغوی د هیڅ فعل نسبت بنده ته حقیقةً نه منی بلکه وائی چه دا مجاز
دے لکه چه په ایاك نعبد کښ په دوی باندے رد وشو۔

فائده ۵ ولا الضالین ئے په لا سره ذکر کړو او په غیر سره ئے ذکر نه کړو د لا
فائده خو مخکښ مونږ ذکر کړیده او د غیر نه راوړلو د پاره څو وجے دی اوله وجه
داده چه لفظ لا کښ د غیر په نسبت حرفونه لږ دی نو ایجاز په کلام کښ سره
د افادے نه موجود شو۔ دویمه وجه داده چه په دے کښ په کول د کلام دی
د تکرار د لفظ نه ځکه چه دوه کرته غیر وئیل بغیر د څه فاصلے نه په ژبه باندے
ثقل (درون والے) پیدا کوی۔ دریمه وجه داده چه په دے مقام کښ دوه مقصدونه
دی اول مغایرت هغه حاصل شو په لفظ د غیر سره په یو ځل سره او دویم مقصد
نفی ده او د هغے د پاره لفظ د لا بنه صریح دے د لفظ د غیر نه۔

فائده ۶ د سورة فاتحے ختمولو نه روستو آمین وئیل مستحب دی د مونځ نه
بهر وی او که په داخل د مونځ کښ وی لیکن په داخل د مانځه کښ ډیر تاکید
دے یعنی سنتِ مؤکده دی او دلیل دا دے چه د آمین د وئیلو بعضِ احادیث
عام دی تخصیص د مونځ په کښ نیشته او بعضِ خاص دی په مونځ کولو
پورے بیا دا حکم د منفرد او امام او مقتدی د پاره هم دے او کله چه مقتدی سورة
فاتحه او لولی او آمین د امام واوری نو آمین به وائی په اوچت آواز سره۔ او دا مذهب د اکثر اهلِ علمو دے
او په نیز د امام مالک رحمة الله علیه په امام باندے آمین وئیل نیشته او
هغه دلیل نیولے دے په حدیث د ابو هریره رضی الله عنه چه مؤطا امام مالک
کښ ذکر دے او حدیث د ابو موسیٰ چه امام مسلم راوړے دے او په هغے کښ
د امام لوستل د آمین ذکر نه دی لیکن حدیث متفق علیه کښ د امام آمین وئیل
ذکر دی نو دا زیادت د ثقه راوی دے او دا رنګ دا حدیث تفصیلی دے او هغه
اجمالی دے۔

مسئله د جهر په آمین او اخفاء کول:۔ اتفاق د اهلِ علمو دے چه
دا دواړه عملونه جائز دی په هغے باندے د ګناه یا د بدعت اطلاق نشی کیدلے

صِرف اختلاف په غوره والی کښې دے لکه چه امام ولی الله رحمة الله علیه په حجة الله ص۱۵۹/۱ کښې ذکر کړے دی لیکن هرجانب والاچه اولیت درجے د وجوب ته رسوی او په بل جانب باندے یدا وائی هغه پورے مسخرے کوی نو دا بیا بدعت ګرځی.
په دے موجوده زمانه کښې په دے علاقو کښې تعصب د مذهب تر دے پورے رسیدلے دے چه جهر بالتأمین پورے مسخرے کوی او د هغے تشبیه ورکوی د آواز د حیواناتو سره او ورسره د دُشمنئ معامله کوی دا یقیناً په سنت د نبی صلی الله علیه وسلم پورے خندنئ کول دی د دے وجے نه د دغه متعصبینو د شبهاتو د ازالے د پاره په دے مسئله لږ مناسب تفصیل لیکم اګر چه د دے د تفسیر سره تعلق نیشته.

**د جهر بالتأمین د پاره استدلال په احادیثو سره:-** اول دلیل حدیث دے چه امام بخاری په دلیل د جهر کښې ذکر کړے دے إِذَا أَمَّنَ الامام فأمِّنوا او بل حدیث إِذَا قَالَ الْإِمَامِ غَيْرِ المغضوب عليهم ولا الضالين فَقُولُوا آمين، ابن حجر وئیلے دی چه په اول حدیث کښې وجه د دلالت په جهر باندے داده چه آمین د امام که چرے مقتدی نه آوری (یعنی جهر پرے اونکړی) نو مقتدی به څه رنګ آمین اووائی او حال دا چه آمین د مقتدی ئے معلّق کړے دے په آمین د امام پورے.- او ابن قیم په اعلام الموقعین ص۳۷۷/۲ کښې ذکر کړے دی که چرے جهر د امام په آمین سره نه وے نو ممکن نه دہ چه مقتدی د هغه سره په آمین وئیلو کښې موافقت اوکړی.- او ابن حجر د دویم حدیث په باره کښې ذکر کړیدی، چه په حدیث کښې امر دے په قول د آمین سره او په قول سره چه خطاب مطلقاً واقع شی نو حمل کیږی په جهر باندے او دا رنګ قول د مقتدی ئے متعلق کړے دے په قول د امام پورے او قول د امام په آمین سره جهراً دے نو قول د مقتدی به هم جهراً وی د پاره د موافقت په صفت کښې.- او نور وجوه ئے هم ذکر کړے دی (فتح الباری ص۳۱۱/۲).-
دویم دلیل حدیث د وائل بن حجر رضی الله عنه دے هغه امام ترمذی او ابن ماجه او دارمی او بیهقی او دارقطنی او احمد او ابو داؤد وغیره روایت کړیدے او په هغے کښې مَدَّ بِهَا صَوْتَه او بل روایت کښې رَفَعَ بِهَا صَوْتَه دے او امام ترمذی وئیلے دی چه دا حدیث حسن دے او ابن قیم اعلام الموقعین کښې وئیلے دی چه اسناد د دے صحیح دی دا رنګ حافظ ابن حجر په تلخیص کښې دیته صحیح وئیلے دی

نو په صيغه دَ مفعول کښ دَ دوی بے اختیارئ ته اشاره شوه او اهل ضلال چه دی
نو دوی خو کسب دَ ضلال کړے دے او غوره کړیدے ضلال په هدایت باندے
او که اسم مفعول (اَلْمُضَلِّيْن) ئے وئیلے وے نو وهم پیدا کیدلو چه دوی په ضلال
کښ مجبوره او معذوره دی او داسے خو نه ده۔ نو په دے کښ رد دے په جبریو
باندے چه هغوی دَ هیڅ فعل نسبت بنده ته حقیقۃً نه منی بلکه وائی چه دا مجاز
دے لکه چه په ایاك نعبد کښ په دوی باندے رد وو۔
فائدہ ع۵ ولاالضالین ئے په لاَ سره ذکر کړو او په غیر سره ئے ذکر نه کړو دَ لاَ
فائده خو مخکښ مونږ ذکر کړیده او دَ غیر نه راوړلو دَپاره څو وجے دی اوله وجه
داده چه لفظ لاَ کښ دَ غیر په نسبت حرفونه لږ دی نو ایجاز په کلام کښ سره
دَ افادے نه موجود شو۔ دویمه وجه داده چه په دے کښ بچ کول دَ کلام دی
دَ تکرار دَ لفظ نه ځکه چه دوه کرته غیر وئیل بغیر دَ څه فاصلے نه په ژبه باندے
ثقل (درون والے) پیدا کوی۔ دریمه وجه داده چه په دے مقام کښ دوه مقصدونه
دی اول مغایرت هغه حاصل شو په لفظ دَ غیر سره په یو ځل سره او دویم مقصد
نفی ده او دَ هغے دَپاره لفظ دَ لاَ بنه صریح دے دَ لفظ دَ غیر نه۔
فائدہ ع۶ دَ سورۃ فاتحے ختمولو نه روستو آمین وئیل مستحب دی دَ مونځ نه
بهروی او که په داخل دَ مونځ کښ وی لیکن په داخل دَ مانځه کښ ډیر تاکید
دے یعنی سنتِ مؤکده دی او دلیل دا دے چه دَ آمین دَ وئیلو بعضِ احادیث
عام دی تخصیص دَ مونځ په کښ نیشته او بعضِ خاص دی په مونځ کولو
پورے بیا دا حکم دَ منفرد او امام او مقتدی دَپاره هم دَے او کله چه مقتدی سورۃ
فاتحه اولولی او آمین دَ امام واوری نو آمین به وائی په او چت آواز سره۔ او دا مذهب دَ اکثر اهلِ علمو دَے
او په نیز دَ امام مالک رحمة الله علیه په امام باندے آمین وئیل نیشته او
هغه دلیل نیولے دے په حدیث دَ ابو هریره رضی الله عنه چه مؤطا امام مالک
کښ ذکر دے او حدیث دَ ابو موسیٰ چه امام مسلم راوړے دے او په هغے کښ
دَ امام لوستل دَ آمین ذکر نه دی لیکن حدیث متفق علیه کښ دَ امام آمین وئیل
ذکر دی نو دا زیادت دَ ثقه راوی دے او دا رنګ دا حدیث تفصیلی دے او هغه
اجمالی دے۔
مسئله دَ جهر په آمین او اخفاء کول :۔ اتفاق دَ اهلِ علمو دے چه
دا دواړه عملونه جائز دی په هغے باندے دَ ګناه یا دَ بدعت اطلاق نشی کیدلے

خیژونه به امام پټ وائي يو په هغې کښ امين دے او دارنګ کتاب الآثار کښ ابراهيم نخعي نه هم نقل دے. ليکن د مرفوع صحيح حديث په مقابله کښ د موقوف او مقطوع رواياتو نه دليل تيول خطا دی. مولانا عبدالحئ لکهنوي په سعايه کښ وئيلي دی چه اثر د نخعي وغيره د رواياتِ مرفوعه مقابله نشي کولے.

دريم دليل امام طحاوي د عمر او علي رضي الله عنهما نه روايت نقل کړے دے چه دوی به په امين سره جهر نه کولو. ليکن دا اثر ضعيف دے ځکه چه د دے په سند کښ سعيد بن المرزبان البقال دے او ذهبي په ميزان کښ ذکر کړيدی چه هغه متروك او منكر الحديث دے.

نو د دے دليلونو د تقابل نه روستو دا معلومه شوه چه جهر په امين وئيلو سره اولٰی سنت دی د دے وجے نه په السعايه کښ مولانا لکهنوي وئيلي دی چه قول په امين بالجهر سره اصح دے ځکه چه دا مطابق دے د حديث د نبي صلی الله عليه وسلم سره او روايت د خفض ضعيف دے مقابله د رواياتو د جهر نشي کولے او که چرے صحيح شي نو مراد به د خفض نه شکته والے د اواز شي (چغه به مراد نه وی) لکه چه ابن همام دينته اشاره کړے ده او څه ضرورت دے چه احاديث د جهر حمل شي په بعضِ اوقاتو باندے يا په تعليم باندے او قول په دے خبره چه دا جهر په اول وخت کښ وُو دا خو ډيره ضعيفه خبره ده (دا جواب نه احناف کړيدی) او اثر د ابراهيم نخعي او پشان د هغے د مرفوع رواياتو سره مقابله نشي کولے.

(السعايه ص ١٧٦ جلد ثاني)

---

الحمد لله تفسير د سورة فاتحه ختم شو

سورة البقرة مدنية | بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ | ایاتها ٢٨٢ رکوعاتها ٤٠

خاص په نوم د الله تعالیٰ امداد غواړو په شروع کولو کښې چه رحمٰن او رحیم دے۔

الٓمّٓ ﴿١﴾ ذٰلِكَ الۡكِتٰبُ لَا رَیۡبَ ۛ فِیۡهِ ۛ

الله تعالیٰ د دے په مراد خه پوهه دے۔ دا پوره کتاب دے نیشته هیڅ شک په دیکښ

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## سورة البقرة

نومونه د دے سورت:- (١) فسطاط القرآن۔ فسطاط لوئے خیمے ته وئیلے شی چه مشتمله وی په ډیرو خلقو باندے دا رنګ دا سورت هم مشتمل دے په ډیرو لویو مضامینو د قرآن کریم باندے یعنی عقیدے، اعمال، معاملات، احکام، سیاسیات جهاد، امثال، تاریخ د بنی اسرائیلو او آداب وغیره۔ (٢) سنام القرآن۔ سنام اعلیٰ جانب د څیز ته وئیلے شی لکه د اُوښ په شا باندے قوب دے هغے ته سنام وئیلے شی نو دا رنګ دا سورت اعلیٰ دے په سورتونو کښې په اعتبار د مضامینو سره۔ (٣) زهراء ځکه چه د قیامت په ورځ به دا سورت او سورة آل عمران دواړه چمک (پړق) کوی د دوی د لوستونکی په سر باندے۔ (٤) سورة البقرة۔ ځکه چه دا مشتمل دے په قصه د ذبحے د بقرے باندے چه هغه بیخ کندای د شرک د یهودیانو وه او دا رنګ په دیکښ عبادت د عجل (سخی) ذکر دے په قبائحو د یهودیانو کښې او عجل هم جنس د بقرے دے یعنی دا سورت دعوت دے عابدینو د بقرے لره خالص د توحید طرفته۔

ربط د دے سورت د سورة فاتحه سره په ډیرو وجوسره دے۔ اوله وجه دا ده چه سورة فاتحه اجمال دے او سورة بقره تفصیل دے د مضامینو د سورة فاتحه۔ طریقه د تفصیل داده۔ (١) چه فاتحه کښې الحمد لله ذکر شو نو په دے سورت کښې اسماء حسنیٰ او صفات د خالقیت او ربوبیت ذکر کوی۔ (٢) په فاتحه کښې رب العٰلمین ذکر وو نو په دے سورت کښې اثبات د ربوبیت د الله تعالیٰ دے په ٢١ ٢٢ کښې او په ٢٨ ٢٩ ٣٠ او په ١٦٤ کښې۔ (٣) په سورة فاتحه کښې الرحمٰن الرحیم ذکر دے او په دے سورت کښې آثار د رحم په ذکر د نعمتونو خاصو سره په بنی اسرائیلو باندے او نعمتونه عامه په ټولو خلقو (النّاس) باندے۔ (٤) په سورة فاتحه کښې مالك ذکر شو نو په دے سورت کښې په آیت الکرسی او په ٢٥٥ کښې د هغه د مِلك تفصیل ذکر کوی۔ (٥) په هغه سورت کښې یوم الدین

ذکرشو نو په دے سورت کښ دَ تخویف اخروی او بشارتِ اُخروی په ذکر دے په طریقه دَ جزا سره-(۶) په سورة فاتحه کښ ایاك نعبد ذکر وو نو په دے سورت کښ اثبات دَ هغے دعوے دے په دلیلونو سره په ۲۱کښ او په وصیت دَ یعقوب علیه السلام سره په ۱۳۳کښ-(۷) په هغه سورت کښ ایاك نستعین ذکرشو نو په سورة بقره کښ احتیاج دَ انسان الله تعالیٰ ته په پیدأشت او تربیت وغیره کښ په مختلف تعبیراتو سره ذکر دے-(۸) په فاتحه کښ طلب دَ هدایت دَ صراط مستقیم وو نو دَ دے سورت په ابتداء کښ دَ هغے اجابت ذکر شوے چه داکتاب هدًی دے او ترغیب او صداقت دَ کتاب الله ذکر شو-(۹) په فاتحه کښ یے درے قسمه دَ خلقو ذکر کړل نو دَ سورة بقره په اول کښ دَ هغوی دَ اوصافو او حالاتو تفصیل دے (۱۰) په فاتحه کښ الذین انعمت علیهم ذکر کړل نو په دے سورت کښ دَ هغے مصداق یے ذکر کړلو په ذکر دَ متقینو او صفات دَ هغوی او ذکر دَ بعضِ انبیاء علیهم السلام (ابراهیم، اسماعیل اسحاق، یعقوب، موسیٰ، عیسیٰ او نور انبیاء علیهم السلام اجمالاً) او ذکر دَ طالوت او دَ هغه دَ ملګرو مجاهدینو-(۱۱) په هغه سورت کښ المغضوب علیهم ذکر وو نو په سورة بقره کښ دَ هغے مصداق او بعضِ اسباب دَ غضب او دَ لعنت ذکر کړل-(۱۲) په هغه سورت کښ الضالین ذکر وو نو په دے سورت کښ یے بعضِ اسباب دَ ضلال ذکر کړل

**دعوٰی دَ سورة بقرة:-** اثبات دَ توحید دَ ربوبیت او دَ الوهیت دے په لس طریقو (وجو) سره- اوله وجه ذکر دَ توحید په څلور و تعبیراتو سره په ۲۱کښ توحید دَ عبودیت او ربوبیت په ۱۶۳کښ توحید په تشریع او تحلیل و تحریم کښ- په ۲۵۵کښ توحید په اسماء او صفاتو سره او رد دَ شفاعت قهریه (شرکیه)- او په ۲۸۴کښ توحید په تصرف او علم کښ سره دَ عقیدے دَ حساب نه- دویمه وجه اثبات دَ توحید دے په عقلی دلیلونو سره چه هغه تقسیم دی درے قسمونو ته اول استدلال په اعیان محسوسه چه مواد دَ تربیت دی په ۲۱ ۲۲کښ او هغه پنځه دلیلونه دی- دویم استدلال په کیفیاتو دَ اعیانو سره چه هغه لس دی په ۱۶۴کښ- دریم استدلال په اسماؤ او صفاتو سره چه هغه لس دی په ۲۵۵ کښ- دریمه وجه اثبات دَ توحید دے په نقلی دلیلونو سره دَ ابراهیم او یعقوب علیهما السلام نه- څلورمه وجه اثبات دَ توحید دے په رد کولو سره په ټولو اقسامو دَ شرك باندے- رد په شرك فی العلم په شپږ ایاتونو کښ- او په شرك فی التصرف باندے په شپږ ایاتونو کښ- او په شرك فی العبادت باندے په درے

آیاتونو کښ او په شرک فی الدعاء په یو آیت کښ او په شرک فی التحلیل والتحریم
په دوه آیاتونو کښ او په شفاعتِ قهریه باندے په یو آیت کښ او په عقیده د
اتخاذالولد باندے په یو آیت کښ۔ پنځمه وجه، اثبات د توحید دے په ذکر د
صداقت الرسول سره په طریقه د دفع د شبهاتو سره د صداقت د رسول نه۔
شپږمه وجه، اثبات د توحید دے په ذکر د خاص نعمتونو سره په بنی اسرائیلو
باندے په سبب د عقیدے د توحید سره۔ اوومه وجه، اثبات د توحید دے په
ذکر د عذابونو او فضائحو (رسوایئ) د بنی اسرائیلو په سبب د اعراض د توحید نه۔
اتمه وجه، اثبات د توحید دے په ذکر د قتال فی سبیل الله د پاره د نشر و اشاعت
او غلبے د توحید او خلاصول د مرکز د توحید (چه کعبه ده) د تسلّط د مشرکانو نه۔
نهمه وجه، اثبات د توحید دے په ذکر د ترغیب الی الانفاق فی سبیل الله سره
د پاره د اشاعت د توحید۔ لسمه وجه اثبات د توحید دے په ذکر د اسماءِ حسنیٰ
د الله لره چه شپږ ویشت ۲۶ دی په حذف د تکرار سره د صفاتِ فعلیه د الله تعالیٰ نه
او دعوی د توحید څلور کرته ذکر ده لکه چه مخکښ بیان شول نو دارنګ صداقت
د رسول هم څلور کرته ذکر دے په ۹۷ او ۱۰۱ او په ۱۱۹ او په ۱۲۹ کښ او دارنګ
قتال فی سبیل الله څلور کرته ذکر دے په ۱۹۰ ۱۹۳ ۲۴۴ ۲۵۱ کښ او دارنګ انفاق
فی سبیل الله هم څلور کرته په ۲۵۴ ۲۶۱ ۲۶۷ ۲۷۴ کښ ذکر دے۔
**خلاصه اجمالیه** د سورت په ترتیب د مضامینو سره داده:- اول دعوت دے
قرآن نه او د هغے تاثیر او حالات د مخالفت کوونکو تر ۲۰ پورے. دویم ذکر د مقصد
د دعوتِ قرآن په دلیلونو او تخویف او بشارت سره تر ۲۹ پورے. دریم ضرورت
د خلافت دے د قرآن د مقصد د جاری کولو د پاره سره د صفت او د حق د خلیفه
نه تر ۳۹ پورے۔ څلورم ذکر د بنی اسرائیلو چه اول استخلاف د زمکے هغوی ته
ورکړے شو سره د ذکر د اسباب د بقاء د خلافت نه چه پابندی د اوامرو او نواهی ده
تر ۴۶ پورے سره د نصرت د الله تعالیٰ نه په اتو خاص نعمتونو سره تر ۶۲ پورے۔
پنځم ذکر د اسبابو د انتقال د خلافت دے د بنی اسرائیلو نه چه هغه د دوی قبائح
دی په تفصیل سره، سره د دُعاءِ ابراهیمی نه چه سبب د انتقال د خلافت او
رسالت وُو خاتم النبیین او د هغه اُمت ته تر ۱۵۲ پورے۔ شپږم تعلیم د آدابو
مؤمنانو ته او منع کول د دوی د تقلید د آباؤ نه په احکامو کښ او په تحریم و تحلیل
کښ ځکه داخلاف دے د خلافتِ شرعیه نه تر ۱۷۶ پورے. اووم تفصیلی ذکر

د نظام [خ]لافة دے چه هغه تهذیب د نفوسو دے او اجراء د احکامِ سیاسیه دپاره
دا[...] نفسونو او مالونو او فریضه د خلافت چه اجراء د قتال فی سبیل الله ده
سرهٔ د امورو د تدبیرِ منزل نه دپاره د حفاظت د کورنیٔ د فساد نه تر ۲۵۳ پورے
اتم ذکر د انفاق فی سبیل الله دے دپاره د دوام او د بقاء د خلافت دے دپاره د انفاق فی سبیل الله
او منع د ربٰوا او د هغه تجارت نه چه سبب د تنازع وی او اختتام په دعا سره دے۔

**خلاصه تفصیلیه:** په اعتبار د حصو او د بابونو سره، (دا خلاصه د یو یو باب
په سرکښ به ذکر کیدیشی دپاره د مزید فهم او پوهے د مقصد د ایاتونو) دا سورت
تقسیم دے څلورو حصو ته په هره حصه کښ څلور بابونه دی اوله حصه په
اثبات د توحید کښ ده تر ۹۶ پورے دویمه حصه په اثبات د رسالت د محمد
رسول الله (صلی الله علیه وسلم) کښ ده په دفع کولو د شبهاتو سره تر ۱۷۶ پورے
دریمه حصه په ذکر د قتال فی سبیل الله کښ او د هغے دپاره ضروری امورو تر
۲۵۳ پورے څلورمه حصه په ترغیب کښ ده دپاره د انفاق فی سبیل الله سرهٔ د
منع کولو د معاملے د ربٰو نه تر اخره د سورت پورے۔ بیا اوله حصه تقسم ده څلورو
بابونو ته اول باب تر ۲۰ پورے دے په دے کښ اول ذکر د عظمت د قرآن
کریم دے په درے صفاتو سره په ۱ ۲ کښ۔ دویم پنځه صفات دپاره د متقیانو
چه د قرآن نه پوره فائده اخستونکی دی او د هغوی جزا دنیوی او اخروی تر
۵ پورے۔ دریم ذکر د عنادی کافرانو او د هغوی درے احوال سرهٔ د ذکر د سزا
دنیوی او اخروی نه تر ۷ پورے۔ څلورم ذکر د منافقانو د پنځلس ۱۵ قبائحو دے سرهٔ
د سزا دنیوی او اخروی نه تر ۱۶ پورے۔ پنځم مثالونه د مخالفینو د قرآن کریم
اول د هغه کسانو چه د قرآن کریم نه فائده نه اخلی او نه اوری او خلق تری نه
منع کوی، دویم د هغه کسانو چه بعضِ ایاتونه اوری د خپل مفادِ دنیوی دپاره
او د بعضو نه غوږونه او ستر ګے بندوی هر کله چه هغه د دوی د عیبونو اصلاح
کوی تر ۲۰ پورے۔

**تفسیر:** ۱ الٓمٓ دیته مقطعات وئیلے شی حروف دی په اصطلاح د
متقدمینو کښ ځکه چه هغوی به په هرے کلمے باندے د حرف د نوم اطلاق
کوؤ که اسم وؤ او که فعل وؤ۔ او اسماء دی په اصطلاح د روستنو کښ ځکه
الف اسم دے د مسمٰی چه "ا" دے او لام اسم دے او "ل" مسمٰی دے او میم اسم دے
او "م" مسمٰی دے نو بنا په دے باندے دیته اسماءِ مقطعات وئیلے شی۔ او مقطعات

د دے وجے نه دی چه هر یو اسم جلا جلا الوستلے کیږی او په دے بانده اتفاق د قراؤ دے اګرچه لیکل یې د اسم مرکب پشان دی۔
دا مقطعات د یو کم[29] دیرش سورتونو په ابتداء کښ راغلے دی ټول خو اته[78] او یا دی خوچه تکرار تری نه لرے کړے شی نو څوارلس دی چه د هغے مجموعه. نَص حَكِيم قَاطِعٌ لَهُ سِرٌّ دے. او دا په کتابت (لیکلو) کښ پنځه قسمونه دی- اول مفردات لکه صٓ-قٓ-نٓ- دویم مرکب د دوؤنه لکه طٰهٰ- طٰسٓ-حٰمٓ- دریم مرکب د دریونه لکه الٓمّٓ-الٓرٰ- طٰسٓمّٓ- څلورم مرکب د څلورونه لکه الٓمّٓصٓ- الٓمّٓرٰ- پنځم مرکب د پنځونه لکه كٓهٰيٰعٓصٓ او حٰمٓعٓسٓقٓ (او په دے کښ اختلاف دے د بعض په نیز چه دا حمٓ- عسق دے)-
د مقطعاتو په باره کښ څو عقیدے ساتل ضروری دی، اوله عقیده ابن کثیر ذکر کړیده چه هغه دا ده، چه شک نیشته چه دا حرفونه الله تعالیٰ عبث نه دی نازل کړی- او څوک چه داسے وائی چه په قرآن کریم کښ داسے کلمات شته چه صرف تعبّد پرے کیږی او معنی یې بالکل نیشته نو داسے شخص غټه خطائی کوی ځکه په نفس الامر کښ د دے معنی شته دے خو که د معصوم (چه نبی صلی الله علیه وسلم دے) نه څه معنی ثابت وی نو مونږ به په هغے بانده قول کوؤ او که نه وی نو توقف به کوؤ او وایو به چه زمونږ په دے بانده ایمان دے چه دا الفاظ زمونږ د رب د طرف نه دی (انتهی)- دویمه عقیده سیوطی ذکر کړیده هغه دا ده، چه کوم حرفونه د کوم سورتونو په افتتاح کښ راغلے دی نو د هغے د هغه سورتونو سره ضرور مناسبت شته چه د بل سورت سره هغه مناسبت نیشته لکه چه قٓ د سورة قٓ سره مناسبت لری او نٓ د سورة قلم سره مناسبت لری (او دغه شان نور) او هغه مناسبت که مونږ ته معلوم وی لکه بعض به روستو مونږ ذکر کوؤ او که نه وی معلوم- دریمه عقیده دا ده چه شروع کول د کلام په داسے حرفونو بانده او د دے استعمالول په کلام کښ د عربو او اهل کتابو ټولو په نیز بانده معروف وُو بلکه د فصیح او بلیغ کلام نښه وه که داسے نه وے نو هغه مخالفینو به ضرور په قرآن بانده دا اعتراض کړے وے چه دا حرفونه بے فائدے دی یا د فصاحت بلاغت نه خلاف دی ځکه چه عنادیان خو هر اعتراض ځای او بے ځایه محل کوری لیکن هغوی دا اعتراض نه دے کړے بیا پوهه شه چه دا حرفونه مرکبه سره د تقطیع نه په لغت کښ د هیڅ معنی

دَپاره نه دي وضع کړے شوے هاں په عرف کښ دَ دے تخصیص په بعضِ معانیو
پورے کیدیشي په سبب دَ هغه اقوالو چه روستو به ذکر کولے شي چه دا اسماء
دَ سورتونو دي یا دَ قرآن وغیره او دا حرفونه مفرده خو اسماء دي وضع شوي دي
دَپاره دَ مسمیاتو خپلو لکه الف وضع کړے شوید ے دَپاره دَ حرف آ او لام وضع کړے
شوید ے دَپاره دَ حرف دَل۔ بیا په دے حرفونو مرکبو کښ دَ اهلِ علمو اختلاف دے
چه دا دَ قسم دَ متشابهات نه دي او که نه دي؟ قرطبي او ابن کثیر دَ خلفاء اربعه او
ابن مسعود رضی الله عنهم او دَ ډیرو تابعینو نه نقل کړید ے چه دَ دے علم په
الله تعالیٰ پورے خاص دے او دَ دے هیڅ تفسیر مونږ ته معلوم نه دے نو معلومه
شوه چه دا متشابهات دي یعنې هغه متشابه چه معنیٰ ئے معلوم نه وي اگرچه حکمتونه
او فائدے ئے معلومیدې بیا فرق دَ دے او دَ صفاتِ الٰهیه په مینځ کښ دا دے چه
صفات خو محکمات دي په اعتبار دَ اصل معنی سره لیکن دَ کیفیت په اعتبار سره
متشابه دي او دا حروف خو دَ معنی په لحاظ سره متشابه دي۔ او نورو اهلِ علمو
وئیلي دي چه دَ دے معنی معلوم ده متشابه نه دي بیا په هغه معنی کښ اختلاف
دے عبدالرحمٰن بن زید بن اسلم نه نقل دے چه دا نومونه دَ سورتونو
دي او دَ ابن ابي نجیح نه نقل دے چه دا اسماء دَ قرآن دي۔ او دَ سالم بن عبدالله
وغیره نه نقل دي چه دا نومونه دَ الله تعالیٰ دي او ابن ابي حاتم وئیلي دي چه
ممکن ده چه دا معاني ټولے په یوکرت مراد وي ځکه چه په دے معانیو کښ
منافات او تناقض نیشته (خو دا په تیز دَ هغه چا صحیح دے چه عموم دَ مشترك
ته جائز وائي) او که چه هر حرف ځان ځان له مراد وي نو په دے کښ ډیر
اقوال دي۔ اول قول دا دے چه هر حرف دَ الله تعالیٰ نوم ته اشاره ده په طریقه
دَ ذکر دَ جزء او مراد تربنه کل دے، نو الف اشاره ده الله ته او لام اشاره ده لطیفٌ
بِعبادِهٖ ته او میم اشاره ده مالك یا مجید ته او په دے کښ تنبیه ده چه دَ دے سورت
مضامین دَ دے درے نومونو مظهر دے۔ دویم قول دا چه دا اشاره ده نورو
نومونو ته یعنې الف اشاره ده الله ته او لام اشاره ده جبرئیل ته او میم اشاره ده
محمد صلی الله علیه وسلم ته یعنې دا کتاب الله تعالیٰ نازل کړید ے په واسطه
دَ جبرئیل په محمد صلی الله علیه وسلم باندے۔ دریم قول دا دے چه دا اشاره
ده نورو الفاظو ته الف اصل ته او لام لازم ته او میم محکم ته اشاره ده یعنې اصل
او لازم الاتباع او محکم صرف دا کتاب دے۔ (دا تبصیر الرحمان للمهائمي ذکر کړیدی)

خلورم قول دا دے چه الف متحرك په اصل کښې همزه دے او هغه د ابتداء د مخارجونه دے چه حلق (مرئ) دے او لام د مینځ د مخارجونه دے او میم د آخری د مخارجونه دے چه (شونډے دی) ابن قیم فرمائیلی دی چه په دے کښې اشاره ده چه دا سورت مشتمل دے په ذکر د ابتداء د خلق او د مینځ د هغې چه احکام شرعیه دنیویه دی او آخر د خلق چه آخرت او قیامت دے. پنځم قول دا دے چه حرفونه ټول داخل دی په دے درے مخرجونو کښې نو ذکر د دے درے حرفونو اشاره ده ټولو حرفونو ته چه ماده د کلام د الله تعالیٰ او د هر کلام ده. شپږم قول دا دے چه هر حرف په حساب د ابجد سره دلالت کوی په یو عدد باندے یعنی الف په یو او لام په دیرش او میم په څلویښت باندے لیکن ابن کثیر دے قول ته ضعیف وئیلی دی او کوم حدیث چه بعض مفسرینو په دے باره کښې ذکر کړے هغه ضعیف دے. اووم قول دا دے چه دا حرفونه د قسم د پاره ذکر دی ځکه چه د دے حروفو شان لوئے دے کلام د الله تعالیٰ تربنه جوړ شوید ے لیکن په دے قول کښې ډیر تکلف دے ځکه حرفِ قسم او جوابِ قسم نیشته. اتم قول دا دے چه دا ذکر د بعض حرفونو دے او اشاره ده ټولو حرفونو ته د پاره د تنبیه په اعجاز د قرآن کریم باندے چه مخاطبین په اول اوریدلو سره خبرشی چه دا معجز کتاب دے او وجه د اعجاز دا ده چه دا قرآن جوړ دے د هغه حرفونو نه چه تمام لغتونو والا د هغې نه خپل کلام جوړوی نو دا کلام د جنس د نورو کلامونو نه شو په اعتبار د اشتراك د ماده (چه حروف دی) نو که چرته دا د بنده کلام وے نو هر بنده به قادر وو چه د دے مقابله کښې به ئے یو سورت یا یو جمله جوړه کړے وے لیکن عام خلق خو پریږده چه د عربو فصیحان، بلیغان، شاعران او خطیبان د دے کتاب مقابله نه شی کولے او نه ئے کړے ده نو معلومه شوه چه دا معجز د الله تعالیٰ کلام دے او محمد رسول الله ته رالیږلے شوے دے دا قول اکثر مفسرینو او دا رنګ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة الله علیه غوره کړیدے.

**سوال:-** نو دا حرفونه ئے د یو سورت په ابتداء کښې په یو ځائے ولے نه راوړل؟

**جواب:-** د دے وجه دا ده چه مشرکین عرب او یهود و نصاراؤ به وخت په وخت د قرآن تکذیب او انکار کوؤ او په هغې به ئے اعتراضونه کول نو د دے وجے نه وخت په وخت په مختلف سورتونو کښې تنبیه د اعجاز بار بار ذکر شوه د پاره د رد په هغوی باندے. **سوال:-** هر کله چه دا مقصد وؤ نو بیا مختلف حرفونه په مختلف

سورتونوکښ ولې ذکر کړیدی؟-

**جواب:-** د دې وجه نه چه د هر سورت سره هغه حرفونه مناسب دی کوم چه د هغې په سرکښ ذکر دی مثلاً سورة صٓ سره حرف د صٓ مناسبت دے ځکه چه صاد اشاره ده خصومتونوته او په سورة صٓ کښ ډیر خصومتونه (دشمنئ، جهګړے) ذکر دی او سورة قٓ سره د حرف د قٓ مناسبت دے ځکه په هغه سورت کښ دا سے الفاظ په کثرت سره دی چه مشتمل دی په حرف قاف باندے. نو دا رنګ هغه سورتونه چه په سرکښ ئې الف لام میم دے نو په هغه سورت کښ د دغه حرفونو استعمال ډیر دے.

**سوال:-** ټول حرفونه چه یو کم دیرش دی (که همزه او الف جدا جدا شمارشی) او اته ویشت دی (که هغه دواړه په یو شمار کړیشی) نو د هغې نه صرف څوارلس حرفونه ذکر کړے دی ټول ئې ولے نه دی ذکر کړی یا د دے په بدله کښ ئې هغه نور څوارلس ولے نه ذکر کول؟-

**جواب:-** الله تعالیٰ د خپل کلام د اعجاز په وجوهو باندے ښه عالم دے د هغه بے شماره حکمتونه دی چه موږ په خپل علم کښ د هغې احاطه نه شو کولے لیکن بعضِ وجوه داسے شته چه د هغې علم الله تعالیٰ بعضِ اهلِ علمونه ورکړے دے د هغې نه بعضِ دا دی چه په دے څوارلس حرفونوکښ د حرفونو د صفاتو (چه تعلق د مخارجو سره لری) ټولو قسمونوته اشاره ده د هرے نوعے نه نیم نیم ذکر کړے د مهموسه او مجهوره او شدیده او رخوه او مطبقه او منفتحه او لیتین او منخفضه او حروف البدل د هریونه نیم نیم او د قلقله او مستعلیه نه هغه نیم چه کم دے په نسبت سره مقابل نیم ته او د حروف ذلقیه او حلقیه نه دوه ثُلثه ذکر کړے دی او د حروفِ زوائد (چه لس دی) نه ئې اوه ذکر کړی دی او په هر یو قسم کښ چه کوم ئې نه دی ذکر کړی نو هغه د مذکوره په مقابله کښ لږ لږ استعمالیږی. او دا رنګ دا مقطعات ئې پنځه قسمونه ذکر کړیدی. درے مفردات (صٓ-قٓ-نٓ) په درے سورتونوکښ. او څلور ثنائیات (طسٓ - حٰمٓ یسٓ - طٰهٰ) په نهه سورتونوکښ او درے ثلاثیات (الٓمّٓ - الٓرٰ - طٰسٓمٓ) په دیارلس سورتونوکښ او دوه رباعیات (الٓمّٓصٓ-الٓمّٓرٰ) په دوه سورتونوکښ او دوه خماسیات (کٓهٰیٰعٓصٓ-حٰمٓعٓسٓقٓ) په دوه سورتونوکښ په دے ټولوکښ د علمِ عربیة (ترکیب د کلماتو) قسمونوته اشاره ده. نو غوره دا ده چه د دے حرفونو په اصل معنی او په تفصیلی حکمتونو باندے الله تعالیٰ پوهه دے لیکن بعضِ حکمتونه چه

## هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۲﴾ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ

پوره هدایت کوونکے دے (د پاره د فائدے) پرهیزګارانو ته. دا هغه کسان دی چه یقین کوی

دلیلونه دا عجاز د قرآن دی الله تعالیٰ اهلِ علمو ته د هغے علم ورکړیدے او په دے توجیه کښ اول قول او روستنے قول دواړه راجمع دی۔

۲ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ په دے ایت کښ ترغیب دے کتاب الله ته په ذکر کولو د دریے صفتونو د هغه سره دا سے صفتونه چه د باقی ټولو صفتونو د پاره مرجع دی (کمال د دے کتاب۔ بے شکه۔ هدایت کامله) صفات د قرآن کریم ذکر دی په سورۃ اعراف ۲ او یونس ۱ هود ۱ یوسف ۱ ۲ ابراهیم ۱ کهف ۱ طٰهٰ ۱ ۲ ۳ لقمان ۱ ۲ ۳ نمل ۱ ۲ الم سجده ۱ ۲ یٰسٓ ۱ ۲ صٓ ۱ زمر ۱ مؤمن ۱ ۲ حم سجده ۱ ۲ ۳ ۴ زخرف ۱ ۲ ۳ ۴ دخان ۱ ۲ ۳ قٓ ۱ جن ۱ ۲ او قدر ۱ کښ د دے سورتونو په اول کښ د قرآن کریم صفتونه ذکر دی او بعضِ ایاتونه چه د سورتونو په مینځ کښ دی هغه دا دی بقره ۹۷ ۹۹ ۱۷۶ ۲۵۲ آلعمران ۱۳۸ نساء ۸۲ ۱۰۵ ۱۷۴ مائده ۱۵ ۱۶ ۴۸ انعام ۹۲ ۱۱۴ ۱۵۳ ۱۵۵۔ یونس ۳۷ ۵۷ یوسف ۱۱۱ ابراهیم ۵۲ حجر ۹ نحل ۶۴ ۱۰۲ ۱۰۳ اسراء ۹ ۸۸ ۱۰۵ ۱۰۶ مریم ۹۷ فرقان ۳۲ شعراء ۱۹۲ نه تر ۱۹۷ پورے عنکبوت ۴۹ ۵۱ سبا ۶ فاطر ۳۱ یٰسٓ ۶۹ زمر ۲۳ ۲۸ حم سجده ۴۱ ۴۲ شوریٰ ۵۲ جاثیه ۲۰ احقاف ۱۲ ۳۰ قمر ۵ رحمٰن ۲ واقعه ۷۷ ۷۸ ۷۹ ۸۰ تغابن ۸ الحاقه ۴۰ ۴۱ ۴۲ ۴۳ عبس د ۱۱ نه تر ۱۶ پورے تکویر ۲۷ بروج ۲۱ ۲۲ بینه ۲ ۳ په دے ایاتونو کښ د فکر کولو نه روستو معلومیږی چه مرجع د دے دغه دریے صفتونو دی۔ ذٰلِكَ اشاره ده هغه ایاتونو او سورتونو ته چه مخکښ نازل شوی وُو او دا رنګ هغه چه روستو نازل شوی وُو (په اعتبار د ما سَیَنزل سره) او ذٰلِكَ اشاره بعید ته ده لیکن بعید دوه قسمونه دے یو هغه چه مکان یا زمان ئے لرے وی دویم هغه چه مرتبه ئے دا سے لویه وی چه د انسانانو د فهم نه لرے وی دلته دویم قسم مراد دے نو معنیٰ ئے دا ده "چه دغه نازل کړے شوے لوئے مرتبے والا"۔ اَلْكِتٰبُ دا اسم جنس دے او مراد تری نه فرد کامل دے یعنی دا پوره کتاب دے او اَلْكِتٰبُ د قرآن کریم د نومونو نه یو نوم دے (ک ت ب) دلالت کوی په جمع باندے نو قرآن ته کتاب وئیلے کیږی د دے وجے نه چه مکتوب دے په

لوح محفوظ کښې لکه په سورة زخرف ۴ او سورة واقعه ۷۸ کښې دی او مکتوب په صحیفو دَ ملائکو کښې لکه په سورة عبس ۱۳ کښې دی او مکتوب وُ روستو دَ نزول نه په پاڼړو او په هډوکو او پوستکو دَ اُونو او خرمنو کښې او جمع کړے شوے وُ په سینه دَ نبی صلی الله علیه وسلم کښې او په سینو دَ صحابه کرامو او علماؤ او حافظانو کښې لکه په سورة القیامه ۱۷ او سورة عنکبوت ۴۹ کښې. او مادّه دَ کتب په قرآن کریم کښې په دولس معانو سره مستعمل ده دلته دغه مشهوره معنی مراد ده. کامل کتاب دَ دے وجے نه دے چه فصاحت او بلاغت ئے په اعلیٰ درجه کښې دے او ترتیب دَ کلماتو او دَ جملو او دَ ایاتونو او دَ سورتونو او دَ مضامینو ئے په اکمله وجے سره دے او مشتمل دے په ټولو مهماتو دَ دین باندے عقیده، اعمال بدنیه، قلبیه، معاملات، سیاسیات، اقتصادیات، نکاح، طلاق، احکام دَ عدّت، حدود، قصاص او تعزیرات وغیره۔

لَا رَیْبَ فِیْهِ دا دویم صفت دَ قرآن دے او دا صفتِ سلبیه دے لکه چه مخکښې صفتِ ثبوتیه وُ۔ او غوره دا ده چه دا جمله ده او علّت (دلیل) دے دَ پاره دَ مخکښې جملے یعنی قرآن ولے کامل دے ځکه چه دَ هر قسم ریب نه پاک دے او نیشتوالے دَ ریب پوره کمال دے یا دا جمله نتیجه ده دَ پاره دَ مخکښې یعنی هرکله چه دا کتاب کامل دے نو معلومه شوه چه هیڅ ریب پکښې نیشته دے۔ او دا په قرآن کښې په سورة یونس ۳۷ او سجده ۲ کښې دی۔ او ارتیاب (شک کول) صفت دَ منافقینو ذکر دے په سورة توبه ۴۵ او نور ۵۰ او حدید ۱۴ او دَ هر کافر په صفت کښې په سورة مؤمن ۳۴ کښې ذکر دے او اُوه کرته په قرآن کښې شک په صفت دَ مریب سره ذکر دے او عدم ارتیاب صفت دَ مؤمنانو په مدثر ۳۱ او حجرات ۱۵ کښې ذکر دے۔ او هر چه نفی دَ ریب ده دَ قیامت نه نو یوولس کرته ذکر ده۔ او لَا دَ پاره دَ نفی دَ جنس دے او ریب نکره ده لاندے دَ نفی نه نو ډیر عموم په سلب کښې فائده کوی یعنی هیڅ ریب په لفظ او معنی کښې ئے نیشته۔ رَیْبَ دا ماده په قرآن کښې ۳۵ پنځه دیرش کرته مستعمل شوې ده او لفظ دَ ریب اتلس ۱۸ کرته دے۔ ابن الاثیر وئیلے دی چه ریب وئیلے شی شک ته سره دَ تهمت نه او دا رنګ په روح المعانی کښې هم ذکر دی او اکثر په مطلقِ شک کښې استعمالیږی او کله حادثے ته هم وئیلے شی لکه ریب المنون (طور ۳۰) او ریب الدهر په معنی دَ حوادثو دَ زمانے۔ نو په ریب کښې معنی دَ تنګوالی ده یعنی په شک سره زړه تنګیږی لکه چه په حوادثو سره هم تنګسیا راځی۔ او دَ شک

په تاکید کښې مریب هم ذ دے وجې نه راغې چه شک عام دے او ریب خاص دے او ذ دے وجې نه ذ دے په استعمال کښې هم فرق دے هغه دا دے چه شک استعمالیږی په مقام ذ تردد کښې چه یو جانب باندے کلک نه وی نو ذ شک لرے کولو ذ پاره دوه طریقے دی یو تپوس کول لکه په سورة یونس ۹۴ کښې دی دویم بیان کول لکه سورة یونس ۱۰۴ کښې دی او هرچه ریب دے نو ذ هغې ذ ازالے ذ پاره ذ تحدّی (طلب ذ مقابلې) او مناظرے ضرورت وی لکه په سورة بقره ۲۳ کښې دی۔

سوال ۱: هرکله چه ریب خاص دے او شک عام دے او په نفی ذ خاص سره نفی ذ عام نه لا زمیږی او حال دا دے چه قرآن کریم کښې هیڅ شک هم نیشته لکه چه په کښې ریب نیشته؟۔

جواب:۔ عام مفسرین لیکلی دی چه دلته ذ ریب نه مراد شک دے ذ قبیلے ذ ذکر ذ خاص نه او مراد تری نه عام دے یا ذکر ذ مسبب او مراد تری نه سبب دے۔

سوال ۲: هرکله چه مراد ذ ریب نه شک دے نو لاشك فیه یې ولے او نه وئیلو؟

جواب:۔ مخاطبین ذ قرآن (منکرین) صرف شک والا نه وُو بلکه ریب کوونکی هم وُو لکه په سورة بقره ۲۳ کښې دی او په کلام کښې رعایت کول ذ مخاطب پوره بلاغت دے ذ دے وجې نه نفی ذ ریب یې اوکړه۔

سوال ۳: په قرآن کښې ریب کوُونکی ډیر دی نو ریب موجود شو نو څه رنګ لاریب یې اوئیلو؟۔

جواب اول:۔ امام رازی وئیلے دی چه دا نفی په معنیٰ ذ نهی سره ده یعنی ریب مکوئ۔ لیکن دا تاویل بے ضرورته دے۔

جواب دویم:۔ سکاکی او صاحب ذ تلخیص المفتاح ذکر کړیدے چه دا ذ قبیلے ذ فرض کولو ذ موجود په منزله ذ معدوم (نیشت) سره دے ذ وجې ذ نیشتوالی ذ دلیل ذ ریب نه لیکن دا هم بے حاجته تاویل دے۔

جواب دریم:۔ ابو حیان وئیلے دی چه دا سوال بالکل خطا دے ځکه چه وجود ذ مرتابینو (شک کوُونکو) تقاضا کوی ذ وجود ذ ریب نه په ذهن ذ مرتاب (شک کوُونکی) کښې نه په نفس الامر (حقیقت) کښې، او په لا ریب سره نفی ذ ریب ده ذ قرآن نه په نفس الامر کښې او ذ دے وجې نه په ۲۳ کښې وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ وئیلے دے، اِنْ كَانَ فِيْهِ رَيْبٌ یې نه دے وئیلے، او دا بالکل

صحیح جواب دے۔
**فائدہ:۔** په نفی د ریب سره نفی د عِوَج هم اوشوه او معلومه شوه چه هیڅ باطل د قرآن مقابله نشی کولے نو د هیچا قول او کتاب د قرآن په مقابله کښ قبول نهٔ دے نو ډیر افسوس دے په هغه جاهلانو باندے چه د قرآن په مقابله کښ د خپل شیخ، امام، پیر وغیره په قول سره دلیل نیسی او قرآن پریږدی یا په هغے کښ تاویلونه کوی لکه مشرکین او مبتدعین۔
**سوال ۷:** ریب او شک خو تعلق لری د نسبت سره لکه نسبت د اودریدلو زید ته، او مفرد سره خو د دے تعلق نشی کیدے او حال دا دے چه ضمیر د فیه کتاب ته راجع دے او هغه مفرد دے؟۔
**جواب:۔** فیه ضمیر اگرچه کتاب ته راجع دے لیکن د کتاب نه ذات د هغه نه دے مراد بلکه کمال د کتاب دے لکه چه په ذٰلِكَ الْكِتٰبُ کښ ذکر شول یا نازلیدل د کتاب دی د طرف د الله تعالیٰ نه لکه سورة الم سجده ۲ کښ دی او کمال د کتاب یا نازلیدل نسبت دے مفرد نه دے۔
**هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ** دا دریم صفت دے چه مشتمل دے په صفاتِ ثبوتیه او سلبیه دواړو باندے ځکه چه هدایت کښ معنیٰ د رسیدلو ده حق او صحیح مقصد ته او بچ کیدل دی د گمراهئ او د نقصان نه۔ او غوره دا ده چه دا هم مستقله جمله ده او مبتداء (هو) پټه ده او هدًى ئے خبر دے او دا جمله هم دلیل دے د پاره د لاریب فیه یا نتیجه ده د هغے د پاره په طریقه د ځنځئ جملے سره۔
**هُدًى** مصدر دے په معنیٰ د اسم فاعل سره دے ځکه چه قرآن هدایت کوی لکه په سورة اسراء ۹ کښ دی۔ او هدًى د قرآن په صفت کښ نور لس کرته راغلے دے او تعبیر په مصدر سره د پاره د مبالغے پیدا کولو دے یا په تقدیر د ذو سره دے یعنی ذو هدًى۔ او هدًى نکره مصدر دلالت کوی په پوره هدایت باندے یعنی د قرآن کریم هر لفظ او هره جمله د هدایت د پاره ده، هغه هدایت چه انسانان هغے ته په ژوند دنیوی یا په دین کښ محتاج دی۔
**سوال:۔** په قرآن کښ بعضِ متشابهات هم شته دے نو په هغے کښ څنگه هدایت دے؟۔
**جواب ۱:** په قرآن کریم کښ داسے متشابهات نیشته چه د هغے معنیٰ معلومه نه وی لکه چه مقطعات و کښ بعضِ اقوال ذکر شول چه د هغے معانی یا فائدے

په کښې ذکر دی او دا رنګ صفات د الله تعالیٰ لکه ید، وجه، استواء وغیره د دے معانی معلوم دی (چه لاس۔ مخ۔ برابر والے وغیره) دے لیکن کیفیات یے معلوم نه دی او د مخلوق سره یے مشابهت نیشته او دا مذهب د سلف صالحینو دے او هر کله چه د دے معانی معلوم دی یا فائده او حکمت نه یے معلوم دی نو دغه هم ایت دے۔

**جواب ۲:** که او منلے شی چه د بعضِ متشابهاتو معانی معلومے نه دی نو فائده د هغے دا ده چه انسانانو ته بلکه علماؤ ته معلومه شی چه زمونږ علم د الله تعالیٰ د علم په شان نه دے او زمونږ علم محیط نه دے په هر څیز باندے او مونږ غیبدانان نه یو او بیا (د تاویلاتو) د هغه متشابهاتو نه په ځان منع کړی او دا هم هدایت دی او دا صفت د راسخین فی العلم دے لکه چه سورة آل‌عمران ۷ کښې ذکر دی۔

**لِلْمُتَّقِیْنَ** لام متعلق دے په هدًی پورے او متقین صیغه د جمع د اسمِ فاعل ده او ماخوذ ده د تقوٰی نه او هغه اخستلے شوید ے د وقایة نه او وقایه بچ کولو ته وئیلے کیږی۔ او کله مصدر تُقَاةٌ راځی په دغه معنی لغوی سره لکه سورة آل‌عمران ۲۸ کښې۔ او د تقوٰی په اصطلاح د شریعت کښې مختلف تعبیرات دی۔

**اول تعبیر:** تفسیر البحر المحیط کښې لیکلی دی "چه متقی په شریعت کښې هغه څوک دے چه ځان بچ ساتی د کولو د هغه کارنه چه په هغے کښې ویږوی د عذاب برابره خبره ده چه کول وی (د ماموراتو) یا پریښودل وی (د منهیاتو)"۔

**دویم تعبیر:** د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړے شوید ے چه متقی هغه څوک دے چه ځان بچ ساتی د شرک نه او عمل کوی په طاعت د الله تعالیٰ سره۔

**دریم تعبیر:** متقی هغه څوک دے چه امتثال کوی د اوامرو (د الله تعالیٰ او د رسول) او اجتناب کوی د منهیاتو د هغوی نه۔

**څلورم تعبیر:** متقی هغه څوک دے چه ځان بچ کوی د هغے نه چه حرام کړے دی الله تعالیٰ او ادا کوی هغه چه فرض کړے دی الله تعالیٰ۔

**پنځم تعبیر:** متقی هغه څوک دے چه ځان ساتی د شرک او عبادت د غیر الله نه او اخلاص کوی الله تعالیٰ ته د بندګئ، دا ابن کثیر ذکر کړے دی۔ او په حدیث د ترمذی کښې دی چه بنده د متقیانو نه نشی کیدے تر دے پورے چه مباح کارونه پریږدی د وجے د یرے د حرامونه۔

نو معلومه شوه چه د تقوی درے مرتبے دی. اوله مرتبه د شرک او د کفر د ټولو اقسامونه ځان ګیدال دی او تقوی په دے معنی سره توحید دے بغیر د دے نه ایمان نه حاصلیږی. دویمه مرتبه د ماموراتو (فرائضو، واجباتو او سنتو) ادائیګی کول دی او د منهیاتو (ګناهونه کبیره او همیشوالے په صغیره) نه ځان ځ ساتل دی او دا معروفه معنی ده او دا د کامل مؤمنانو شان دے. دریمه مرتبه چه د شبهاتو او د انهماک د مباحاتو نه ځان ځ کوی هسے نه چه په حرامو کښ واقع شی او دا مرتبه د اکمل مؤمنانو ده لکه انبیاء علیهم السلام او بعض افراد د مؤمنانو.

فائده ۱: ماده د تقوی په قرآن کریم کښ (۲۳۷) کرته ذکر ده او امر په تقوی سره (۷۸) کرته دے او تقوی په اوو معانو سره استعمالیږی. اول په معنی د توحید سره لکه په سورة الفتح ۲۶ کښ. دویم په معنی د توبه سره لکه په سورة اعراف ۹۶ کښ. دریم په معنی د طاعت د احکامو سره لکه په سورة نحل ۲ کښ. څلورم په معنی د ترک د معصیت لکه سورة مائده ۳۵ کښ. پنځم په معنی د اخلاص سره لکه په سورة الحج ۳۲ کښ. شپږم په معنی د خوف او خشیت سره لکه په سورة بقره ۴۸ کښ. اووم په معنی د پرهیزګاری یعنی اوامر په ځائے راوړل او د منهیاتو نه ځان ساتل لکه په دے سورة بقره ۲ کښ.

فائده ۲: د مؤمنانو د اسماءِ صفتیو نه (چه روستو ذکر کیږی) لفظ د متقین ئے ذکر کړے دے. دا د دے سورت خصوصًا او د ټول قرآن د پاره عمومًا په شان د براعة الاستهلال دے (په اول د کتاب کښ داسے الفاظ ذکر کول چه راتلونکی مقصد ته اشاره کوی) یعنی دا سورت بلکه ټول قرآن کریم د تقوی او د هغے د طریقو تعلیم ورکوی او په شرع کښ هغه تقوی ته اعتبار دے چه قرآنی تقوی وی. د دے وجے نه په دے سورت کښ خصوصًا ماده د تقوی په مختلف تعبیراتو سره پنځه ویشت ۲۵ کرته ذکر ده اول تعبیر صیغه د متقون او متقین چه په هغے کښ تعریف او خواص د هغوی مقصود دے په ۶۶ او ۱۷۷ (په دے کښ لس صفات ذکر دی) او ۱۸۰ ۱۹۴ ۲۴۱ کښ دی. دویم تعبیر امر په تقوی سره په ۲۴ ۴۱ ۴۸ ۱۲۳ ۱۸۹ ۱۹۴ ۱۹۶ ۱۹۷ ۲۰۳ ۲۲۳ ۲۳۱ ۲۳۳ ۲۷۸ ۲۸۱ ۲۸۲ ۲۸۳ کښ دے. دریم تعبیر اسباب د حصول د تقوی په لفظ د لعلّ سره په ۲۱ ۶۳ ۱۷۹ ۱۸۳ ۱۸۷ کښ دے. څلورم تعبیر ترغیب ورکول او فضیلت د تقوی په صیغه د اتقی او اتقوا (فعل ماضی) سره په ۱۰۳ ۱۸۹ ۲۰۳ ۲۱۲ کښ دے او په صیغه د مضارع (تتقوا) سره په ۲۲۴ کښ.

او په صيغه دَ مصدر سره په ۲۳۷ کښې دے۔
**فائده ۳:** اسماء صفتيه دَ مؤمنانو په قرآن کريم کښې دا دي ۱ مؤمنون او مؤمنين او مؤمنات او مؤمنَيْنِ (تثنيه) او مؤمن او مؤمنة (۲۳۰) کرته ذکر دي ۲ مسلمون، مسلمين او مسلمات او مسلِمَيْنِ (تثنيه) او مسلم او مسلمة (۲۷) کرته ذکر دي۔ ۳ متقون او متقين (۴۹) کرته۔ ۴ محسنون او محسنات (۳۴) کرته۔ ۵ المخبتون او المخبتين يوکرت۔ ۶ الصالحون (۲۹) کرته۔ ۷ الخاشعون (۶) کرته۔ ۸ الابرار (۶) کرته۔ ۹ عباد الله او عباد الرحمٰن (۸) کرته۔ ۱۰ الصديقين (۲) کرته۔ ۱۱ الشهداء (۸) کرته۔ ۱۲ لس صفات په سورة احزاب ۳۵ کښې۔ ۱۳ المهاجرون (۵) کرته۔ ۱۴ الانصار (۲) کرته۔ ۱۵ الخاشعين والخاشعات يوکرت۔
او دارنګ نور اسماءِ صفتيه په سورة آلعمران ۱۷ او سورة توبه ۱۱۲ او سورة احزاب ۳۵ کښې اوګورئ۔ اودَ دے نه علاوه نور اوصاف هم شته۔
**سوال:-** هرکله چه دا دومره اسماءِ صفتيه دَ مؤمنانو دي نو دلته يې لفظ دَ متقين په څه وجه سره راوړے دے؟۔
**جواب:-** دَ الله تعالىٰ دَ کلام حکمتونه بے شماره دي هغه په هغے باندے نه پوهيږي ليکن ظاهره خبره دا ده چه دغه درے قسمه صفتونه دي بعضِ دَ ظاهري اعمالو سره تعلق لري او بعضِ باطني دي او صفت دَ تقوىٰ دَ ظاهر او باطن دواړو سره تعلق لري نو ځکه يې په دے سورت کښې دا جامع صفت ذکر کړو او دا سورت دَ مدينے منورے ابتدائي سورت دے نو په دے کښې اکثر صفتونه په طريقه دَ جامعيت سره ذکر دي۔ او بله وجه دا ده چه دَ يهودو او نصاراؤ په اصطلاح کښې نيکان خلق به مشهور وو په نوم دَ راهبانو سره اوَ دَ قرآن په اصطلاح کښې هغه مشهور دي په نوم دَ متقيانو سره نو دا اول سورت دَ مدينے منورے دے چه مخاطب په دے کښې يهود دي نو خبريې ورکړو دوی ته په لفظ اصطلاحي دَ قرآن سره چه متقين دے۔
**فائده ۴:** په دے مقام کښې دوه اِشکاله دي اول دا چه هدايت دَ قرآن خو عام دے لکه په دے سورت کښې په ۱۸۵ کښې ذکر دي نو دلته يې دَ متقينو تخصيص دَ څه وجے نه اوکړو؟۔ دويم اشکال دا دے چه تقوىٰ خو هدايت دے نو دَ اهلِ تقوىٰ دَ پاره هدايت خو تحصيل دَ حاصل دے چه بے فائدے دے؟۔ جوابات دَ دے دواړو په ډيرو وجو سره دي اول جواب، هدايت دَ قرآن کريم اګرچه

بِالْغَيْبِ وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ

په هغه څه چه د دوی نه پټ دی۔ او پابندی کوی د مانځه او بعضې د هغې مال نه چه مونږ دوی ته ورکړیدی

يُنْفِقُونَ ﴿۳﴾ وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَا أُنْزِلَ

خرچ کوی۔ او دا (متقیان) هغه کسان دی چه یقین کوی په هغه څه چه نازل کړے شویدی

عام دے لیکن نفع اخستونکی د قرآن نه صرف تقوٰی والادی او دا سے تخصیص په ډیر و آیاتو نوکښ شته دے لکه په سورة فاطر ۱۸ او یٰسٓ ۱۱ کښ نو اشاره شوه چه د قرآن کریم نه د فائدے حاصلولو د پاره تقوٰی، خشیت، انابت الی الله ضروری دے او هرکله چه په دے آیاتو نوکښ فرق د درے ډلو (مؤمنان۔ کافران۔ منافقان) په مینځ کښ مقصد وؤ په اعتبار د اثر د قرآن کریم سره د دے وجے نه تخصیص د متقینو ئے اوکړو۔ دویم جواب، متقین نه مراد هغه خلق دی چه تقوٰی پکښ راځی روستو د هدایت نه او قریب وی چه متقیان به جوړ شی او دیته وئیلے شی حکم په اعتبار د ما یؤول الیه سره لکه "اِنِّیْ اَعْصِرُ خَمْرًا" او "مَنْ قَتَلَ قَتِيلًا فَلَهٗ سَلَبُهٗ" دریم جواب دا دے، لکه چه په هدایت کښ ډیرے مرتبے دی چه په تفسیر د سورة فاتحه کښ ذکر کړے شویدی نو په تقوٰی کښ هم مختلف مرتبے مخکښ ذکر شویدی نو متقی په هره درجه کښ د هدایت یو خاص معنی ته محتاج دے۔ څلورم جواب، دلته هدایت په معنیٰ د تثبت او پوخوالی سره دے یعنی متقی (مؤحد) په توحید باندے پوخوالی کښ کتابؒ الله تعالیٰ ته محتاج دے یعنی کله چه یو انسان توحید او ایمان اجمالی په دلیل عقلی سره حاصل کړو یا په تقلید سره نو دے متقی دے په اوله مرتبه کښ لیکن په توحید باندے پوخوالے او تفصیلی توحید او ایمان به هله حاصلیږی چه د قرآن کریم نه استفاده اوکړی نو دا چه مشهوره ده چه اول ایمان دے او بیا قرآن دے نو مطلب ئے دا دے چه ایمان اجمالی مخکښ حاصلیدے شی او بیا تفصیلی ایمان بغیر د قرآن نه نه حاصلیږی۔

۳ په دے آیت کښ تعریف د متقینو دے (هغه چه متقی دے په درجه کامله کښ) او اشاره ده چه دا صفتونه په قرآن سره حاصلیږی۔ په دے آیت کښ د متقینو درے صفتونه ذکر دی اول صفت د عقیدے دویم عمل بدنی دریم عمل مالی او دا درے صفتونه مرجع ده د هغه ټولو صفتونو چه په

او په صيغه د مصدر سره په ۲۳۷ ځايه کښې دے.

فائده ع۳: اسماء صفتيه د مؤمنانو په قرآن کريم کښې دا دي ع۱ مؤمنون او مؤمنين او مؤمنات او مؤمنَيْنِ (تثنيه) او مؤمن او مؤمنة (۲۳۰) کرته ذکر دي ع۲ مسلمون، مسلمين او مسلمات او مسلِمَيْنِ (تثنيه) او مسلم او مسلمة (۲۷) کرته ذکر دي. ع۳ متقون او متقين (۴۹) کرته. ع۴ محسنون او محسنات (۳۴) کرته. ع۵ المخبتون او المخبتين يو کرت. ع۶ الصالحون (۲۹) کرته. ع۷ الخاشعون (۶) کرته. ع۸ الابرار (۶) کرته. ع۹ عباد الله او عباد الرحمٰن (۸) کرته. ع۱۰ الصديقين (۲) کرته. ع۱۱ الشهداء (۸) کرته. ع۱۲ لس صفات په سورة احزاب ۳۵ کښې. ع۱۳ المهاجرون (۵) کرته. ع۱۴ الانصار (۲) کرته. ع۱۵ الخاشعين والخاشعات يو کرت. او دا رنګ نور اسماءِ صفتيه په سورة آلعمران ۱۷ او سورة توبه ۱۱۲ او سورة احزاب ۳۵ کښې او ګورئ. او د دے نه علاوه نور اوصاف هم شته.

سوال:- هر کله چه دا دومره اسماءِ صفتيه د مؤمنانو دي نو دلته ئے لفظ د متقين په څه وجه سره راوړے دے؟.

جواب:- د الله تعالىٰ د کلام حکمتونه بے شماره دي هغه په هغے باندے نه پوهيږي ليکن ظاهره خبره دا ده چه دغه درے قسمه صفتونه دي بعضِ د ظاهري اعمالو سره تعلق لري او بعضِ باطني دي او صفت د تقوىٰ د ظاهر او باطن دواړو سره تعلق لري نو ځکه ئے په دے سورت کښې دا جامع صفت ذکر کړو او دا سورت د مدينے منورے ابتدائي سورت دے نو په دے کښې اکثر صفتونه په طريقه د جامعيت سره ذکر دي. او بله وجه دا ده چه د يهود او نصارا ؤ په اصطلاح کښې نيکان خلق به مشهور وؤ په نوم د راهبانو سره او د قرآن په اصطلاح کښې هغه مشهور دي په نوم د متقيانو سره نو دا اول سورت د مدينے منورے دے چه مخاطب په دے کښې يهود دي نو خبرئے ورکړه دوي ته په لفظ اصطلاحي د قرآن سره چه متقين دے.

فائده ع۴: په دے مقام کښې دوه اِشکاله دي اول دا چه هدايت د قرآن خو عام دے لکه په دے سورت کښې په ۱۸۵ کښې ذکر دي نو دلته ئے د متقينو تخصيص د څه وجے نه او کړو؟. دويم اشکال دا دے چه تقوىٰ خو هدايت دے نو د اهلِ تقوىٰ د پاره هدايت خو تحصيل د حاصل دے چه بے فائدے دے؟. جوابات د دے دواړو په ډيرو وجو سره دي اول جواب، هدايت د قرآن کريم اګرچه

بیا پوهه شئ چه ایمان شرعي په قرآن او حدیث کښ کله مطلق ذکر وی (یعنی د مؤمَن به ذکر ورسره نه وی) لکه یا ایها الذین آمنوا، او ان الذین آمنوا دا سې ډیر آیاتونه دی نو مراد به د دینه ایمان شرعي وی او تمام ایمانیات به په هغې کښ مراد وی - او کله مقید وی په ذکر د مؤمَن بِهٖ سره او هغه مؤمَن بِهٖ به کله تفصیلاً ذکر وی لکه په سورة بقره ۶۲ ۱۲۶ ۱۳۶ ۱۷۷ ۱۸۵ او سورة آل عمران ۸۴ ۱۷۹ او سورة انفال ۴۱ او اعراف ۱۵۸ او سورة شوریٰ ۱۵ کښ چه ذکر دی - او نور آیاتونه هم شته چې په دے ټولو آیاتونو کښ ذکر دے ایمان بالله او بالملائکة او بالکتب چه نازل دی په انبیاء علیهم السلام باندے او بالرسل والنّبیّین او په آخری رسول او په کلماتو د الله تعالیٰ او په یوم الآخر باندے - او مؤمَن بِهٖ کله اجمالاً ذکر وی لکه په دے آیت کښ په لفظ د بالغیب سره (چه تفسیر یې روستو راځی) -

**سوال:** - هر کله چه ایمان تصدیق دے او تصدیق علم دے نو په دے آیت سره معلومه شوه چه متقیان په غیب باندے علم لري او دا استدلال خو د اهلِ شرک دے؟

**جواب ۱:** د قرآن کریم داسې تفسیر کول چه د نورو ښکاره آیاتونو سره یې تعارض راځی دا تحریف بلکه کفر دے (چه قصداً یې کوی) نو ډیر آیاتونه شته چه ښکاره قطعاً دلالت کوی چه ما سوی الله که ملائک دی او که انبیاء دی، اولیاء دی که جنات دی نو هغوی لره علم غیب نیشته لکه په سورة نمل ۶۵ کښ نو په دے آیت (یؤمنون بالغیب) سره اثبات د علم غیب غیرالله لره استدلال کول د هغه آیت (سورة نمل) نه صریح خلاف کول دی -

**جواب ۲:** په مسئله د علم غیب کښ مراد د غیب نه غیب حقیقي دے او په دے آیت کښ مراد د غیب نه غیب اضافي دے (روستو په تفسیر د غیب کښ به ذکر شي) نو دا استدلال د دوی نه صحیح کیږی -

**جواب ۳:** فرق دے په مینځ د علم الغیب او علم بالغیب کښ هغه دا دے چه مراد په علم غیب سره دا دے چه غائب څیزونه ټول ورته داسې ښکاریږی لکه چه حاضر وی او د هغه د سترګو نه هیڅ څیز پټ نه وی لکه په صفت د الله تعالیٰ کښ دی وَمَا يَعْزُبُ عَنْ رَّبِّكَ مِنْ مِّثْقَالِ ذَرَّةٍ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ (یونس ۶۱) او مراد په علم بالغیب سره دا دے چه په غائب څیزونو باندے (یعنی د هغې په حکم باندے) عالم شي سره د وصف د غائب والي نه صفت د غائب کیدلو

نورو ایاتوکښ د هغوی د پاره ذکر دی. صفات د متقیانو په سورة بقره ۱۷۷ او سورة آلعمران ۱۳۴ او سورة زمر ۳۳ او سورة ق ۳۲ ۳۳ ۳۴ کښ ذکر دی په هغې ټولو کښ چه فکر اوکړے شي نو راجع کیږی دغه درے صفتونو ته. دلته اول صفت الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ. يُؤْمِنُونَ مادہ د ایمان په قرآن کریم کښ (۸۷۸) کرته ذکر دہ او په صیغه د امر حاضر سره اتلس[18] کرته ذکر دے او هغه یا معنی لغوی دہ یا معنی شرعی یا ایمان اجمالی دے یا ایمان تفصیلی.

ایمان په لغت کښ اعتماد او وثوق (باورکول) او خبره منلو ته وئیلے کیږی نو مجرد بغیر د صِلے د لام نه دے لکه سورة یوسف ۱۷ کښ او داخو ډیر مستعمل دے او مزید (باب افعال) په صِلے د لام سره استعمالیږی لکه سورة یوسف ۱۷ سورة توبه ۶۱ سورة بقره ۵۵ ۷۵ کښ او کوم ایمان په شریعت کښ چه مطلوب دے د یو مکلف شخص نه په دنیا کښ او معتبر دے په آخرت کښ هغه اعتقاد او قول او عمل دے په نیز د اکثر اهلِ علمو د سلف صالحینو نه لکه چه ابن جریر او ابن کثیر ذکر کړیدی او بیضاوی او آلوسی ذکر کړیدی چه تصدیق (یقین) کول په هغه احکامو چه نبی صلی الله علیه وسلم په هغې سره راتلل کړیدی او معلوم وی ضرورةً (قطعًا) تفصیلاً په هغې کښ چه تفصیلاً معلوم وی او اجمالاً په هغې کښ چه اجمالاً معلوم وی سره د اقرار کولو نه په هغې باندے عمومًا او خاص په وخت د طلب د اقرار کښ نو دا ایمان دے. حاصل د دے دا دے چه کوم احکام په وحی سره قطعًا معلوم وی د هغې منل ایمان دے او کوم چه په دلیل ظنی سره معلوم وی نو د هغې منل ایمان او نه منل کفر نه دے شرعًا.

او عمل په ایمان شرعی کښ داخل دے یا نه دے په دے کښ ډیر اختلاف دے چه دا محل د تفصیل نه دے صرف دومره خبره دہ چه کله ایمان صرف د تصدیقِ قلبی د پاره استعمالیږی او کله په تصدیق او عمل دواړو کښ مستعملیږی او دا واضح دہ په هغه چا باندے چه نصوص د قرآن او د حدیث په باره د ایمان او ایمانیاتو کښ او کوری هاں کوم الفاظ چه په شرع کښ ثابت دی نو د هغې انکار یا تاویل نامناسبه خبره دہ یعنی زیاتیدل د ایمان چه په ډیرو ایاتونو کښ دا لفظ ذکر دے لکه په سورة آلعمران ۱۷۳ او انفال ۲ او سورة توبه ۱۲۴ او سورة احزاب ۲۲ او سورة فتح ۴ او سورة مدثر ۳۱ کښ. نو د لفظ د زیادت د ایمان نه انکار کول پکار نه دی.

روایت ابن کثیر دَ زر بن حبیش نه نقل کړے دے. یا مراد دَ دے نه پټه معنی ده او دا دَ عبدالله بن مسعود رضی الله عنه روایت دے یعنی په حال دَ غائب والی کښ (په وخت دَ وحی کښ حاضر نه وؤ دَ صحابو پشان) ایمان لری. او په دیکښ دا هم داخل دی چه دَ منافقانو پشان نه دی چه مخامخ ایمان لری او په غائب کیدلو کښ کفر کوی نو په دے کښ رد دے په ایمان دَ منافقانو باندے چه هغه ایمان شرعی نه دے۔

وَيُقِيمُونَ الصَّلٰوةَ روستو دَ ذکر دَ ایمان نه ذکر دَ اعمالو دے او دا سے په قرآن کښ ډیر کرته ذکر دی چه په ایمان باندے ئے عمل عطف کړے دے. اشاره ده چه دَ الله تعالیٰ په نیز باندے مؤمنِ کامل قابل دَ مدح او دَ جزا دے او هرچه مؤمن دے بغیر دَ عمل نه یعنی فاسق نو قرآن کښ اکثر دَ هغه حالت ئے نه دے ذکر کړے دَ پاره دَ دے چه دَ هغه په زړه کښ خوف او رجا دواړه پیدا شی خو چه خوف ئے غالب وی. او مخکښ راوړل دَ ایمان ښکاره دلیل دے چه هیڅ عمل بغیر دَ ایمان نه قبول نه دے۔

سوال:- عطف دَ عمل په ایمان باندے دلالت کوی چه عمل غیر دَ ایمان نه ځکه چه عطف په کلام کښ تقاضه دَ مغائرت کوی؟

جواب ۱ اول دا چه په عطف کښ مغائرت مِن وجه کافی وی دا ضروری نه ده چه معطوف دَ معطوف علیه نه بالکل غیر وی دَ دے وجے نه کله عطف دَ خاص کیږی په عام باندے لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ "من کان عَدُوًّا لِلّٰهِ وملائکته ورسله وجبریل ومیکال"۔ په دے کښ عطف دَ جبریل او میکال په ملائکته باندے عطف دَ خاص دے په عام باندے، نو دلته هم کیدے شی چه ایمان شرعی عام (شامل) وَ اعمالو ته نو ذکر دَ بعضِ عملونو په طریقه دَ عطف دَ خاص دے په عام باندے دَ وجے دَ اهتمام دَ دغه عملونو نه په اعمالو دَ ایمان کښ۔

جواب ۲ دَ ایمان مختلف اطلاقات دی کله ایمان ذکر شی مراد تری نه صرف تصدیق قلبی وی او کله ایمان په معنی دَ ایمان کامل وی۔ نو کوم ځائے چه مراد دَ ایمان نه تصدیق وی نو هغه ځائے به دَ عمل عطف په ایمان باندے کیدے شی۔

وَيُقِيمُونَ اقامت په لغت دَ عرب کښ اُودرولو ته وئیلے شی او په عرف کښ هغوی برابرولو ته وئیلے شی چه دَ هغے ټول حقوق پوره ادا کړے شی. نو مراد

دَ هغې نه ختم نه وي لکه علم شو په وجود دَ الله تعالیٰ باندے په هغې سره داسے نه کیږي چه الله تعالیٰ لره وینې. یا علم دے په احوالو دَ اٰخرت باندے نو په دے اٰیت کښ خو علم بِالغیب ثابت دے او هغه مستلزم نه دے علم الغیب لره۔

بِالْغَيْبِ، دا لفظ په قرآن کریم کښ اته څلویښت ځله ذکر دے او دَ دے ډیرے معانی دي. اوله معنی غیب په معنی دَ وحی سره دے لکه په سورة طور ۴۱ نجم ۳۵ قلم ۴۷ تکویر ۲۴ کښ۔ دویمه معنی غیب هغه څیزونه دي چه دَ هغې دَ علم دَ پاره هیڅ ذریعه نه وي (نه حواس نه عقل او نه وحی وغیره) او دیته غیب حقیقي وئیلے شي او دغه مراد دے په سورة نمل ۶۵ کښ او دا خاص دے په الله تعالیٰ پورے. دریمه معنی غیب هغه څیزونه دي چه دَ هغې دَ علم دَ پاره څه سبب وي نو دَ هغه سبب دَ استعمال نه مخکښ هغه غائب او مجهول وي او دَ سبب دَ وجود نه روستو هغه معلوم اوګرځي او هغه سبب کله حواس وي او کله عقل وي او کله وحی وي او دا مراد په سورة اٰلعمران ۴۴ او سورة یوسف ۱۰۲ کښ دے او دیته غیب اضافي وئیلے شي. څلورمه معنی بے دلیله او په توک سره خبره کول لکه په سورة کهف ۲۲ او سورة سبا ۵۳ کښ. او پنځمه معنی غیب په معنی دَ وخت دَ غائب والي لکه په سورة یوسف ۵۲، ۸۱ او نساء ۳۴ کښ او دا احتمال دے په سورة مائده ۹۴ او انبیاء ۴۹ او فاطر ۱۸ او قٓ ۳۳ کښ۔

پوهه شئ چه په دے اٰیت (یُؤمنون بالغیب) کښ مراد اوله یا دریمه معنی ده دَ هغې اول دلیل دا دے چه دا اجمال دے په مؤمَن به کښ او تفصیل دَ هغې په نورو اٰیاتونو (لکه چه مخکښ موتیر ذکر کړیدي) کښ په الله او یوم الاٰخر او ملائک او کتابونو او رسولانو سره راغلے دے او دا ټول مؤمنا نو ته په دلیل دَ وحی سره معلوم شویدي۔ دویم دلیل حدیث دَ جبرائیل علیه السلام دے چه صحیحین او اکثرو محدثینو ذکر کړیدے چه په هغې کښ معنی دَ ایمان ذکر شویده (یعنی مؤمن به کوم څیزونه دي) او هغه هم په وحی سره معلوم شویدي۔ دریم دلیل قرطبي، ابن کثیر، بیضاوي او ډیرو مفسرینو وئیلے دي چه مراد په غیب سره الله تعالیٰ او ملائیک او کتابونه، رسولان، ورځ دَ اٰخرت جنت، اُور دَ جهنم، ملاقات دَ الله تعالیٰ او ژوندي روستو دَ مرګ نه دے او دا په روایت دَ ابوالعالیه او قتاده او ابن عباس رضی الله عنهما سره ثابت دي۔

یا مراد دَ دے نه قرآن دے (او دا اوله معنی ده دَ معانو دَ غیب نه یعنی وحی) او دا

۴۳ کښ، پنځم په معنی د درود وئیلو په نبی صلی الله علیه وسلم سورة احزاب ۵۶ کښ، شپږم په معنیٰ د اوچت والی د شان (اعتناء بالشان) سورة احزاب ۵۶ کښ، اووم انزال الرحمة سورة احزاب ۴۳ کښ، اتم عبادات مخصوصه چه مونځ دے دا خو په ډیروایاتونو کښ راغلے دے نو په دے ایت کښ دا روستنئ معنی مراد ده۔

**تنبیه:۔** اقامة الصلوٰة مستلزم دے اقامة د ټول دین لره په دلیل د حدیث مَنْ اَقَامَهَا فَقَدْ اَقَامَ الدِّيْنَ (چا چه اقامت د مونځ اوکړو نو ټول دین ئے قائم کړو) بلکه اقامة د صلوٰة په شرعی او سنت طریقے سره مستلزم دے پریښودلو د بدکارونو او بد اخلاقو لره لکه په سورة عنکبوت ۴۵ کښ دی، نو سوال دفع شو هغه دا چه په دے ایت کښ د مؤمنانو صفت (د گناهونو نه بچ کیدل) ولے نه دے ذکر کړے نو معلومه شوه چه اقامة الصلوٰة او انفاق سره لازم دی د گناهونو نه منع کیدل۔

وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ دا ذکر د عبادتِ مالیه دے۔ مِمَّا په اصل کښ مِنْ مَا دے نو مِنْ د پاره د تبعیض دے، په دے کښ اشاره ده چه د ټول مال په خرچ کولو انسان مکلف نه دے بلکه یوه حصه د مال لکه په دے سورت ۲۱۹ کښ او په سورة محمد ۳۶ کښ دی او دا رنګ اشاره ده چه میانه روی کوئی په انفاق او په بخل کښ، لکه په سورة اسراء ۲۹ او فرقان ۶۷ کښ او د دینه خواص خلق مستثنیٰ دی لکه ابوبکر رضی الله عنه چه هغه خپل ټول مال خرچ کړے وۓ۔ مَا لفظ خو عام دے هر هغه قوت ته چه الله تعالیٰ انسان ته ورکړے وی مال او علم نو انفاق د دے ټولو پکار دے یعنی مال خرچ کول جهاد دے او علم خرچ کول دعوت الی الله دے اګرچه دلته نفسِ مال خرچ کول مراد دی۔

رَزَقْنٰهُمْ ماده د رزق په قرآن کښ (۱۲۲) یو سل دوه ویشت کرته ذکر ده۔ رزق په لغت کښ حصے ته وئیلے شی او دا معنی په سورة واقعه ۸۲ کښ ذکر ده او په اصطلاح کښ نوم دے د هر هغه څیز چه فائده حاصلیدلے شی په هغے سره لکه مال اولاد، مریان، میوے، څاروی او لباس۔ او دا په قرآن کریم کښ په مختلف معانیو سره استعمال شوے دے۔ اول په معنی د نبوت سورة هود ۸۸، دویم رزق برزخی سورة آلعمران ۱۶۹، دریم په معنی د باران سورة ذاریات ۲۲، څلورم په معنی د اعطاء (ورکول) او هغه په معنی د اعطاء په جنت کښ ده لکه په دے سورت ۲۵ او ص ۵۴ کښ، پنځم اعطاء په دنیا کښ دا په ډیروایاتونو کښ ده او په دے ایت کښ دا معنی مراد ده۔ شپږم په معنی عرفی اصطلاح سره یعنی نفع اخستل که خوراک

د اقامة الصلوٰة نه لحاظ د اوقاتو او د ارکانو او شرطونو او سنن او مستحبات د هغې دی
سره د یې ساتلو د مکروهاتو او مفسداتو د هغې نه - او دغه صلوٰة شرعیه دے چه
نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی "صَلُّوا كَمَا رَأَيْتُمُونِي أُصَلِّي" - او د دے وجے نه
په مقام د مدح کښ لفظ د اقامت ذکر کیږی او په مقام د ذم کښ صرف صلوٰة ذکر
کوی لکه فویل للمصلین - هاں هرکله چه د مصلینو نور صفاتِ مادحه ذکر کوی
نو هلته یې هم د مصلین لفظ ذکر کړے دے لکه په سورة معارج ۲۲ کښ نو سورة
معارج دلالت کوی چه اقامة الصلوٰة کښ هغه صفتونه داخل دی کوم چه په
سورة معارج کښ د ۲۲ نه روستو ذکر کړے دی - او امر په اقامة الصلوٰة سره
په قرآن کښ اتلس[۱۸] کرته راغلے دے - او تشریح د اقامت قرآن کریم ذکر کړیده
اول اوقات د صلوٰة په سورة بقره ۲۳۸ سورة نساء ۱۰۳ سورة روم ۱۷ ۱۸ سورة
هود ۱۱۴ سورة اسراء ۷۸ سورة طٰهٰ ۱۳۰ کښ - دویم طهارت سورة مائده ۶ کښ
دریم قیام سورة بقره ۲۳۸ کښ - څلورم او پنځم رکوع او سجود سورة حج ۷۷ کښ.
شپږم قراءت سورة مزمل ۲ ۲۰ کښ - اووم خشوع سورة مؤمنون ۲ کښ.
اتم قنوت سورة بقره ۲۳۸ کښ - نهم محافظه سورة بقره ۲۳۸ کښ لسم دوام سورة
معارج ۲۳ کښ یوولسم اخلاص سورة انعام ۱۶۲ کښ - دا رنګ اثار او فائدے
د اقامة الصلوٰة یوولس[۱۱] ذکر دی اول تقوٰی چه هغه په دے ایت د بقره کښ ده -
دویم اجر عظیم بقره ۲۷۷ کښ دریم معیّت خاصه د الله تعالٰی سورة مائده ۱۲
کښ څلورم استحقاق د ولایت د الله تعالٰی مائده ۵۵ کښ پنځم اصلاح سورة اعراف
۱۷۰ کښ شپږم بشارت په مغفرت او په درجاتو سره انفال ۳ کښ اووم اخوت
په دین کښ او عصمت د جان او مال سورة توبه ۵ ۱۱ کښ اتم تکفیر د سیأتو
سورة هود ۱۱۴ کښ نهم حصول د رحمتِ الٰهیه سورة نور ۵۶ کښ، لسم نهی د
فحشاء او منکر نه سورة عنکبوت ۴۵ کښ، یوولسم ذکرِ الٰهی سورة طٰهٰ ۱۴ کښ.
الصَّلٰوة دا لفظ په قرآن کښ درے اتیا[۸۳] کرته او ماده د دې پنځه نوی[۹۹] کرته ذکر ده
او دا رنګ امر په صلوٰة سره مفرد او تثنیه او جمع او مذکر او مؤنث شل کرته
ذکر دے - او صلوٰة په لغت کښ دعا ته وئیلے شی دا رنګ تحریک د صَلَوَيْنِ (کوناټو) ته وئیلے
شی او دا ماده په قرآن کریم کښ په اته معانو سره استعمال شویده - اول په معنی
د دُعا سورة توبه ۱۰۳ کښ، دویم په معنی د صلوٰة الجنازه سورة توبه ۸۴ کښ،
دریم په معنی د دین سورة هود ۸۷ کښ، څلورم په معنی د ذکر او تسبیح سورة نور

دانفاق نه (په ځایونو د صفت د مؤمنانو کښې) انفاق شرعي دے (تائید) رومي په مثنوي کښې لیکلي دي چه منفق مجاهد راه حق است نه مسرف متبع راه هوا، او دا کوم ځایونه چه ذکر شول په سوال کښې د دے د جواز د پاره هیڅ دلیل شرعي نیشته، نو دغه انفاق بدعت او اسراف او تبذیر دے۔

فائده:- عباداتِ مالیه په قرآن کریم کښې په مختلف الفاظو سره ذکر دے اول زکوٰة او د هغې تفصیل به ان شاء الله تعالیٰ روستو راشي. دویم صدقه تصدق په دے لفظ سره په قرآن کښې څلیریشت ۲۴ کرته ذکر دے او هغه په شپږو وجو سره دے اول صدقه واجبه (زکوٰة) سورة بقره ۲۷۱، سورة توبه ۵۸، ۶۰۔ دویم په طریقه د عموم سره چه فرض، واجب، نفل ټولو ته شامل وي سورة توبه ۷۵ سورة بقره ۲۶۳، سورة نساء ۱۱۴ او نورو آیاتونه۔ دریم معاف کول د خپل حق که قرض وي یا نور حقونه سورة بقره ۲۸۰، سورة نساء ۹۲، سورة مائدة ۴۵، سورة یوسف ۸۸۔ څلورم مصارف د صدقه (واجبه) سورة توبه ۶۰۔ پنځم طریقے او کیفیات د صدقے سورة بقره ۲۷۱۔ شپږم منافع د صدقے سورة بقره ۲۷۱، ۲۷۶ سورة توبه ۱۰۳، ۱۰۴، سورة حدید ۱۸، سورة احزاب ۳۵۔

دریم لفظ اقراض (قرض ورکول) دا په قرآن کښې دیارلس کرته ذکر دے او دا عام دے اکثر استعمالیږي په خرچ کولو په دعوت او په جهاد کښې او د دے وجے نه عطف کړے دے په زکوٰة باندے په سورة مزمل ۲۰ کښې او دا سے په نورو صدقاتو واجبو باندے عطف دے په سورة حدید ۱۸ کښې۔ او قید د حسن په دے کښې دلالت کوي په وجود د اخلاص او اتباع سنت باندے نو شرکیات او بدعات او فسق و فجور کښې خرچ کول پکښې داخل نه دي۔

څلورم لفظ انفاق دے او دا په قرآن کریم کښې پنځه اویا ۷۵ کرته ذکر دے او دا په قرآن کښې په نهه ۹ طریقو سره ذکر دے اول په معنی د زکوٰة سورة بقره ۲۶۷، دویم مستحب انفاق سورة آل عمران ۹۲، دریم انفاق په قتال فی سبیل الله کښې سورة حدید ۱۰، سورة توبه ۱۲۱، څلورم انفاق په طالبانو د علم سورة منافقون ۷، پنځم انفاق فی سبیل الله چه په هغې کښې انفاق په دعوت او تبلیغ د حق او قتال فی سبیل الله او طلب د علم د دین او حاجي مسافر پکښې داخل دي او دا معنی په سورة بقرة ۲۶۱، ۲۶۲ او سورة انفال ۶۰ او سورة محمد ۳۸ او سورة حدید ۱۰ کښې مراد ده۔ شپږم په معنی د انفاق په اقرباؤ او محتاجو باندے

إِلَيْكَ وَمَآ أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَبِالْآخِرَةِ

تا ته او په هغه چه نازل کړے شویدی ستا نه مخکښ، او په آخرت باندے

هُمْ يُوقِنُونَ ⓸ أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِنْ رَبِّهِمْ

دوی یقین کوی. دغه صفتونو والا کلک دی په هدایت باندے د طرف د رب د دوی نه

بقره ۲۱۵، اووم انفاق په اهل او په زوجه باندے سورة نساء ۳۴، اتم انفاق په عامه معنی باندے لکه په دے آیت کښ او د دے سورت په ۲۱۹ ۲۶۲ کښ، نهم انفاق په خلاف شرع ځایونو کښ او د دینِ حق په مقابله کښ سورة انفال ۳۶، سورة توبه ۵۴، سورة بقره ۲۶۴ ۲۷۴ او فوائد د انفاق په ډیرو ایاتونو کښ ذکر دی سورة بقره ۲۶۲ ۲۷۲، سورة رعد ۲۲، سورة جادیات ۱۰، سورة توبه ۱۲۲، سورة فاطر ۲۹، سورة تغابن ۱۶. او انفاق په صفاتو د مؤمنانو کښ د دے آیت نه علاوه ذکر دے په سورة آلعمران ۱۷، سورة انفال ۳، سورة حج ۳۵، سورة قصص ۵۴، سورة سجده ۱۶، سورة شوریٰ ۳۸، سورة رعد ۲۲، سورة فاطر ۲۹ کښ.

۴ وَالَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ داعطف دے په مخکښ الذین باندے او دا هم صفات د متقیانو ذکر کوی.

**سوال**:- ایمان په منزّل او په آخرت باندے خو داخل دے په ایمان بالغیب کښ نو دا ئے جدا ولے ذکر کړل؟-

**جواب**:- دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه د پاره تعریض (اشارة ردکول) په یهود او نصاراؤ باندے او قرطبی ذکر کړی دی چه هر کله مخکښ آیت نازل شو نو یهودو او نصاراؤ اوئیل چه مونږ هم غیب منو او د مونځ پابندی کوؤ او انفاق کوؤ نو په دے صفتونو کښ مونږ داخل یو نو دا آیت ورپسے نازل شو د هغوی د ردکولو د پاره ځکه چه هغوی ټول نازل شوی کتابونه او ټولو انبیاؤ باندے ایمان نه لری لکه په دے سورت ۹۱ کښ دی او د آخرت باره کښ د هغوی ایمان شرعی نیشته لکه په دے سورت ۸۰ او ۱۱۱ کښ دی او د دے وجے نه دا آیت ئے مستقل ذکر کړو او تعریض ئے په هغوی باندے ځکه اوکړو چه دا سورت په مدینه کښ اول نازل شویدے او په دیکښ اصلاح د بنی اسرائیلو مقصود ده.

بِمَآ أُنْزِلَ إِلَيْكَ انزال په اصل کښ راکوزولو ته وائی د یو څیز د بره طرف نه کوز طرف ته

اوداپه محسوساتوکښ استعمالیږی لکه باران په دے سورت ۲۲ اوتوردیرایاتونه په باره د باران کښ۔ اواکثر په قرآن کښ په معنویاتو (یعنی په وحی) کښ مستعملیږی لکه په دے ایت او توردیرایاتونه په باره د انزال د وحی کښ دی که په واسطه د جبرائیل علیه السلام وی اوکه بغیرد واسطے د هغه نه وی۔

**سوال:۔** دالفظ په سورة اعراف ۲٦ اوسورة حدید ۲۵ کښ مستعمل دے اوحال داچه هلته د بره نه ښکته راکوزیدل نیشته دے؟۔

**جواب:۔** په دغه ځایونوکښ خلق د لباس اود اوسپنے دے په اسمانی تدبیراتو سره چه هغه باران دے اوښکته سبب ئے نیشته د دے وجے نه هغے د پاره لفظ انزل استعمال کړے شویدے هاں لفظ د نزول (مجرد) صرف په اوله معنی پورے خاص دے۔

**فائده ۱:** قادیانی دجال وائی چه يَنْزِلُ فِيكُمْ عِيسَى بْنَ مَرْيَمَ. په معنی د پیدائش دے او وئیلے دی چه پیدا کیږی به په تاسو کښ پشان د عیسٰی بن مریم اودلیل ئے ذکر کړے دے ایت د اعراف ۲٦ اوسورة حدید ۲۵ لیکن دالوئے دجل او فریب دے ځکه چه يَنْزِلُ په حدیث کښ د نزول نه دے اونزول په معنی د خلق سره په هیڅ ځائے کښ نه دے راغلے۔

**فائده ۲:** عقیده د سلف صالحینو داده چه دامنزل کلام الله دے اګرچه کلمات اوالفاظ اوحرفونه دی نوځوک چه داوائی چه منزل خو حرفونه دی اوداخو کلام لفظی دے داکلام الله نه دے نودا د جهمیؤ اومعتزلؤ شبهات دی د دینه پناه غوښتل ضروری دے، او په کیفیت د انزال د وحی کښ تفصیل اوبحث کول جائزنه دی هغه شبهات پیدا کوی۔

**فائده ۳:** ډیر اهل لغت اومفسرینو لیکلی دی چه انزال د پاره په یوځائے نازلیدلو اوتنزیل د پاره د لږ لږ نازلیدلو استعمالیږی نو په دے فرق کولو باندے اعتراض دے چه انزال په باره د باران کښ ډیروایاتونوکښ ذکر دے اوحال دادے چه هغه په یوځل نه راوریږی دارنګ د سورة نساء ۱۵۳ په تفسیرکښ مفسرینو لیکلی دی چه اهل کتابو سوال کړے وؤ په یوځل د نازلیدلو د قرآن اوحال داچه هلته ان تنزل ذکر کړے دے؟ ابوحیان په البحرالمحیط کښ په دے قول باندے رد کړے دے او وئیلے دی چه داقول د صاحب کشاف دے. هاں که داسے اووئیلے شی چه دافرق اکثری دے اودواړه

لفظونه ډیوبل په معنی کښ استعمالیږی نو صحیح ده. دلته هم انزل الیك په معنی ډلږ لږ نازلولو دے اوبعضو علماوؤ ډ انزل فائده داوئیلے ده چه قرآن کریم ډلوح محفوظ نه اسمان ډ دنیا ته په یوځل نازل شویدے ډدے وجے نه انزال هم صفت ډ قرآن کښ ذکر کیږی که دغه روایت صحیح ثابت شی نو بیا داوجه صحیح کیدے شی.

زه وایم چه په انزال او تنزیل کښ دا فرق هم کیدے شی چه قرآن کریم کښ اُصول او کلیات هم شته او فروع اوجزئیات او احکام هم شته نو په اول لحاظ سره انزال او په دویم سره تنزیل استعمالیږی (والله اعلم).

اِلَیۡكَ دا لفظ مستلزم دے ایمان لره په اخری رسول باندے صرف ایمان په قرآن باندے نه کافی کیږی ترڅو پورے چه نزول ډ قرآن په محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے او نه منی. او مَآ اُنۡزِلَ عام دے که انزال په واسطه ډ جبرائیل سره وی یا بغیر ډ هغه نه وی اول ته وحی جلی او دویم ته وحی خفی یا اول ته وحی متلو او دویم ته وحی غیر متلو وئیلے شی نو اول قرآن او دویم احادیثِ صحیحه دی.

وَمَآ اُنۡزِلَ مِنۡ قَبۡلِكَ دغه منزّل اگرچه په وجود کښ مخکښ دی لیکن ډ ایمان ډ مؤمن ډ پاره (روستو ډ بعثت ډ نبی صلی الله علیه وسلّم نه) ایمان بالقرآن په اول او مخکښ وی او دا رنګ ایمان په قرآن باندے اجمالی او تفصیلی دواړه فرض دے او ایمان په مخکنی کتابونو باندے ایمان اجمالی دے. ډدے وجونه مَآ اُنۡزِلَ اِلَیۡكَ یے مخکښ ذکر کړے دے.

**سوال:-** بعضِ احکام ډ قرآن خو ډ مخکښ کتابونو ډ احکامونه خلاف دی نو ډ دے جمع په ایمان کښ څنګه صحیح کیږی؟.

**جواب:-** قرطبی ډ دے دوه جوابونه ذکر کړے دی اول دا چه دلته ډ ایمان نه مراد ایمان دے په دے خبره چه دا ټول ډ طرف ډ الله تعالیٰ نه نازل کړے شویدی یعنی ایمان تفصیلی په هغه کتابونو باندے مراد نه دے. دویم دا چه مراد ډ ایمان نه په مخکنو کتابونو ایمان دے ډ هغے په هغه حکمونو باندے چه هغه نه وی منسوخ کړے شوی په قرآن کریم سره یا په قرینه ډ نورو نصوصو سره.

تنبیه:- هغه کتابونه چه نازل شویدی ډ طرف ډ الله تعالیٰ نه نو په قرآن

اواحادیثوکښې دَ څلورو نوموته راغلي دي لکه تورات، انجیل، زبور او صحف ابراهیم او موسیٰ (سورة نجم ۳۶ ۳۷، سورة اعلیٰ ۱۹). وَمَآ اُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ هغه چه ورکړے شویدي انبیاؤ ته (سورة بقره ۱۳۶، سورة آلعمران ۸۴). وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ (سورة آلعمران ۱۸۴). او صحیح خبره دا ده چه دَ دے صحیفو حصر په یو خاص عدد کښې (چه یوسل څلور دے) په صحیح حدیث سره ثابت نه دے دَ دے وجے نه په دے باندے اجمالی ایمان لرل فرض دي تخصیص دَ عدد نه په ایمان کښې ضرورت نیشته مِنْ قَبْلِكَ په دے لفظ کښې اشاره ده چه وحی دَ خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم نه روستو بنده شویده که چرے روستو هم دَ وحی دَ راتللو امکان (شرعی) وے نو په هغې باندے په ایمان راوړل فرض وے نو دَ هغې دَ پاره به یې وَمِنْ بَعْدِكَ لفظ راوړے وے. او په خطاب دَ قَبْلِكَ کښې اشاره ده چه دَ کوم کتاب او وحی خبر رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دے ورکړے نو په هغې باندے ایمان راوړل نیشته او هغې ته کتابِ الٰهی نشي وئیلے کیدے لکه کتاب دهندوانو (وید) او دَ سکهانو (گرنتهه) وغیره.

وَبِالْاٰخِرَةِ په دے کښې پنځم صفت دَ مؤمنانو ذکر کوي چه هغه ایمان راوړل دي په قیامت او دَ هغې په ټولو احوالو باندے (چه په نقل سره ثابت دي).

الْاٰخِرَةِ مؤنث دَ آخر دے نو دا په اصل کښې صفت دے دَ موصوف پټ دَ پاره چه الحالة دے لیکن هر کله چه دا لفظ دَ صفاتِ غالبه نه گرځیدلے دے نو په ځائے دَ اسم باندے استعمالیږي او موصوف یې نَسْیًا مَنْسِیًّا دے. نو الاخرة نوم دے دَ نومونو دَ قیامت نه چه هغه په قرآن کښې درے دیرش دي هغه تنشیط الاذهان کتاب کښې ما لیکلي دي.

فائده:- دا لفظ په قرآن کښې یوسل پنځلس کرته ذکر دے چه په هغې کښې نهه ځله دَ موصوف سره ذکر دے (الدار الآخرة) او یو کرت (الآخرة دار القرار) په دے لس مواضعو کښې مراد دَ دے نه جنت دے. او یو کرت په معنی لغوی سره راغلے دے (وعد الآخرة سورة بنی اسرائیل ۷) دَ دے نه معلومه شوه الآخرة دَ قیامت نوم دے او الدار الآخرة دَ جنت نوم دے. نو دلته مراد دَ الآخرة نه ورځ دَ قیامت ده الدار الآخرة (یعني جنت) مراد نه دے ځکه چه ایمان په ورځ دَ آخرت باندے راوړل مقصد دے او په هغې کښې جنت داخل دے نو معلومه شوه چه کوم مفسرینو دلته هم لفظ دَ الدار پټ مراد کړے دے هغوی په

دے فرق باندے سوچ نه دے کړے۔

**سوال:-** قادیانی ملعون وئیلی دی چه دلته مراد الرسالة الاٰخرة دے او مراد ترینه خپل رسالت اخلی؟۔

**جواب:-** دا تلبیس او تحریف دے د دوه وجونه اوله وجه دا ده چه الاٰخرة د پاره هغه موصوف پټ را ویستلے شی چه قرآن او سنت کښ چرته د هغے ثبوت وی او د لفظ د الرسالة الاٰخرة چرته ثبوت نیشته۔ دویمه وجه دا ده چه په دے سره د دۀ مدعا نه ثابتیږی ځکه چه روستنی رسالت خو مبهم دے د قادیانی د رسالت ذکر پکښ نیشته احتمال شته چه ختم نبوت د محمد رسول الله (صلی الله علیه وسلم) ترینه مراد وی۔

هُمْ يُوقِنُونَ دا په سورة نمل ۳ او سورة لقمان ۴ کښ هم ذکر دے۔ د اٰخرت په باره کښ په قرآن کریم کښ يُؤْمِنُونَ او يُصَدِّقُونَ او يُوقِنُونَ دریواړه ذکر دی په معنی شرعی کښ دا درے واړه یو شیز دے۔ لغوی فرق دا دے چه ایمان باور او اعتماد کول دی په زړه کښ فقط روستو د علم نه او تصدیق اظهار د صدق د دعوت د ایمان دے په ژبه سره روستو د علم نه او یقین هغه علم دے چه حاصل شی روستو د شک د زائیل کیدلو نه په واسطه د دلیلونو سره۔ او د دے وجے نه علماؤ د یقین تعریف کښ وئیلی دی "اعتقاد جازم (پوخ) مطابق د واقع سره (یعنی په حق او رشتیا باندے) چه نه زائیل کیږی په تشکیک د شک اچوونکی سره"۔ او د دے وجے نه روستو د ایاتو (دلیلونو) صفت په لفظ د یقین سره په قرآن کښ ذکر دے لکه په دے سورت ۱۱۸، جاثیه ۴ انعام ۷۵ او روستو د مشاهدے نه یقین ذکر دے لکه په سورة سجده ۱۲ کښ۔ او هرکله چه په معنی د یقین کښ دا دواړه قیدونه مراد وی (زوال د شک او حصول په دلیلونو سره) د دے وجے نه دا د الله تعالیٰ په صفت کښ نه استعمالیږی۔

**سوال:-** هرکله چه دا درے واړه په معنی شرعی کښ یو دی نو دلته ئے ولے يؤمنون او نه وئیلو؟۔

**جواب:-** مخکښ تیر شویدی چه په دے ایاتو کښ تعریض دے په یهودو او نصاراؤ باندے او د هغوی علم تقلیدی خلاف د حقیقت نه په اٰخرت باندے موجود وو په دلیل د ۹۴ ۱۱۱ ۸۰ باندے په دے سورت کښ، ځکه چه په دغه ایاتو کښ اشاره ده چه دوی اٰخرت او جنت او جهنم منلو

وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ۝ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

اودغه صفتونو والا خاص دوی بچ کیدونکی د (دعذابه) يقيناً هغه کسان چه کفر ئے کړے (په ضد او په عناد سره)

ليکن د هغې حصول او د جهنم نه بچ کيدل ئے د ځان د پاره بے دليله خاص کول نو دامرتبه د شک ده او د حقيقت نه خلاف ده نو د دے وجے نه دلته دعوت دے يهودو او نصارا ؤ ته چه دليلونه د قيامت په قرآن کښ واورئ او شک او شبهات لرے کړئ او اخرت د حقيقت مطابق اومنئ او ديته يقين وئيلے شی. او دغسے په سورة لقمان کښ د بنی اسرائيلو په زمانه کښ د يو حکيم (لقمان) ذکر وُوچه هغه په خپل بيان کښ د قيامت اثبات په داسے طريقه سره کړے وُو (يٰبُنَيَّ اِنَّهَآ اِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِّنْ خَرْدَلٍ الاية) او سورة نمل کښ د بنی اسرائيلو د بعض انبياؤ ذکر او شو (موسیٰ عليه السلام او سليمان عليه السلام) چه هغوی هم قيامت ته اشاره په خپل بيانونو کښ کړے وه او دارنګ په دغه سورت کښ د بنی اسرائيلو ذکر په ۷۲ کښ شوے دے۔

فائده:- د ډير اهتمام د ايمان بالاٰخرة په وجه متعلق (بالاٰخرة) او ضمير د هُمْ ئے مقدم ذکر کړے دی۔

۵ روستو د صفاتو د مؤمنانو ته په دے ايت کښ د هغوی دنيوی او اخروی جزا ذکر کوی او دا بشارت دے۔

اُولٰٓئِكَ دا اسم اشاره ده په صيغه د جمع سره او په اسم اشاره کښ مقصود مشار اليه وی په شرط د صفاتو سره يعنی دغه کسان (متقيان) سره د دغه پنځه صفتونو نه، نو دغه صفتونه علت دے د پاره د روستو حکم د هدايت۔

عَلٰی په دے لفظ کښ يو معنیٰ د علو (اوچتوالی) ده او بله معنیٰ د تمکّن (پوخوالی) ده او د دے په مقابل کښ فی دے چه هغه د ښکته والی او د انغماس (ننوتلو) د پاره استعماليږی نو په دے لفظ د عَلٰی کښ اشاره ده چه په هدايت باندے داسے کلک دی لکه چه يو سور شخص په خپله سورلئ باندے کلک ناست وی او خپے ئے چاپيره کړے وی نو دارنګ دوی اوچت مقام والا دی د دے وجے نه د هدايت سره عَلٰی او د ضلال سره فی ذکر کيږی۔ او د دے مثال په سورة سبا ۲۴ کښ دے۔

هُدًى نکره ئے ذکر کړيده د تعظيم د پاره يعنی داسے عظيم الشان هدايت دے چه د هغې مرتبه اوشان ډير نا اشنا او اوچت دے۔

مِنْ رَّبِّهِمْ دا تاکید دے د هدایت د عظمت د پاره او په دے کښ تعریف د هدایت شرعي ته اشاره ده چه هدایت په شرع کښ هغه دے چه د طرف د الله تعالیٰ نه وی یعنی وحی وی نو معلومه شوه چه د متقینو لار د هدایت د نُور د قرآن او سنت نه اخستلے شوې ده او په دے کښ وهم دفع شو هغه دا سے دے چه د هدایت دعوی خو اهلِ باطل هم کوی نو د دوی څه فرق دے؟-

حاصل د جواب دا دے چه هدایت د دوی د رب د طرف نه وحی او منزل دے او اهل باطل خو خلاف د وحی نه روان دی- نو په لفظ اُولٰٓئِكَ کښ اشاره ده چه دغه صفتونه چه مخکښ ذکر کړے شول هغه سبب د هدایت دے-

وَاُولٰٓئِكَ دوباره یئے دا لفظ سره د حرفِ عطف نه ذکر کړو دوباره یئے د دے وجے نه ذکر کړو چه معلومه شی چه دغه صفتونه لکه چه علت دے د پاره د هدایت په دنیا کښ نو دا سے دا صفتونه علت دے د پاره د فلاح په آخرت کښ- او حرف عطف راوړلو کښ اشاره ده چه دا دواړه مرتبے (هدایت او فلاح) اگرچه مستقل دے په زمانه او په مکان او په لذتونو کښ یعنی د هدایت زمانه او مکان (دنیا) او لذت یئے جدا دے او د فلاح زمانه (آخرت) مکان (جنت) او لذت یئے جدا دے لیکن هدایت سبب دے د آخرت د فلاح د پاره- هُمُ دا ضمیر فصل دے د تاکید او د حصر د پاره-

اَلْمُفْلِحُوْنَ دا د فلاح او د فلح نه اخستلے شوے دے او فلح په لغت د عرب کښ په شق (سیرے کول) او قطع او جدا ایئ باندے دلالت کوی نو فلاح موندونکے مصیبتونه او تکالیف سیرے او قطع کړی نو مقصد ته اُورسیږی- او فلاح په عرف کښ مقصد حاصلول او د مصیبت نه بچ کیدلو ته وئیلے شی او د قرآن په اصطلاح کښ فلاح جنت ته د ابتداء نه داخلیدل او د اُور نه بالکل بچ کیدل دی- د دے وجے نه فلاح په قرآن کښ د بشارتِ اُخروی د پاره ذکر کیږی د دنیا په نعمتونو باندے د فلاح اطلاق صرف دنیا پرست خلق کوی لکه چه فرعونیانو وئیلی وو سورۃ طٰهٰ ۶۴ کښ-

**سوال**:- دا جمله دلالت کوی چه بغیر د دغه پنځه صفتونو د جمع کولو نه جنت ته حاصلیږی نو معلومه شوه چه یو مؤمن انفاق یا یو بل عمل پریږدی نو دے به د جنت نه محروم وی همیشه به جهنم کښ وی او دا مذهب د معتزلو او د اباضیو دے؟-

**جواب**:- په دے جمله کښ حصر د فلاح دے. په دغه صفتونو کښ حصر

سَوَآءٌ عَلَيۡهِمۡ ءَاَنۡذَرۡتَهُمۡ اَمۡ لَمۡ تُنۡذِرۡهُمۡ

برابر دہ په دوی باندے که یره ورکوے دوی لره او که یره نه ورکوے دوی لره

لَا يُؤۡمِنُوۡنَ ﴿٦﴾ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوۡبِهِمۡ

دوی ایمان نه راوړی۔ مُهر وهلے دے الله تعالیٰ په زړونو د دوی باندے

د دخول جنت نه دے او فلاح خو دخول اولاً د جنت ته وئیلے شی او هغه منحصر دے په دغه صفتونو کښ نو که یو مؤمن بعضِ عمل پریږدی نو دخول اولاً د جنت ورله نیشته (مگر که الله تعالیٰ اوغواړی) او نفسِ جنت خو ورله شته دے او دا مذهب د اهلِ سنت والجماعت دے۔

فائده:- ماده د فلاح په قرآن کښ شلویښت کرته ذکر دہ یو کرت خو د فلاح دنیوی د پاره استعمال دہ لکه په طٰهٰ ۶۴ کښ او باقی د فلاح اخروی د پاره دہ او په هغے کښ یوولس ایاتونو کښ نفی د فلاح ذکر کړے دہ په شپږ سببونو سره ۱ ظلم لکه سورة انعام ۲۱ ۱۳۵ کښ۔ ۲ جرم لکه سورة یونس ۱۷۔ ۳ سحر سورة طٰهٰ ۶۹۔ ۴ افتراء علی الله سورة یونس ۶۹۔ ۵ مرتد کیدل سورة کهف ۲۰۔ ۶ کفر سورة مؤمنون ۱۱۷۔ او د دے نه علاوہ اسباب د فلاح اخروی ذکر دی۔

۶ ربط، هر کله چه صفات ئے د هغه چا ذکر کړل چه د ایمان بالقرآن د وجے نه هغوی د پاره هدایت او فلاح حاصل کړیدہ نو اوس د هغوی د اضداد و ذکر کوی یعنی هغه څوک چه د کفر بالقرآن د وجے نه د ایمان او علم حق نه محروم شول او مستحق د عذاب ابدی دی، او دیته ربط تضاد وئیلے شی۔ قرآن کریم کښ اکثر دا طریقه دہ چه د دے فریقینو (مؤمنان او کافرانو) ذکر یو بل پسے کوی دلته د دے دواړو حالات ئے ذکر کړے دی۔

اِنَّ الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا هر کله چه دا مستقله ډله دہ په ضد د اوله ډله کښ د دے وجے نه ئے په عطف سره نه دہ ذکر کړے۔ او هر کله چه بعضِ خلقو دا شک کوؤ چه مؤمنان او کافران یو شان دی (او دغے خلقو ته سیکولر وئیلے شی) نو د شک د لرے کولو د پاره اِنَّ د تحقیق او تاکید ذکر شو۔

كَفَرُوۡا، کفر په اصل لغت کښ ستر (پټولو) ته وئیلے شی۔ زمیندار چه دانے په زمکه کښ پټوی هغه ته کافر وئیلے شی۔ او په عرف د اهل لغت کښ پټولو د نعمت ته وئیلے شی چه هغه ناشکری دہ او دا رنګ په عرف د اهل لغت کښ

مطلق انکار ته وئیلے شی که انکار دَ حق وی او که دَ باطل وی۔ دَ اول معنی لغوی په لحاظ سره لفظ دَ کفارهٔ او کَفِّرۡ عَنَّا سَیِّاٰتِنَا راغلی دے او دَ دویمے معنی په لحاظ سره په دے سورت ۱۵۲ کښں او سورۃ ابراهیم ۷ کښں کفر په معنی دَ ناشکرئ سره دے۔ او دَ دریمے معنی استعمال په دے سورت ۲۵۶ کښں دَ کفر بالطاغوت یعنی انکار کول دَ بندګئ دَ غیرالله نه۔ او په اصطلاح دَ شرع کښں مقابل دَ ایمان شرعی دے یعنی انکار کول دَ هر هغه څیز نه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم راوړے وی او موږ ته په یقین سره رارسیدلے وی او دیته کفر حقیقی وئیلے شی او په شرع کښں کله کله په ترک دَ عمل باندے هم دَ کفر اطلاق کیږی هغے ته کفر حکمی وئیلے شی لکه څه رنګ چه اطلاق دَ ایمان په اعمالو باندے وی او دا په سورۃ آلعمران ۹۷ او سورۃ مائده ۴۴ کښں په قول دَ بعضِ مفسرینو باندے دے او دَ دے وجے نه امام بخاری کتاب الایمان کښں وئیلی دی باب کفر دون کفر۔ خطیب شربینی دَ کفر څلور قسمه ذکر کړے دی، اول کفر انکار، دویم کفر جحود او دریم کفر عناد او څلورم کفر نفاق۔ اول قسم دا دے چه نه الله تعالیٰ پیژنی او نه پرے اقرار کوی او دویم قسم دا دے چه الله تعالیٰ پیژنی لیکن اقرار په ژبه باندے نه کوی لکه کفر ابلیس او یهود لکه په دے سورت ۸۸ کښں او دریم کفر عنادی دے چه الله تعالیٰ په زړه سره پیژنی او په ژبه اقرار کوی لیکن دین نه منی او عمل وربانده نه کوی لکه کفر دَ ابو طالب او څلورم کفر دَ نفاق دے هغه دا دے چه اقرار په ژبه کوی او په زړه کښں ئے عقیده نه وی او دا ټول اقسام دَ کفرِ حقیقی دے۔ دارنګ دَ کفر دوه قسمونه دی اول کفر جهلی چه دَ ناپوهئ دَ وجے نه انکار دَ حق کوی او دویم کفرِ عنادی چه سرهٔ دَ پوهے او دَ ضد او عناد دَ وجے نه انکار کوی او دا دواړه قسمونه دَ دے سورت په ۸۹ کښں جمع دی۔

**فائده:**۔ ماده دَ کفر (ک ف ر) په قرآن کښں (۵۲۵) کرته ذکر ده۔ معانی او اقسام دَ هغے مخکښں ذکر شول او س هغه امور او کارونه چه په قرآن کښں ئے په هغے باندے دَ کفر اطلاق کړیدے او هغے ته نواقض دَ ایمان وئیلے شی دَ هغے نه بعضِ ذکر کووم ۱۔ سحر (سورۃ بقره ۱۰۲) ۲۔ په ربوبیت دَ الله تعالیٰ کښں محاجه کول (سورۃ بقره ۲۵۸)۔ ۳۔ حج نه کول یا انکار کول (سورۃ آلعمران ۹۷) ۴۔ اعتراض په رسول باندے (سورۃ بقره ۱۰۸)۔ ۵۔ عقیده دَ تثلیث دَ نصاراؤ

(سورة مائده ۳۳). ع۶ عقيده د حلول او اتحاد (سورة مائده ۱۷). ع۷ ارتداد (سورة نحل ۱۰۶). ع۸ چه د الله تعالیٰ نه دعا غواړي او هغه نجات ورکړي او بيا بل چا ته نسبت کوي (سورة اسراء ۶۹). ع۹ په توحيد في الدعاء خفه کيدل (سورة غافر ۱۲). ع۱۰ وحي د رسولانو نه منل (سورة ابراهيم ۹). ع۱۱ په قرآن اعتراض کول (سورة بقره ۲۶). ع۱۲ په نزول د خير (وحي) خفه کيدل (سورة بقره ۱۰۵). ع۱۳ موهماتو ته رواج ورکول (سورة بقره ۱۰۲). ع۱۴ اتباع د آباؤ په مقابله د وحي کښ پيش کول (سورة بقره ۱۷۰). ع۱۵ هر قسم شرك بالله (سورة آلعمران ۱۵۱). ع۱۶ منافقت (سورة آلعمران ۱۵۶). ع۱۷ قتال په سبيل د طاغوت کښ چه هغه غالب شي (سورة نساء ۷۶). ع۱۸ حمله په مؤمنانو باندې، او د مؤمنانو د اسيابو د جنګ نه غفلت کول او هغه ته کتل (سورة نساء ۱۰۲). ع۱۹ افتراء کول په الله تعالیٰ باندې (سورة مائده ۱۰۳). ع۲۰ معجزاتو د عيسىٰ عليه السلام ته سحر وئيل (سورة مائده ۱۱۰) ع۲۱ د رب تعالیٰ سره نور مخلوق برابرول (سورة انعام ۱). ع۲۲ قرآن ته اساطير وئيل (سورة انعام ۲۵). ع۲۳ مال خرچ کول د پاره د منع کولو د توحيد او د قرآن نه (سورة انفال ۳۶). ع۲۴ د کافرانو سره په قول (اتخاذ ولد) کښ مشابهت کول (سورة توبه ۳۰). ع۲۵ نسي کول (سورة توبه ۳۷). ع۲۶ د رسالت د آخري رسول نه انکار کول (سورة رعد ۴۳). ع۲۷ رسولانو لره د وطن نه شړل (سورة ابراهيم ۱۳). ع۲۸ جدال په باطل سره (سورة کهف ۵۶). ع۲۹ عباد صالحين په الوهيت سره نيول (سورة کهف ۱۰۲). ع۳۰ د قرآن په بيانولو سره غُصه کيدل (سورة حج ۷۲). ع۳۱ قرآن ته افك او افتراء وئيل (سورة فرقان ۴) ع۳۲ د بعث بعد الموت نه انکار کول (سورة نمل ۶۷). ع۳۳ مؤمنانو ته د مداهنت او د کفر دعوت ورکول (سورة عنکبوت ۱۲). ع۳۴ د قرآن او د مخکښ منزل کتابونو نه انکار کول (سورة سبا ۳۱). ع۳۵ مؤمنان او کافران يو شان ګڼړل (سورة ص ۲۷). ع۳۶ په اياتونو د الله تعالیٰ کښ جدال کول (سورة غافر ۴). ع۳۷ د قرآن د اوريدلو نه خلق منع کول (سورة حم سجده ۲۶). ع۳۸ محان ته د صحابه کرامو نه غوره وئيل (سورة احقاف ۱۱). ع۳۹ د دنيا په متاع او خوراکونو کښ مشغول کيدل (سورة محمد ۱۲). ع۴۰ د جاهليت پشان غيرت کول (سورة فتح ۲۶). ع۴۱ په مؤحدانو باندې د غُصې سترګې راويستل او د نظره کول (سورة قلم ۵۱) ع۴۲ په رسولانو کښ تفرقه کول په ايمان کښ (سورة نساء ۱۵۰). ع۴۳ په باطل معبودانو باندې

عقیده ساتل (سورة نحل ۷۲). ۴۵ ملائک او رسولان په ربوبیت سره نیول (سورة آل عمران ۸۰). ۴۶ په مریم باندے بهتان وئیل (سورة نساء ۱۵۶). ۴۷ حکم په ما انزل الله سره نه کول (سورة مائده ۴۴). ۴۸ د رحمت د الله تعالیٰ نه نا اُمیدی کول (سورة یوسف ۸۷). ۴۹ بلنه د غیر الله د حاجت روایئ د پاره (سورة مؤمنون ۱۱۷) ۵۰ د نُور (دین اسلام) اتمام بد ګنړل (سورة صف ۸). ۵۱ عداوة د رسولانو او ملائکو سره (سورة بقره ۹۸). ۵۲ مخ ګرځول د اطاعت د الله او د رسول نه (سورة آل عمران ۳۲) ۵۳ نمر ته سجده کول (سورة نمل ۴۳) ۵۴ د حدود الله نه انکار کول (سورة مجادله ۴). ۵۵ په دین د الله تعالیٰ پورے استهزا کول (سورة مائده ۵۷). ۵۶ د مؤمنانو په ترقئ باندے خفه کیدل (سورة توبه ۱۲۰). ۵۷ د صحابه کرامو په ترقئ باندے غیظ وغضب کول (سورة فتح ۲۹). ۵۸ الله تعالیٰ لره اجزاء ګنړل (سورة زخرف ۱۵). ۵۹ ربوٰ (سود) ته حلال وئیل (سورة بقره ۲۷۵). ۶۰ فرق کول په مینځ د حکم د الله او د رسول د هغه کبس (سورة نساء ۱۵۰). ۶۱ بعض حصه د کتاب الله منل (سورة بقره ۸۵). د دے نه سیوا نور هم په فهم او تدبر سره معلومیدلے شی۔

سوال:- د دے آیت نه ظاهراً معلومیږی چه کافران ایمان نه راوړی او حال دا دے چه ډیرو کافرانو ایمان راوړے دے؟

جواب:- دلته مراد د کفر نه کفر عنادی ضدی دے په قرینه د روستو خبر سره چه سَوَآءٌ الخ دے او په قرینه د مقابلے د مؤمنانو کاملانو چه مخکښ یئے صفات ذکر شول نو مراد کامل کافر دے او هغه عنادیان دی۔ د دے وجے نه تفسیر کبیر کښ وئیلی دی چه مراد د دینه پټوونکے او انکار کوونکے د حق دے په عناد سره۔ او مدارک کښ وئیلی دی چه دلته کفر په معنیٰ د حق پټولو دے په جحود سره۔

سَوَآءٌ عَلَيْهِمْ دا جمله حال دے د ضمیر د کَفَرُوْا نه نو دا بله قرینه شوه چه مراد د کَفَرُوْا نه خاص (عنادی) کافر دی چه هغوی ته انذار فائده نه ورکوی یا خبر دے د اِنَّ د پاره۔

سوال:- حمل د دے خبر په اسم باندے صحیح نه دے ځکه چه دا مصدر دے؟

جواب:- دا مصدر په معنیٰ د مستوی سره دے او لفظ د سَوَآءٌ په قرآن کښ اُویشت ځله راغلے دے کله په معنیٰ د وسط سره راځی لکه سورة صافات ۵۵

او اکثر په معنی د مستوی سره استعمالیږی۔
ءَاَنْذَرْتَهُمْ اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ اول همزه استفهامیه دے لیکن دلته استفهام غرض نه دے بلکه تاکید د تسویه د پاره راغلے دے او قرینه په دے باندے لفظ د اَم دے او دا دواړه فعلونه دلته په معنی د مصدر ونو دی معنی فعلی مقصد نه ده یعنی اِنْذَارُكَ وَعَدَمُ اِنْذَارِكَ او دا فاعل دے د سواء په معنی د مستوی او دا دوه طرفونه د استواء دی۔
انذار اِعْلَام مَعَ التَّخْوِیف ته وئیلے شی یعنی د مسئلے نه خبر ورکول سره د ویرے ورکولونه د هغے په نه منلو سره او چه اعلام ورسره نه وی نو هغه صِرف تخویف دے او قرطبی د انذار د معنی سره بل قید دا سے لګولے دے چه د تخویف سره فراخه زمانه وی د پاره د ځان بچ کولو او که فرصت د تخویف سره نه وی نو دے نه اشعار وئیلے شی۔ او قرآن کریم کښ نذیر د نبی او د قرآن په صفت کښ ذکر دے ځکه چه هغوی مسئله (توحید رسالت وغیره) ذکر کړی او ورسره تخویف دنیوی یا اخروی ذکر کوی او مهلت هم وی نو معنی د انذار پکښ موجود ده۔
سوال :- په سورة شعراء ۱۳۶ کښ سواءٌ علینا دے او دلته ئے سواءٌ علیهم وئیلے دے؟
جواب :- د تسویه نه مراد عدم فائده ده نو الله تعالیٰ په دے ایت کښ فرمائی چه دے خلقو ته انذار او عدم انذار هیڅ فائده نه ورکوی لیکن انذار ورکوونکی ته فائده (ثواب د اخرت) ملاویږی او سورة شعراء کښ د کافرانو مقصد دا دے چه په وعظ کولو کښ مونږ ته هیڅ فائده نیشته یعنی مونږ ئے نه منو د غسے په سورة منافقون ۶ کښ دی۔
سوال :- د دعوت کولو بل جانب خوبشارت دے نو هغه ئے ولے ذکر نه کړو؟
جواب :- کافران خو اهل د بشارت نه دی او بله وجه دا ده چه انذار ښه مؤثر وی په تبلیغ کښ نو هر کله چه انذار فائده نه ورکوی نو بشارت خو په سر کښ مفید نه دے د دے وجے نه اکتفا او کړے شوه په ذکر د انذار سره فقط۔
لَا یُؤْمِنُوْنَ دا استیناف دے جواب د سوال دے که سوال او شی چه ایا عدم انذار پشان د انذار دے نو جواب او شو چه نه بلکه انذار پشان د عدم انذار دے۔ یا دا خبر دے د اِن که چرے سواءٌ حال شی یا دویم خبر دے د پاره د تاکید د سواءٌ۔ او دا سے په سورة یونس ۹۶ او په دے سورة بقره ۱۴۵ کښ هم دی۔
سوال :- دا خو دلالت کوی چه الله تعالیٰ د دوی په عدم ایمان باندے راضی دے؟

وَعَلٰى سَمْعِهِمْؕ وَعَلٰٓى اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ٘ؗ

او په غوږونو د دوی باندے۔ او په سترګو د دوی باندے نااشنا پردے دی۔

وَّلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿٧﴾ وَمِنَ النَّاسِ

او دوی لره عذاب دے لوئے شان والا۔ او بعضے د خلقو نه

**جواب:-** دا اخبار دے د عدم ایمان نه او اِخبار د یو کار نه مستلزم د رضا نه وی نو دا اِخبار په اعتبار د علم او د تقدیر د الله تعالیٰ سره دے۔

ٮ په دے ایت کښ ذکر د عقوبت دنیوی او اخرویه دے د هغه کافرانو د پاره چه مخکښ ایت کښ ذکر شویدی۔ د عقوبت دنیویه حاصل دا دے چه انسانیت بِنا دے په علم او عقل باندے او په دوی باندے د هغے اسباب بند شویدی نو د ځناورو پشان دی د دے وجے نه د دے درے ځیزونو د سلب کولو نه روستو حکم کړے شویدے په اولٰئِكَ كَالْاَنْعَامِ سره اعراف ۱۷۹ کښ او عقوبت اخروی عذاب عظیم دے۔

خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ، ختم د قلب سره په قرآن کښ څلور کرته ذکر دے دلته او په سورة جاثیه ۲۳ کښ په دے دواړه ځایونو کښ په طریقه د اخبار دے د حال د کافرانو نه، او په سورة انعام ۴۶ او سورة شورٰی ۲۴ کښ په طریقه د تعلیق سره دے د پاره د اظهار د قدرت د الله تعالیٰ په ختم (مهر) لګولو باندے۔

خَتم په لغت کښ د ځیز اخر ته رسولو ته وئیلے شی لکه کتاب ختمول، کار ختمول، بیا لازم عرفی د هغے سره مهر لګول دی لکه خط چه اخر ته اورسی نو په هغے مهر لګولے شی د پاره د دے چه نور څه ځیز داخلول په هغے کښ منع شی او د هغے نه څه ځیز ویستل هم بند شی او په دے معنی سورة تطفیف ۲۶ کښ دے بیا لازم د مهر لګولو سره بندیدل او منع کول دی نو هغے ته هم ختم وئیلے شی دلته اوله او دویمه معنی احتمال نه لری نو دریمه معنی مراد ده قرطبی وئیلی دی چه ختم د قلب دا دے چه د الله تعالیٰ په خطاباتو پوهه نه شی لرلے او د هغه په ایاتونو کښ فکر هم نشی کولے۔ او ابن کثیر د مجاهد نه روایت کړیدے چه کلکوالے د ګناهونو په زړه باندے چه راګیر کړی هغه لره د هر طرف نه نو دا مهر دے۔ او قاسمی وئیلی دی چه دا سے حالت په زړه کښ پیدا کیدل چه په هغے کښ انذار اثر نشی کولے او حق پکښ نه شی داخلیدلے۔

فائده ۱: نسبت د ختم الله تعالیٰ ته حقیقت دے هیڅ تاویل ته حاجت نیشته

ع ۷

ځکه چه الله تعالیٰ د هر څیز خالق دے که هدایت وی او که ګمراهي، خیر دی او که شر وی، کفر وی او که ایمان وی لکه سورة صافات ۹۶ کښ خطاب د ابراهیم علیه السلام دے کافرانو ته چه الله تعالیٰ تاسو او ستاسو عملونه پیدا کړی دی. او معتزله وائي چه دا قبیح کار دے او د قبیح کارونو نسبت الله تعالیٰ ته نشی کیدلے نو هغوی د دے په پنځه طریقو سره تاویلونه کوی چه هغه زمخشری په کشاف کښ لیکلی دی د هغے اول جواب دا دے چه پیدا کول د قبیح خو قبیح نه وی په هغے کښ ډیر حکمتونه دی لکه چه الله تعالیٰ مار او لړم وغیره پیدا کړیدی هاں کسب کول د قبیح قبیح وی او کسب خو د بندګانو عمل دے. دویم جواب دا دے چه ختم علت د پاره د ما قبل (لا یؤمنون) نه دے لکه چه بعض مفسرینو په خطایئ سره لیکلی دی بلکه دا نتیجه او تفریع ده په ما قبل باندے لکه تفریع د سزا وی په ناکاره عمل باندے. قرطبی او ابن کثیر وئیلی دی چه امت اجماع کړے ده چه الله تعالیٰ نسبت د ختم او طبع ځان ته کړے دے په طریقه د جزا ورکولو د کفر د هغوی لکه په سورة نساء ۱۵۵ او سورة انعام ۱۱۰ او سورة صف ۵ او سورة منافقون ۳ او سورة تطفیف ۱۴ په دے ټولو آیاتونو کښ د هغوی ناکاره اعمال ئے سبب ګرځولے دے د طبع او تقلیب او زیغ او کفر کولو د پاره او جزا ورکول د قبیح عمل په قبیح څیز سره عین عدل دے قباحت پکښ نیشته دے.

**فائده ۲** په قرآن کریم کښ د قلوبو د کافرانو الله تعالیٰ پنځویشت ۲۴ اوصاف او احوال ذکر کړیدی. ۱ انکار (سورة نحل ۲۲). ۲ حمیة الجاهلیة (سورة فتح). ۳ انصراف (سورة توبه ۱۲۷). ۴ قسوة (سورة بقره ۷۴). ۵ موت (سورة انعام ۱۲۳) ۶ مرض (سورة بقره ۱۰). ۷ طبع (سورة منافقون ۳. ۸ زیغ (سورة آلعمران ۷). ۹ اِبَاء (سورة توبه ۸). ۱۰ ارتیاب (سورة توبه ۴۵). ۱۱ اکنة (سورة کهف ۵۷). ۱۲ رعب (سورة احزاب ۲۶). ۱۳ لهو (سورة انبیاء ۳). ۱۴ شدة (سورة یونس ۸۸) ۱۵ خائسته کیدل د مخالفت الرسول (سورة فتح ۱۲) . ۱۶ غلاف القلب (سورة نساء ۱۵۵). ۱۷ اقفال (سورة محمد ۲۴). ۱۸ اشمئزاز (زمر ۴۵). ۱۹ عمیٰ (سورة حج ۴۶) ۲۰ نفاق القلب (سورة توبه ۷۷). ۲۱ غمرة (سورة مؤمنون ۶۳). ۲۲ تشتیت (سورة حشر ۱۴). ۲۳ رین (سورة تطفیف ۱۴). ۲۴ ضیق ( صدر په معنیٰ د قلب کښ) (سورة انعام ۱۲۵). ۲۵ ختم په دے آیت کښ. او معنیٰ د ختم دے ټولو اوصافو ته عام او شامل ده د دے وجے نه دلته ئے دغه جامع وصف ذکر کړو.

پوهه شه۔ دَ ختم القلب دَ کافر سره مقابل ربط القلب دَ مؤمن دے چه هغه درجه دَ کرامت ده په وخت دَ مصیبتونو کښ چه زړه کلک وی په ایمان او توکل باندے لکه په سورة کهف ۱۴ او سورة قصص ۱۰ کښ۔

عَلٰی قُلُوْبِهِمْ لفظ دَ عَلٰی دَ پاره دَ تاکید دَ ختم او دَ احاطے دَ هغے دے په ټول قلب باندے۔ دَ قلب نه تعبیر په فؤاد او په صدر (سینه) سره هم کیدے شی۔ نو صدر محل دَ فؤاد دے او فؤاد محل دَ قلب دے ځکه چه فؤاد پرده دَ زړهٔ ده او قلب محل دَ عقل دے په نیز دَ اکثر اهل علمو باندے نو قلب په معنیٰ دَ هغه عضوئے چه دَ انسان دَ سینے په کس طرف کښ کیښودلے شوید ے او په حدیث کښ ئے صلاح او فساد دَ نورو اعضاؤ په هغے باندے موقوف کړے دی اِنَّ فِی الْجَسَدِ لَمُضْغَةً اِذَا صَلُحَتْ صَلُحَ الْجَسَدُ کُلُّه وَاِذَا فَسَدَتْ فَسَدَ الْجَسَدُ کُلُّه اَلَا وَهِیَ الْقَلْبُ۔ او کله قلب په معنیٰ دَ عقل سره راځی یعنی ذکر دَ محل او مراد ترینه حال لکه په سورة قٓ ۳۷ کښ۔ په دے آیت کښ هم ظاهر داده چه قلوبهم په معنیٰ دَ عقلونو سره دے او دا رنګ امام راغب په مفردات کښ وئیلی دی۔

وَعَلٰی سَمْعِهِمْ دا معطوف دے په عَلٰی قُلُوْبِهِمْ باندے نو دَ ختم دَ لاندے داخل دے په دلیل دَ سورة جاثیه ۲۳ او ختم په غوږونو باندے دا دے چه هر کله دوی ته دعوت دَ توحید ورکیدے شی قرآن ورته لوستلے کیږی نو دوی هغے ته غوږ نه ږدی او غوږونه بند وی او هغه ورباندے بد لږی لکه په سورة حٰم سجده ۲۶ او سورة نوح ۷ او سورة کهف ۱۰۱ کښ دی۔

سوال:- قلوب او ابصار ئے جمع ذکر کړے ده او سمع مفرد ذکر دے؟۔

جواب ۱:- دلته مضاف پټ دے یعنی مواضع سمعهم (ځایونه دَ اوریدلو)۔

جواب ۲:- دا مصدر دے او په مصدر کښ مفرد تثنیه او جمع یو شان وی۔

جواب ۳:- دَ قلب (عقل) مدارکات (معلومات) ډیر قسمونه دی دا رنګ دَ سترګو مبصرات ډیر قسمونه دی لیکن دَ غوږونو مسموعات صرف آوازونه دی دَ دے وجے نه ئے مفرد ذکر کړے دے۔ او سمع په قرآن کښ په معنیٰ دَ غوږونو او په معنیٰ دَ قوت سامعه او په معنیٰ دَ مسموع (مصدر مبنی للمفعول) او په معنیٰ مصدری سره استعمالیږی۔ دَ اول مثال لکه سورة نحل ۷۸ دَ دویم مثال دا آیت دے دَ دریم مثال سورة شعراء ۲۲۳ او دَ څلورم سورة هود ۲۰ دے۔

وَعَلٰی اَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ خبر مقدم او مبتدا مؤخره ده او پوره جمله ده۔ ابصار

جمع دَ بصر ده کله په معنیٰ دَ سترګو راځي لکه سورة نحل ۷۸ کښې او کله په معنیٰ دَ بصیرت دَ زړه وي لکه سورة آلعمران ۱۳ کښې او کله په معنیٰ دَ قوتِ باصره وي (وَ هُوَ يُدْرِكُ الْاَبْصَارَ سورة انعام ۱۰۳) دلته اوله معنیٰ او دریمه معنیٰ دواړه احتمالونه شته دے۔

غِشَاوَةٌ هغه څیز ته وئیلے شي چه په هغې سره پټول کیدلے شي او هغې ته غطاء هم وئیلے شي لکه سورة کهف ۱۰۱ کښې او حجاب ورته هم وئیلے شي لکه سورة حٰم سجدة ۵۔ لیکن په لفظ دَ غِشَاوَةٌ کښې دَ غطاء او حجاب نه زیاته معنیٰ پرته ده یعنی پوره پټول۔ او نکره یې ذکر کړې ده اشاره ده چه دا دے قِسم غِشاوه ده چه عام خلق یې نه پیژني۔ او هغه غِشاوه دا ده چه دلیل دَ هدایت ته نه ګوري او نه ترینه فائده اخلي بلکه اعراض ترینه کوي لکه په سورة اعراف ۱۴۶ او سورة یوسف ۱۰۵ کښې دي۔

فائده ۱: وجه دَ دے ترتیب دا ده چه په ختم علی قلوب کښې اشاره ده چه دوی استدلال دَ آیاتونو دَ حق نه پخپله نشي کولے او فکر هم نه کوي او ختم علی السمع دا دے چه څوک ورته استدلال پیش کوي نو هغه ته غوږ نه ږدي او غِشاوه دَ سترګو دا ده چه دَ حق استدلال کوونکي دَ درجے دَ کمال نه دوی راندهٔ دي دَ هغه شکل ته هم نه ګوري۔ دارنګ وجه دَ ترتیب دا ده چه اول خو دَ عنادي انسان په زړه کښې دَ حق منلو نه نفرت پیدا شي نو بیا دَ هغې اوریدل هم نشي برداشت کولے نو بیا دَ هغې دَ دلیلونو نه هم ځان بچ ساتي۔ دارنګ اول خو انسان په خپله په خبره کښې سوچ او کړي نو چه پوهه نشي نو دَ بل چا نه واوري او چه پوهه نشي نو بیا دلیلونو ته نظر او کړي او دا درے واړه حالتونه دَ عنادیانو نه اخستلے شویدي یعني په هغوی کښې دا نیشته۔

فائده ۲۔ سوال:۔ دَ قلب او سمع سره ختم او دَ بصر سره غِشاوة ذکر کولو کښې څه حکمت دے؟

جواب:۔ دا دے چه دَ قلب او دَ سمع معلومات دَ هر طرف نه کیدلے شي او دَ بصر معلومات صِرف دَ مخامخ طرف نه وي نو ختم چه دَ هر طرف نه بندولو ته وئیلے شي دَ قلب او سمع سره مناسب دے او غِشاوه چه صِرف دَ مخامخ نه پټول کوي دَ سترګو سره مناسب ده۔

وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ دا عاقبت او تخویف اخروي دے. لَهُمْ یې مخکښې کړے

مَنْ يَّقُوْلُ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ

هغه څوک دي چه وائي ايمان راوړے دے موږه په الله تعالیٰ باندے او په ورځ روستۍ باندے

وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ ۝ ۸ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ

او (حال دا دے) چه دوی ايمان نه لري (په زړونو کښ)۔ دهوکه کوي دوی دَ الله تعالیٰ سره

دَ پاره دَ فائدے دَ حصر يعني دا سے عذاب حصر دے په کافرانو پورے۔

عَذَابٌ دَ عذبٌ نه ماخوذ دے په اصل کښ حبس او منع ته وئيلے شي لکه خوږو اوبو ته عذبٌ وئيلے شي چه منع کوي تندے لره نو عذاب ته دَ دے وجے نه عذاب وئيلے شي چه دَ صاحب دَ عذاب هر خير او راحت چه دَ بدن سره مناسب وي بند کړے شي دَ عذاب مرادف عقاب او نکال هم راځي ليکن نکال کښ معنی دَ منع او دَ عبرت او په عقاب کښ معنی دَ بدلے دَ بد عمل مشروط ده او عذاب کښ دا شرط نه نيشته نو دا عام لفظ دے، دَ دے وجے نه دا لفظ يۓ دلته غوره کړے دے۔ بيا په عرف دَ عرب کښ عذاب هره سزا مصيبت او درد دے چه انسان ته رسيږي که په بدن کښ وي او که په مال کښ وي دنيا کښ وي او که اٰخرت کښ، که بدله دَ بد عمل کښ وي او که نه وي لکه په سورة ص ۴۱ کښ دلته مالی مصيبت مراد دے بغير دَ بدلے دَ بد عمل نه او لکه په سورة نور ۲ کښ معنی سزا دنيوی ته اشاره ده۔

عَظِيْمٌ په عذاب کښ تنوين (تنکير) دَ پاره دَ عظمت وو نو عظيم دَ هغے صفت دے دَ پاره دَ زيات تاکيد او دَ دے وجے نه عظيم يۓ هم نکره ذکر کړے يعني نا اشنا عذاب دے چه دَ هغے عظمت هم په نا اشنا مرتبه کښ دے او عظمت دَ عذاب په اعتبار دَ دوام او عدم تخفيف او احاطے او سخت والی او هيبت سره دے او دا سے عذاب خاص دے په کافرانو پورے دَ دے وجے نه لَهُمْ يۓ مقدم راوړے وو دَ پاره دَ حصر فائده کولو۔ او په قرآن کريم کښ دَ عذاب ډير صفاتِ قبيحه ذکر دي خو لفظ دَ عظيم هغه ټولو صفتونو ته شامل دے دَ دے وجے نه دلته يۓ دا لفظ ذکر کړو او دا (عذاب عظيم) مقابل دَ مفلحون دے چه په جزا دَ مؤمنانو کښ ذکر شوے دے۔

ف دَ دے اٰيت نه بحث دَ منافقانو شروع کيږي او دا دريم قسم دَ خلقو دے چه په الضَّآلِّيْنَ کښ دوی ته اشاره شوے وه او دَ دوی ښځلس اوصاف او احوال

وقف لازم

قبيحه ذکر کوی. هرکله چه داد منافقانو يو قسم دے دکافرانو نه نو دهغوی د مناسبت د وجے نه يے عطف کړو په ماقبل باندے په دَمِنَ النَّاسِ سره او شربينی وئيلی دی هرکله چه دا ډله ډير خبيث کافران دی چه د کفر سره دوی نور بد اخلاق او اعمالِ قبيحه جمع کړے دی د دے وجے نه د دوی ذکر يے په اوګده طريقے سره کړيدے د پاره د دے چه د دوی پټ خبائث ښه ښکاره شی او لفظ النّاس په قرآن کښ دوه سوه يو څلويښت کرته راغلے دے۔

فائده:- منافقان درے قسمه دی. اول منافق چه د هغه په زړه کښ شک وی حق او باطل کښ فرق نشی کولے دواړه ډلے ورته ښه ښکاری داسے منافقان په مکه کښ هم وُو لکه په سورة انفال ۴۹ کښ ذکر دی نو دا قسم هم کافر دی ځکه چه يقين د قلب يے نيشته. او دويم قسم هغه دی چه په زړه کښ يے انکار وی د حق نه او کفر او شرک وی ليکن په ژبه باندے اقرار د ايمان کوی او د مؤمنانو سره په بعضِ اعمالو کښ شرکت کوی داسے منافقان په وخت د غلبے د اسلام کښ پيدا کيږی چه د خوف او د حرص وغيره د وجے نه ايمان ښکاره کوی او داسے په مدينه منوره کښ پيدا شوی وُو روستو د واقعے د بدر نه او دا هم کافر دی او دے دواړو قسمونو ته منافق اعتقادی وئيلے شی. دريم قسم هغه دی چه په زړه کښ يے ايمان شته او په ژبه هم اقرار کوی ليکن هغه ګناهونه کوی چه په هغے کښ معنیٰ د دهوکے پرته وی چه هغے ته علامات نفاق وئيلے شی نو هغه ته منافق عملی وئيلے کيږی هغه په اصل کښ فاسق مؤمن دے۔

النَّاسِ بعضو اهلِ لغت وئيلی دی چه دا ماخوذ دے د نَوس نه او هغه په معنیٰ د حرکت دے او چا وئيلی دی چه د نسيان نه ماخوذ دے او چا وئيلی دی چه د اُنس (مينه کول) نه اخستلے شوے دے، بهرحال الناس اسم جمع د انسان ده۔

مَنْ يَّقُوْلُ په قرآن کښ د قول اطلاق په پنځه طريقو سره دے اول قول د الله تعالیٰ يعنی کلام الله لکه په سورة نحل ۵۱ کښ او دويم قول په معنیٰ د وحی سره لکه سورة کورت ۱۹ کښ او دريم په معنیٰ د قولِ لسانی فقط لکه په دے ايت کښ او څلورم قول په ژبه او په زړه کښ اعتقاد لکه په دے سورت ۱۵۶ کښ، پنځم په معنیٰ د افتراء سره او هغه په هغه وخت کښ وی چه وريسے لفظ د علیٰ راغلے وی لکه په دے سورت ۶۹ کښ۔

اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالْيَوْمِ الْاٰخِرِ، دا رنګ دعویٰ د دوی د ايمان په کتابونو منزلو باندے

په سورة نساء ۵۹ کښ او ایمان بالرسول سرهٔ د اقرار د طاعت نه په سورة نور ۴۷ کښ او شهادت د دوی په رسالت د اخری نبی باندے په سورة منافقون ۱ کښ دے نو معلومه شوه چه منافقان دعوے د ایمانیاتو کوی او کلمه د شهادت هم وائي لیکن په دروغه باندے۔

سوال :- په دے ایت کښ ئے دوه شٔومَن بِهٖ ذکر کړل او په صرف دغے دوؤ سره خو انسان مؤمن نه گرځی نو د منافقانو څه خصوصیت دے ؟۔

جواب ۱ :- ذکر د دے دوؤ مستلزم دے ټولو ایمانیاتو لره په ذکر د اول چه ایمان بالله دے او ذکر د اخر چه ایمان یوم الاٰخر دے او نور ایمانیات ئے په مینځ کښ راگیر شول۔

جواب ۲ :- دا منافقان اکثر په اهلِ کتابو کښ وؤ او هغوی خو ایمان په الله او په اٰخرت لرلو (په اعتبار د خپلے دعوے سره) نو اشاره شوه چه هر کله دوی منافقان دی په دے دوه ایمانیاتو کښ چه په هغے کښ دوی گمان د اخلاص خپل کوی نو په هغے ایمانیاتو کښ (ایمان بالقرآن والرسول) چه مقصد د دوی په هغے کښ صرف مفادات دنیویه دی په طریقه اولیٰ سره منافقان دی۔

وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ سوال :- هر کله چه محکښ د دوی قول ذکر شو او په حدیث کښ ذکر دی فَاِذَا قَالُوْهَا (کلمه د توحید) عَصَمُوْا مِنِّی دِمَاءَهُمْ وَاَمْوَالَهُمْ الحدیث معلومه شوه چه په دے قول سره انسان مؤمن گرځی، نو بیا ئے د دوی نه نفی د ایمان ولے کړے ده ؟۔

جواب ۱ :- په دے قول سره صرف ایمان په احکام دنیویه کښ حاصلیږی او دلته نفی د ایمان عند الله مراد ده۔

جواب ۲ :- دغه قول ته هله اعتبار وی چه ورسره منافی د ایمان موجود نه وی (د کفر او د شرک کارونه) او دلته ئے خو نفی د ایمان د دے وجے نه کړے ده چه ورسره مناقض د ایمان نور کارونه ئے ذکر کړے دی۔

فائده ۱ وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِيْنَ کښ ایمان په معنی د تصدیق او یقین د زړه سره دے نو معلومه شوه چه اصل د ایمانِ شرعی تصدیق قلبی دے او تصدیق د منافقانو په زړه کښ نه وی بلکه انکار وی یا شک وی دغسے نفی ئے د ایمان د دوی نه په سورة نور ۴۷ کښ کړے ده۔

سوال :- د هغوی قول ئے په صیغه د فعل سره ذکر کړو او نفی د ایمان د دوی نه

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۚ وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ

او هغه کسانو سره چه ایمان ئې راوړے دے، او دهوکه نه کوی دوی (په حقیقت کښ) مګر د ځانونو خپلو سره

وَمَا يَشْعُرُوْنَ ۝ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ

او دوی نه پوهیږی (په تګئ کولو د ځان سره). (ځکه چه) په زړونو د دوی کښ مرض دے

په جمله اسمیه سره ذکر کړه؟۔

**جواب:**۔ د دوی قول په طریقه د تاکید سره نه وُو صرف دعوٰی کول وُو. او په نفی کښ تاکید اوکړو ځکه چه دوی ئې د جماعت د مؤمنانو نه اوویستل.

**فائده ۲:** دا آیت دلالت کوی چه څوک په خُله باندې اقرار کوی او زړه ئې خالی وی د ایمان نه نو هغه مؤمن نه دے لکه چه هغه هم مؤمن نه وی چه په زړه کښ ئې انکار او شک وی نو دارد دے په کرامیه باندے او هغه فرقه د محمد بن کرام سجستانی ده د هغوی عقیده داده چه ایمانِ شرعی صِرف اقرار دے په ژبه سره اګرچه زړه خالی وی د تصدیق او تکذیب نه او دا قول باطل دے په ډیرو دلیلونو شرعیو سره یو د هغے نه دا آیت هم دے۔

**تنبیه:**۔ په دے آیت کښ د منافقانو دوه صفتونه قبیحه ذکر شول، قول د ایمان او عدم تصدیق د زړه۔ او دا په اصل کښ تعریف د نفاقِ اعتقادی دے۔

۹ په دے آیت کښ د منافقانو دوه صفاتِ قبیحه ذکر کړی، خداع او عدم شعور۔ او دا ئې بغیر د عطف نه ذکر کړے ده په طریقه د استیناف سره جواب دے د سوال نه۔ سوال دا دے چه د دوی په زړونو کښ تصدیق نیشته نو په ژبه باندے د اٰمَنَّا وئیلو څه مقصد دے؟۔ جواب دا دے چه د دوی مقصد خداع (دهوکه ورکول) ده د پاره د حرص د مال او د پاره د ځان بچ کولو د مؤمنانو نه۔

يُخٰدِعُوْنَ ماده د خداع په قرآن کښ پنځه کرته ذکر ده او په صفت د منافقانو کښ په سورة نساء ۱۴۲ کښ هم ذکر ده۔

خداع په اصل کښ پټولو ته وئیلے شی او بعضِ اهلِ لغت وئیلی دی چه فساد ته وئیلے شی۔ منافق هم خپل کفر پټ ساتی او فساد کوی۔ او په عرف کښ (الوسی وئیلی دی) چه په خیال د بل چاکښ هغه څیز واچوے چه خلاف وی د اراده ستا د مکروه (بد) کار نه نو دا خداع ده یعنی کار بد کوی او د مخاطب په خیال کښ خیر ښکاره کوی او قرطبی په حدیث مرفوع (بلاسند) سره معنی د خداع دا سے کړیدے

تَعْمَلُ بِمَا اَمَرَكَ اللّٰهُ بِهٖ وَتَطْلُبُ بِهٖ غَيْرَهٗ (کار هغه کوے چه الله تعالیٰ په دین کښې امر کړے وی او طلب کوے په هغې باندے د غیر الله نه) نو داخل ده په دیکښ تقیه کول د شیعه گانو دا رنګ هر هغه څوک چه عمل د دین کوی مونځ، زکوٰة، حج، خیرات او ختم د قرآن وغیره د ریاء یا د اجرت د مقصد د پاره. نو منافق هم ایمان ښکاره کوی، مونځ کوی او جهاد کوی د پاره د دنیوی اغراضو.

سوال:۔ هر کله چه خداع کښې معنیٰ د پټوالی ده نو د الله تعالیٰ نه خو هیڅ څیز پټ نیشته نو د هغه سره څه رنګ خداع کیدے شی؟۔

جواب د دے په ډیرو طریقو سره کړے شویدے، اول دا چه د دوی په ګمان کښې ده لکه سورة حٰم سجده ۲۲ کښې یعنی د کافرانو دا ګمان دے چه الله تعالیٰ د پاره علم د ټولو جزئیاتو نیشته دا رنګ په سورة هود ۵ کښې. دویم جواب دا چه مضاف پټ دے يُخٰدِعُوْنَ رَسُولَ الله او مخادعه د رسول سره مخادعه ده د الله تعالیٰ سره په اعتبار د جرم کولو سره. دریم دا چه د دوی دا معامله د منافقت مشابه ده د خداع کولو سره۔

سوال:۔ يُخٰدِعُوْنَ خو باب مفاعله ده صدور د فعل د دواړو جانبو نه غواړی نو آیا د الله تعالیٰ د طرف نه هم خداع شته؟۔

جواب ۱ د الله تعالیٰ د طرف نه هم شته په دلیل د دے قول سره په سورة نساء ۱۴۲ کښې "وَهُوَ خَادِعُهُمْ" نو الله تعالیٰ لره دا صفت ثابت دے اګر چه د هغه خداع د مخلوق د خداع سره مشابهت نه لری لکه په نورآیاتو نو د صفاتو کښې چه کومه توجیه ده۔

جواب ۲ دا باب مفاعله د مغالبے د پاره نه ده بلکه د مبالغے د پاره ده یعنی ډیرے او لوئے دهوکے کوی ځکه چه دهوکه په ایمان او دین کښې د دنیا د دهوکو نه لوئے جرم دے۔

وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا د مؤمنانو سره خو په هر قسم سره دهوکے کوی په دروغ قسمونو او عذرونو سره لکه په سورة توبه ۴۲ ۴۹ ۵۶ ۶۲ ۶۵ ۷۴ ۷۶ ۹۵ کښې او سورة مجادله ۱۴ کښې او په اظهار د ایمان سره په دے سورت ۱۴ کښې.

وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ په دے کښې اشاره ده عقوبت د مخادعے ته۔

سوال:۔ په يُخٰدِعُوْنَ سره ثابته شوه چه دوی مخادعه کوی د غیر سره چه الله تعالیٰ او مؤمنان دی او د دے حصر نه معلومه شوه چه دوی د بل چا سره

فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۙ

پس زیاتی کوی الله تعالیٰ مرض دَ دوی (په قرآن نازلولوسره) او دوی لره عذاب دردناک دے

بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ﴿۱۰﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ

په سبب دَ دے چه دوی همیشه دروغ وائي - او کله چه او وئیلے شی دوی ته

خداع نه کوی ماسیوا دَ خپلو ځانونه ؟ -

جواب :- یو ظاهر دَ فعل دی او بل حقیقت دَ هغې وی دارنګ یو ابتداء دَ فعل وی او بل عاقبت دَ فعل وی نو ظاهر دَ خداع او ابتداء دَ هغې مخکښ ذکر شوه په يُخٰدِعُوْنَ سره او حقیقت او عاقبت دَ هغې حصر دے دَ دوی په نفسونو کښ لکه په سورة فاطر ۴۳ کښ او سورة نمل ۵۰ او سورة انعام ۱۲۳ کښ. او دارنګ په مشهور مثل کښ دی مَنْ حَفَرَ بِئْرًا لِاَخِيْهِ فَقَدْ وَقَعَ فِيْهِ. (چاه کن را چاه درپیش).

اَنْفُسَ جمع دَ نفس ده ذات دَ څیز ته وئیلے شی او روح او نفسِ امّاره او مطمئنه او نفس لوّامه او هم جنس ته هم وئیلی شی. او نفس مفرد او جمع په قرآن کښ دوه سوه اتیا ۲۸۰ کرته راغلے دے.

وَمَا يَشْعُرُوْنَ دا دَ شعر نه ماخوذ دے علم ته وئیلی شی او استعمال ئې په علم دَ محسوساتو کښ کیږی لیکن دَ هغې سره فطانت (زیرکتیا) ضروری ده او دَ دے مفعول پټ دے یعنی دَ عاقبت دَ خداع په دوی باندے دَ راتللو پوهه نه لری.

او دا نفی دَ شعور په طریقه دَ زجر سره ده نو صفتِ قبیحه دے او دارنګ په بقرة ۱۲ سورة آلعمران ۶۹ او سورة انعام ۲۶ او ۱۲۳ او سورة مؤمنون ۵۶ او سورة نمل ۵ کښ دی او دَ دے نه علاوه چه کوم ایاتونو کښ نفی دَ شعور دَ عامو خلقو نه ده لکه په دے سورت ۱۵۴ یا دَ خاص بندګانو نه ده لکه په سورة نحل ۲۱ کښ یا دَ اهلِ باطل نه په خاص حال کښ لکه سورة قصص ۹ کښ یا په وخت دَ راتللو دَ عذاب کښ لکه سورة اعراف ۹۵ کښ په دے ټولو ایاتونو کښ نفی دَ شعور دَ پاره دَ بیان دَ حقیقتِ حال ده، زجر پکښ مقصد نه دے.

۱۰ په دے ایت کښ دَ منافقینو دوه قبیح خصلتونه ذکر دی، مرض دَ زړه او دروغ وئیل او دائې هم بغیر دَ عطف نه ذکر کړے دے په طریقه دَ جوابِ سوال سره، سوال دا دے چه دوی دَ خداع په ضرر باندے ولے نه پوهیږی ؟ - حاصل جواب دا دے چه په دوی کښ مرض باطنی دے نو دا علت دَ بے دَ پاره

دَلا یشعرون - فِیۡ قُلُوۡبِهِمۡ حرف دَ فی دَ پاره دَ انغماس دے یعنی دا مرض په زړونو دَ دوئ کښ تر وېخ پورے رسیدلے دے او اشاره ده چه دلته مرض دَ زړه چه مرض ظاهری دے مراد نه دے لکه درد دَ زړه یا دَ هغے حرکت بندیدل یا سیوا کیدل وغیره او قلوب لفظ هم په دے دلیل دے چه دلته مرضِ ظاهری بدنی مراد نه دے بلکه دَ سنت نه ثابت ده چه په منافقانو خلقو باندے مرض بدنی ډیر کم راغځ -

مَرَضٌ په اصلِ لغت کښ ضعف ته وئیلے شی او په قرآن کښ یوسل ۱۱۲ دولس کرته ذکر دے او هغه دوه قسمونه دے اول قِسم مرض بدنی لکه په سورة نور ۶۱ او سورة شعراء ۸۰ کښ دی، دَ هغے معنی داده "وتل دَ بدن دَ هغه دَ اعتدال نه چه خاص وی په انسان پورے" نو کله چه مناسب علاج او شی نو صحت حاصل شی اوکله علاج مناسب نه وی نو اُورسیږی زوال دَ حیٰوةِ دنیویه ته یعنی مړشی او دویم مرض روحانی معنوی دے چه هغه هم ضعف دَ عقیدے او دَ اعمالو او اخلاقو دے چه انسان لره دَ اعتدال شرعی نه اوباسی لکه جهل، جُبن، بُخل، نفاق وغیره چه انسان لره منع کوی دَ فضائلِ دنیویه او اخرویه دَ حصول نه نو که روحانی علاج اوکړے شی په قرآن او سنت سره نو دَ هغه مرض نه صحت حاصل شی اوکه علاج اونه کړے شی په دغه طریقه نو بیا دا مرض رسول اوکړی زوال دَ حیٰوةِ اخرویه ته یعنی دَ جنت نه محروم شی - دلته مراد دا دویم قسم دے، او دَ مفسرینو نه دَ دے په تفسیر کښ ډیر اقوال نقل دی لکه شک، ریاء، نفاق، رجس، طغیان او کفر، دا ټول په دے لفظ کښ داخل دی او قرآن کریم کښ دَ دے مصداق اول شک دے لکه په سورة احزاب ۱۲ کښ، دویم دوستنا دَ کافرانو سره لکه په سورة مائده ۵۲ کښ، دریم میلان کول مجلس او خبرو دَ پردو زنانو ته سورة احزاب ۳۲ کښ، څلورم اتباع دَ حکم دَ الله او رسول په دنیوی مفادو سره سورة نور ۵۰ کښ، پنځم کینه او بغض دَ مؤمنانو سره سورة محمد ۲۹ کښ، شپږم بزدلی په جهاد کښ سورة محمد ۲۰ کښ، اووم نفاق اعتقادی سورة توبه ۱۰۱ کښ -

فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا په دے کښ دوه توجیه دی اول دا چه دا دُعاءِ شر ده په منافقانو باندے او قرطبی وئیلی دی، دا دلیل دے چه په منافقانو چه دا مخکښ علامات پکښ وی، دعاءِ شر کول جائز دی او دعا په صیغه دَ ماضی سره اکثر استعمالیږی - دویمه توجیه دا اخبار دے دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه چه په

قرآن اوریدلو سره د دوی علاج نه کیږی بلکه مرض یې زیات کیږی لکه په سورة
مائده ۶۴ ۶۸ او سورة اسراء ۸۲ کښ دی او سورة توبه ۱۲۴ کښ. خازن وئیلی
دی چه د قرآن کریم ایاتونه پرله پسې نازلیدل نو چه دوی به کفر اوکړو په یو
ایت باندے بیا په بل باندے تو نفاق او کفر به یې زیات شو. او قاسمی د قاشانی نه
نقل کړے دے چه مراد زیاتوالے دے د حسد او کینې او نفاق په غالب کولو د
د کلمة الله او په امداد کولو د الله تعالیٰ د رسول او مؤمنانو سره۔
وَلَهُمۡ عَذَابٌ أَلِيمٌ دا عقوبتِ اخرویه دے۔ أَلِيم په معنی د مولِم (زبر د لام) سره
دے لکه سمیعٌ په معنی د مسمِع سره یعنی درد رسوؤنکے دے د دوی زړونو
ته. د دے د زیادتِ مرض سره هم مناسبت دے یعنی په ترقئ کولو د مؤمنانو
سره د دوی په زړونو کښ درد زیاتیږی نو د غسے د دوی عذاب په ورځ د اخرت
هم د دوی زړونو لره درد ورکوؤنکے دے۔
فائده:- هر کله چه د ښکاره کافر کفر په ظاهر کښ ډیرلوئے دے نو د هغوی
سره لفظ عظیم مناسب دے او نفاق د منافق د هغه په زړه کښ پټ دے نو
عذاب د هغه د زړه د درد سره متعلق دے نو د هغوی سره الیم مناسب دے
لکه په سورة آل عمران ۱۷۶ ۱۷۷ کښ۔
تنبیه:- چا چه وئیلی دی چه الیم په معنی د مولَم سره دے (درد ورکړے شوے
نو نسبت یې عذاب ته په توصیف سره اسناد مجازی دے نو دا قول صحیح نه دے۔
بِمَا كَانُوا يَكۡذِبُونَ با سببیه ده او ما مصدریه دے یعنی بِسَبَبِ كذبهم دائمًا
(په سبب د همیشه دروغ وئیلو سره) په دخول د کان سره په فعل مضارع
باندے د همیش والی معنی پیدا کیږی او کذب د دوی په دے لفظ کښ دے چه
"اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَبِالۡيَوۡمِ الۡاٰخِرِ" او دا رنګ د دے نه علاوه په عامو حالاتو کښ دروغ وئیل
د منافقینو صفت دے لکه په سورة توبه ۴۲ ۴۳ ۷۷ او سورة منافقون ۱ کښ دی
فائده ۱:- هر کله چه دروغ وئیل یې سبب اوګرځوؤ د عذاب الیم نو معلومه
شوه چه کذب ټول ګناه کبیره دے او په کوم روایاتو کښ چه کذب د ابراهیم
علیه السلام او کذب په حال د مصالحت وغیره کښ ذکر دے د هغې نه مراد
توریه او معاریض دی، حقیقةً کذب نه دے او دا غوره قول دے په دے مسئله کښ۔
فائده ۲:- ماده د کذب په قرآن کښ دوه سوه یو اتیا کرته ذکر ده یو ځل
په معنی لغوی سره دے یعنی تردد او خطاء لکه سورة نجم ۱۱ کښ. او قباحت

لَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ

ورانے مه کوئ په زمکه (دُنیا) کښ دوی وائي یقینًا مونږه

مُصْلِحُوْنَ ﴿۱۱﴾ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ

جوړخ (اصلاح) کوونکی یو۔ خبرشئ! یقینًا دوی خاص دوی ورانے کوونکی دی

ذکذب اصطلاحی په ډیرو وجودے اول په ذکر د عقوبت ذکذب لکه سورة مؤمن ۲۸ کښ دویم استحقاق دلعنت سورة آلعمران ۶۱ او سورة نور ۷ دریم سبب دعذاب لکه په دے ایت کښ۔ او قباحت ذکذب په الله تعالیٰ باندے لکه سورة انعام ۲۱ کښ او دارنګ کذب صفت د اهل باطل دے۔ لکه منافقان سورة منافقون ۱ کښ، شیاطین سورة شعراء ۲۲۳ کښ، طعن کوؤنکے په مؤمن باندے سورة نور ۱۳ کښ ۱۱ په دے ایت کښ د منافقینو یو قبیح خصلت ذکر دے (فساد ته اصلاح وئیل)۔

وَاِذَا قِیْلَ لَهُمْ دا عطف دے په کانوایکذبون باندے د با سببیه د لاندے دے نو دا دویم سبب د عذاب الیم دے۔ قیل صیغه د مجهول د پاره د عموم ده یعنی هر دعوت کوؤنکے د حق چه د دوی نهی عن المنکر (الفساد) کوی۔

لَا تُفْسِدُوْا، فساد په لغت کښ وَتل د څیز دی د استقامت خپل نه او بے فائدے کیدل دی او صلاح د دے په ضد کښ ده۔ شربینی وئیلی دی چه هر ضرری څیز ته فساد شامل دے لکه چه هر نافع څیز ته صلاح شامل ده۔ او دلته د افساد نه مراد هغه کارونه دی چه اسباب د فساد د عالم دی او د اسبابو د فساد ذکر روستو رائی۔ فِي الْاَرْضِ دلته ارض مقابل د آسمان مراد نه دے بلکه دنیا او عالم ته ارض وئیلے شی او د ارض تخصیص ئے ځکه او کړو چه د انسان طاقت آسمان ته په افساد سره نشی رسیدلے۔ یعنی آسمان کښ څه فساد نه شی کولے۔

قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ، کلمه د اِنَّمَا د پاره د حصر د مدخول خپل ده په ما بعد باندے۔ یعنی مونږ منحصر یو په اصلاح کښ په مونږ کښ ماسیوا د اصلاح نه بل هیڅ افساد نیشته نو زمونږ کارونه ټول د اصلاح دی او دا دعوی په طریقه د حصر سره د دے وجے نه ده چه دوی ته خپل افساد اصلاح ښکاری لکه چه چا ته شرک کول توحید ښکاری او بدعت ورته سنت ښکاری او شر ورته خیر ښکاری او ګناه ورته ښه ښکاری او وجه د دے هغه مرضِ روحانی د دوی دے چه مخکښ ایت کښ ذکر دوُ۔

وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ

خو لیکن دوی نه پوهیږي (پېڅې ورانی کولو) او کله چه او ویلے شي دوی ته

مُصْلِحُوْنَ دَ اصلاح نه ماخوذ دے نو په معنی دَ اصلاح دَ فریقینو یا اصلاح دَ عالَم دے یا مراد ترینه صلاح ده یعنی کار خیر۔ او په دے دعوٰی دَ حصر کښ اشاره او تعریض دے په صحابه کرامو او مؤمنانو باندے چه مفسدان خو تاسو یئ۔

سلا په دے ایت کښ دَ هغوی بل خصلت قبیحه ذکر دے چه افساد کول دی او دا جواب دَ مخکښ قول دَ هغوی دے په ډیر تاکید سره۔ لفظ اَلَآ دَ تنبیه دَ تاکید دَ پاره دے، اِنَّ دَ تاکید دے، جمله اسمیه دَ پاره دَ تاکید ده، هم ضمیر فصل دَ پاره دَ تاکید دے، مبتداء او خبر دواړه معرفے راوړل دَ پاره دَ تاکید دی او دا تاکید په رد کولو کښ دَ دے وجے نه دے چه دوی په صحابه کرامو باندے تعریض کړے دے چه دوی فساد کوونکی دی۔

اَلْمُفْسِدُوْنَ دَ فساد لغوی معنی مخکښ بیان شویده او په عرف کښ افساد نظام دَ عالم خرابول او قتل وقتال او جنګونه جوړول او اٰبادئ نړول، او دا معنی په سورة انبیاء سلا او په سورة نمل سلا کښ ده. او مراد دَ دے نه هغه کارونه کول دی چه اسباب دَ فساد دَ عالم دی او هغه په قرآن کریم کښ ذکر دی اول غلبه دَ کفر او شرک (سورة محمد سلا) دویم مخالفت دَ شریعت دَ الله تعالٰی نه (سورة اسراء سلا) دریم شرک کول (سورة اعراف سلا) څلورم مال دَ غیر په حرامه طریقه خوړل (سورة یوسف سلا، پنځم مال دَ یتیمانو په حیلو سره خوړل (سورة بقره سلا)، شپږم فصلونه او نسل برباد ول (سورة بقره سلا)، اووم منع کول دَ اتباع دَ رسول نه (سورة نمل سلا)، اتم کفر او ابتداع او ګناهونه (سورة ص سلا)، نهم ارتداد او قطع الطریق (لارے شوکول) او زنا روستو دَ احصان (نکاح کولو نه (سورة مائده سلا)، لسم دَ مؤمنانو نصرت پریښودل (سورة انفال ۷۳) معلومه شوه چه دا اُمور سبب دَ خرابئ دَ عالم او سبب دَ عذاب دی او منافقان دے کارونو نه دَ اصلاح کارونه وائي نو دا صفتِ قبیحه دے۔

وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ لفظ دَ لٰکِن دَ پاره دَ دفع کولو دَ وهم دے هغه دا چه دَ دوی کارونه دَ افساد دی نو دوی ولے دَ هغے نه ځان نه ساتی؟۔

حاصل جواب دا دے چه دوی شعور نه لری چه دا افساد دے بلکه دَ دوی په ګمان کښ دا دَ اصلاح کارونه دی لکه چه مخکښ ایت کښ تیر شول یا دوی شعور

اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ قَالُوْٓا اَنُؤْمِنُ كَمَآ

ایمان راوړئ پشان دَ هغې چه ایمان راوړے (کاملو) خلقو، نو دوی وائي ایا ایمان راوړو موږ پشان دَ هغه چه

اٰمَنَ السُّفَهَآءُ ؕ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ

ایمان راوړے دے کم عقلو خلقو- خبرشئ! یقینًا دوی خاص دوی کم عقل دی-

وَلٰكِنْ لَّا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳﴾ وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ

خو لیکن دوی نه پوهیږی (په کم عقلتیا خپله)- او کله چه دوی مخامخ شی دَ هغه کسانو سره

نه لری په عاقبت دَ دے کارونو دَ فساد باندے-

سوال:- هر کله چه دوی نه پوهیږی نو په دوی باندے خو هیڅ حرج نیشته معنا ورځ دی؟-

جواب:- داعدام شعور عذر نه دے بلکه دوی تحقیق دَ حق پریښودلے دے او هغه په دوی باندے فرض دے او دَ ترک دَ تحقیق دَ وجے نه دوی گناهګار دی لکه هر مشرک او مبتدع شرک یا بدعت ته شه کاروائي دَ هغې په بدئ باندے نه پوهیږی دَ وجے دَ ترک دَ تحقیقِ دینی نه او هغه خو په دوئ باندے فرض دے- په ۱۲ کښ صِرف اثبات دَ عدام شعور وُو دَ منافقانو دَ پاره هلنه دفع کول دَ وهم مقصود نه وُو نو هلته ئے لکن نه وُو ذکر کړے او په دے ایت کښ دفع دَ وهم مقصد وه دَ دے وجے نه لکن ئے ذکر کړو-

۱۳ په دے ایت کښ دَ منافقانو درے قبائح ذکر کوی ۱ صحابو ته سفهاء وئیل- ۲ دَ دوی خپل سفاهت. ۳ جهلِ مرکب- او داهم عطف دے په ماقبل باندے دَ دوه مناسبتونو په وجے سره اول مناسبت دادے چه داهم سبب دَ عذاب دے په شان دَ ماقبل- دویم داچه دَ تبلیغ دوه اجزاء دی اول جزء نهی عن المنکر هغه په لَا تُفْسِدُوْا سره ذکر شو او دویم جزء امر بالمعروف دے هغه ذکر کوی په اٰمِنُوْا سره او په دے ترتیب کښ اشاره ده چه منافقینو ته نهی عن المنکر مخکښ پکار دے دَ امر بالمعروف نه-

اٰمِنُوْا كَمَآ اٰمَنَ النَّاسُ، مراد دَ الناس نه اصحاب دَ نبی صلی الله علیه وسلم دی لکه چه ابن جریر او ابن کثیر او قرطبی دَ ابن عباس رضی الله عنه نه روایت نقل کړے دے- برابره خبره ده که الف لام دَ الناس دَ عهد دَ پاره وی او داخو ظاهره ده یا دَ جنس دَ پاره وی ځکه چه دَ جنس اطلاق کله په

فرد کامل بائلے هم کیږي۔
سوال :۔ منافقان خو دعوی د ایمان کوی نو بیا د څه وجے نه دوی ته دعوت د ایمان ورکیدے شي ؟۔
جواب :۔ مقصود په دعوت د ایمان کښ دا قید دے چه کما امن الناس یعنی دعوی د ایمان پوره ته ده بلکه ایمان خپل د صحابه کرامو پشان اوګرځوئ او مراد د تشبیه نه دا ده چه خپل ایمان سره خداع (دهوکے کول) او مرضونه روحانی او فسادات مه ګډاوئ لکه چه ایمان د صحابو د دے قبائحونه پاک دے او دا آیت ښکاره دلیل دے په افضلیت د صحابه کرامو بائلے او اشاره ده چه د هغوی ایمان معیار د حقانیت دے او صحابه معیار د حق دی لکه چه د دے سورت په ۱۳۷ کښ هم داسے دی او حکم د معیاریت بنا دے په مجموع صحابه کرامو بائلے اګرچه صحابه کرام معصوم نه دی او د قرآن کریم ډیرایاتونه صریح دلیلونه دی په مدح د صحابه کرامو لکه سورة توبه ۱۰۰ او سورة فتح ۱۸، ۲۹ او سورة حجرات ۳ ـ ۷ سورة آلعمران ۱۰۳ ۱۱۰ سورة انفال ۷۴ او احادیث په دے باب کښ هم ډیر دی۔
قَالُوٓا اَنُؤْمِنُ كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ دارد دے د طرف د منافقانو نه په دعوت د ایمان په ناکاره لهجه سره۔ همزه د پاره د استفهام انکاری دے او السفهاء نه د دوی مراد صحابه کرام دی قرطبی د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے۔ السفهاء جمع د سفیه ده د سفاهت نه ماخوذ دے دا ماده په قرآن کښ یوولس کرته راغلے ده او په اصل کښ خفّت او حرکت ته وئیلے شي او جهل ته هم وائي او سفیه خَفِيْفُ الْعَقْلِ (سپک عقل والا) ابن کثیر وئیلی دی سفیه جاهل، کمزورے رائے والا، د ضرر او فائدے په ځایونو بائلے نه پوهیدونکی۔ او په معنی د کم عقل په دے سورت ۲۸۲ کښ او په معنی د بے علمه په سورة انعام ۱۴۰ کښ دے او په شریعت کښ سفیه هغه دے چه په دین بائلے نه پوهیږی لکه چه د دین د ابراهیم علیه السلام نه اعراض کوی په دے سورت ۱۳۰ کښ، او په عمل د نبی او د صحابو بائلے اعتراض کوی په دے سورت ۱۴۲ کښ او په الله تعالی بائلے افتراء کوی په سورة جن ۴ کښ، او د الله تعالی نه نامناسب سوال کوونکی سورة اعراف ۱۵۵ کښ نو دا ټول سفیه دی۔ د منافقانو په نیز معنی عرفی دا وه چه دا صحابه کم عقل او کمزورے رائے والا دی مقصد د دوی دا وؤ چه دوی دین د مشرانو پریښودلو او د دے نبی په مرکرتیا کښ ئے

اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚ وَاِذَا خَلَوْا اِلٰى شَيٰطِيْنِهِمْ ۙ

چه ایمان لري (مومنانو) ته، وايي چه ایمان راوړی دی موږ. او کله چه دوی لاړ شي شيطانانو (مشرانو) خپلو ته

قَالُوْٓا اِنَّا مَعَكُمْ ۙ اِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ ﴿۱۴﴾

نو وايي يقيناً موږ ستاسو ملګري يو - او يقيناً موږ خو توقے کوو مؤمنانو پورے.

وطن پريښودلو او مال او جان ئے قربان کړو نو دوی کم عقل دی او دا سے حکم کافرانو دَ قوم هود عليه السلام هم کړے وؤ په هود عليه السلام باندے (سورة اعراف ۶۶). دا صريح دليل دے چه دَ صحابه کرامو توهين او په هغوی باندے طعن کول او په هغوی باندے تنقيد کول دَ منافقينو خصلت دے.

سوال:- هر کله چه هغوی اَنُؤْمِنُ اه وئيل نو هغوی خو ښکاره کافر شول دا رنګ په مدينه کښ خو غلبه دَ صحابوه نو منافقانو لره څنګه ممکن وه چه دا سے جمله او وائي؟

جواب:- دا قول به دوی په خپله کورنئ کښ دَ مؤمنانو نه په غائب والی کښ کؤ او الله تعالىٰ خپل نبي صلى الله عليه وسلم لره دَ هغے خبر ورکړو نو دوی بيا انکار نه شو کولے.

اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَآءُ دا رد دے دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه په منافقانو باندے دَ پاره دَ انتقام اخستلو دَ صحابه کرامو دَ پاره. دَ دے وجے نه په دے کښ ډير تاکيدات دی اَلَآ - اِنَّ - هُمْ - مبتدا او خبر دواړه معرفه - جمله اسميه - او سفاهت په منافقانو کښ په مخکښ تير شوے معانو سره موجود وؤ (جهل - کم عقلتيا - په نبي او صحابو باندے اعتراض کول او دَ حق دين نه اعراض کول).

وَلٰكِنْ لَّا يَعْلَمُوْنَ، لٰكِنْ دَ پاره دَ دفع کولو دَ وهم دے هغه دا چه دوی جاهلان او بے علمه دی نو بيا نورو خلقو ته ولے سفهاء وائي؟ حاصل جواب دا دے چه دوی په خپل سفاهت (بے علمئ) باندے نه پوهيږی او بے علمه شخص چه په خپله بے علمئ باندے هم نه پوهيږی نو هغه ته جاهل مرکب وئيلے شي دَ هغه نه دَ حق منلو اميد نشي کيدلے.

سوال:- دَ خداع او فساد سره ئے لايشعرون وئيلے دَ او دَ سفاهت سره ئے لايعلمون وئيلے دے؟

جواب:- خداع او فساد ښکاره څيزونه دی نو دَ هغے سره شعور مناسب دے او سفاهت (بے علمی) معنوی څيز دے نو دَ هغے سره علم مناسب دے.

۱۳ په دے ايت کښ دوه صفاتِ قبيحه دَ هغوی ذکر کوی (ملګرتيا دَ شياطينو سره

اواستهزاء په مؤمنانو پورے) اودا هم عطف دے په ماقبل باندے اودا سبا بود عذاب نه دے۔ اودا رنګ دا دلیل دے په دے خبره باندے چه دا قول دَ دوی "اَنُؤۡمِنُ كَمَآ اٰمَنَ السُّفَهَآءُ" دا مؤمنانو ته مخامخ او ښکاره نه وُو ځکه چه دَ هغوی په مخکښ خو اٰمَنَّا وائی۔

وَاِذَا لَقُوا الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا اه لقاء دَ چا مونډل بغیر دَ وعدے نه یعنی دَ مؤمنانو سره دَ دوی ملاقات ناساپه وی۔

قَالُوۡٓا اٰمَنَّا دا قول دَ دوی دَ اخلاص دَ زړه نه نه دے دَ دے وجے نه بغیر دَ تاکید نه یئے ذکر کړے دے۔

سوال:۔ دا قول دَ دوی (اٰمَنَّا) په شکښ هم تیر شویدے نو دے تکرار ته څه حاجت دے؟

جواب:۔ دا تکرار نه دے بلکه په هغه اٰیت کښ مقصد تعریف دَ حال دَ منافقانو وُو او اجمال وُو او په دے اٰیت کښ مقصد ذکر کول دَ اختلاف دَ حالاتو دَ دوی دے دَ مؤمنانو او شیاطینو سره او بل مقصد تفصیل دے، هغه دا سے دے چه هلته اٰمنا بالله اه ذکر وُو نو دلته ذکر شول چه دا قول دَ دوی هر وخت کښ نه دے بلکه صرف دَ مؤمنانو په مخکښ دے او هلته ذکر وُو چه وَمَا هُمۡ بِمُؤۡمِنِيۡنَ نو دلته دلیل دَ هغے ذکر دے چه دوی مشرانو دَ کفر ته وائی چه اِنَّا مَعَكُمۡ اه۔

وَاِذَا خَلَوۡا په صله دَ خلا کښ الی او باء دواړه استعمالیږی په معنی دَ یواځے کیدلو لیکن با په هغے وخت کښ وی چه متضمن وی معنی دَ مسخرے کولو لره او خلا په معنی دَ مضی سره هم راځی بلکه قرآن کریم کښ څلیرشت[۲۴] کرته دا ماده مستعمل شویده او هر ځائے په معنی دَ مضی (تیریدلو) سره دے لکه قَدۡ خَلَتۡ او اَلۡاَيَّامِ الۡخَالِيَةِ، نو دلته په معنی دَ مضوا سره دے نو حرف دَ اِلٰی ورسره مناسب دے او که په معنی دَ انفراد او خلوت سره وی نو الی دَ وجے دَ تضمن دَ معنی دَ مَضَوۡا او اِنۡصَرَفُوۡ دے او چا وئیلی دی چه الی په معنی دَ مع سره دے نو دا قول خلیل او سیبویه رد کړے دے دا تفصیل ابن جریر ذکر کړے دے نو معنی دا ده چه "هر کله چه دوی یواځے شی (دَ مؤمنانو نه) او لاړشی شیطانانو ته"۔

اِلٰی شَيٰطِيۡنِهِمۡ ابن کثیر وئیلی دی چه مراد دَ دے نه مشران کافران دَ یهودیانو او مشرکانو او دَ منافقانو دی او اضافت لفظ دَ هُمۡ ته اشاره ده چه جنات مراد نه دی او دا رنګ اشاره ده چه دوی شریک دی په صفت دَ شیطانئ کښ چه کفر

اونفاق دے. شَيٰطِيۡنِ جمع دَ شيطان دے داپه قرآن كښ اته اتيا ۸۸ كرته راغلے دے اوداماخوذ دے دَ شطن نه په معنى دَ لرے والى سره نو شيطان هم دَ رحمت دَ الله تعالىٰ نه لرے وى بقاعى وئيلى دى چه ډير لرے دَ محل دَ خير نه شيطان وى يا ماخوذ دے دَ شاط نه په معنى دَ بطل او باطل او دا دَ صفاتو دَ شيطان نه دے او راغب په مفردات كښ وئيلى دى چه شيطان هر سركش ته وئيلے شى كه جن وى يا انسان يا حيوان وى دَ دے وجے نه په قرآن كښ په مختلف مصداقاتو كښ استعمال شويدے لكه ابليس په دے سورت ۳۶ كښ، دويم شيطان جنى او انسى دواړه په دے سورت ۱۰۲ ۱۶۸ كښ، دريم مطلق جنى شرير لكه په دے سورت ۲۷۵ كښ، څلورم مطلق شرير دَ انسانانو نه لكه په دے ايت كښ (شَيٰطِيۡنِهِمۡ) چه علماء دَ يهودو او كافرانو منافقانو دى. پنځم ماران (ربنا په يو تفسير باندے) لكه سورة صافات ۶۵ كښ، شپږم جاسوس دَ انسانانو نه لكه په سورة آلعمران ۱۷۵ كښ.

اِنَّا مَعَكُمۡ مراد دَ معيّت (ملګرتيا) نه شركت دے په دين او په اعتقاد كښ او دا تاكيدئے دَ دے وجے نه كړے دے چه مشرانو ورباندے شك كوۀ چه تاسو مجالسو دَ مؤمنانو ته ورځئ، نو هغوى تاكيدى جواب اوكړو چه حقيقت كښ خو مونږ ستاسو ملګرى يو.

**فائده:** مَعَ لفظ په قرآن كښ يوسل شپيته ۱۶۰ كرته راغلے دے او دلالت كوى په مصاحبت او شركت باندے كه په هره طريقے سره وى نو استعمال ئے په ډيرو طريقو سره دے اول مصاحبت په مكان او زمان او عمل كښ لكه په دے سورت ۴۳ او سورة نساء ۱۰۲ كښ. دويم شركت په صفت او عمل كښ لكه په سورة آلعمران ۴۳ ۵۳ ۱۹۳ كښ. دريم ملګرتيا په سيل و سياحت كښ سورة يوسف ۶۶ كښ. څلورم شركت په اجر و ثواب كښ سورة نساء ۶۹. پنځم شركت په مجلس كښ (سورة انعام ۶۸)، شپږم شركت په عذاب كښ (سورة اعراف ۴۷ ۵۰). اووم شركت په الوهيت كښ (سورة انعام ۱۹). اتم شركت په نجات كښ دَ عذاب نه (سورة نساء ۱۴۶). نهم په معنى دَ متابعت (او دا هم شركت فى الدين دے) (سورة اعراف ۸۸ سورة فتح ۲۹) لسم په معنى دَ بعد سره (ليكن اتصال ورسره دے) (سورة انشراح ۵). يوولسم په معنى دَ على سره (سورة حديد ۲۷). دولسم په معنى دَ اتصال او لزوم سره (سورة يٰسٓ ۱۹). ديارلسم په صفت دَ الله تعالىٰ كښ په علم او قدرت سره (سورة حديد ۴، سورة مجادله ۷). څوارلسم صفت دَ الله تعالىٰ په طريقه دَ نصرت سره

اوهغه په صبر د بند کانو سره په سورة بقره ۱۵۳ کښ او په معنی د تقوی سره سورة بقره ۱۹۴ کښ او په معنی د احسان سره په سورة نحل ۱۲۸ کښ او په پنځه اوصافو سره په سورة مائده ۱۱۱ کښ او په دے دواړه معانو سره مع په معنی د مصاحبت سره دے لیکن د مصاحبت دوه طریقے دی په تفسیر د سلف صالحینو سره نودا تاویل نه دے په طریقه د متأخرینو سره، بلکه معنی حقیقی ده او تاویل د متأخرینو بناوی په ترک د معنی حقیقی سره ۔

إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِءُوْنَ په دے جمله کښ تاکیدات دی سره د استیناف نه یعنی جواب دے د سوال د شیاطینو هغه دا دے چه که تاسو زمونږ ملګری وئ نو دا قول تاسو بیا ولے کړے دے چه اٰمَنَّا؟ ۔

حاصل د جواب دا دے چه دا قول او د هغوی (مؤمنانو) په مجالسو کښ شرکت کول خو په طریقه د استهزاء سره دی او په دے جواب سره د هغوی شیاطین ډیر خوشحالیږی ځکه چه په دے کښ د مخالفت کولو سره استهزائے یو ځائے کړیده ۔

إِنَّمَا نَحْنُ په دے کښ حصر د منافقانو دے په عمل د استهزاء کښ یعنی په قول د اٰمَنَّا کښ هیڅ شائبه د تصدیق نیشته صرف استهزاء ده ۔

مُسْتَهْزِءُوْنَ استهزاء او مسخرے کوی په الله تعالیٰ او په کتاب الله او په رسول (صلی الله علیه وسلم) او په اصحابو (رضی الله تعالیٰ عنهم) پورے (ابن جریر) لکه په سورة توبه ۶۵ کښ او تکذیب او انکار کوی د هغه څیزونه چه هغے ته دعوت راکولے شی (قرطبی) او ماده د هزء په قرآن کریم کښ څلور دیرش کرته ذکر ده. هزء په لغت کښ خفت (سپکوالی) ته وئیلے شی. زر قتل کول او زر مړکیدلو ته هم هزء وئیلے شی او په معنی د سخریه سره هم راځی څوک چه په یو شخص پورے مسخرے کوی نو سپک ئے ګنړی او څوک چه یو خبره نه منی نو سپکه ئے ګنړی ۔

او فرق په مینځ د سخریه او استهزاء کښ دا دے چه سخریه اکثر په اشخاصو کښ استعمالیږی چه یو انسان بل لره د ځان نه ادنیٰ او ذلیل او تابع ګنړی او استهزاء عام ده اقوالو، احوالو او اشخاصو ته شامل ده دا رنګ مسخرے د مؤمنانو په مینځ کښ هم کیدے شی اګرچه ګناه ده او استهزاء په شرع کښ صفت د کافر او منافق دے ۔



اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ

الله تعالیٰ ټوقی کوی په دوی پوره اوزیاتوی دوی لره په سرکشئ د دوی کښ

يَعْمَهُوْنَ ۝١٥ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ

پداسې حال چه دوی په حیران وی - دغه صفتونو والا داسې خلق دی چه اخستلې ده گمراهي

١٥ په دے ایت کښ ذکر د عقوبت دنیویه او اخرویه دے (استهزاء - مد - عمه) او یو صفت قبیحه ذکر دے (طغیان).

اَللّٰهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ تقدیم د لفظ د الله د تاکید د پاره دے چه الله تعالیٰ دا کار په خپله کوی د بل چا په واسطے سره یۓ نه کوی. او يَسْتَهْزِئُ صیغه د فعل یۓ راوړه اشاره ده چه د الله تعالیٰ د طرف نه سزاګانے وخت په وخت نوے نوے راځی.

فائده: نسبت د فعل د استهزاء او خداع، مکر او کد دے پشان نور، الله تعالیٰ ته حقیقة دے په نیز د سلف صالحینو لیکن په دے کښ تشبیه او تمثیل د فعل د بندګانو سره نیشته او تاویل ته هم حاجت نیشته دے. دا مذهب د سلف دے په ټولو صفاتو د الله تعالیٰ کښ. دلته هم قاسمی او ابن کثیر او ابن جریر د ضحاک روایت د ابن عباس رضی الله عنهما نه ذکر کړے دے يَسْخَرُ بِهِمْ لِلنِّقْمَةِ (مسخرے کوی په دوی پورے د پاره د سزا ورکولو) او دا مراد د قول د ابن جریر دے چه مکر، خداع، سخریه د الله تعالیٰ نه په طریقه د لوبو او د عبث (لکه چه په بندګانو کښ وی) منتفی (نفی) ده په اجماع سره او په طریقه د انتقام او مقابله په عدل او جزاء ورکولو سره منع نه ده. او صورت د دے استهزاء د الله تعالیٰ د طرفنه یا به قیامت کښ وی لکه په سورة حدید ١٣ کښ او سورة مطففین ٣٤ کښ یا به په دنیا کښ وی چه الله تعالیٰ دوی باندے احکام دنیویه کښ احکام د اسلام جاری کوی عصمت د وینو او د مالونو د دوی او حصے ورکول په مال فئ او غنیمت کښ اګر چه الله تعالیٰ د دوی د کفر باطنی نه بنه خبر دے او په اخرت کښ به ورله سخت عذاب ورکوی.

وَيَمُدُّهُمْ ماده د مد (مجرد) په معنیٰ د زیادت او مزید په معنیٰ د مهلت ورکولو راځی دا رنګ د مَدَّ په صله کښ چه لام راشی نو په معنیٰ د مهلت دے او دا ماده په قرآن کښ دیرش کرته راغلے ده. دلته هم ابن کثیر د مجاهد نه نقل کړیدے چه وَيَمُدُّهُمْ (يَزِيْدُهُمْ) او فِيْ طُغْيَانِهِمْ په دے پورے متعلق دے یعنی د دوی

بِالْهُدٰى ۖ فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوْا

په بدل د هدايت كښې، پس گټه اونكړه سوداګرۍ د دوى او نه دوى

مُهْتَدِيْنَ ﴿١٦﴾ مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا ۚ

لاره موندونكي دي. حال د دوى پشان د حال د هغه چا دے چه بل كړے وي أور

په سركشئ كښې زياتوالے پيدا كوى او د زياتوالے په طريقه د مهلت وركولو دے
چه هغې ته املاء او استدراج وئيلے شي لكه په سورة آل عمران ۱۷۸ او سورة اعراف
۱۸۲، ۱۸۳ كښې او طريقه د هغې مال او ځامن وغيره زيا تول چه اسباب د طغيان
دى لكه په سورة مؤمنون ۵۵ كښې دى. او نسبت د زياتوالى راوستل په طغيان كښې
الله تعالىٰ ته حقيقةً مذاهب د اهلِ سنت والجماعت دے او معتزله دا نسبت نه منى
نو هغوى د مدّ معنى په صرف مهلت وركولو سره كوى او لام مقدر كوى. فرق
د دواړو قولونو دا دے چه په نيز د اهل سنت په طغيان كښې زياتے راوستل
او د هغې اسباب پيدا كول دى په طريقه د مهلت سره او په نيز د معتزلؤ طغيان
او زياتوالے فعل د بندګانو دے او عمر اُوږد دوركول او عذاب نه وركول په طور
د مهلت سره فعل د الله تعالىٰ دے. نو دلته تاويل د معتزلؤ ته ضرورت نيشته.
فِىْ طُغْيَانِهِمْ ماده د طغيان په قرآن كښې نهه ثلويښت كرته ده او په لغت كښې زيادت
د مقدار ته وئيلے شي او په شريعت كښې د حد و دو شرعيونه په عقيده يا په عمل
كښې او په مقدار يا كيفيت يا وخت كښې تجاوز كول دى، او دا معنى كفر، شرك، نفاق
بدعت او فسق وفجور ته شامل ده آلوسى دے معنى ته اشاره كړے ده او په
قرآن كريم كښې په ټولو ځايونو كښې طغيان په معنى شرعى سره دے مګر په سورة
النجم ۱۷ او سورة الحاقه ۱۱ كښې معنى لغوى مراد ده.
يَعْمَهُوْنَ په دے كښې اشاره ده چه زياتوالے د اسبابو د طغيان او كثرت طغيان سبب
د اطمينان او د خوشحالئ د زړونو نه دے بلكه د هغې سره دوى په حيرانتيا او پريشانئ
كښې اخته دى. ابن كثير وئيلى دى چه مراد دا دے چه د طغيان او كفر غلبه په دوى
باندے دومره راغلے ده چه دوى هدايت ته لاره نه مومى لكه ختم الله على قلوبهم
او اكثر مفسرينو وئيلى دى چه عمى (ړوندوالے) په سترګو كښې وى او عمه په
زړه كښې وى.
۱۶ په دے ايت كښې دوه صفاتِ قبيحه د منافقانو ذكر دى او هغه نتيجه د ګټكنى

صفاتو ده (اشتراءُ الضلالة- عدم اهتداء) -
اُولٰٓئِكَ اشاره ده چه روستو حکم په دوی باندے په سبب د مخکنو صفاتِ قبیحو سره دے خصوصًا د آمنا نه روستو اِنَّا مَعَكُمْ اه وئیل-
اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى، اشتراء په عرف کښې قیمت ورکول د پاره د حاصلولو د مال دے او د دے نه روستو با داخلیږی په ثمن (قیمت) باندے- لیکن استعمالیږی د پاره د پریښودلو د یو څیز په عوض د بدل کښې- نو دلته په معنی د استبدال سره ده یعنی ګمراهی ئے واخستله په بدله د هدایت کښې-
سوال:- دوی سره خو هدایت نه وو نو هغه ئے څه رنګ په بدله کښې ورکړو؟
جواب:- د هر چا سره هدایت فطریه شته په دلیل د "فِطْرَتَ اللّٰهِ الَّتِیْ فَطَرَ النَّاسَ عَلَیْهَا" نو هغه فطرت ئے بدل کړو په ګمراهئ سره یا هغه هدایت چه په کلمه د اٰمَنَّا سره ښکاره شوے وو هغه ئے برباد کړو په کارونو د کفر سره- یا دلته اشتراء په معنی د استحباب او اختیار سره ده لکه په سورة حٰمٓ سجده ۱۷ او سورة ابراهیم ۳ کښې دی او مراد د ضلالت نه هغه صفتونه قبیحه دی چه رسوونکی دی کفر ته او د هُدٰی نه مراد صفات د مؤمنانو دی چه مخکښې تیر شویدی- نو دا ایت په مقابله د "اُولٰٓئِكَ عَلٰى هُدًى مِّنْ رَّبِّهِمْ اه" کښې دے-
فَمَا رَبِحَتْ تِّجَارَتُهُمْ، هر کله چه دا معامله د منافقینو مشابه کړے شوه د اشتراء سره او اشتراء طریقه د تجارت ده نو دے ته ئے تجارت او وئیلو او دے ته په علمِ بلاغت کښې تخییل وائي او تجارت سرهٔ د ربح (ګټې) ذکر کول په ثبوت یا په نفی سره دے ته ترشیح وئیلے کیږی دا طریقه د کلام د ډیر حُسن د عبارت د پاره دی- نو اشاره ده چه انسان خو تجارت د ګټے د پاره کوی او دوی چه ضلالت حاصل کړو (په تجارت تشبیهی) سره نو فائدے حاصلول خو لرے خبره ده بلکه تاوان ئے حاصل کړو چه هغه په دنیا کښې د منافقانو شرمندګی او په اٰخرت کښې عذاب دی او رَبِحَتْ نسبت تجارت ته دا هم طریقه د کلام ده چه دے ته اسناد مجازی وئیلے شی یعنی دا تجارت رابح (ګټهور) نه دے نو خاوندان د تجارت ته په ربح څنګه حاصله شی- تِجَارَتُهُمْ لفظ تجارت په قرآن کریم کښې نهه کرته راغلے دے- او په دریو طریقو سره مستعمل دے، اوله طریقه تجارتِ مالیه حقیقیه لکه په دے سورت ۲۸۲ او سورة نساء ۲۹ کښې، او دویم تجارتِ اخرویه لکه سورة فاطر ۲۹ او سورة صف ۱۰ کښې، او دریمه طریقه تجارتِ تمثیلیه لکه په دے ایت کښې دے-

فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ

نو هر کله چه روښانه کړی دا او ر هغه ځه چه چاپېره دی دَدَهٔ نه، نو یوسی الله تعالیٰ رڼا دَ دوی

وَتَرَكَهُمْ فِىْ ظُلُمٰتٍ لَّا يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷﴾ صُمٌّۢ

او پرېږدی دوی لره په داسې تیرو کښ چه دوی هیڅ نه وینی. دوی کاڼه دی

وَمَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ دا متعلق دے دَ اِشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى سره یعنی داسې اشتراء دَضلال نه ده چه هدایت پرے پاتے شوی وی بلکه په دغه ضلالت سره اهتداء بالکل نفی شویده. یا متعلق دے دَ فَمَا رَبِحَتْ سره یعنی ربح خو نیشته لیکن تاوان ئے کړے دے او دَ تجارت لارے ترینه هیرے شوے.

۱۷ هر کله چه مخکښ درے قسمه خلق متعلق دَ قرآن سره ذکر شول اول هغه څوک چه دَ قرآن نه ئے پوره فائده حاصل کړے ده دویم هغه چه دَ قرآن مخالفت ئے ښکاره کړے دے او دریم هغه چه دَ قرآن نه ئے پټ پټ خلاف کوئ. نو اول قسم دَ پاره مثال ته ضرورت نیشته لیکن دَ دویم قِسم او دَ دریم قِسم دَ حال دَ بیان دَ پاره دَ مثالونو ضرورت دے دَ پاره دَ دے چه دَ دوی دا نقصانی حال مؤمنانو ته ښه واضح شی.

فائده:- مثالونه په قرآن کریم کښ بعضو اهلِ علمو وئیلی دی چه څلور څلویښت دی او په هر فصیح بلیغ کلام کښ مثالونه ذکر کیږی دَ مثال فائدے په دے سورت ۲۶ کښ او په سورة ابراهیم ۲۵ او په سورة حشر ۲۱ کښ ذکر دی او په دے باندے پوهیدونکو ته عالمان وئیلے شی لکه په سورة عنکبوت ۴۳ کښ دی او پوهه دَ مثال کښ درے څیزونه پیژندل ضروری وی مشبّه او مشبه بِهٖ او وجه دَ شبهے او قرآن کښ دَ دے دَ پاره کله لفظ مَثَل ذکر وی کله صِرف حرفِ کاف کله دَ سوق دَ کلام نه معلومیږی. په لفظ دَ مثل سره په قرآن کښ دری دیرش ۳۳ مثالونه ذکر دی.

تنبیه:- اول مثال دَ هغه کافرانو سره مناسبت لری چه ښکاره کفر کوی او دَ قرآن نه اعراض کوی او دَ قرآن نه نور خلق منع کوی لیکن دَ هغوی په دے عمل سره قرآن والو ته هیڅ نقصان نه رسیږی، بلکه اُلټه دوی ته نقصان اورسی، تشریح روستو رائحی. اکثر مفسرینو خو دا مثال دَ منافقانو سره لګولے دے لیکن دَ عموم دَ الفاظو په وجے سره عام کافرانو ته هم شامل دے لکه چه بیضاوی وئیلی دی.

مَثَلُهُمْ لفظ دَمَثَل کله په معنیٰ دَ مثال راځی لکه په دے سورت ۲۶ کښ او سورة ابراهیم ۲۵ کښ او کله په معنیٰ دَ وصف او شان او حال عجیبه سره راځی لکه په سورة رعد ۳۵ او سورة نحل ۶۰ کښ او کله په معنیٰ دَ اقسامو دَ وعظ او نصیحت سره وی لکه په سورة کهف ۵۴ کښ او کله په معنیٰ دَ عجیبه احوالو سره راځی لکه په دے سورت ۲۱۴ کښ نو دلته په معنیٰ دَ حال او وصف عجیبه سره دے او هُمْ ضمیر په نیز دَ اکثر مفسرینو منافقانو ته راجع دے او تعلق لری دَ مخکښ ایت ''اشتروا الضللة بالهدیٰ'' سره (تفصیل دَ مثال به روستو ذکر شی). یا دا ضمیر راجع دے کافرانو ته په صفت دَ منع کولو دَ خلقو او اعراض کولو دَ اوریدلو دَ قرآن نه۔

کَمَثَلِ کاف دَ پاره دَ تشبیه دے او مَثَل په معنیٰ دَ حال دے او په لفظ مثل کښ اشاره ده چه په دے کښ تشبیه دَ ذات دَ بل ذات سره نه ده بلکه تشبیه دَ حالاتو ده

اَلَّذِی اسْتَوْقَدَ نَارًا۔ استوقد باب استفعال دَ کوشش او دَ طلب دَ پاره راځی نو دَ اَوْقَدَ نه په دے کښ تاکید ډیر دے۔

اَلَّذِی اسْتَوْقَدَ مشبه دَ دے منافق دے بِنا په قول مشهور سره، او قرآن بیان کوونکے دے (نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغه تابعدار) بِنا په دویم قول سره۔

نَارًا، دا لفظ په قرآن کښ دَ مختلف مصداقاتو دَ پاره دے اول نار دَ جهنم لکه په دے سورت ۲۴ کښ، دویم حرام (سورة بقره ۱۷۴)، دریم گناهونه (سورة بقره ۲۲۱) څلورم حرارت (سورة بقره ۲۶۶)، پنځم نارِ سماوی (سورة آلعمران ۱۸۳)، شپږم ماده دَ خلق دَ جن (سورة اعراف ۱۲)، اووم دنیوی اُور (سورة رعد ۱۷)، اتم عذاب برزخی (سورة مؤمن ۴۶)، نهم اسباب دَ جنګ (سورة مائده ۶۴)، لسم نار تمثیلی لکه په دے ایت کښ۔

فَلَمَّآ اَضَآءَتْ مَا حَوْلَهٗ اضاءت دَ ضوء نه ماخوذ دے او ضوء زیاتے رنړاته وئیلے شی او دا لفظ متعدی دے ضمیر فاعل یئے نار دے او ماحوله نه مراد هغه څیزونه دی چه دَ اُور نه چاپیره وی او ضمیر دَ ه راجع دے اَلَّذِی ته یا دا لازمی دے او ماحوله نه مراد مکانونه دی چاپیره دَ اُور نه او دا مفعول فیه دے۔

ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ دا اجزاء دَ لمّا ده۔ اذهب یئے نه دے وئیلے ځکه ذهب سره دَ باء نه دلالت کوی په مبالغه باندے په نسبت دَ اذهب ځکه چه اذهب صِرف په بوتللو باندے دلالت کوی او ذهب بِهٖ په تللو دَ فاعل سرهٔ دَ مصاحبت دَ مفعول نه دلالت کوی. دا رنګ نسبت یئے الله تعالیٰ ته او کړو دَ تاکید دَ پاره او اشاره ده

چه په اُورکښې رڼا پیدا کوونکے اولرے کوونکے الله تعالیٰ دے اُور پخپله رڼا نشی کولے.
بِنُوْرِهِمْ **سوال**:- الذی خومفرد دے او نورهم ضمیر خو جمع ده نو مطابقت نیشته په مینځ دَ ضمیر او دَ مرجع کښې؟
**جواب ۱**:- الذی په معنی دَ جمع دے پشان دَ خُضْتُمْ كَالَّذِیْ خَاضُوْا (سورة توبه ۶۹)
لیکن هرکله چه اُور بلوونکے اکثر یو شخص وی او رڼا حاصلوونکی ډیر وی دَ دے وجے نه اول یې الذی په صیغه دَ مفرد او بِنُوْرِهِمْ یې په ضمیر دَ جمع سره ذکر کړو.
**جواب ۲**:- دلته عبارت پټ دے دا اسْتَوْقَدَ نَارًا نه روستو" فِیْ ذٰلِكَ الْمَوْضِعِ رِجَالٌ قَاعِدُوْنَ" نو ضمیر دَ بِنُوْرِهِمْ هغوی ته راجع دے لیکن دا احتمال بعید دے ځکه چه بغیر دَ دے تقدیر نه هم مقصد دَ کلام په قانون دَ عربیت سره پوره کیږی لکه چه اول جواب کښې ذکر شول.
**سوال**:- ذَهَبَ اللّٰهُ بِنَارِهِمْ یې ولے نه وئیلو؟
**جواب ۱**:- په اُورکښې دوه صفتونه دی رڼا او سوزول نو بِنُوْرِهِمْ کښې دا فائده ده چه دَ کافرانو او منافقانو نه رڼا لاړله او سوزول دَ عذاب هغوی ته پاتے دی یا سوزیدل دَ زړونو دَ دوی په سبب دَ ترقئ دَ مؤمنانو سره دوی ته پاتے دی.
**جواب ۲**:- نُور په شریعت کښې ایمان، توحید، موعظه، قرآن او اتباع دَ نبی صلی الله علیه وسلم ته وئیلے شی نو دا ټول انوار دَ دے خلقونه لاړل دَ دے وجے نه بِنُوْرِهِمْ یې اووئیلو.
**سوال**:- دَ لفظ اضاءت دَ مناسبت دَ وجے نه بضوء هم یې ولے نه وئیلو؟
**جواب**:- ضوء زیاتے رڼا ته وئیلے شی نو وهم پیدا کیدلو چه زیاته رڼا یې بوتله او نفسِ نور پاتے دے ځکه چه په انتفاء دَ خاص سره انتفاء دَ عام نه راځی نو نُور عام دے او ضوء خاص ده، او حال دا دے چه دَ دوی سره هیڅ رڼا نه ده پاتے شوے لکه چه روستو جمله هم په دے دلالت کوی.
وَتَرَكَهُمْ فِیْ ظُلُمٰتٍ، جَعَلَهُمْ یې نه دے وئیلے دَ دوه وجو نه اول دا چه ظلمت په ممکناتو کښې اصل دے او نُور عارضی دے نو په نُور زائل کولو سره اصل پاتے شو چه ظلمت دے- دویمه وجه دا ده چه په لفظ دَ ترك کښې مبالغه ده ځکه چه اشاره ده چه دوی نسیًا منسیًا پاتے کړے شول- فِیْ لفظ هم دلالت کوی په استغراق او انغماس باندے یعنی دَ ظلماتو په وینځ کښې پاتے شول او ظلماتو ورباندے احاطه کړے ده- ظُلُمٰتٍ جمع کښې اشاره ده چه دا اُور بل کړے شو بیا یې

په وخت د شپه کښ په صحرا کښ نو درے تیرے دی اول د شپے دویم د صحرا دریم د رنړا په مړه کیدلو سره۔
لَا يُبْصِرُوْنَ دا تاکید دے د کثرت د ظلما توچه په هغه ظلما توکښ هیڅ خالی ځائے نه وی چه نظر پکښ اولړی یعنی خالص تیاره وی۔
فائده:- تطبیق د مثال د ممثل سره په دوه طریقو سره دے اوله طریقه په مشهور قول باندے چه دا مثال د منافقانو دے تفصیل یے دا دے چه منافقانو کلمه د ایمان ښکاره کړه او بعضِ عبادا توکښے د مؤمنانو سره شرکت کوُنو دوی پشان د هغه کسانو دی چه اُور یے بل کړے وی لکه چه اُور سره فائده اخستونکے رنړا اخستونکے دے په یو جهت سره (په اُور کښ دوه جهته دی یو اشراق دویم احراق) دا رنګ منافق هم ایمان په جهت د ژبے سره ادا کړے دے او په جهت د زړه سره یے نیشته. بیا هرکله چه منافقانو په ایمان ښکاره کولو سره امن حاصل کړو او زکوٰة او غنیمت کښ حصے حاصلولے او د مؤمنانو سره یے تعلق د نکاح وغیره قائم شو نو دوی مشابه شول د لَمَّآ اَضَاءَتْ مَا حَوْلَهٗ سره. بیا هرکله چه دوی مړه شول په منافقت کښ یا مؤمنانو د دوی منافقت الله تعالیٰ ښکاره کړو په بعضِ حالاتو کښ نو هغه دنیوی فائدے ترینه ختم شوے نو دا حال یے مشابه شو د ذهب الله بنورهم سره او هرکله چه روستو د مرګ نه به په ظلمت د قبر او ظلمت د حشر او ظلمت د اُور د جهنم کښ وی نو دا حال یے مشابه دے د وَتَرَكَهُمْ فِيْ ظُلُمٰتٍ سره او هرکله چه د جهنم نه د وتلو د پاره هیڅ لار به نه وی نو دغه حال یے مشابه دے د لَا يُبْصِرُوْنَ سره. په دے توجیه سره الذی په معنیٰ د جمع دے او نُوْرِهِمْ نه مراد رنړا د ایمان ظاهری ده او تَرَكَهُمْ فِيْ ظُلُمٰتٍ نه مراد حالات دی روستو د مرګ نه او په دے توجیه سره دا متعلق دے د اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ اه سره په هغے کښ ذکر شو چه هدایت یے پریښودلو او ضلال یے واخستلو او ربح (ګټې) او فائدے ترینه فوت شوے نو د هغے مثال یے په مثلهم سره ذکر کړو۔
دویمه طریقه د تطبیق د مثال دا ده چه دا مثال د هغه کافرانو دے که ښکاره کفر کوی او که پټ لیکن قرآن نه اوری او د هغے نه خلق منع کوی او د هغے د بندولو کوشش نه کوی۔ تفصیل دا دے چه نبی صلی الله علیه وسلم په مکه مکرمه کښ دعوت د قرآن کوُ ایمان او توحید ته یے خلق رابلل نو دا حال مشابه دے

دا اَلَّذِی اسْتَوْقَدَ نَارًا سره تشبیه د نار سره په دے وجے سره ده چه همیشګری د اُور د رنړا محتاج ده خشاګ ته نو دا رنګ رنړا د ایمان په کمال او په دوام (همیشګئ) کښ عملونو ته محتاج ده او لفظ د "اسْتَوْقَدَ" هم دلالت کوی چه د اور د بلولو او تیزولو د پاره کوشش کوی نو دا رنګ نبی صلی الله علیه وسلم د قرآن د اشاعت د پاره ډیر جد وجهد کړے دے - دا رنګ د نار سره ئے تشبیه د دے وجے نه ورکړله چه د نار نه خلق د ځان د پاره چراغ او لیتکے بل کړی د بقا د رنړا د پاره دا رنګ د نبی صلی الله علیه وسلم نه صحابه کرامو رنړا اخستے د ایمان حاصلے کړے. بیا هر کله چه صحابه کرامو د ایمان فائدے حاصلے کړے او دا رنړا ئے لرے لرے او نورو مدینے منورے پورے اورسیده نو مشرکانو د هغے بنکاره مقابلے شروع کړے او د قرآن نه ئے خلق منع کول لکه په سورة حٰمٓ سجده ۲۶ نه ۲۶ پورے کښ دی نو دا حال ئے مشابه کړو د فَلَمَّا اَضَاءَتْ مَا حَوْلَهٗ سره او حال د مخالفینو په مثال کښ مقدر دے یعنی اَرَادُوا اَنْ یُّطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ (اراده اوکړه دوی چه د الله تعالیٰ نور مړ کړی په هغه طریقے سره چه سورة حٰمٓ سجده کښ ذکر ده) نو الله تعالیٰ نبی صلی الله علیه وسلم ته حکم د هجرت اوکړو نو هغه هجرت اوکړو مدینے منورے ته نو په دغه طریقے سره د مکے نه نُور د قرآن او ایمان او رسول او مومنے وغیره نقل شول مدینے منورے ته نو د دے حال بیان ته ئے اشاره اوکړه په دے قول سره چه ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ او هر کله چه مشرکانِ مکه په تیارو د شرک او کفر او جهالت او رسمونو رواجونو کښ پاتے شول نو دا حال ئے د هغوی ذکر کړو په تَرَكَهُمْ فِیْ ظُلُمٰتٍ سره او هر کله چه په دغه مشرکانو باندے لار د هدایت بالکل بنده شوله نو دغه حال ته ئے اشاره اوکړه په لَا یُبْصِرُوْنَ سره - په دے توجیه سره اَلَّذِی په معنیٰ د مفرد سره دے او نار نه مراد دعوت د قرآن او د ایمان دے او د ظلمات نه مراد حالاتِ دنیویه دی. دا توجیه زیاته غوره ده ځکه د مضمون د ابتداء د سورت (چه په باره د عظمت د قرآن کښ دی) سره مناسبت لری. بل دا چه دا سورت هغه وخت نازل شوے دے چه نبی صلی الله علیه وسلم هجرت اوکړو او قرآن وسنت مدینے ته منتقل شول د هغه حال سره هم ډیر مناسب دے. او فائده د تمثیل په طور د عام عبرت سره دا شوه چه هر چا د قرآن کریم مخالفت کړے دے او اهلِ قرآن ئے په هجرت کولو باندے مجبور کړے دی نو قرآن والو ته نقصان نیشته د هغوی د رنړا کار بل ځائے کښ

# صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ﴿١٨﴾

چاپه کاڼه دي ړانده دي پس دوی نه راګرځي (د ګمراهئ نه حق ته)۔

په ترقئ سره شروع شي لیکن مخالفت کوؤنکو ته نقصان رسیږي چه په جهل او کفر و شرک وغیره کښ پاتے شي۔

فائده ١ لفظ د نُور په قرآن کښ دری ځلویښت کرته راغلے دے او د هغے دیارلس مصداقات ذکر دی، اول نور صفت د الله تعالیٰ (سورة نور ٣٥، سورة زمر ٦٩)، دویم نور الزیت، دریم نور الزجاجه (سورة نور ٣٥)، څلورم نور په معنیٰ د توحید (سورة بقره ٢٥٧)، پنځم صفت د رسول (سورة مائده ١٥)، شپږم صفت د تورات (سورة مائده ٤٤)، اووم صفت د انجیل (سورة مائده ٤٦)، اتم صفت د قرآن (سورة نساء ١٧٤ او سورة تغابن ٨)، نهم نور مقابل د ظلمت (سورة انعام ١)، لسم دین د الله تعالیٰ (سورة توبه ٣٢ سورة صف ٨)، یوولسم صفت د قمر (سورة یونس ٥)، دولسم نور د ورځ د قیامت (سورة حدید ١٣)، دیارلسم نور د اُور لکه پدے ایت کښ۔

فائده ٢ لفظ د ظلمات په قرآن کښ دیرویش کرته دے او د هغے نهه مصداقات دی، اول ظلمات المطر (باران) (سورة بقره ١٩)، دویم ظلمات د شرک او شبهاتو (سورة بقره ٢٥٧)، دریم ظلمات مقابل د النور (سورة انعام ١)، څلورم ظلمات د جهل (سورة انعام ٣٩)، پنځم ظلمات د زمکے (سورة انعام ٥٩)، شپږم ظلمات د بر او بحر (مصائب) (سورة انعام ٦٣)، اووم ظلمات د بطن د مهی (سورة انبیاء ٨٧)، اتم ظلمات د بحر (سورة نور ٤٠)، نهم ظلمات د بطونو د امهاتو (د مینډو د ګیډو) (سورة زمر ٦)، لسم ظلمات تمثیلی لکه په دے ایت کښ۔

١٨ دا ایت تتمه ده د تیر شوی مثال یعنی مشبه به، یعنی صرف مړه کیدل د رڼا او په تیاره کښ پاتے نه دی بلکه د دوی حواس د علم هم آفت زده شویدی ځکه چه د ډیر هیبت په وخت کښ د انسان حواس هم برباد یږی تردے پورے چه د ځائے نه خوزیدلے نشی او په دے نه پوهیږی چه مخکښ لاړ شی او که روستو یا دا تتمه ده د مثال یعنی د مشبه یعنی اعراض کوؤنکی او مخالفت کوؤنکی د قرآن د ډیر جهل او شبهاتو او شرکیاتو د وجے نه د حق د علم نه د دوی حواس بند شویدی نو دا علت دے د لا یبصرون په تقدیر د اِذ سره او د اپشان د ګ دے۔

سوال:۔ د کافرانو خوغوږونه او ژبے او سترګے روغے دی نو دا صفاته رنګ صحیح دی؟۔

**جواب:** ۔ دا تشبیه او تمثیل دے په حذف د مبتدا او د حرف تشبیه سره او دیته تشبیه بلیغه وئیلے شي نو اصل عبارت داسے وُو چه هُمْ كَالصُّمِّ وَالْبُكْمِ وَالْعُمْيِ۔

**سوال:** ۔ صم جمع د اصم دے هغه څوک چه هیڅ نه اوری او دارنګ بُکْمٌ جمع د ابکم ده هغه چاته وئیلے شي چه په ژبه باندے هیڅ خبره نشي کولے او عُمْیٌ جمع د اعمٰی ده هغه چاته وئیلے شي چه هیڅ نه وینی او د کافرانو دا قوتونه روغ دی نو دا تشبیه څنګه صحیح ده؟۔

**جواب:** ۔ چه هر کله دا قوتونه د دوی د حق د پاره بند دی اګرچه نورو څیزونو د پاره استعمالیږی لیکن د الله تعالیٰ په تیز استعمال د دے د غیر حق د پاره او د حق نه ئے بند بدل داسے دی چه دا قوتونه بالکل نیشت دی نو معنی دا شوه چه دا کافران چه حق نه اوری پشان د هغه کڼرو دی چه هیڅ نه اوری د وجے د مبالغے نه او دارنګ په بُکْمٌ او عُمْیٌ کښ هم۔ نو معلومه شوه که وجه شبه یو طرف ته مطلق وی او بل طرف ته مقید وی نو هم تشبیه صحیح کیږی۔

**فائده:** ۔ ماده د صم په قرآن کښ پنځلس کرته ده۔ په یو ځائے کښ نفی حقیقی ده (سورة هود ۲۴) ځکه هلته حرف تشبیه صریح ذکر دے او په نورو ځایونو کښ صمم تمثیلی مراد دے۔ دارنګ بکم ماده په قرآن کښ شپږ کرته ذکر ده په دوه ځایونو کښ معنی حقیقی مراد ده (سورة نحل ۷۶ او سورة اسراء ۹۷) او باقی بکم تمثیلی مراد دے۔ دارنګ ماده د عمی په قرآن کښ دری دیرش کرته ذکر ده چه په درے ځایونو کښ معنی حقیقی مراد ده (سورة نور ۶۱ سورة فتح ۱۷ او سورة عبس ۲) او په دوه ځایونو کښ په معنی د خفا (پټوالی) ده (سورة هود ۲۸ او سورة قصص ۶۶) او باقی په معنی تمثیلی سره دے۔

**سوال:** ۔ په دے کښ ذکر د ختم د قلوب وُو او په دے آیت کښ بُکْمٌ ذکر دے؟۔

**جواب:** ۔ بنا په اوله توجیه (چه دا تتمه شي د مشبه به) باندے دلته مقصد ذکر د هیبت د ظلماتو دے په قوتو باندے نو د هیبت په وخت کښ ژبه د خبرونه بنده شی لکه چه غوږونه او سترګے هم بے کاره شي۔ او بنا په دویمه توجیه (چه تتمه شي د پاره د مشبه) باندے وجه د فرق دا ده چه په هغه آیت کښ ذکر وُو د خاص قسم کافرانو چه کامل عنادیان دی نو د هغوی په زړونو باندے آفت پروت دے او دلته ذکر د عام کافرانو دے که عنادیان وی او که نه وی نو د دوی زړونه مهر زده نه دی هاں د لږ ضد او عناد د وجے نه په ژبه باندے حق کلمه نه اداکوی

أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمَٰتٌ وَرَعْدٌ

يا حال دَ دوى پشان دَ ډير باران دے دَ برہ طرف نه چه په هغے كښ ډير تيرے وى او ګړګوړ وى

وَبَرْقٌ يَجْعَلُونَ أَصَٰبِعَهُمْ فِىٓ ءَاذَانِهِم

او برېښنا وى، ږدى دوى ګوتے خپلے په غوږونو خپلو كښ

مِّنَ الصَّوَٰعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ وَاللَّهُ مُحِيطٌۢ

دَ وجے دَ سختو اوازونو (ګړزار) دَ وجے دَ يرے دَ مرګ نه. او الله تعالىٰ راګيرونكے دے (په علم

بِالْكَٰفِرِينَ ⑲ يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ أَبْصَٰرَهُمْ

او قدرت خپل كښ) كافرانو لره. نيژدے وى دا برېښنا چه او تختوى نظرونه دَ دوى لره.

جواب ۲ چه اَخْرَس هغه چا ته وئيلے شى چه صرف خبرے نشى كولے او ابكم هغه دے چه نه خبرے كولے شى او نه پوهيږى نو دے هم پشان دَ مختوم القلب دے سرهٔ دَ افت دَ ژبے نه.

فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ دَ دے دوه مصدرونه راځى يو رجوع نو هغه لازمى دے او بل رجع نو هغه متعدى دے دلته مراد لازمى دے او لازمى اكثر دے او متعدى په سورة توبه ۸۳ سورة طٰهٰ ۴۰ كښ دے او دا رنګ نور اَيا تونو كښ دى، نو مجهول صيغه دَ دے دَ رجع نه ماخوذ ده لكه په سورة حٰمٓ سجده ۵۰ او سورة بقره ۲۱۰ او دا سے نور اَيا تونه دى.

۱۹ په دے اَيت كښ دويم مثال دے او دا مثال دَ هغه قِسم منافقانو او كافرانو دے چه دَ مجلس دَ قرآن نه تيښته كوى او دَ هغے دَ نه اَوريدلو كوشش كوى. اَوْ دا حرف په عام استعمال كښ دَ ترديد او دَ شك دَ پاره راځى يعنى تساوى (برابر والے) دَ دوه شيزونو سرهٔ دَ تردّد نه او په كلام دَ الله تعالىٰ كښ خو صِرف دَ تساوى او دَ تخيير دَ پاره راځى لكه په سورة مائده ۸۹ كښ او كله په معنى دَ واو سره وى لكه په سورة دهر ۲۴ كښ او كله دَ تنويع دَ پاره وى لكه په سورة مائده ۳۳ كښ بنا په يو قول باندے او كله دَ تفصيل دَ پاره وى لكه په دے سورت ۱۱۱ كښ. نو په دے اَيت كښ دَ تخيير دَ پاره دے په نيزدَ هغه مفسرينو چه اول مثال دَ منافقانو دَ حيرت او دهشت دَ پاره دے او دا مثال هم دَ منافقانو دے نو اختيار دے كه اول مثال ذكر كوے او كه دويم مثال ليكن غوره دا ده چه دا اَوْ دَ تنويع دَ پاره دے يعنى اول مثال دَ يو نوع دَ كافرانو دَ پاره وۇ چه دَ قرآن ښكاره دشمنان وى او دا مثال دَ بل قِسم كافرانو دَ پاره دے چه دَ قرآن

دشمنی پته پته کوی هغه منع کولے نه شی لیکن ځان ترینه ساتی۔
كَصَيِّبٍ، مَثَلُهُمْ دلته پټ مراد دے او کاف په معنی دَ مِثل سره دے۔ صیّب هغه باران ته وئیلے شی چه ډیر تیز وی او دا لفظ په قرآن کښ یو ځل ذکر دے او دا باران دَ سپرلی په موسم کښ وی چه دا روستو صفتونه هم پکښ وی او غیث صِرف هغه باران دے چه دَ سوکړے نه روستو وی اګرچه دا روستو صفات پکښ نه وی او مطر عام دے عام باران ته وئیلے شی او اکثر په باران دَ عذاب کښ ذکر کیږی۔
نو صیّب مثال دَ قرآن کریم دے چه ډیرے فائدے او حکمتونه پکښ دی او دَ چا دَ پاره خیر وی او دَ چا دَ پاره خیر نه وی لکه په سورة اعراف ۵۸، دارنګ حال دَ قرآن دے لکه په سورة اسراء ۸۲ کښ۔
مِنَ السَّمَآءِ په لغت کښ هر هغه څیز چه بره وی دَ دے وجے نه چت دَ کوټے ته هم سماء وئیلے شی۔ او کله باران ته وئیلے شی لکه په سورة ذاریات ۲۲ کښ بنا په یو قول باندے۔ او دارنګ په سورة انعام ۶ او سورة هود ۵۲ کښ۔ او کله سحاب (وریځ) ته هم وئیلے شی۔ دلته دَ اکثر مفسرینو په نیز دَ سماء نه مراد وریځ ده او قرآن کښ ډیر آیاتونه ښکاره دلالت کوی چه باران دَ وریځو نه راځی لکه په سورة واقعه ۶۹ سورة اعراف ۵۷ سورة نور ۴۳ او سورة روم ۴۸ کښ دی۔ او دویم قول دا دے چه السَّمَآء نه مراد آسمان دے او کومه وریځ چه دَ آسمان سره متعلقه وی نو دَ هغے نه باران راځی او په دے دواړه قولونو باندے مِن دَ پاره دَ ابتداء دَ غائیے دے لکه "سِرْتُ مِنَ الْبَصْرَةِ" او کله چه سماء په معنی دَ آسمان شی یا په معنی دَ او چت څیزونو مِنْ دَ پاره دَ جهت (طرف) دے لکه په سورة قصص ۳۰ کښ۔ او دارنګ په لفظ سماء کښ اختلاف دے دَ بعضِ په نیز دا مفرد دے او سماوات ئے جمع ده او دَ بعضو په نیز دا اسمِ جمع ده۔
**فائده:۔** السَّمَآءِ ئے معرفه ذکر کړے ده اشاره ده چه هغه باران مراد دے چه دَ آسمان دَ ټولو اطرافو نه راوریږی یعنی عام باران وی۔ نو لکه عام باران چه طرف دَ آسمان نه دے نو دارنګ قرآن کریم هم دَ آسمان نه نازل شوے دے دَ ټولو خلقو دَ فائدے دَ پاره۔
فِيهِ ظُلُمٰتٌ تنکیر دَ پاره دَ کثرت دے که دَ مقدار وی او که دَ کیفیت وی۔ جمع ئے دَ دے وجے نه ذکر کړه چه ظلمت دَ ګڼړ باران او ظلمت دَ شپے او ظلمت دَ وریځے جمع شویدی، نو دارنګ په قرآن کریم کښ ذکر دَ اعمالو دَ کفر او شرک او نفاق دے او

دا شبهات دی. یا په دے کښ اشاره ده مصیبتونو او تکالیفو د دعوت او جهاد او هجرت او د نورو عبادا تو ته چه په قرآن کښ ذکر دی او د قرآن په تبلیغ کښ هغه پیش راځی.
وَّرَعۡدٌ دا لفظ په قرآن کښ دوه کرته ذکر دے او په دویم ځائے (سورة رعد ۱۳)
کښ خو ظاهر دا ده چه ملك (فرښته) مراد دے رعد په اصل لغت کښ لړزیدلو
ته وئیلے شی او په عرف کښ هغه ډکړکوړآواز دے چه د وریځے نه اوریدلے شی
قرطبی وئیلی دی چه د اکثر علماؤ قول دغه دے او د دے په سبب کښ اختلاف
دے، نکره ئے ذکر کړے ده اشاره ده سخت رعد ته او مفرد ئے راوړے دے په
اعتبار د جنس سره. نو په قرآن کښ چه کوم تخویفات دنیویه او اخرویه او
زواجر په کفر او په منافقت باندے ذکر دی او د هغے د اوریدلو نه منافقان
لړزیږی لکه په سورة منافقون ۶۳ او سورة توبه ۹ کښ نو هغه مشابه
دی د رعد سره.
وَّبَرۡقٌ د بریق نه ماخوذ دے پړقیدل، چمک کول او بجلئ ته وئیلے شی.
براق چه سورلی وه د نبی صلی الله علیه وسلم د پاره په شپه د معراج کښ د هغے
رفتار هم د بجلئ پشان تیز وو ځکه هغے ته براق وئیلے شی او په عرف کښ هغه
پړق دے چه د وریځے نه ښکاره کیږی او د هغے په سبب کښ اختلاف دے
دلته هم نکره او مفرد راوړلے شو د پاره د عظمت او د جنس. او رعد او برق
چه په کومه وریځ کښ وی نو د هغے نه باران ډیر وریږی. نو په قرآن کښ چه
کوم دلیلونه د ایمان او توحید دی چه مخالفین د هغے په اوریدلو سره حیرانیږی
مشابه دی د برق سره.
یَجۡعَلُوۡنَ اَصَابِعَهُمۡ فِیۡۤ اٰذَانِهِمۡ تمثیل د ظلما تو په مخکښ ایت کښ تیر شوید ے
نو هغه ئے پریښودلو او تمثیل د رعد ذکر کوی. مراد دا دے چه د سخت اوازونو
ډکړکوړاو تندر نه ویریږی نو د هغے نه غوږونه بندا وی او د مکان د باران نه
د تښتیدلو او پټیدلو کوشش کوی. او برخه د دے خلقو د باران نه صرف ویره
او هیبت دے د باران په نورو فائدو باندے فکر نه کوی، نو دا رنګ دا منافقان
چه د قرآن د مجلس نه د تښتیدلو کوشش کوی او غوږونه بندا وی د پاره د دے
چه د هغه تخویفات او زجرونو نه چرته اثر قبول نه کړی او ایمان رانه اوړی
او دا طریقه د منکرینو په سورة نوح ۷ کښ ذکر کړده. یَجۡعَلُوۡنَ ماده د جعل په
قرآن کښ په ډیرو معانو سره راځی، اول په معنی د خلق (سورة انعام ۱)، دویم

په معنی د صفت (جوړولو) لکه په دے سورت ۲۲ کښ. دریم په معنی د شرعے سره (سورة مائده ۱۰۳)، څلورم په معنی د اعتقادِ باطل (سورة زخرف ۱۵)، پنځم په معنی د تسمیه (سورة زخرف ۱۹)، شپږم په معنی د کیخودلو او داخلولو لکه په دے آیت کښ دا معنی مراد ده. ضمیر د یجعلون نه راجع دے اصحاب صیّب ته چه پټ مراد دے.
اَصَابِعَهُمْ دا ذکر د کل او مراد ترینه جزء دے یعنی سرونه د ګوتو لیکن ذکر د اصابع د پاره د مبالغے دے. په جانب د مشبه بِهٖ کښ خو حقیقی معنی مراد ده یعنی غوږونه په ګوتو سره بندول او په جانب د مشبه کښ معنی حقیقی او معنی مجازی (قرآن نه اوریدل) دواړه احتمالونه صحیح دی.
مِنَ الصَّوَاعِقِ مِن اجلیه (تعلیلیه) دے علت دے د یجعلون د پاره. صواعق جمع د صاعقة ده ماده د صعق په قران کښ یوولس کرته ذکر ده او مختلف معانی دی اول په معنی د مرګ سره (سورة زمر ۶۸) دویم په معنی د بے هوشئ (سورة اعراف ۱۴۳) دریم په معنی د چغے د عذاب (سورة بقره ۵۵ سورة حٰمٓ سجدة ۱۳-۱۷) څلورم په معنی د سخت آواز د رعد لکه په دے آیت کښ دا معنی مراد ده. پنځم هغه اور چه د دے سخت آواز سره راغورځیږی چه هغے ته تندر وئیلے شی (سورة رعد ۱۳). خلیل وئیلی دی چه صاعقه سخت آواز د رعد دے چه د هغے سره اور راوځی. ابو زید وئیلی دی صاعقه هغه اور دے چه د سخت رعد سره د اسمانه راغورځیږی. قرطبی وئیلی دی چه صواعق سره تشبیه د مسئلے د قتال او جهاد فی سبیل الله او نورو تکالیفو شرعیو ده چه دا په منافقانو باندے بدلږی او عذابونه سخت په آخرت کښ.
حَذَرَ الْمَوْتِ دا مفعول له وو د پاره د جَعْلُ الْاَصَابِعِ مِنَ الصَّوَاعِقِ او من الصواعق علت وو صرف د جعل الاصابع د پاره نو جمع د دوه علتونو په یو څیز باندے نه لازمیږی. موت نه مراد مرګ حقیقةً دے چه د صاعقه آوریدلو نه کله په زړه باندے داسے هیبت راشی چه زړه فیل شی نو انسان مړ شی. او په طور د تشبیه سره، اخلاص د ایمان او منافقت پریښودل او لار د مشرانو (ګمراهانو) پریښودل دوی ته د مرګ په شان ښکاریږی.
وَاللّٰهُ مُحِیْطٌ بِالْکٰفِرِیْنَ دا علت دے د پټ عبارت د پاره یعنی په دے حیلے (غوږونو کښ ګوتے ورکول) سره دوی د الله تعالٰی د ګرفت نه نشی بچ کیدلے ځکه چه هغه احاطه کړیده په مستحقینو د عذاب په سبب د کفر سره. محیط په صفت د الله تعالٰی

كُلَّمَآ اَضَآءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِيْهِ ۙ وَاِذَآ اَظْلَمَ

هر وخت چه روخانه كړي دوى ته (ربولار) روان شي په هغې كښ، او هر كله چه تياره كړي

عَلَيْهِمْ قَامُوْا ۭ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ

په دوى باندے نو اودريږي. او كه غوښتے الله تعالىٰ نو بوتلے به يُے وے

بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰي كُلِّ

غوږونه دَ دوى او سترګے دَ دوى يقيناً الله تعالىٰ په هر

شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝ يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا

څيز باندے قدرت لرونكے دے. اے خلقو ! بندګي خاص كړئ

كښ اته كرته راغلے دے او احاط فعل دَ هغه په صفت كښ څلور كرته ذكر دے او احاطه په اصل كښ راګيرول دَ يو څيز دى دَ هر جهت نه. نو دا رنګ الله تعالىٰ هر څيز په خپله قبضه كښ راګير كړيدے لكه په سورة هود ۵۶ كښ او په هر څيز باندے عالم دے لكه په سورة طلاق ۱۲ او سورة مزمل ۲۰ كښ او په هر څيز باندے قادر دے او عذاب وركولے شي ځكه چه احاطه په معنى دَ عذاب سره هم راځي لكه سورة يوسف ۶۶ كښ او دَ لفظ دَ كافرين تخصيص دلالت كوى چه دلته احاطه په عذاب سره مراد ده او اشاره ده چه منافقان اعتقادى چه دَ قرآن نه نفرت كوى او توحيد ورته دَ مرګ پشان ښكارى نو دوى كافران دى نو حاصل دَ مثال دا دے لكه څنګه چه بعضِ خلق دَ هغه باران نه چه ډيرے فائدے پكښ دى تيښته كوى او مكان بدلول غواړى او دَ باران لږ احتمالى نقصان ته ګورى او ډيرو فائدو ته نه ګورى نو دا رنګ منافقان دَ قرآن كريم منافعو او فائدو ته نه ګورى صِرف دَ دے وجے نه چه دَ دوى دَ عقيدے او مسلك خلاف دعوت وركوى دَ هغے نه اعراض كوى او غوږونه ترينه بندوى او فكر نه كوى چه دا سبب دَ هلاكت او دَ عذاب دَ دوى دے. او تشبيه دَ مفرداتو مخكښ ذكر شويده.

ن۲۰ په دے ايت كښ تتمه ده دَ مخكښ مثال. روستو دَ حال دَ رعد نه حال دَ برق ذكر كوى نو هغه مثال وُو دَ عقيدے دَ منافقانو په نفرت كولو سره دَ قرآن نه او دا مثال دے چه منافقان په قرآن او په احكامو شرعيو باندے

ع۲ ۲

هغه وخت عمل کوی چه دَ دوی دنیوی مفادات پکښ وی نو اشاره شوه چه دَ قرآن نه نفرت کول او په قرآن باندے دَ مفادِ دنیوی دَ پاره عمل کول یو شان جرم او نفاق دے۔

يَكَادُ الْبَرْقُ داجمله استیناف دے دَ پاره دَ جوابِ سوال چه هر کله مخکښ برق ذکر شو نو سوال راغے چه داخلق دَ برق په وخت کښ څه کوی۔ يَكَادُ دا ماده په قرآن کښ شلیرویشت کرته ذکر ده شپږ ایاتونو کښ په طریقه دَ نفی سره او باقی په اثبات سره او کله چه دَ اِنْ سره ذکر دے نو په خبر کښ یے لام تاکیدی راغلے دے او بغیر دَ اِنْ نه خبر یے فعل مضارع بغیر دَ اَنْ نه ذکر دے۔ او دا دَ افعالِ مقاربه نه دے دلالت کوی په نزدیکت دَ خبر باندے واقع کیدلو نه لیکن واقع شوی نه وی۔

يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ خطف په لغت کښ تختول دی په تلوارے سره۔ دا ماده په قرآن کښ اووه کرته راغلے ده په دغه یو معنی سره۔ اَبْصَارَهُمْ جمع دَ بصر ده مراد دَ دے نه قوت دَ نظر دے یعنی برق دَ اسمان نه ډیر سخت چمکدار دے او (برق) دَ سترګو ډیر ضعیف دے نو دَ هغے په مقابله کښ تیښتیدل ګران دی نو دارنګ حجتونه او دلیلونه قرآنی ډیر قوی دی په اثبات دَ حق کښ چه دَ هغے په مخکښ عقلونه دَ مخلوق بے کاره دی اشاره ده چه دَ قرآن او سنت په مقابله کښ خپله رائے او عقل و قیاس باندے عمل کول جائز نه دی۔

كُلَّمَا اَضَاءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِيْهِ دا هم جمله مستانفه ده جواب دَ سوال دے چه برق کله پیښیږی او کله ښکاره کیږی نو په دغه وخت کښ دَ دوی څنګه حال وی۔ نو دا جواب دے۔ اَضَاءَ لَهُمْ لازمی دے یعنی ښکاره شی دوی ته رڼا۔ یا متعدی دے او مفعول پټ دے یعنی طَرِيْقًا۔ مَشَوْا فِيْهِ بنا په اول قول ضمیر دَ فیه راجع دے مکان دَ رڼا ته او بنا په دویم قول راجع دے طریقًا ته۔ مشی عام رفتار ته وئیلے شی۔ وَاِذَا اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ دا هم لازمی دے یعنی پټه شی رڼا۔ یا متعدی دے مفعول یے پټ دے طریقًا۔ دَ اضاء سره كُلَّمَا او دَ اظلم سره یے اِذَا ذکر کړو وجه داده چه دوی رڼا هر وخت غواړی او تیارۂ نه غواړی مګر بے اختیاره ورباندے رائی۔ قَامُوْا دَ قیام نه ماخوذ دے دا قیام په معنی دَ ځائے باندے حصاریدل دی که ولاړ وی او که ناست دی۔

تطبیق دَ مثال:- يَكَادُ الْبَرْقُ اه دارنګ دلیلونه او حجتونه دَ قرآن ته عقلونه حیرانیږی لیکن دا منافقان یے دَ بد قسمتۍ دَ وجے نه نه تسلیموی بلکه كُلَّمَا اَضَاءَ اه

هر کله چه دوی ته فائده دنیوی حاصلیږی نو هغه دلیلونه منی او د مؤمنانو منکرتیا کوی او اِذَآ اَظْلَمَ اه هر کله چه د دوی مفاد نه حاصلیږی یا څه تکلیف او مصیبت ورته په اسلام کښ اُورسیږی نو منکرتیا د مسلمانانو پریږدی او د دے امثال په قرآن کریم کښ شته لکه په سورة نساء ۱۳۷ ۱۴۳ او سورة حج ۱۱ او سورة نور ۴۸ ۴۹ کښ. او د دے امثال په دے وخت کښ ډیر موجود دی (اَعَاذَنَا اللّٰهُ تعالیٰ مِنْ هٰذَا الْحَالِ).

وَلَوْ شَاءَ اللّٰهُ، کلمه د لَوْ کله د تمنا د پاره راځی لکه په دے سورت ۱۶۷ کښ بنا په یو قول باندے او کله مصدریه راځی لکه په دے سورت ۹۶ کښ او په دے دواړو حالاتو کښ په یو جمله باندے داخلیږی او کله لَوْ شرطیه وی او دا ډیر مستعمل دے او په دے وخت کښ په دوه جملو باندے داخلیږی یوه شرط او دویمه جزا لخو لازم په وخت د لَوْ کښ انتفاء د دواړو جزءونو وی یعنی شرط او جزا به دواړه منتفی وی برابره خبره ده که انتفاء د شرط دلیل وی په انتفاء د جزاء باندے یا برعکس وی بنا په اختلاف د اهل عربیت سره غوره اول قول دے. دلته هم مشیت د الله او ذهاب د سمع او بصر دواړه منتفی دی.

فائده ۱: مشیت صفت د الله تعالیٰ ذکر دے په قرآن کښ دوه سوه شلو کرته او هغه کله په معنی د رضا او کله په معنی د اراده دے او کله احتمال د دواړو معانیو وی. او مشیت صفت د بنده هم په قرآن کښ دوه دیرش کرته ذکر دے لیکن مشیت د بنده تابع دے د مشیت د الله تعالیٰ لکه په سورة دهر ۳۰ او سورة تکویر ۲۹ کښ دی.

فائده ۲: د شَاءَ مفعول اکثر محذوف وی ځکه چه روستو جزاء په هغے باندے دلالت کوی لکه دلته اصل عبارت داسے دے "وَلَوْ شَاءَ اللّٰهُ اِذْهَابَ سَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ لَذَهَبَ بِهِمَا".

لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ په دے کښ دوه توجیه دی اول دا چه که الله تعالیٰ غوښتلے وے نو رعد او برق به ئے نور زیات تیز کړے وے تر دے پورے چه د دوی قوت د اوریدلو او قوت د لیدلو به ئے بالکل ختم کړے وے. دویم دا چه که الله تعالیٰ غوښتلے نو د دوی ظاهری غوږونه او سترګے به ئے هم زائل کړے وے لکه چه باطنی اوریدل او لیدل ئے ترینه اخستلی دی چه هغے ته اشاره وه په صُمٌّ او عُمْیٌ سره. او دا په شان د سورة یٰسٓ ۶۶ ۶۷ دے. او په دے جمله کښ مقصد زجر ورکول دی چه هر کله دوی د قوتِ سامعه او باصره نه د حق په باره کښ فائده نه اخلی نو ظاهری غوږونه او سترګو د دوی نه څه حاجت

نیشته۔ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ دا جمله دلیل دَ هغه ملازمے دے چه په مخکښ جمله کښ ذکر شوه یعنی مشیت دَ الله تعالیٰ مستلزم دے فنا کولو دَ غوږونو او سترګو لره ځکه چه هغه په هر څیز او په هر کار باندے پوره قدرت لری نو سبب ته محتاج نه دے او نه ئے مانع منع کولے شی نو په فنا کولو دَ غوږونو او سترګو باندے هم قدرت لری۔ لفظ دَ شَیْءٍ په قرآن کښ دوه سوه نهه اویا کرته مفرد او څلور کرته جمع راغلے دے۔ شَیْءٍ په اصل کښ مصدر دے دَ شاءَ دَ پاره او دا مصدر کله مبنی للمفعول وی او کله مبنی للفاعل وی کله چه مبنی للمفعول وی نو هر ممکن ته وئیلے شی که په وخت دَ وجود کښ وی او که معدوم وی لیکن روستو وجود ته راځی او دا معنی مراد ده په دے جمله کښ چه اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ځکه چه هر مقدور ممکن وی شر بینی وئیلی دی چه دا دلیل دے چه هر څیز په وخت دَ موجودیدلو کښ او په وخت دَ بقاءِ دَ وجود کښ دَ الله تعالیٰ دَ قدرت دَ لاندے داخل دے او دا رنګ کوم څیز چه په قدرت دَ بنده کښ دے نو هغه هم دَ الله تعالیٰ دَ قدرت دَ لاندے داخل دے۔

فائده:- اختلاف دے دَ اهل علم چه دَ شَیْءٍ اطلاق په الله تعالیٰ باندے صحیح دے او که نه خو دا په هغه وخت کښ چه شَیْءٍ مصدر مبنی للفاعل واخستلے شی یعنی خاوند دَ مشیت۔ نو بعض وائی چه الله تعالیٰ ته شَیْءٍ نشی وئیلے کیدلے ځکه که هغه ته شَیْءٍ اُوئیلے شی نو دَ دے آیت دَ حکم دَ لاندے به داخل شی یعنی مقدور به شی او مقدور خو ممکن وی۔ او په نیز دَ اکثر اهلِ سنت باندے دَ شَیْءٍ اطلاق په الله تعالیٰ باندے صحیح دے په دلیل دَ سورة انعام ۱۹ سره چه دَ اَیّ شَیْءٍ په جواب کښ الله واقع دے او دا رنګ په بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ کښ هم الله تعالیٰ داخل دے ځکه الله تعالیٰ په ځان باندے هم عالم دے او جواب دَ دے آیت نه اول دا دے چه دلته شَیْءٍ په معنی دَ مبنی للمفعول سره دے او په دغه معنی کښ الله تعالیٰ داخل نه دے او دویم جواب دا دے چه دلته دَ شَیْءٍ دَ عموم نه الله تعالیٰ خاص کړے شوے دے په عقلی دلیلونو سره چه هغه براهینِ یقینیه دی په دے خبره باندے چه الله تعالیٰ حادث او ممکن نه دے۔

تنبیه:- اطلاق په الله تعالیٰ باندے دَ شَیْءٍ هغه وخت کښ دے چه په آیت لوستلو یا په حدیث کښ چرته وارد وی په عام طور سره الله تعالیٰ ته

# رَبَّكُمُ الَّذِىْ خَلَقَكُمْ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ

دَ رب خپل هغه ذات دے چه پیدا کړی یئ تاسو او هغه کسان چه ستاسو نه مخکښ وو

# لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿٢١﴾ الَّذِىْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ

دَ دې دپاره چه بچ شئ تاسو (دَ اور نه)۔ (او الله تعالیٰ) هغه ذات دے چه جوړه کړیده زمکه ستاسو دپاره

شَیْءٍ وئیل پکار نه دی ځکه چه دا لفظ دَ الله تعالیٰ په اسماءِ خاصه کښ وارد نه دے قَدِیْرٌ دا په صفت دَ الله تعالیٰ کښ پنځه شلویشت کرته راغلے دے چه دَ هغے نه په درے ځایونو کښ متعلق خاص ذکر کړے دے (سورة حج ۳۹، سوره نساء ۱۳۳ او سورة شوریٰ ۲۹) او باقی ځایونو کښ متعلق عام ذکر دے۔

فائده ۱: ماده دَ قدر په قرآن کښ یو سل دیرش کرته ذکر ده او په لس وجوهو سره ده، ۱ په صفت دَ الله تعالیٰ کښ چه هغه پنځه شلویشت کرته راغلے دے او ۲ دَ هغے نه دَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِیْرٌ په عنوان سره دوه ویشت ځله راغلے دے، او ۳ په صیغه دَ قادرٌ سره ۷ اووه ځله، او ۴ په صیغه دَ قادرون سره پنځه ځله، او ۵ په صفت دَ مقتدر او مقتدرون سره شلو کرته، او ۶ په قدرت دَ بنده کښ په (سورة مائده ۳۴ او سورة قلم ۲۵) کښ۔ او ۷ په معنی دَ تقدیر الٰهی سره په سورة طلاق ۳ او سورة فرقان ۲ کښ۔ او ۸ په معنی دَ تقدیر انسانی سره په سورة مدثر ۱۹ کښ، او ۹ په معنی دَ تعظیم سره په سورة انعام ۹۱ کښ، او ۱۰ په معنی دَ تنگسیا سره په سورة رعد ۲۶، سورة انبیاء ۸۷ او سورة فجر ۱۶ کښ۔

فائده ۲: شربینی وئیلی دی چه قدرت دَ الله تعالیٰ تمکن دے په ایجاد دَ څیز باندے یا صفت دے چه تقاضا کوی دَ دے تمکن۔ او قدرت دَ بنده هغه هیئت دے چه په سبب دَ هغے سره تمکن حاصلوی په کولو باندے او دا رنگ قادر هغه ذات دے چه خوښه یئ شی نو کار او کړی او چه خوښه یئ نه وی نو نه کوی او قدیر خو فعال لِمَا يَشَاءُ ته وئیلے شی کَ دَ دے وجے نه دا مختص دے په الله تعالیٰ پورے او مقتدر خو مشتمل دے په معنی دَ قادر او دَ قدیر باندے او په هغے کښ ډیره مبالغه ده دَ قدرت چه حد یئ نه معلومیږی۔

۲۱ خلاصه:۔ دَ دے آیت نه دویم باب دے تر ۳۹ پورے پدیکښ روستو دَ ذکر دَ عظمت دَ قرآن نه ذکر کوی مقصد دَ قرآن چه هغه دعوٰی دَ توحید فی العبادت ده سرهٔ دَ رد دَ شرک نه په ذکر دَ پنځه عقلی دلیلونو سره۔ بیا اثبات

د صدقِ رسول او قرآن دے په طریقه د دعوت ورکولو سره مناظرے ته او په طریقه د تحدی سره بیا ذکر د تخویف اخروی او بشارت دے جدا جدا فریقینو ته بیا جواب د هغه شبهے دے چه واردیږی په صدق د رسول او قرآن باندے په بیان د حکمت د مثال سره چه هغه افاده د تمیز د فریقینو او ترتب د اثارِ متفرقو دے، بیا ذکر د عیبونو د اعتراض کوؤنکو دے په قرآن باندے، بیا تذکیر دے په څلور انعاماتِ عامه سره د پاره د اثبات د توحید، اول انعام ژوند ورکول دی انسانانو ته، دویم د عالم څیزونه د دوی د فائدو د پاره دی، دریم استخلاف د آدم علیه السلام او هغه ته تعلیم د اسماؤ د څیزونو دے د پاره د فائدے اخستلو د څیزونو د زمکے نه، څلورم اکرام د آدم علیه السلام دے په سجود د ملائیکو او په تعلیم د طریقے د توبے او تعلیم د کیفیت د ژوند تیرولو سره په دنیا کښ۔

تفسیر:- په دے ایت کښ عام دعوت دے توحید فی العبادت ته او ذکر د یو دلیل عقلی انفسی دے چه احتیاج د انسانانو دے په خلق او وجود خپل کښ الله تعالیٰ ته۔ او د هغے فائده ئے ذکر کړیده په حصول د تقوی سره۔

یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ دا اسے خطاب په قرآن کریم کښ اتلس کرته راغلے دے دا دلیل دے چه دعوت د آخری نبی صلی الله علیه وسلم او د قرآن عام دے ټولے دنیا ته، په یو قوم پورے خاص نه دے د دے وجے نه یا قوم ئے د مخکنو انبیاء علیهم السلام پشان نه دے وئیلے۔ او په دے خطاب کښ ډیر تاکیدات دی، اول په حرف د یا سره چه د قریب او بعید دواړو د پاره استعمالیږی او مقصد په کښ توجه ده ټولو بندګانو ته د پاره د اهتمام د مسئلے د عبادت او د پاره د بیدارئ ورکولو د غفلت نه۔ دویم په اَیُّ سره، دا حرف یو وسیله ده د پاره د نداء هغه اسم ته چه معرّف وی په الف لام سره او په دے کښ ابهام او اجمال دے مخکښ د تفصیل نه د پاره د ډیر تاکید۔ دریم په هَا سره، دا د پاره د تنبیه ده۔ اَلنَّاسُ صحیح دا ده چه لفظ د النَّاسُ عام دے هغه خلقو ته چه موجود وُو په وخت د نزول د قرآن کښ او هغه چا ته چه روستو موجودیږی په طریقه د فرض کولو د معدوم پشان د موجود۔ او هغه قول چه د عقبه او حسن او ابن عباس رضی الله تعالیٰ عنهم نه روایت دے چه یٰۤاَیُّهَا النَّاسُ خاص دے په مکے والو پورے او یا ایها الذین امنوا خاص دے په مدینے والو پورے نو اول خو دا کسند په لحاظ سره صحیح روایت نه دے او دویم دا چه د قرآن د ظاهر نه

خلاف دے ځکه چه دا سورت او سورة النساء او سورة حجرات بالاتفاق مدنی سورتونه دی او حال دا دے چه په هغوی کښ خطاب په یا ایها الناس سره ذکر دے. او دریم دا چه که دا روایت صحیح ثابت شی نو تاویل ئے کړے شوید دے چه دا په طریقه د اول تمثیل سره دے نه په طریقه د تخصیص سره یعنی خطاب په دعوت د توحید سره چه کوم مخلوقته دے نو اول مصداق د هغے د مکے مشرکان دی او دارنګ اول مخاطب په احکامو شرعیو سره مدینے والا وو.

سوال:- هرکله چه دا خطاب عام شی نو مؤمنانوته خطاب په "اُعْبُدُوْا" سره تحصیل حاصل دے؟

جواب ۱:- مؤمنانو ته مقصد د خطاب دوام د عبادت دے او منافقانو ته مقصد اخلاص پیدا کول دی او مشرکانو ته مقصد د شرک ترک کول دی او نورو کافرانو ته مقصد عبادت شروع کول دی.

جواب ۲:- لفظ د النّاس اګرچه عام دے لیکن د وجے د قرینے د "فلا تجعلوا لله اندادا" او د معنی د شرعی د عبادت (چه توحید دے) په وجے سره دلته خطاب مختص دے په مشرکانو پورے او په هغے کښ یهودیان هم داخل دی چه په وخت د نزول د دے سورت کښ د مدینے په خواکښ موجود وو او شرک په کښ موجود وو.

اُعْبُدُوْا رَبَّكُمْ امر په عبادت د الله تعالی په قرآن کښ یو کم دیرش کرته دے او عبادت په اصطلاح کښ طاعت دے سره د خضوع نه چه دواړه په کمال مرتبه کښ وی او په شرع کښ طاعت د الله تعالی دے سره د خضوع او محبت نه د الله تعالی سره. او دا شامل دے ټولو اقسامو د عبادت ته که عبادت قلبیه وی او که بدنیه وی او که مالیه وی او قرطبی وئیلی دی چه مراد د دے نه توحید دے سره د شرائع د دین د الله تعالی نه نو په دے کښ توحید د الوهیت او اسماء او صفات او توحید فی التشریع ټول داخل دی. او توحید په دے کښ مراد دے د څو وجوهو نه اول دا چه د ابن عباس رضی الله تعالی عنهما نه روایت صاحب د معالم التنزیل او خازن او نسفی ټولو نقل کړے دے چه هر ځائے په قرآن کښ عبادت راغلے دے نو مراد د هغے نه توحید دے. دویم قرینه ده په دے باندے دا قول چه "فلا تجعلوا لله اندادا". دریمه وجه دا ده چه مشرکان خو د عبادت الٰهیه نه منکر نه دی د مشرکانو د ځانه

او مونځونه او روژې او حجونه او په مال کښ د الله تعالیٰ حصے ورکول وغیره ټول ثابت دی لیکن په هغوی کښ توحید نیشته د دے وجې نه دلته هم توحید مراد دے او نور تفصیل د دے په تفسیر د سورة فاتحه او تنشیط الاذهان کښ ذکر کړے شوے دے. رَبَّكُمُ تخصیص د دے وصف د څو وجوهونه دے. اول داچه موجِب (سبب) د عبادت خو ربوبیت دے. دویم داچه د توحید د عبودیت نه مخکښ توحید د ربوبیت ضروری دے. ګویا چه دا دَے جمله ده چه حکم او دلیل د هغې دا دواړه پکښ ذکر دی او تفصیل د ربوبیت په تفسیر د رب العالمین کښ ذکر شوید ے.

الَّذِيْ خَلَقَكُمْ دا صفتِ موضحه دے د ربکم د پاره او ذکر د صفت د حکم سره دلالت کوی چه دغه صفت علت او دلیل دے د پاره د هغه حکم. د دے وجې نه دا اول دلیل عقلی انفسی دے د اثبات د دعوے د پاره او دا دلیل د مشرکانو په نیز باندے مسلّم دے په دلیل د سورة زخرف ۸۷ سره. خَلَقَكُمْ، خلق په اصل لغت کښ صِرف تقدیر (اندازه کول او پوره کول) ته وئیلے شی او په عرف کښ په معنیٰ د ایجاد د څیز دے د عدم نه وجود ته. او قرآن کریم کښ په مختلف وجوهو سره ذکر شوید ے اول په معنیٰ د ایجاد لکه په دے سورت ۲۹ کښ او دا معنیٰ ډیره واقع ده. دویم په معنیٰ د تصویر (سورة آل عمران ۴۹ او سورة مؤمنون ۱۴) دریم په معنیٰ د افتراء چه په اقوالو کښ استعمالیږی (سورة عنکبوت ۱۷). څلورم په معنیٰ د دین (سورة نساء ۱۱۹ او سورة روم ۳۰) بنا په یو توجیه باندے. پنځم مصدر په معنیٰ د مفعول سره (سورة مؤمنون ۱۷). شپږم په معنیٰ د اعضاء مخلوقه (سورة یٰس ۶۸). اووم په معنیٰ د حصه او برخه" لفظ خلاق" (سورة بقره ۱۰۲)

**فائده:**- صفت د خلق الله تعالیٰ پورے خاص دے دا په صیغه د خالق سره په قرآن کښ اته کرته او خَلَّاق دوه کرته او اَحْسَنُ الْخَالِقِيْن دوه کرته ذکر دے. او دا صفت د غیر الله نه نفی دے په سورة اعراف ۱۹۱ او سورة نحل ۲۱ او سورة حج ۷۳ او سورة فرقان ۳ او سورة لقمان ۱۱ او سورة واقعه ۵۹ او سورة طور ۳۵ کښ.

وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ دا عطف دے په ضمیر مفعول کُمْ باندے او دا ئې ذکر کړے دے د ډیرو فائدو د پاره اوله فائده دا ده چه دا جواب د وهم دے که څوک وهم اوکړی چه معبودان (انس او جن) زمونږ خالق دی یا وهم اوکړی چه

فِرَاشًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءًص وَّاَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ

غوړېدلے او اسمان چت ، او راوروی دَ اسمان دَ طرف نه

مَآءً فَاَخْرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ج

اوبه، نو را اوویستې په هغې سره دَ میوو (راوغلو) نه دَ پاره دَ فائدے ستاسو

فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا وَّاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۲﴾

نو مه گرځئ الله تعالیٰ لره شریکان. او (حال داچه) تاسو پوهیږئ (چه دا کارونه الله تعالیٰ کوی)

پلاران اونیکونه زمونږ خالقان دی نو جواب اوشو چه هغوی هم مخلوق دی. بله فائده داچه دَ تیر شوؤ خلقو حالاتو دَ ژوندا او دَ مرګ کښې فکر اوکړئ. ابن جریر وائي چه وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ نه اٰباءِ واجدادا واٰلهه اوبتان دَ دوی مراد دی.

فائده:- امام رازی او بعض نورو مفسرینو په دے سره استدلال ذکر کړیدے په اثبات دَ وجود دَ الله تعالیٰ باندے حاصل دا دے چه هر کله دا دلالت کوی په توحید دَ الله تعالیٰ نو په اثبات دَ وجود دَ هغه باندے په طریقِ اولیٰ سره دلالت کوی. او دَ امام مالک او دَ امام ابوحنیفه او دَ امام شافعی او دَ امام احمد بن حنبل رحمهم الله نه په مختلف طریقو سره دلیلونه نقل کړے شویدی هغه کتل پکار دی او ابن کثیر هم په تفسیر کښې دا اقوال نقل کړیدی.

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ سوال:- لَعَلَّ دَ پاره دَ رِجاء (اُمید) راځی او الله تعالیٰ خو دَ رجا لرونه پاک دے؟ جواب ۱ قطرب او طبری او ابن منظور وئیلی دی چه لَعَلَّ په کلام دَ الله تعالیٰ کښې په معنی دَ کَیْ سره دے. جواب ۲ دا په مقام دَ حال کښې دے دَ فاعل دَ اُعْبُدُوْا نه یعنی بندګی دَ الله تعالیٰ کوئ په داسے حال کښې چه اُمید ساتئ دَ حصول دَ تقوٰی. او په دواړو توجیها تو سره دا متعلق دے په اُعْبُدُوْا پورے نه په خَلَقَكُمْ پورے. ځکه چه غایة دَ خلق تقوٰی نه ده بلکه غایة دَ خلق لیعبدون یا الجهتم دے او دا قول قرطبی ذکر کړے دے.

تَتَّقُوْنَ مراد دَ تقوٰی نه معنی لغوی ده یعنی وقایه (ذریعه دَ نجات) دَ عذاب نه دا قول قرطبی خازن وغیره غوره کړے دے یا مراد دَ دینه تقوٰی شرعی ده یعنی په توحید فی العبادت سره تقوٰی حاصلیږی یعنی تقوٰی اخری دَ درجاتو دَ عبادت کوؤنکو ده.

۲۲ په دے ایت کښې نور څلور دلیلونه عقلیه اٰفاقیه دی سفلی او علوی

او وسطی. او دا دلیلونه هم مشرکانو منلی دی لکه په سورة عنکبوت ۶۱ ۶۳ او سورة لقمان ۲۵ او سورة زخرف ۹ کښې.

اَلَّذِیْ جَعَلَ لَکُمُ الْاَرْضَ، جعل په معنی د خلق دے او فراشًا حال دے یا په معنی صیّر دے او فراشًا دویم مفعول دے. لفظ د لکم کښې اشاره ده چه دا د انسانانو د فائدے د پاره دی لکه چه په ۲۹ کښې راغلی - الارض په قرآن کښې مفرد ذکر شویده اگرچه عدد د زمکو هم اووه دی پښان د عدد د اسمانونو او د اتعداد د قرآن د سورة طلاق ۱۲ نه اشارةً او د احادیث صحیحه نه صراحةً معلوم دے لیکن تفصیل د کیفیت د هغے چه دا اووه زمکے پښان د اسمانونو د یو بل نه جدا جدا دی یا نه دا په حدیث صحیح سره ثابت نه ده د دے بعض تفصیل د سورة طلاق په تفسیر کښې دے فِرَاشًا په معنی د مفروشةً یا په معنی د کالفراش ده یعنی پښان د بستر غوړیدلے چه په هغے باندے ارام کیږی. یعنی دا زمکه نه ډیره سخته ده او نه ډیره نرمه ده پښان د بسترے او په دے کښې هغه حصه د زمکے مراد ده چه د اوبو نه ښکاره ده.

**سوال:** د زمکے څه حصه خوغرونه او سمندر دے نو هغه څنګه فراش دے؟

**جواب:** قرطبی وئیلی دی چه دغه د فراش د توابعونه دی ځکه چه غرونه د زمکے د پاره پښان د میخونو دی او د زمکے والو د پاره په هغے کښې ډیر منافع دی او سمندر د پاره د سفر کولو دے د زمکے د یوے حصے نه بلے حصے ته د پاره د منافعو د ژوندا او بذاتِ خود سمندر کښې هم ډیرے فائدے دی، نو دا هم په حکم د فراش کښې دی. او زمکه فراش کیدل هیڅ منافات نه لری د کرّه (غونډ منډ) کیدلو سره، کرّه دے وی او د فراش فائدے ترے نه هم اخستلے کیږی. د زمکے ګونډ منډ شکل کښې کیدل مسئله شرعیه نه ده د دے وجے نه قرآن او سنت د هغے وضاحت نه دے کړے که په عقلی دلیلونو سره ثابت شی نو انکار تری نه نشی کیدلے.

**فائده:** - قرآن کریم کښې د زمکے نهه حالات ذکر شویدی اول فراش په دے ایت کښې او په سورة ذاریات ۴۸ کښې. دویم ممدوده لکه په سورة رعد ۳ او سورة حجر ۱۹. دریم مَهدا پښان د غیږ د مور لکه په سورة طٰه ۵۳. څلورم قرار یعنی په ځائے ولاړه چه پریشان حرکت نه کوی سورة نمل ۶۱ پنځم بساطًا دا پښان د فراش دے (سورة نوح ۱۹). شپږم کفاتًا راجمع کوونکے

دَ مړو او ژوندو (سورة مرسلات ۲۵). اووم دَ حور غوړه ولے شوے (سورة نازعات ۳۰). اتم طحو (سورة والشمس ۶). نهم مستقر (سورة بقره ۳۶) او وصف دَ فراش دغه نور وصفا تو لره مستلزم او جامع دے دَ دے وجے نه په دے سورت کښ یې دا لفظ غوره کړو.

وَالسَّمَآءَ بِنَآءً بِنَاء مصدر مبنی للمفعول دے په معنی دَ مبنی (جوړ کړے شوے اٰبادی) که کوټه وی او که گنبد وی او که خیمه وی دلته مراد دَ دے نه سقف (چهت) دے دا روایت دے دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه او ابن جوزی نقل کړے دے او سورة انبیاء ۳۲ او سورة طور ۵ کښ دا سے ذکر دی او چهت ته بِنا په دے وجے سره وائی چه اٰبادی دَ کوټے په چهت باندے ده صرف دیوالونو ته بِنا نشی وئیلے. او دَ اٰسمان حالات په قرآن کښ شپږ ذکر دی اول بِناء لکه په دے اٰیت کښ او سورة مؤمن ۶۴ کښ. دویم سقف محفوظ (سورة انبیاء ۳۲). دریم امساك دَ هغے په امر دَ الله تعالیٰ سره (سورة حج ۶۵). څلورم بِناء دَ هغے په وسعت سره (سورة ذاریات ۴۷). پنځم رفع دَ هغے بغیر دَ عمد نه (سورة رعد ۲ او رحمان ۷). شپږم بِناء او رفع او تسویه (برابر والے) (سورة نازعات ۲۷). او دا دریم عقلی دلیل (علوی) دے.

وَاَنۡزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً دا څلورم دلیل عقلی وسطی دے. مَآءً اوبهٔ دَ باران مراد دی او نکره یې ذکر کړه ځکه چه ټولے اُوبه په یو ځل نه نازلیږی. اَنۡزَلَ کښ (فاعل الله تعالیٰ دے) اشاره ده چه اسباب پیدا کول او اسبابو کښ اثر اچول دا ټول دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دی.

فائده:- مَآءً په قرآن کښ اٰته قِسمه ذکر دی. اول ماء السماء لکه دا اٰیت. دویم ماء الارض (سورة هود ۴۴). دریم ماءُ البئر (سورة قصص ۲۳). څلورم مَآء دَ طهارت (سورة نساء ۴۳). پنځم مَاء الجنة (سورة اعراف ۵۰). شپږم مَآء چه سابق دی دَ پیدائیش دَ اٰسمانونو او زمکے نه (سورة هود ۷). اووم مَآء دَ جهنم (سورة کهف ۲۹). اتم مَآء النطفه (سورة فرقان ۵۴).

فَاَخۡرَجَ بِهٖ مِنَ الثَّمَرٰتِ دا پنځم دلیل عقلی (وسطی) دے. فَاَخۡرَجَ فاء دلالت کوی چه دَ باران نه روستو بوټی راویستل دی اګر چه اتصال پکښ مراد نه دے. بِهٖ دا ضمیر هغه اوبو ته راجع دے چه زمکے ته نازل شوے وی او دَ خاورو سره خلط شوے وی لکه چه اختلاط دَ اُوبو دَ نارینه او زنانه

اوشی اوډ هغې نه اولاد پیدا شي۔ مِنَ ډ پاره ډ تبعیض دے ځکه چه ټول ثمرات
په یو ځل نه را اوباسی۔ الثَّمَرٰتِ داسے په سورة ابراهیم ۳۲ او سورة فاطر ۲۷
کښ هم دی او مراد ټول قسمونه ډ ثمرات (امدانئ) دی ځکه لفظ ډ کل په
سورة اعراف ۵۷ او سورة رعد ۳ او سورة نحل ۱۱ او سورة قصص ۵۷ کښ
دے۔ ثمرة هر هغه څیز ته وئیلے شي چه ډ زمکے نه را اوځي ډ انسان یا ډ ځاروُ
ډ فائدے ډ پاره فواکه (میوؤ) پورے خاص نه دے۔ که بوټی وی اوکه معدنیات
وی او ډ هغې تفصیل په سورة عبس کښ ډ ۲۵ نه تر ۳۱ پورے ذکر دے او دا رنګ
سورة نحل ۷۷ او سورة فاطر ۲۷ کښ۔
رِزْقًا لَّكُمْ دا مفعول دے ډ اخرج ډ پاره او مراد ډ رزق نه دلته عامه معنی
ده یعنی انتفاعًا۔ که خوراک یا څښکاک یا لباس وی یا دواء او زینت وی ډ
سرو زرو او سپینو زرو نه یا آلات ډ کسبونو او جهاد وغیره چه ډ معدنیاتو نه
جوړیږی او دا انتفاع بالذات ستاسو وی یا په واسطه ډ دوابو ستاسو چه ډ
هغوی ډ پاره ګیاه وی او بیا تاسو ترینه فائدے اخلئ۔
فائده:۔ په دے دلیلونو کښ بهتر ترتیب دے اول ئے خلق ډ انسان ذکر
کړو ځکه دا خو ډ ټولو نعمتونو اصل دے او سبب دے ډ تمکن په عبادت
باندے۔ بیا ئے خلق او فائده ډ زمکے ذکر کړه چه مستقر ډ انسان دے بیا خلق
ډ آسمان او ډ هغې فائده ئے ذکر کړه چه پشان ډ چهت او آبادئ دے بیا ډ آسمان
او ډ زمکے داسے دوه نعمتونه ئے ذکر کړل چه ډ آسمان او زمکے ډ ازدواج نه
پیدا کیږی او ډ انسانانو ډ تربیت ډ پاره اصل مواد دی چه اوبه ډ باران
او ډ هغې نه چینے خوړونه کوهیان او سیندونه بهیږی او بوټی میوے چه
ډ هغه نه بے شماره فائدے حاصلیږی او دا داسے نعمتونه دی چه مشرکان
هم اقرار کوی چه دا په اختیار ډ الله تعالیٰ کښ دی" نو دا کامل دلیل دے ډ پاره
ډ اثبات ډ عبادت ډ الله تعالیٰ او ډ پاره ډ اثبات ډ توحید، ډ دے وجے نه په دے
باندے تفریع اوکړه په دغے قول سره۔
فَلَا تَجْعَلُوْا لِلّٰهِ اَنْدَادًا دلته جعل په معنی ډ اعتقاد دے او په معنی ډ جوړولو
په عمل کښ۔ انداد جمع ډ نِدٌّ ده او دا لفظ په قرآن کښ پنځه آیاتونو کښ
ذکر دے (سورة بقره ۱۶۵ سورة ابراهیم ۳۰ سورة سبا ۳۳ سورة زمر ۸
سورة حٰمٓ سجده ۹) نِدٌّ په اصل کښ هغه مساوی ته وئیلے شي چه

مخالف وی (دا قول د نسفی دے).
سوال:- دا نهی صرف د هغه معبودانو نیولونه ده چه برابر او مخالف وی د الله تعالیٰ سره او حال دا چه معبود مِن دون الله خو مطلقًا باطل دے که لوئے وی یا وړوکے یا برابر، یا دوست وی او که دشمن؟
جواب:- دلته لفظ د انداد په عامه معنیٰ سره دے یعنی شرکاء (شربینی) او ملا علی قاری هم شرح فقه اکبر کښ وئیلی دی شُرَكَاءَ سَوَاءٌ كَانَ مِنَ الْاَصْنَامِ اَوِالْاَنَامِ (شریکان برابره خبره ده که بتان دی او که انسانان دی) او ابن جریر هم وئیلی دی هغه شرکاء چه نفع او ضرر نشی ورکولے او هغه رجال چه دوی یې اطاعت کوی په خلاف د الله تعالیٰ کښ نو دا تقلید د احبار او رهبان ته هم شامل شو چه کله اطاعت د هغوی په معصیت کښ د الله تعالیٰ کښ کوی
سوال:- مشرکانو چه همیشه شرک کړے دے نو خپل شرکاء یې د الله تعالیٰ نه بشکته ګڼړلی دی د هغه سره برابر او د هغه مخالف یې نه دی ګڼړلی نو ولے یې ورته لفظ انداد استعمال کړے دے؟
جواب:- دا په طریقه د الزام سره دے په مشرکانو یعنی هغوی اګرچه خپل معبودان د الله تعالیٰ سره برابر او مخالف نه ګڼړی لیکن هغوی لره هغه عبادتونه کوی کوم چه د الله تعالیٰ حق دے لکه سجده، دُعا او نذر وغیره او بعضِ هغه صفتونه ورکوی کوم چه په الله تعالیٰ پورے خاص دی لکه مشکل کشا، فریاد رسی، داتا او ګنج بخش وغیره او د هغوی داسے اطاعت کوی لکه اطاعت د الله تعالیٰ، نو داسے شوه لکه چه دوی هغه د الله تعالیٰ سره برابر کړی دی او په دے حال باندے به مشرکان هم اقرار کوی په ورځ د قیامت لکه په سورة شعراء ۹۸ کښ دی.
فائده:- د مشرکینو په معبودانو باندے په قرآن کریم کښ انداد، اصنام، اوثان، تماثیل او شرکاء وغیره اطلاقات کړے شویدی نو لفظ د انداد د دے ټولو نه عام دے بلکه شرک د یهود او نصاری ته هم شامل د چه هغوی د احبار او رهبان تقلید شرکی کوؤ او دا سورت خو اصل کښ د بنی اسرائیلو په رد کښ نازل شویدے د دے وجے نه داسے لفظ یې ذکر کړو چه جامع او عام دے ټولو نه. او د بنی اسرائیلو اصلاح ورسره اوشی.
سوال:- د الله تعالیٰ د پاره خو یو نِدّ هم نیشته نو دلته یې ولے منع د جمعِ (انداد)

وَاِنْ كُنْتُمْ فِىْ رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلٰى عَبْدِنَا

اوکه چرې يئ تاسو په شک کښې دهغې نه چه (لږلږ) نازل کړې مونږ په بنده خپل باندې

فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ ۖ وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ

نو راوړئ يو سورت پشان ددې قرآن، او راوغواړئ مددګاران خپل

مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۲۳﴾

سيوا دَ الله تعالىٰ نه که تاسو رښتينې يئ (په خپله دعوىٰ کښې).

نه ذکر کړې دهٔ؟ - **جواب**:- دا په اعتبار دَ واقع دَ حال سره ځکه چه خلقو الله تعالىٰ لره بې شماره انداد جوړ کړې دي او حال دا چه دَ هغه يو نِدّ هم نيشته نو ډير به څنګه وي.

وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ **سوال**:- الله تعالىٰ خو په ډيرا ايا تونو کښې مشرکانو ته بې عقله او بې علمه او جاهلان وئيلي دي او ختم او صمٌّ او عمى يئ ذکر کړيدي نو دلته يئ ورله څنګه علم ثابت کړې دې؟-

**جواب**:- قرطبى وئيلي دي چه دلته اثبات دَ علم خاص دې يعنى په دې خبره عالم دي چه الله تعالىٰ خالق دې رازق دې ليکن دَ شرک کولو دَ وجې نه بې علمه دي او ابن فورك وئيلي دي چه احتمال شته چه مخاطب په دې سره مؤمنان وي يعنى دَ ايمان نه روستو مرتد نه شئ ځکه چه تاسو خو علم والا يئ - تَعْلَمُوْنَ په دې کښې دوه احتمالونه دي اول دا چه په دې کښې معنى فعلى وي او مفعول يئ پټ وي يعنى تَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ خَلَقَكُمْ وَرَزَقَكُمْ يا تَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ لَيْسَ لَهٗ اَنْدَادٌ - دويم دا چه دلته صرف معنى مصدرى مراد وي يعنى اِنَّكُمْ اَهْلُ عِلْمٍ او دا قيد دَ پاره دَ مزيد تقبيح دې چه سرهٔ دَ علم نه ولې شرک کوئ-

۲۳ په دې ايت کښې روستو دَ اثبات دَ توحيد نه اثبات دَ صدق دَ رسول او دَ قرآن دې چه مشتمل دې په مسئله دَ توحيد باندې. دا رنګ مخکښې اثبات دَ توحيد وؤ په دليلونو سره نو اوس اثبات دې په نفى دَ شبهاتو سره. او اثبات دَ صدق په طريقه دَ تحدى سره دې لکه چه اکثر مفسرينو وئيلي دي يا په طريقه دَ دعوت دَ مناظره سره لکه چه سمرقندى دېته اشاره کړيده

او فرق په مینځ د دواړو کښ دا دے چه تحدی کښ صرف طلب د مثل د قرآن دے د پاره د اثبات د دے خبرے چه دا قرآن د الله تعالیٰ د طرف نه نه دے اوبیا په دے باندے خطاب دے تولو عربو ته اولا چه فصحاء بلغاء خطیبان وُو او یهود او نصارٰی پکښ هم داخل دی تبعًا. او مناظره کښ طلب د دلیل د پاره دا اثبات د شرک فی العبادت مقصد دے لیکن دا سے دلیل چه منزّل وی پشان د قرآن. او دا دویم قول زما په نیز باندے غوره دے د څو وجونه اول داچه په دے سورت کښ اصل دعوت یهودیانو (بنی اسرائیلو) ته دے لکه چه ابن جوزی زاد المسیر کښ وئیلی دی چه دا ایت په باره د رد د یهودیانو کښ نازل شویدے. او هغوی اهل علم وُو او د اهل علم نه طلب د مناظرے کیږی په وخت د انکار کښ. دویمه وجه دا ده چه د دے ایت نهج د نورو ایاتونو د تحدی نه په ډیرو طریقو سره جدا دے. یو طریقه داچه دا مصدر دے په "اِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ" سره دویمه داچه په دے کښ مِنْ مثله راغلے دے او په نورو کښ مِنْ نیشته. دریم داچه په دے کښ ذکر د شهدا دے چه په معنی د حق پرست علماؤ سره دے په یو توجیه باندے. څلورم داچه اصل ریب د مخالفینو د قرآن په مسئله د توحید کښ دے لکه روستو به ثابت کړے شی نو د هغے ریب د زائیل کولو د پاره دعوت د مناظرے مناسب دے.

وَاِنْ كُنْتُمْ فِيْ رَيْبٍ وَاؤ د عطف يے د دے د پاره راوړو چه ماقبل مضمون او مابعد کښ مناسبت شته دے چه اصل مقصد په روستنی مضمون کښ هم تاکید د اثبات د توحید دے.

اِنْ سوال:- اِنْ خو د شک په ځائے کښ استعمالیږی او وجود د ریب د مخالفینو خو یقینی وو؟

جواب:- اِنْ د زورنے په ځائے کښ هم استعمالیږی لکه یو انسان خپل ځوئی ته اووائي اِنْ كُنْتَ اِبْنِيْ فَاطِعْنِيْ وَلَا تَعْصِنِيْ (که ته زما ځوئے یے نو زما اطاعت کوه او زما نافرمانی مه کوه) یا اِنْ په معنی د اِذْ سره دے لکه په دے سورت ۲۷۸ کښ دی یا اشاره ده چه ریب د مخالفینو اگرچه محققّ وُو لیکن هغه ریب بے دلیله دے نو وجود یے په منزله د ضعف کښ دے.

فِيْ رَيْبٍ مخکښ په تفسیر د ریب کښ معلوم شویده چه په قرآن کښ ارتیاب اکثر په صفت د منافقانو کښ راغلے دے او په صفت د مشرکانو امیانو کښ لفظ

د شک راغلے د او بیا ئے تاکید شویدے په مریب سره- نو دا هم دلیل دے چه په دے کښ خطاب دے یهودیانو منافقانو ته-
مِمَّا نَزَّلْنَا، مِن اجلیه دے یعنی تنزیل په دے بشر چه عبد دے سبب د ریب د دوی دے- مشرکانو امیانو خو بشر نبی نه منلو او یهودیانو خاص نبی د عربو نه منلو- او زمخشری وئیلی دی چه باب تفعیل د نزّلنا دلیل دے په لږ لږ نازلیدلو باندے نو دا لږ لږ نازلیدل سبب دے د پاره د ریب ځکه چه دوی (مشرکانو او یهودیانو دواړو) مطالبه کوله چه په هیڅ دے په یو ځل سره نازل شی لکه په سورة فرقان ۳۲ او سورة نساء ۱۵۳ کښ دی.
عَلٰی عَبْدِنَا، عَلٰی ئے د دے وجے نه ذکر کړو چه اول نزول د وحی په نبی باندے وی د اوچت طرف نه او روستو بیا نورو خلقوته ور رسیږی.
عَبْدِنَا دا صفت د نبی صلی الله علیه وسلم په مقام د انزال د وحی کښ په سورة انفال ۴۱ سورة کهف ۱ او سورة فرقان ۱ او سورة نجم ۱۰ او سورة حدید ۹ کښ ذکر دے او په مقام د دعوت کښ په سورة جن ۱۹ او په مقام د اسراء کښ په سورة اسراء ۱ او په مقام د کفایت د الله تعالیٰ کښ په سورة زمر ۳۶ او په مقام د صلوٰة کښ په سورة اقراء ۱۰ کښ ذکر دے- او هر ځائے سره د وصف د عبدیت مناسبت شته دے- او دا اضافت الله تعالیٰ ته د زیادتِ شرافت په وجه سره دے- او په دے ایت کښ وجه د مناسبت دا ده چه مخکښ مسئله د اعبدوا ذکر شویده او دا نبی په دے قرآن سره عمل او دعوت کوی په اعبدوا سره نو ځکه ئے په عبد سره ذکر کړو-
مِمَّا نَزَّلْنَا عَلٰی عَبْدِنَا په ظاهر کښ دلالت کوی چه ریب د مخالفینو په ټول قرآن کښ دے لکه چه په سورة یونس ۳۸ او سورة هود ۱۳ او سورة الم سجده ۳ کښ دی- لیکن په حقیقت کښ ریب د دوی صرف په مسئله د توحید کښ ئے په دلیل د سورة یونس ۱۵، وجه دا ده چه په دے ایت کښ دوی اول طلب د تغییر د قرآن کړے دے نو بیا ئے طلب د تبدیل کړے دے مطلب دا دے چه ټول قرآن نه شے بدلولے نو صِرف بعضِ مسئلے تریته لرے کړه او هغه مسئله د توحید ده په دلیل د سورة اسراء ۴۶ سره نو معلومه شوه چه ریب او جګړه په مسئله د توحید کښ ده-
فَأْتُوا بِسُورَةٍ دا امر د پاره د تعجیز دے (عاجز کول)- بِسُورَةٍ دا لفظ مهموز

اوغیر مهموز دواړه احتمالونه لري. نو چه مهموز شي نو د سؤر نه دے بقیه ټکړه او جوته ته وئیلے شي نو دا رنګ سورت په قرآن کښ د یو خاص ټکړے نوم وی او چه مهموز نه وی نو په هغے کښ هم دوه احتمالونه دی اول دا چه سورت او چتوالی او شرافت د مرتبے ته وئیلے شي نو په سورت د قرآن سره رفعت او شرافت حاصلیږی دا رنګ هر سورت په اوچت مضمون باندے مشتمل دے. دویم دا چه د سور البَلَد (د ښار نه چاپیره دیوال) نه ماخوذ دے نو سورت د قرآن هم احاطه کړے وی په خاص مضامینو د قرآن باندے. لفظ سورة په قرآن کښ نهه کرته او جمع د دے یو کرته راغلے ده. او سورت په اصطلاح د قرآن کښ هغه ټکړه د قرآن ده چه ابتداء او انتهاء لری او مشتمل وی کم از کم په درے ایاتونو باندے او مسمّٰی وی په خاص نوم سره.

مِنْ مِّثْلِهٖ دا صفت د سورت دے او من بیانیه دے او ضمیر راجع دے ما نَزَّلْنَا ته یعنی داسے سورت چه مماثل وی د قرآن سره. یا مِن تبعیضیه دے یعنی داسے سورت چه بعض وی د مماثل د قرآن نه یعنی داسے کتاب چه د قرآن سره مماثل وی نو د هغے نه یو سورت راوړئ. بِنا په اوله توجیه مقصد د دے تحدی او اعجاز دے یعنی د قرآن په مثل یو سورت راوړئ او مراد د مماثلت نه مشابهت دے په فصاحت، بلاغت، خائسته ترتیب او کمالِ صدق کښ او کمالِ هدایت کښ. او بِنا په دویمه توجیه (چه مِن تبعیضیه شی) اشاره ده مناظرے ته یعنی په دلیل د اثبات د شرک خپل کښ د هغه کتاب نه چه مماثل د قرآن دے په نزول مِن الله کښ چه تورات او انجیل دے یو سورت راوړئ چه دلالت اوکړی په اثبات د شرک کولو ستاسو باندے. او تورات ته مثل د قرآن وئیلے شوی دے په سورة احقاف ۱۰ کښ او قرآن کښ همیشه د مخالفینو نه مطالبه د دلیل منزّله کړے شوے ده ځکه چه غیرِ منزّل خو دلیل نشی کیدے خصوصًا په مسائیلو د ایمان کښ لکه چه په سورة سبا ۴۴ او سورة فاطر ۴۰ او سورة قصص ۴۹ کښ دی، نو دے ته دعوت د مناظرے وئیلے شي.

بل احتمال په ضمیر د مثله کښ دا دے چه عبد ته راجع دے او من مِثله متعلق دے په فَاْتُوْا پورے او مِن د پاره د ابتداء د غایے دے یعنی د دے بنده پشان بل شخص اوګورئ چه امی وی او د کتابونو نه خبر نه وی او داسے رشتینی او بلیغ فصیح کلام ئے راوړے وی نو د هغه شخص نه سورت راوړئ

لیکن دا احتمال مفسرینو په ډیرو وجوهو سره ضعیف کړے دے اول دا چه دا نقصان دے په طلب د مقابله کښ چه د خاص شخص چه په صفاتِ مخصوصه سره متصف وی صِرف د هغه نه طلب د مقابلے کوی او حال دا چه طلبِ مقابلے خو عام پکار دے د اثبات د عجز د پاره. دویم دا موافق نه دے د سورة یونس نمبر ۳۸ سره چه هلته ضمیر صرف قرآن ته راجع دے. دریم دا چه بحث په اعجاز د منزّل کښ دے نه دے په اعجاز د شخص کښ.

هاں هر کله چه مقصد د آیت اثباتِ مناظره وی نو بیا دا احتمال هم صحیح دے ځکه چه مقصد دا دے چه سورت په دلیل کښ د هغه شخص نه راوړئ چه د هغه نبوت او رسالت ثابت وی د بل چا قول په دے مقام کښ دلیل نشی کیدلے. وَادْعُوْا شُهَدَآءَكُمْ، د توسیع د میدان د مقابلے د پاره دا جمله ده.

ابن جوزی وئیلی دی چه په شهداء لفظ کښ درے اقوال دی اول دا چه مراد د دے نه د دوی اٰلِهَه دی ځکه چه دوی هغه حاظر ناظر یا مددګاران ګنړل یعنی شُهَدَآءَكُمْ فِيْ زَعْمِكُمْ او اُدْعُوْا په معنی د دعاءُ الحاجت دے یعنی رامدد شه ورته اووایئ. او لفظ مِن دون الله هم د دے احتمال تائید کوی ځکه چه دا لفظ په قرآن کښ اکثر د اِلٰه سره ذکر کیږی. دویم قول شهداء په معنی د اَعْوَانَكُمْ دے یعنی عام مددګاران ستاسو او مراد تری نه د دوی علماء دی ځکه چه دا مقابله خو د اهلِ علمو کار دے او د دے پشان په سورة انعام نمبر ۱۵۰ کښ هم دی دریم قول، شهداء شهادت ورکوونکی چه شهادت اوکړی چه ستاسو راوړے شوے سورت پشان د قرآن دے یعنی فصحاء، بلغاء او خطیبان ځکه چه هغوی (اګرچه کافر وی) خو د خپل شرم د وجے داسے شهادت نشی ورکولے چه یو مرذول (بے کاره) کلام دِے د ډیر فصیح بلیغ کلام سره مشابه کړی. او اُدْعُوْا په ټولو توجیهاتو کښ په معنی د استعینو او استغیثوا دے خو په اوله معنی کښ استعانت شرکی دے او په دویم او دریم کښ استعانت عادتی دے

فائده:- ماده د دعاء په قرآن کښ دوه سوه یوولس کرته راغلے ده او په ډیرو وجوهو سره ده اول په معنی د دعاءِ حاجت ده (غوښتل) چه د دعاءِ عبادت ورته هم وئیلے شی (سورة اعراف ۵۵ سورة مؤمن نمبر ۶۰). دویم په معنی د نداء کول (سورة بقره نمبر ۲۶). دریم ترغیب خیر ته (تبلیغ کول) (سورة حم سجده ۳۳) څلورم دعوت د شر (سورة یوسف نمبر ۳۳). پنځم فریاد و نه کول (سورة اعراف ۵)

شپږم عبادت او طاعت (سورۃ نساء ۱۱۷). اووم دعوت الطعام (سورۃ احزاب ۵۳).
شُهَدَآءَكُمْ د شهادت نه ماخوذ دے او ماده د شهادت په قرآن کښې په ډیرو معانو سره ذکر ده. اول په معنی د حضور او د لیدلو (سورۃ بقره ۱۸۵)، دویم شهادت د الله تعالیٰ یعنی فیصله کول (سورۃ آلعمران ۱۸)، دریم حکم کول (سورۃ یوسف ۲۶)، څلورم شهادت د اندامونو په ورځ د قیامت (حم سجدۃ ۲۰) پنځم اقرار کول (سورۃ انعام ۱۳۰)، شپږم شهادتِ شرعیه (د صداق د رسول) (سورۃ آلعمران ۸۶)، اووم ګواهي کول د قاضي په مخکښې (سورۃ نساء ۱۵)، اتم په معنی د علم (سورۃ بقره ۸۴)، نهم خبر ورکول (سورۃ توبه ۱۷)، لسم شهادت د ملائکو په دنیا کښې (سورۃ نساء ۱۶۶)، یوولسم قسم کول (سورۃ بقره ۲۰۴)، دولسم تائید کول (سورۃ هود ۱۷)، دیارلسم بیان کول د توحید (سورۃ احزاب ۴۵)، څوارلسم توجه او حضور د زړه (سورۃ ق ۳۷)، پنځلسم شهادت د نبي او امت په ورځ د قیامت (سورۃ بقره ۱۴۳)، شپاړسم وصیت کول (سورۃ مائدہ ۱۰۶) اوولسم شهید کیدل فی سبیل الله (سورۃ آلعمران ۱۴۰)، اتلسم حاضر څیز ونه (سورۃ انعام ۷۳)، نوولسم کلمات د شهادات د توحید او رسالت (سورۃ معارج ۳۳) شلم مدد کول لکه په دے ایت کښې په یو توجیه باندے.
مِنْ دُوْنِ اللهِ، دون په اصل کښې کوز (ښکته) ته وئیلے شي لکه په حدیث معراج کښې راغلي دي "دابةٍ دُوْنَ الْبَغْلِ وَفَوْقَ الْحِمَارِ". او په قرآن کښې په مختلف وجوهو سره مستعمل دے اول په معنی د تجاوز کول د یو څیز نه (سورۃ آلعمران ۲۸) او دویم په معنی د ادنیٰ (سورۃ نساء ۴۸) او دریم په معنی د قریب (سورۃ فتح ۲۷) او څلورم په معنی د قبل سره (الم سجده ۲۱) او پنځم په معنی د غیر او سِوىٰ (سورۃ بقره ۹۴) او په دے ایت کښې او هر هغه ځائے کښې چه اضافت ئے الله تعالیٰ ته کړے شوے دے اخري معنی مراد ده.
سوال:- په دا سے ځایونو کښې ئے غیر او سوىٰ الله ولے نه وئیلو په ځائے د مِن دون الله باندے؟
جواب:- مشرکانو په اصل کښې خپل معبودان د الله تعالیٰ سره برابر نه دي ګڼړلي بلکه د هغه نه ئے ښکته او کوز ګڼړلي دي د دے وجے نه دا لفظ ئے استعمال کړے دے.
اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ. متعلق د دے پټ دے یعنی رشتیني په دعوی د معارضه

فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا وَلَن تَفْعَلُوا فَاتَّقُوا النَّارَ

پس که چرے اونه کړئ تاسو دا کار، او چرے یئے نه شئ کولے نوځان بچ کړئ (په قبلولو د توحید سره) د اور نه

الَّتِي وَقُودُهَا النَّاسُ وَالْحِجَارَةُ ۖ أُعِدَّتْ

هغه اور چه خشاک د هغے خلق (مشرکان) دی او کنټے دی۔ تیار کړے شوے دے

لِلْكَافِرِينَ ﴿٢٤﴾ وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ

د پاره د کافرانو۔ او زیرے ورکړه هغه کسانو ته چه ایمان ئے راوړے دے او عملونه ئے کړی دی په طریقه د پیغمبر

او مقابله کولو کښ لکه دا قول د دوی لَوْ نَشَاءُ لَقُلْنَا مِثْلَ هٰذَا (سورة انفال ۳۱).
یا رشتینی په دعوی د اثبات د شرک کښ یا رشتینی په دے خبره کښ چه دا شهداء
آلِهَه دی. او دا پشان د (سورة بقره ۱۱۱) دے په باب د مناظره کښ. او د دے شرط
جزا پټه ده چه ماقبل په هغے باندے دلالت کوی (فَأْتُوا بِسُورَةٍ او اُدْعُوا).
صٰدِقِیْنَ د صدق نه دے مقابل د کذب راځی او دا ماده په قرآن کښ یو سل پنځه
پنځوس کرته ذکر ده او په ډیرو معانو سره دے اول مقابل د کذب دے لکه په
دے ایت کښ (یعنی موافقت د خبرے یا عمل د واقع سره) دویم په معنی د صواب
(صحیح) مقابل د خطا سره (سورة بقره ۳۱) دریم په معنی د وفا کولو سره (سورة
احزاب ۲۳) او څلورم صفت د مبوّء او مکان (سورة یونس ۹۳ سورة قمر ۵۵)
مراد ترینه مکان د امن او عافیت دے او پنځم صفت د قدم (سورة یونس ۲)
(پوره ثواب) او شپږم صفت د مدخل او مخرج (سورة اسراء ۸۰) یعنی دخول
او خروج چه د پاره د الله تعالیٰ وی. او وم صفت د لسان (سورة شعراء ۸۴)
مراد د دے نیک ذکر دے. او اتم صفت د وعد دے (سورة احقاف ۱۶) یعنی پوره
کیدونکے وعده.
فائده:- هر کله چه دا ایت د پاره د تحدی او اظهار د عجز شی نو پشان د سورة
یونس ۳۸ او سورة هود ۱۳ او سورة طور ۳۴ او سورة اسراء ۸۸ به وی
خو په دغه ایاتونو کښ خطابات وړمکے والو (مشرکانو عوامو ) ته او په
دے ایت کښ اول خطاب دے یهودیانو ته او بیا نورو خلقو ته.
۲۴ په دے کښ تخویف اخروی دے منکرینو ته سره د اخبار د اعجاز د قرآن نه
فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا، فا د پاره د تعقیب ده یعنی روستو د دعوت د مقابلے نه خو مقابله

کول ضروری دی خصوصاً هغه خلق چه په ضد او عناد کښ انتهاء ته رسیدلی وی
هغوی خو د چیلنج سره میدان د مقابلے د حق ته راوُځی نو چه دا سے کار اونه کړی
یعنی را تلل په مثل د قرآن سره اونکړی یا دلیل وحی په شرک باندے پیش
نه کړی نو عاجز به وی۔
سوال:۔ اِنۡ او لَمۡ دوه حرفونه عمل کوُنکی په عمل متضاد سره په یو
معمول باندے څنګه داخلیدلے شی؟
جواب:۔ لَمۡ عمل کړے دے په تفعلوا کښ اِنۡ عمل نه دے کړے اوراِنۡ
داخل دے په مجموعه لم تفعلوا باندے حاصل ئے دا دے وَاِنۡ تَرَكۡتُمُ الۡفِعۡلَ۔
او تعبیر ئے په فعل سره اوکړو چه شامل شی اتیان بالمثل ته (را وړلو پشان د دے)
او دعوت د شهداء ته په طریقه د اختصار سره۔
وَلَنۡ تَفۡعَلُوۡا دا په مینځ د شرط او جزاء کښ جمله معترضه ده د پاره د اخبار د اعجاز
او مستقل اعجاز دے سیوا د تحدی نه ځکه چه سره د کثرت د عناد یا نو او مقابله
کوُنکو نه په طریقه د تاکید د مستقبل سره نفی کړ دے فعل ښکاره دلیل دے
چه قرآن معجز دے او خبر د توحید بالکل یقینی دے او دا جمله معترضه ئے
د پاره د دفع د هغه وهم راوړے ده کوم وهم چه د لفظ د اِنۡ نه پیدا شویدے
ځکه حی د لفظ اِنۡ نه شک پیدا کیږی د مقابلے کولو نو په لن تفعلوا سره ئے هغه
شک زائل کړو۔
فَاتَّقُوا النَّارَ، دا جزاء ده د اِنۡ لَمۡ تَفۡعَلُوۡا د پاره۔ سوال:۔ د شرط او جزاء په
مینځ کښ مناسبت ضروری دے نو دلته د مقابلے نه کولو او د اُورنه د بچ کیدلو
په مینځ کښ څه مناسبت دے؟۔
جواب:۔ جزاء په اصل کښ پټه ده چه هغه فَاعۡبُدُوۡا رَبَّكُمۡ وَاٰمِنُوۡا بِالرَّسُوۡلِ
وَالۡقُرۡاٰنِ ده (بندګی خپل رب د پاره خاص کړئ او ایمان په رسول او په قرآن
باندے راوړئ) او دا سبب دے د پاره د بچ کیدلو د اُورنه. نو سبب ئے حذف
کړو او مسبب ئے د هغے په ځائے باندے ذکر کړو نو اصل دا سے دے فَاتَّقُوا النَّارَ
بِسَبَبِ التَّوۡحِيۡدِ وَالۡاِيۡمَانِ بِالرَّسُوۡلِ۔
الَّتِىۡ وَقُوۡدُهَا النَّاسُ وَالۡحِجَارَةُ دا توصیف د اُور د جهنم دے د پاره د زیات
هیبت ورکولو۔ وَقُوۡد په زور د واؤ سره هغه څیز دے چه په هغے سره اُور
بلیږی لکه خشاک۔ او په پیخ د واؤ سره مصدر دے (بلیدل او بلول)۔

النَّاسُ الف لام عهدی دی یعنی هغه خلق چې توحید او رسالت نه منکر دی په دلیل دَ روستنۍ جملې سره او په دلیل دَ سورة آلعمران ښلا او نور هم ډیرایاتونه دی۔ وَالْحِجَارَةُ په دے کښې درے اقوال دی اول دا چه مراد دَ دے نه کنړے دَ کبریت (ګوګړو) دی او په روایت دَ ابن عباس او ابن مسعود رضی الله عنهم سره صحیح ثابت دی او دَ هغے دَ تخصیص وجے شپږ دی سختهٔ ګرمی ورکوونکے، سختے لمبے کوونکے، زر بلیدونکے، بدبوئی کول، ډیر لوګے کول او سخت جوختیدل په بدن پورے۔ بنا په دے توجیه باندے به الناس په طور دَ عذاب سره سوزیږی او الحجاره په طور دَ خشاک سره نو الناس ته یې وَقُوْدُ او ئیل په طور دَ مبالغے سره یعنی خلق به پشان دَ خشاک سوزیږی۔ دویم قول، مراد دَ حجارة نه هغه کنړے دی چه دَ هغے عبادت په دنیا کښې کړے شوے په طور دَ بت سره یا متبرک کنړه په تبرک شرکی سره یا هغے کنړے چه دَ معبودانِ باطله په قبرونو باندے لګولے یا کیخودلے شوے وی او دا قول ابن جوزی دَ ربیع بن انس نه نقل کړے دے او دلیل دَ دے په سورة انبیاء ۹۸ کښې دے کله چه مراد شی دَ ماتعبدون نه هغه کنړے چه دَ هغے عبادت کړے شوے، او که چرے مراد شی په دے سره ناکاره معبودان انسانان نو هغه په النَّاس کښې داخل دی۔ او دا کنړے به (چه معبود ګرځولے شوے وی) په اُور کښې دَ توهین او تذلیل دَ مشرکانو دَ پاره غورزوی او په دے باندے اطلاق دَ وقود هم په طریقه دَ الناس سره دے دریم قول دا دے چه مراد دَ دے نه عام کنړے دی او دا خصوصیت دے دَ اُور دَ جهنم ځکه چه دَ دنیا په اُور کښې هره کنړه نه سوزی۔

سوال:- په اُور کښې خو به پیریان هم سوزی په دلیل دَ سورة هود ۱۱۹ سره نو حصر یې په الناس والحجاره کښې په څه وجه اوکړو؟۔

جواب:- دَ قرآن په مکلف کولو کښې پیریان تابع دَ انسانانو دی دَ دے وجے نه په اکثر مواضعو کښې دَ هغوی ذکر نشته نه خو مراد دی، دلته هم دَ الناس تخصیص په وجه دَ یا ایها النَّاس اعبدوا سره شوے دے نو دا حصر حقیقی نه دے۔

سوال:- دا سے ایت په سورة تحریم ۶ کښې هم شته لیکن فرق دا دے چه دلته یې النار معرفه ذکر کړے ده او صفت دَ هغے یې په موصول صله سره ذکر کړے دے او اُعِدَّتْ یې ذکر کړے دے او په سورة تحریم کښې نار نکره ده او په صفت کښې موصول صله نشته او اُعِدَّتْ یې هم نه دے ذکر

کړې، وجه دَ فرق څۀ ده؟-
جواب:- معرفه دلالت کوي په کمال باندې او نکره دلالت کوي په بعضيت باندې (لکه نکره یا لږ وخت) نو په سورة تحريم کښې بحث دَ مؤمنانو دې او دَ مؤمن گناهګار دَ پاره په وخت دَ عدم مغفرت کښې يو حصه دَ اور ده يعنې تول عمر نه دې او په دې سورت کښې بحث دَ کافرانو دې او دَ کافرانو دَ پاره پوره اور دې دَ دې وجې نه په هغه آيت کښې نکره او په دې آيت کښې يې معرفه ذکر کړې ده او هر کله چه په سورة تحريم کښې نَارًا نکره ده نو صفت يې جمله نکره ذکر شوه او چه دلته النَّار معرفه ده نو دَ هغې صفت يې په موصول صله سره معرفه ذکر کړې دې-
أُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ، هر کله چه سوال پيدا شو چه هغه اور چه په دغه صفت سره موصوف شو دَ چا دَ پاره دې نو په دې جمله مستانفه سره دَ هغې جواب اُوشو أُعِدَّتْ دَ اِعداد نه ماخوذ دې تيار ولو ته ويلې شي او صيغه دَ فعل ماضي دليل دې چه جهنم دَ مخکښې نه پيدا کړې شوې او موجود دې او ډيرآيا تونه او صحيح احاديث په دې کښې راغلي دي. او اِعداد دَ نار جهنم په قرآن کښې يوولس کرته ذکر دې او په صيغه دَ أَعْتَدْنَا سره هم يوولس کرته ذکر دې-
لِلْكٰفِرِيْنَ دا سې په سورة آل عمران ١٣١ کښې هم دي. او په لفظ دَ اعداد کښې ډيره مبالغه ده په نسبت دَ اعتاد، دَ دوه وجونه اول وجه دا ده چه اعداد مضاعف دې او تضعيف دلالت کوي په شدت باندې دويمه وجه دا ده چه اعداد په اصل کښې جَعْلُ الشَّيْءِ عُدَّةً (يو څيز تيار ساتل په طريقه دَ سامان چه په وخت دَ ضرورت کښې پکار يږي)-
سوال:- تخصيص دَ کافرين په حرف دَ لام سره دلالت کوي چه مؤمنان خلق به اور ته نه داخليږي په سبب دَ گناه کولو نو دا په يو اعتبار سره دليل دې دَ مرجئو دَ پاره چه گناه دَ ايمان سره انسان ته هيڅ نقصان نه ورکوي او په بل اعتبار سره دليل دې دَ پاره دَ خوارجو يعنې مؤمن به دَ گناه دَ وجې نه اور دَ جهنم ته دَ دې وجې داخليږي چه دې کافر شو په سبب دَ گناه کولو؟-
جواب:- معنی دَ اعداد او اعتاد غير ده دَ داخليدلو نه يعنې اِعداد دلالت کوي په هميشوالي باندې او مؤمن گناهګار خو په اور کښې هميشه نه وي. او دَ دې وجې نه اعداد او اعتاد چه په کوم آياتونو کښې ذکر دې نو هلته دَ کافرانو تخصيص کړې.

اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ؕ

چه یقینًا دوی لره باغونه دی چه بهیږی لاندے د (ونو) د هغے نه نهرونه ۔

کُلَّمَا رُزِقُوْا مِنْهَا مِنْ ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوْا

هر وخت چه ورته کړے شی دوی ته د هغے نه څه میوه د پاره د خوراک، دوی به وائی

هٰذَا الَّذِیْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ ۙ وَاُتُوْا بِهٖ

دا هغه څیز دے چه راکړے شو بوهمونږ ته مخکښ د دے نه، او راوړے شی دوی ته دغه رزق

مُتَشَابِهًا ؕ وَلَهُمْ فِیْهَاۤ اَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۙ

یوشان (د مخکښ سره)۔ او دوی د پاره به وی باغونو کښ بیبیانے پاکے کړے شوے به وی

وَّهُمْ فِیْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۲۵﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَا یَسْتَحْیٖۤ

او دوی به په هغے کښ همیشه وی۔ یقینًا الله تعالیٰ شرم (حیا) نه کوی

۲۵ روستو د تخویف اخروی نه ذکر د بشارت اخرویه دے هغه چالره چه توحید فی العبادات او رسول او قرآن باندے ایمان لری۔

وَبَشِّرِ دا معطوف دے په معنیٰ د ما قبل باندے ځکه حاصل د مخکښ ایت دا دے چه اَنْذِرِ الَّذِیْنَ لَا یُؤْمِنُوْنَ بِالنَّارِ وَبَشِّرِ الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا۔ او خطاب په دے کښ اولًا نبی صلی الله علیه وسلم ته دے او بیا هر هغه عالم ته دے چه کار د دعوت کوی۔

بِشَارَتْ:۔ په زیر د باء یا په پیښ سره هغه خبر ورکولو ته وئیلے شی چه په اوریدلو د هغے سره خوشحالی په ظاهری بَشَرَه (یعنی د انسان په مخ کښ) کښ ښکاره شی او هغه اول خبر وی۔

سوال:۔ د عذاب سره هم د بشارت ذکر په قرآن کښ شته دے او دا په پنځه ایاتونو کښ ذکر دے (سورة لقمان ۷، سورة جاثیه ۸، سورة آل عمران ۲۱، سورة توبه ۳۴، سورة انشقاق ۲۴)؟۔

جواب:۔ دلته مراد د بشارت نه صرف خبر ورکول دی اگرچه په شر سره دی لیکن دے ته ئے بشارت په طریقه د تهکم (رسپکوالی) سره وئیلے دے۔

سوال:۔ هر کله چه بشارت په اول خبر سره حاصلیږی نو قرآن کښ

آیا تونه د بشارت خو بار بار وئیلے کیږی د دے څه وجه ده؟-
جواب:- هر کله چه قرآن په وئیلو سره نه زړیږی او انسان پرے په بار بار وئیلو سره نه تنګیږی او د دے عجائب هم نه ختمیږی نو د دے هر وخت وئیل سبب د خوشحالئ دے د پاره د مؤمنانو او د دے وجے نه د قرآن نوم بُشریٰ دے، او بشارت کله د دنیوی خوشحالئ په باره کښ وی لکه د ولد (ځوئ) پیدا کیدل او دا بشارت ابراهیم علیه السلام او بی بی د هغه او زکریا علیه السلام او مریم علیها السلام ته په ډیرو سورتونو کښ ذکر دے او بغیر د ولد نه په نورو انعاماتو سره هم دے لکه په سورة یونس ۶۴ او سورة صف ۱۳ کښ. او اکثر بشارتونه د قرآن اخروی دی او د دغه بشارت د استحقاق د پاره ډیر صفات دی اول ایمان فقط لکه سورة احزاب ۴۷ او سورة یونس ۲ کښ. دویم ایمان سره د عمل صالح نه لکه په دے آیت کښ او سورة اسراء ۹ او سورة کهف ۲ کښ دریم اخبات (سورة حج ۳۴) څلورم احسان (سورة حج ۳۷) پنځم عبدیت او انابت (سورة زمر ۱۷-۱۸) او شپږم صبر (سورة بقره ۱۵۵) او بشارت کله مطلق ذکر شی د پاره د تعمیم او کله ورسره مبشر به ذکر شی. هاں په بشارت بالشر کښ مبشر به ضرور ذکر کیږی-
اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا دلته ایمان شرعی مراد دے د دے وجے نه مؤمن به ئے نه دے ذکر کړے نو ټولو ایمانیاتو ته شامل دے-
وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ، صالحات په اصل کښ صفت دے د موصوف محذوف د پاره یعنی الخِصَالُ الصالحات لیکن دلته اسمیت غالب شویدے په وصفیت باندے نو موصوف ته ضرورت نیشته- او صالح د صلح نه ماخوذ دے په لغت کښ موافقت او جوړخ ته وئیلے شی او د شریعت په اصطلاح کښ هر هغه عقیده او عمل چه د کتاب الله او سنتِ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره موافق وی. بیضاوی او آلوسی لیکلی دی الصالح مِنَ الْاَعْمَالِ مَاسَوَّغَهُ الشرعُ وَحَسَّنَهُ (صالح عمل هغه دے چه په دلیل شرعی سره جائز وی او خائسته وی) او هر کله چه صرف جواز اباحت ته شامل دے او مباح اګر چه جائز وی لیکن صالح عمل ورته نشی وئیلے کیدلے د دے وجے نه ئے ورسره حَسَّنَهُ لفظ کیخودلو چه په دلیل شرعی د هغے حسن او ثواب هم ثابت وی دا دلیل دے چه په کوم عقیده او عمل باندے د جواز او حسن د پاره

دلیل شرعي نه وي نو هغه ته عمل صالح نشي وئیلے کیدے بلکه هغه ته چه څوک دین وائي نو بدعت به وي ورنه فسق او معصیت دے۔

سوال :- عمل صالح یې عطف کړے دے په ایمان باندے نو معلومه شوه چه اعمال د ایمان نه خارج (غیر) دي لکه چه دا د احنافو او مرجئو مسلک دے؟

جواب ۱:- دیته عطف د خاص په عام باندے وئیلے شي د پاره د اهتمام د خاص لکه په سورة بقره ۹۸ کښ۔

جواب ۲:- مخکښ تیر شویدي چه د ایمان مختلف اطلاقات دي د کله ایمان ذکر شي او مراد تري نه پوره ایمان شرعي وي نو په هغے کښ اعمال داخل وي ځکه چه اتفاق د محدثینو په دے خبره باندے دے چه ایمان قول وعمل دے او قول تصدیق او اقرار دواړو ته شامل دے۔

سوال :- معتزله او خوارج د دے آیت نه استدلال کوي چه حصول د جنت یې خاص کړے په ایمان او عمل دواړو پورے نو په انتفاء د عمل سره جنت نه حاصلیږي نو همیشه به وي په اُور کښ یا به کافر شي؟

جواب :- عادتِ قرآنیه دا دے چه ذکر کوي کامله مرتبه پوره مؤمن یا پوره کافر لره او د حصول د جنت دوه قسمونه دي یو صِرف استحقاق د جنت دے اگرچه روستو د عذاب څخه ورته داخلیږي دویم پوره جنت حاصلول دي یعني د ابتداء نه جنت ته داخلیدل چه د اُور نه بچ وي او دا کامله مرتبه دا ده او په دے آیت کښ مراد دا نو کامل ایمان یې د هغے د پاره ذکر کړیدے نو په صِرف ایمان سره استحقاق د جنت دے او په اعمالو سره د اُور نه بچکیدل یا په جنت کښ درجات حاصلیدل دي۔

اَنَّ لَهُمْ جَنّٰتٍ دا مبشّر بِهٖ دے په تقدیر د با سره۔ په لَهُمْ کښ لام د پاره د استحقاق دے د وجے د ایمان او عمل صالح نه لیکن دا استحقاق په سبب د وعدے د الله تعالیٰ سره دے۔ جَنّٰتٍ جمع د جنّت ده په اصل کښ اُونے ته وئیلے شي چه د ډیر گورالي د وجے نه یې لاندے زمکه پټه کړے وي۔ بیا یې اطلاق کیدے شي عُرفًا په ټول باغ باندے چه مشتمل وي په ډیرو اُونو او نعمتونو باندے، او په دے معنی باندے په قرآن کښ ډیر راغلے دے لکه (سورة بقره ۲۶۶)۔ او په اصطلاح د شریعت کښ هغه دار الثواب دے چه په هغے کښ بے شماره نعمتونه وي۔ او جنّٰت یې جمع ذکر کړے ده ځکه چه په

روایت د ابن عباس رضی الله عنهما (چه نقل کړے دے شربینی) کښې اُووه جنتونه دی. جنت الفردوس (سورة کهف ۱۰۷) جنّت عدن (سورة نحل ۳۱) جنت النعیم (سورة واقعه ۱۲) جنت المأوٰی (سورة نجم ۱۵) دار السلام (سورة یونس ۲۵) جنت الخلد (سورة فرقان ۱۵) علیّیون (سورة تطفیف ۱۹) - او مقام امین، مقعد صدق او قدم صدق د جنتونو اوصاف دی.

تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ دا صفت د جنّت دے اشاره ده چه هغه باغونه د اُوبو د وجے نه هر وخت تر و تازه وی د تجری اسناد انهار ته اسناد مجازی دے او دیته توسّع د کلام وئیلے شی. مِنۡ تَحۡتِهَا، دا مِن په اصل کښې د پاره د زیاتی معنیٰ دے چه د اتصال سره د تبعیض معنی پیدا کوی او کله چه دا مِن ذکر نه وی نو هلته پوره مبالغه مراد وی ځکه چه د تبعیض معنی تر ینه لرے شی نو عموم او کلیة پیدا شی لکه په سورة توبه ۱۰۰ کښې چه هغه بشارت د صحابو په باره کښې دے نو په هغے کښې د عموم او د توسع د انهارو د پاره ئے مِن حذف کړیدے.

الۡاَنۡهٰرُ الف لام په دے کښې عهدی دی مراد تر ینه هغه څلور قسمونه دی چه په سورة محمد ۱۵ کښې ذکر دی. او هر یو نوع مشتمل ده په بے شماره نهرونو باندے. مِنۡ تَحۡتِهَا ضمیر راجع دے جنّت ته او مراد د جنّت نه اُونے او بنګلے دی یا مضاف پټ دے مِنۡ تَحۡتِ اَشۡجَارِهَا وَغُرَفِهَا - او په حدیث سره ثابت دی چه نهرونه د جنت بغیر د کندونه بهیږی، یعنی نهر به بهیږی د زمکے په سر باندے او دواړه طرفونو ته به ئے اُونے ولاړے وی نو معلومیږی به چه د اُونو د څانګو د لاندے او به روانے دی او ډیره عجیبه نظاره ده. تر دے پورے یو نعمت ذکر شو چه ځائے د اُوسیدلو د جنتیانو دے سره د ټولو ضروریاتو نه. او س دویم نعمت ذکر کوی چه هغه توسع د خوراک ده په دے قول سره چه كُلَّمَا رُزِقُوۡا مِنۡهَا دا ضمیر جنّت ته راجع دے او مِنۡ ابتدائیه دے او رُزِقُوۡا مجهول کښې اشاره ده چه د دوی به خدمتګاران وی چه هغوی به ورله تیار خوراک راوړی.

مِنۡ ثَمَرَةٍ دا مِنۡ د استغراق (عموم) د پاره دے یا د تبعیض د پاره دے. رِزۡقًا دا مفعول لَهٗ دے او رُزِقُوۡا په معنی د ورکولو او رِزۡقًا په معنی د خوراک دے. قَالُوۡا هٰذَا الَّذِیۡ رُزِقۡنَا مِنۡ قَبۡلُ سوال:- هذا اشاره ده حاضر طعام ته او رُزِقۡنَا خو فعل ماضی ده نو موجود خو عین خوړلے شوے نشی کیدلے؟

جواب:- په عبارت کښې لفظ د تشبیه د مبالغې د پاره پټ دے یعنی هٰذَا مِثْلُ
الَّذِیْ رُزِقْنَا مِنْ قَبْلُ۔
مِنْ قَبْلُ په دے کښې دوه توجیهات مشهور دی اول دا چه مراد د دے نه
قبلیت (مخکښې والے) دے په جنت کښې یعنی د جنت هر روسته خوراک به
د مخکنی سره من وجه مشابهت لری نو په دے توجیه باندے سوال دا رازی چه
لفظ د کلما خو دلالت کوی چه هر وخت کښې به دا سے وی نو اول ځل پکښې
هم داخل شو، نو اول ځل سره خو مِنْ قَبْلُ مناسبت نه لری؟ - د دے جواب
کیدیشی چه کلما اگرچه د عموم د پاره دے لیکن اول ځل ترینه خارج دے
په عقلی قرینے سره او دا قول ابن جریر غوره کړیدے۔ او دویمه توجیه
دا ده چه قبلیت په دنیا کښې مراد دے یعنی میوے د جنت به د دنیا د میوو
پشان راوړلے کیږی هاں دا مشابهت به صِرف په شکل او په نوم کښې وی
او په رنګ او لذت کښې به د جنت میوے د دنیا د هغې نه بے شماره چنداه
غوره وی او د تشابه اطلاق په تشابه من وجه باندے هم کیږی لکه په سورة
انعام ۱۴۱ او سورة زمر ۲۳ کښې او حکمت په اول تشابه کښې دا دے چه دوی ته
د الله تعالیٰ د قدرت لویه نمونه معلومه شی چه شکل یو شان دے او حال
دا دے چه په لذت او فائدو کښې بے حده فرق دے او حکمت په دویم
تشابه کښې دغه هم دے او ورسره بل دا دے چه دوی ترینه نفرت او نکړی
ځکه چه انسان په طبعی طور سره د خلافِ عادت خوراک نه نفرت کوی
لیکن په دے توجیه باندے دا سوال دے چه ډیر مسلمانان په عالم کښې
دا سے شته دے چه هغوی د دنیا ډیرے میوے نه دی خوړلی بلکه لیدلے
یے هم نه دی نو دا قول د دا سے خلقو په باره کښې څنګه صادق کیدلے؟
نو د دے سوال جواب تحقیقی زما په ذهن کښې نیشته ما سیوا د تخصیص نه
لیکن هغه د جنت د حال سره مناسبت نه لری۔ دریمه توجیه قرطبی
ذکر کړیده چه مراد د دے نه دا دے چه وعِدْنَا مِنْ قَبْلُ فِی الدُّنْیَا یعنی
د دے نعمتونو زمونږ سره وعده کړے شوے وه په دنیا کښې د دے تائید
په سورة زمر ۷۴ کښې دے لیکن د رزق اطلاق په وعده باندے د عربیت
نه لرے خبره ده۔ څلورمه توجیه، آلوسی او بیضاوی ذکر کړے ده چه د
رزق نه مراد توفیق الٰهی دے او مضاف پټ دے حاصل یے دا دے هٰذَا

جَزَاءُ الَّذِی رُزِقْنَا فِی الدُّنْیَا ردا بدله د هغه ایمان او طاعتونو ده چه په دنیا کښ مونږ له د هغې توفیق راکړې شوې وو په دے توجیه کښ رزق په معنی د توفیق دے او حذف د مضاف بعیده خبره ده نو غوره زما په نیز اوله توجیه ده۔

وَأُتُوا بِهِ مُتَشَابِهًا داعلت د ما قبل دے چه دوی هٰذَا الَّذِی رُزِقْنَا ولے وائي ځکه چه میوے د جنت په کورنۍ کښ به متشابه وی او د دنیا د میوؤ سره به هم تشابه لری او په آخری توجیه باندے مقصد دا دے چه رابه وړلے شی دوی ته دغه جزا مشابه د دوی د عمل سره۔ بِهِ ضمیر رِزْقًا ته راجع دے یا ثَمَرَةً ته په تاویل د خوراک سره راجع دے او د تشابه تفصیل او حکمت مخکښ ذکر کړلے شو۔ او د تشابه زیات تفصیل به انشاء الله په سورة العمران کښ راځی۔ دا دوه نعمتونه ذکر شول اوس دریم نعمت ذکر کوی۔

وَلَهُمْ فِیهَا أَزْوَاجٌ لفظ د لهم دلالت کوی چه دِے نعمت نه به جهنمیان محرومه وی او لفظ د فِیهَا دلیل دے په استقرار باندے په جنت کښ۔ أَزْوَاجٌ دا جمع د زوج ده او د زوج په زنانه او نارینه دواړو باندے اطلاق کیدیشی په دے شرط چه په مینځ کښ نکاح شرعی ده۔ او دا ازواج عام دی یعنی حورے د جنت او بیبیانے د دنیا چه جنت ته داخلے شوے وی په دلیل د سورالواقعه ۳۵ ۲۲ سورة طور ۲۰ سورة دخان ۵۴ او سورة صافات ۴۸ سره۔

فائده: اطلاق د زوج په هغه وخت کښ کیږی چه په مینځ د دوؤ کښ موافقت د عقیدے او مناسبت او محبت وی یعنی دواړه مؤمنان وی لکه په باره د بیبیانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم کښ په سورة احزاب ۶ ۲۸ ۵۰ ۵۳ ۵۹ او سورة تحریم ۱ ۳ کښ نو دا ښکاره دلیل دے چه د نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه د ټولو بیبیانو په مینځ کښ پوره موافقت د عقیدے او د عمل او د اخلاقو او محبت وو۔ د دے وجے ابن قیم رحمه الله په جلاء الافهام کښ وئیلی دی چه په قرآن کریم کښ د مؤمنانو بیبیانو ته ازواج وئیلے شی ځکه چه د دوی په تزویج سره په مینځ کښ موافقت دے او د کافرانو بیبیانو ته ازواج نه وئیلے کیږی دغه وجه ده چه د ښځے عقیده د خاوند نه خلاف وی نو هلته امرءة لفظ استعمالیږی لکه سورة تحریم ۱۰ او چه د خاوند عقیده د ښځے نه خلاف وی نو هلته هم امرءة مستعمل دے لکه سورة تحریم ۱۱

سوال :- د ابراهیم او د عمران او زکریا علیهم السلام د بیبیانو په باره کښ خو امرءة وئیلے شویدی په سورة هود ﴿۷۱﴾ او سورة آل‌عمران ﴿۳۵﴾ کښ او حال داچه د دوی په مینځ کښ خلاف نه وُو؟

جواب :- په دغه ځایونو کښ د توالد واقعات ذکر دی او د تولد په وخت د امرءة تعبیر ډیر مناسب دے ځکه چه لفظ د زوج مشترک دے.

فائده ﴿۲﴾ ماده د تزویج په قرآن کښ یوا تیا کرته ذکر ده او د هغے مختلف معانی دی، اول نکاح دنیوی (سورة احزاب ﴿۳۷﴾)، دویم نکاح اخروی د حورو سره (سورة طور ﴿۲۰﴾)، دریم خاوند (سورة بقره ﴿۲۳۰﴾)، څلورم ښځه (سورة نساء ﴿۱﴾) پنځم نارینه او زنانه په اولاد کښ (سورة شوریٰ ﴿۵۰﴾)، شپږم یوځائے کول د روح او جسد بناء په یو تفسیر باندے په (سورة تکویر ﴿۷﴾ کښ)، اووم اقسام د نباتاتو (سورة حج ﴿۵﴾)، اتم اقسام د انسانانو په دنیا کښ (سورة طٰهٰ ﴿۱۳۱﴾)، نهم اقسام د هر څیز په دنیا کښ (سورة زخرف ﴿۱۲﴾)، او په دے مواضعو کښ په کښ د زوجیت معنی هم موجود ده، لسم اقسام د انسانانو په آخرت کښ (سورة واقعه ﴿۷﴾).

نو په دے آیت کښ ښځے مراد دی که تزویج دنیوی وی او که اُخروی وی.

مُطَهَّرَةٌ باب تفعیل د ډیرے مبالغے د پاره دے یعنی چه د هر نقص انسانی نه به پاکے کړے شوے وی. د حیض نفاس لوئے بول واړهٔ بول او بوږه بهیدل وغیره ناکاره اخلاق، کیدونه مکرونه وغیرو نه به پاکے وی. او صیغه د اسم مفعول کښ بیا ډیرے مبالغے ته اشاره ده یعنی پاکے کړے او ساتلے دی دوی لره یو ذات چه هغه الله تعالیٰ دے.

وَهُمْ فِيهَا خٰلِدُوْنَ دا څلورم نعمت دے دا لفظ د جنتیانو د پاره اته دیرش کرته او د جهنم والو د پاره یوکم دیرش کرته ذکر کړے شویدے. فِيهَا لفظ دلالت کوی چه خلود به د جنت نه بهر نه وی بلکه خلود د جنتی او د جنت او د نعمتونو چه ذکر شول ټول به وی. خلود په حقیقت کښ بقاء (دوام) ته وئیلے شی او بل معنی سره د انبیاؤ نه خلود نفی کړے شویدے چه هغوی به همیشه ژوندی نه وی لکه په سورة الانبیاء ﴿۳۴﴾ کښ او کله د دے اطلاق کیږی په اوږد والی د وخت باندے (دا قول قرطبی ذکر کړے دے او بعض مفسرینو د دے برعکس ذکر کړے دے یعنی په اصل کښ اوږد والی د وخت ته وئیلے شی که دوام وی او که نه وی او کله ئے اطلاق په دوام باندے کیږی لیکن قول د قرطبی غوره دے).

أَنْ يَضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوضَةً فَمَا فَوْقَهَا ط

چه بیان کړي يو مثال په ماشي سره يا زيات د هغې نه.

فَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا فَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ

پس هر چه هغه کسان دي چه ايمان يې راوړے دے نو هغوي پوهيږي چه دا مثال حق (برابر) دے

مِن رَّبِّهِمْ ۚ وَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَيَقُولُونَ

د طرف د رب د دوي نه، او هر چه کافران دي نو وائي

مَاذَا أَرَادَ اللَّهُ بِهَٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهِ كَثِيرًا

چه څه اراده کړيده الله تعالى په (بيان) د دے مثال سره. بے لارے کوي پدے مثال سره ډير خلق

وَيَهْدِي بِهِ كَثِيرًا ۚ وَمَا يُضِلُّ بِهِ

او لار ښودنه کوي پدے سره ډيرو خلقو ته. او نه بے لارے کوي پدے مثال سره

إِلَّا الْفَاسِقِينَ ﴿٢٦﴾ الَّذِينَ يَنقُضُونَ عَهْدَ اللَّهِ

مګر نافرمان خلق. دا هغه کسان دي چه ماتوي لوظ د الله تعالى

نو بنا په دے لفظ د ابدا د تاکيد د دوام د پاره راځي. په باره د جنت کښ چه کوم آيت کښ خلود ذکر دے هغه په معنی د دوام سره دے او په باره د جهنم کښ اکثر په معنی د دوام سره دے او کله په معنی د اوږد وخت سره راځي لکه په سورة نساء ۹۳ کښ (بنا په يو توجيه باندے) او راغب په مفردات کښ ليکلي دي چه خلود وئيلے کيږي براءت د څيز د فساد نه او باقي پاتے کيدل په خپل حالت باندے نو دا آيت صريح دليل دے په دے خبره باندے چه جنتونه او د هغے نعمتونه او جنتيان به هميشه وي په دوي باندے به فنا نه راځي او دا قول د ټولو علماؤ اهل سنت والجماعت دے خلاف کوي د دے نه معتزله او جهميه او د هغوي د پاره هيڅ دليل نقلي نيشته.

تنبيه :- هر کله چه خوشحالي اولاد تونه د ژوند د انسان په مسکن او طعام فراخ او نکاح باندے دي نو په دے بشارتِ اُخرويه کښ دا درے يې ذکر کړل او هر کله چه د دنيا په نعمتونو کښ هر وخت خوف د زوال او د فنا دے

دَ دے وجے نه دا نعمتونه دَ دنیا ډیر ناقص دی نو دَ اٰخرت دَ نعمتونو په باره کښ دَ خلود صفت ذکر کړو چه خوف دَ فنا او زوال او دَ نقصان پکښ نه وی.

ربط ۲۶ هر کله چه فائده دَ ایمان ئې په کامل بشارت سره ذکر کړه نو دَ ایمان دَ بچاؤ دَ پاره دفع دَ شبهاتو کوی دَ دے دَ پاره چه دغه ایمان قوی شی او جنت پرے حاصل شی.

ربط ۲۷ هر کله چه دعوی دَ توحید ئې په دلیلونو سره ذکر کړه او دَ رسول او قرآن صدق ئې په مناظره او تحدی سره بیان کړو سره دَ ذکر دَ تخویف او بشارت نه نو اوس جواب دَ شُبهے دے په باره دَ قرآن کښ ځکه چه قرآن مشتمل دے په توحید باندے نو مخالفین په قرآن باندے اعتراضونه کوی دَ وجے دَ توحید نه. او دا شبهه په دے طریقے سره ده چه ذا قرآن دَ الله تعالیٰ کتاب نه دے ځکه چه په دے کښ مثالونه دی او الله تعالیٰ مثالونو ذکر کولو ته محتاج نه دے؟ نو جواب ذکر کوی په ذکر دَ حکمتونو دَ مثال سره یعنی الله تعالیٰ خو مثال ته محتاج نه دے لیکن مخاطبین په خپله پوهه کښ داسے مثالونو ته محتاج دی.

فائده ۱ قرطبی دَ حسن او قتاده نه روایت ذکر کړے دے چه دا اعتراض یهودیانو کړے دے کله چه مخکښ په دے سورت کښ مثالونه دَ کافرانو او منافقانو ذکر شول او په هغوی کښ خو یهودیان هم داخل دی نو په هغوی باندے دا مثالونه بد اُولګیدل نو دا اعتراض ئې اوکړو. او سیوطی په اتقان کښ ذکر کړیدی چه دا قول دَ سند په لحاظ سره صحیح او قوی دے او چاچه لیکلی دی چه دَ مشرکانو مثالونه چه په مکی سورتونو کښ دَ عنکبوت او ذباب سره ذکر شوے وُو نو هغوی دا اعتراض کړے وُو دَ هغوی په جواب کښ دا ایت نازل کړے شویدے نو دا قول دَ سند په لحاظ سره ضعیف دے امام رازی وئیلی دی غوره دا ده چه هرچا چه دا اعتراض کړے دے یا ئے اوس کوی نو دا جواب دَ هغوی دَ پاره دے.

اِنَّ اللّٰهَ لَا یَسْتَحْیٖۤ اعتراض کوونکو په خپل اعتراض کښ داسے وئیلی وُو چه ایا الله تعالیٰ حیاء نه کوی دَ مثالونو ذکر کولو نه نو جواب ئې دَ هغې مطابق (په لفظ دَ حیاء) سره ذکر کړو. لَا یَسْتَحْیٖۤ دا دَ حیاء نه ماخوذ دے او دا صفت دَ الله تعالیٰ ثبوتاً هم شته دے لکه چه په یو حدیث کښ راغلی دی

چه رب ستا سو حیا ناک کریم دے او حیاء کوی د خپل بنده نه چه هغه ورته دواړه لاسونه په دُعا کښې پورته کړی او الله تعالیٰ یے ورته خالی واپس کړی (ترمذی او ابوداؤد او بیهقی روایت کړیدے) او دلته دا صفت د الله تعالیٰ صفتِ سلبیه مقیده دے نو ثبوت د حیاء د الله تعالیٰ د پاره د دے ایت نه مخالف نه دے ځکه چه ثبوت د یو قسم دے او نفی د بل قسم ده. او دا صفت هم په نیز د سلف صالحینو د الله تعالیٰ د پاره حقیقةً ثابت دے بغیر د تشبیه او تمثیل او تحریف او تاویل نه. او حیاء په صفت د بنده کښې انقباض (زبند بدل) د نفس دی د قبیح څیز نه چه عارض کیږی بنده ته په بعضِ وخت کښې. لیکن په صفت د الله تعالیٰ او په صفت د بندګانو کښې ډیر فرق دے صرف لفظی اشتراک دے.

فائده:- استحیاء په طریقه د سلبِ مقید سره په صفت د الله تعالیٰ کښې په قرآن کښې دوه کرته راغلے ده او په صفت د نبی صلی الله علیه وسلم کښې یو کرت (سورة احزاب ۵۳) او په صفت د نیکے زنانه کښې یو کرت (سورة قصص ۲۵) او په عمل د فرعونیانو کښې شپږ کرته ذکر ده.

اَنْ یَّضْرِبَ مَثَلًا دلته یضرب په معنی د یُبَیِّنُ سره دے لکه چه قرطبی وئیلی دی یا په معنی د یجعل سره دے یعنی یَجْعَلَ شَیْئًا مِثَالًا لِشَیْءٍ اٰخَرَ (چه او ګرځوی بعوضه مثال) او په دے کښې چسپان کول د ممثل دی په ممثل لهٗ باندے نو د دے وجے نه دے ته ضرب وئیلے شی او دلته مثلاً په معنی د مثال سره دے.

فائده:- ضرب المثل لفظ د الله تعالیٰ د طرف نه په صیغه د فعل ماضی غائب سره قرآن کښې په سورة نحل ۷۵، ۷۶، ۱۱۲، سورة ابراهیم ۲۴، سورة روم ۲۸، سورة زمر ۲۹، سورة تحریم ۱۰، ۱۱ او په صیغه د جمع ماضی متکلم سره په سورة ابراهیم ۴۵، سورة فرقان ۳۹، سورة روم ۵۸، سورة زمر ۲۷ او په صیغه د فعل مضارع جمع متکلم سره په سورة عنکبوت ۴۳، سورة حشر ۲۱ او په صیغه د یضرب مثلاً سره په دے ایت او سورة رعد ۱۷، سورة ابراهیم ۲۵، سورة نور ۳۵، سورة محمد ۳ کښې ذکر شویدے. او په صیغه د امر سره سورة کهف ۳۲، ۴۵، سورة یٰسٓ ۱۳ او په صیغه د ماضی مجهول سره په سورة حج ۷۳ کښې ذکر دے. او هرچه د جانب د بندګانو نه دے نو هغه په سورة یٰسٓ ۵۸، سورة نحل ۷۴، سورة زخرف ۱۷ او ۵۸ او سورة اسراء ۴۸، سورة فرقان ۹ کښې ذکر دے.

مَا بَعُوْضَةً دَ دے په اعراب کښ ډیر اقوال دی اول دا چه مَا زائده دے دَ تاکید دَ مثلاً دَ پاره او بَعُوْضَةً دَ مَثلاً نه بدل دے، دویم مَا نکره بدل دے دَ مثلاً نه او بَعُوْضَةً صفت دَ مَا دے، دریم دا چه مَا تاکید دَ مثلاً دے او بعوضةً دَ پاره فعل حذف دے یعنی بیّن بعوضةً۔

بعوضة مفرد دے او بعوض جمع راځی اکثرو وئیلی دی چه بعوضة او بق یو څیز دے لیکن په حاشیه دَ تفسیر قرطبی کښ په دے باندے رد کړے شوے دے او په لسان العرب کښ یو قول ذکر دے چه بق غټ وی نو بعوضه وړکے وی او خازن هم وئیلی دی چه بعوضة وړوما شو ته وئیلے شی نو دلته ئے هم دَ تحقیر او تقلیل دَ وجے نه بعوضة ذکر کړے دے۔

فائده ۱ دمیری په حیوٰة الحیوان کښ لیکلی دی چه بعوضة په شکل دَ هاتی باندے ده او دَ هاتی نه ئے اندامونه ډیر دی چه دَ هاتی څلور څپے یو خرطوم او یو لکئ ده او دَ ماشی دوه څپے زیاتی دی او وزرے ئے هم شته دے او خرطوم دَ هاتی کوتلے دے او خرطوم دَ ماشی ډډ وی خازن لیکلی دی چه دا عجیب خلقت دَ الله تعالیٰ دے چه سرهٔ دَ وړوکوالی نه خپل خرطوم په سخته څرمن دَ هاتی او دَ مینخے او اُوخ کښ ورد ننه کړی تر دے چه کله کله اُوخ هم دَ دهٔ دَ چیچلو نه مړکیږی. ابن جریر وئیلی دی چه بعوضه په مثال دَ دنیا کښ پیش کیدے شی ځکه چه ماشے چه اُوږے وی نو ژوندے وی او هر کله چه ئے خیټه دَ چا دَ وینے نه ډکه شی نو بیا مړشی دا رنګ په اکثری توګه دَ دنیا دَ مال نه چه انسان خالی وی نو دَ هغه په زړهٔ کښ حیاتِ روحانی وی او چه دَ دنیا په مال سره موړشی نو زړهٔ ئے مړشی او غافل شی۔

فائده ۲ قرآن کریم کښ یو دیرش اجناس دَ حیواناتو ذکر دی لیکن اول ئے ډیر وړوکے دَ هغوی نه ذکر کړے دے او په آخر کښ ئے دَ ټولو نه غټ ذکر کړے دے چه هغه هاتی دے په سورهٔ فیل کښ. او هغه اجناس دا دی ماشے[1]، سخے[2]، غوا، خنزیر[3]، خر[4]، مارغه[5]، اس[6]، ښاروی[7]، درنده[8]، کارغه[9]، شادو[10] (بیزو)، ګیدړ[11]، بیزه[12]، اوبښ[13]، اُوښه[14]، اژدها[15]، مار[16]، نرے مار[17]، ملخ[18]، سپکے[19]، چنداخ[20]، مهیان[21]، سپے[22]، شرمخ[23]، خچر[24]، توره مچئ[25]، مچ[26]، میږے[27]، ملاچرګک[28]، جولاګے[29]، وینه[30]، پتنګ[31]،

فَمَا فَوْقَهَا. فا دَ پاره دَ عطف دے سرهٔ دَ معنے دَ روستو والی نه او مَا موصوله دے هُوَ پټ دے مبتدا فوقها خبر دے او دا جمله صله دَ پاره دَ مَا ده۔

فَوۡقَ اوچت او زیات ته وئیلے شی او هغه عام دے که زیاتوالے په بدن کښ وی نو هغه خو ډیر حیوانات دی کوم چه مخکښ ذکر شول یا زیاتوالے په سپکوالی کښ مراد وی او هغه وزر د ماشی دے او دا روستو غوره دے ځکه چه په احادیثو کښ وزر د ماشی په مثال کښ ذکر دے د تقلیل د پاره لکه په حدیث کښ دی لَوۡ کَانَتِ الدُّنۡیَا تَعۡدِلُ عِنۡدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوۡضَةٍ مَا سَقٰی مِنۡهَا کَافِرًا شُرۡبَةً که چرے دنیا برابر وے په نیز د الله تعالیٰ د ماشی د وزر سره نو څښکولے به ئے نه وے د هغے نه کافر ته یو گوټ (روایت کړیدے احمد ترمذی ابن ماجه) بل حدیث کښ دی وَلَوۡ اَنَّ اَوَّلَکُمۡ وَاٰخِرَکُمۡ وَحَیَّکُمۡ وَمَیِّتَکُمۡ وَرَطۡبَکُمۡ وَیَابِسَکُمۡ اِجۡتَمَعُوۡا عَلٰی اَتۡقٰی قَلۡبِ عَبۡدٍ مِنۡ عِبَادِیۡ مَا زَادَ ذٰلِكَ فِیۡ مُلۡکِیۡ جَنَاحَ بَعُوۡضَةٍ - او که چرے ستاسو مخکنی او روستنی او ژوندی او مړی او لوانده او وچ راجمع شی په ډیر تقوی دار زړه د یو بنده باندے د بنده گانو زما نه نو نه زیاتوی دا په بادشاهئ زما کښ وزر د ماشی۔

(روایت کړے دے امام احمد او ترمذی او ابن ماجه)

فائده :- لفظ د فوق یو شلو بیشت کرته قرآن کښ ذکر دے او د دے مختلف مصداقات دی چه هغه د اوچتوالی او زیاتوالی د معنی د لاندے دی اول په معنی د غالب (سورة آل عمران ۵۵) دویم زیات په عدد کښ (سورة نساء ۱۱) دریم صفت د الله تعالیٰ په فوقیت سره په معنی د اوچت په عرش باندے بغیر د تمثیل او تکییف او تاویل نه او په صفت د الله تعالیٰ کښ درے کرته راغلی دے (سورة انعام ۱۸ ۶۱ سورة نحل ۵۰) څلورم فوقیت د درجے (سورة انعام ۱۶۵) پنځم په معنی د علی سره (سورة انفال ۱۲) شپږم د پاسه یعنی اوچت (سورة یوسف ۳۶) اووم زیات په علم کښ (سورة یوسف ۷۶) اتم اوچتوالے د آواز (سورة حجرات ۲) نهم اوچتوالے په مکان کښ (سورة بقره ۶۳) لسم اوچت طرف د آسمان (سورة انعام ۶۵) یوولسم اوچت طرف د زمکے (سورة احزاب ۱۰) دولسم غټوالے په بدن کښ لکه په دے آیت کښ په یو معنی سره دیارلسم زیاتوالے په یو وصف کښ لکه سپکوالے دا هم په دے آیت کښ په دویمه معنی سره۔ نو معلومه شوه چه د فوق معنی یوه ده اوچتوالے او په هر ځائے کښ د هغے مناسب اوچتوالے دے نو دغسے په صفت د الله تعالیٰ کښ هم دے۔

فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ د دے نه مخکښ جمله کښ اول جواب اوشو یعنی مثال چه هرڅنګه وی خو د الله تعالیٰ د شان سره د هغې منافات نیشته دے د دے وجے نه الله تعالیٰ په قرآن کښ ډیر مثالونه پیش کړے دی. اوس دویم جواب دے په ذکر د حکمتونو د مثال سره نو د اول حکمت دا دے چه په مثال سره تمیز او فرق د خلقو معلومیږی، مؤمن معلومیږی په تصدیق د مثال سره او په تصدیق د مثال سره فائده ښکاره شی د دے وجے نه دا ئے مخکښ ذکر کړو. اَنَّهُ دا ضمیر راجع دے مثال ته یا ضرب المثال ته. الْحَقُّ دا په معنی د موافقت د مثال دے د ممثل له سره او دا معنی د حقانیت ده په مثال کښ. مِنْ رَّبِّهِمْ دا دویم خبر د اِنَّ دے یا صفت د الحق دے او په دے سره اشاره ده چه دلته حقانیت صِرف په وجود کښ مراد نه دے بلکه حقانیت شرعی مراد دے.

**فائده:** لفظ د حق په قرآن کښ دوه سوه ځلو ېشت کرته راغلے دے حق په لغت کښ صرف ثابت ته وئیلے شی او په عرف کښ هغه څیز دے چه ثابت وی یقینًا چه د هغے نه انکار جائز نه وی او دا شامل دے اعیانِ (ذوات) ثابت او صحیح افعالو او رشتینو اقوالو ته. د دے وجے نه په قرآن کښ د دے ډیر مصداقات دی. اول په معنی د موافق او واقع په خپل ځائے لکه په دے ایت کښ دویم په معنی د ثابت په دلیل شرعی یقینی سره چه مقابل د باطل دے (سورة بقره ۴۲) دریم جرم شرعی (سورة بقره ۶۱) څلورم پوره بیان د خبرے (سورة بقره ۷۱) پنځم په معنی د صدق (سورة بقره ۱۱۹) شپږم لائق او مناسب (سورة بقره ۱۲۱) اووم امرِ واجب (سورة بقره ۲۳۶) اتم حق د بنده (قرض) (سورة بقره ۲۸۲) نهم یقین (سورة نساء ۱۵۱) لسم قرآن (سورة مائده ۸۴) یوولسم صفت د الله تعالیٰ (سورة انعام ۶۲) دولسم حکمت او فائده (سورة انعام ۷۳) دیارلسم حق مالی شرعی (سورة انعام ۱۴۱) څوارلسم په معنی د جهاد (سورة انفال ۶) پنځلسم مقابل د ضلال (سورة یونس ۳۲) شپاړسم صحیح عقیده د توحید (سورة یونس ۳۵) اوولسم حق تفضّلی په الله تعالیٰ باندے (سورة یونس ۱۰۳) اتلسم حاجت (سورة هود ۷۹) نوولسم عذابِ الٰهی (سورة حجر ۸) شلم دنیوی فائده (سورة نور ۴۹) یوویشتم صحیح جواب (سورة فرقان ۳۳) دوویشتم حصه او

نصيب (سورة ذاريات ۱۹)-
وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَيَقُوْلُوْنَ داسے يئے اُو نه وئيل چه فَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ
دَ مزيد قباحت دَپاره ځکه دا قول دَ دوی دليل دے په عدام علم دَ دوی
باندے - مَاذَآ په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه دا مجموعه يو کلمه ده په
معنی دَ اَیَّ شَیْءٍ سره، دويم قول دا چه مَا استفهاميه دے په معنی دَ ایّ شَیْءٍ
سره او ذَآ په معنی دَ الذی دے او روستو جمله صله ده-
اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا اراده صفت قديمه ذاتيه دَ الله تعالیٰ دے په تيز دَ اهل حق
سره او دَ علم او قدرت نه سيوا دے چه ترجيح ورکوی يو دَ دوه مقدور
فعلونو لره په بل باندے - او اراده صفت دَ مخلوق کښ هم راځی او هغه په معنی
دَ ميلان دَ زړه دے يو طرف ته او کله نه حاصل شی او کله نه حاصليږی او هر
چه اراده دَ الله تعالیٰ ده نو دَ هغے نه تخلف او خلاف کار نه واقع کيږی بلکه
يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ او فَعَّالٌ لِّمَا يُرِيْدُ صفت دَ هغه دے او اراده دَ الله تعالیٰ
کله ذکر کيږی په تعلق کُلّی سره په کارونو پورے او کله ذکر شی په تعلق
سره په جزئيا تو پورے - بِهٰذَا اداد دوی په دے قول کښ اسم اشاره دَ
تحقير او سپکوالی دَ پاره ده-
مَثَلًا دا حال دے يا تميز دے دَ هذا - دا سے په سورة مدثر ۳۱ کښ هم دی
او مقصد دَ کافرانو په دے قول کښ تحقير دَ مثال دے او اشاره ده چه دا
دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه نه دے-
يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا دا دويم حکمت دے دَ ذکر دَ مثال چه هغه مرتب کيدل دَ فائدو
او اثارو مختلفو دی په مثال باندے چه اضلال او هدايت دے او دا په کلام
دَ کافرانو کښ داخل نه دے لکه چه معتزلو خيال کړے دے بلکه دا مستقل
قول دَ الله تعالیٰ دے په دليل دَ سورة مدثر ۳۱ سره-
نسبت دَ اضلال الله تعالیٰ ته حقيقةً دے او په قرآن کريم کښ د بيرش [۳۰]
کرته واقع دے او معنی دَ اضلال منسوب الله تعالیٰ ته پيدا کول دَ فِعل
دَ ضلال دی په بنده کښ او نسبت دَ اضلال شيطان ته په معنی دَ دعوت
ورکولو او وسوسے اچولو دَ پاره دَ گمراه کولو دی (سورة يٰسٓ ۶۲) او کله
نسبت وی فرعون ته (سورة طٰهٰ ۷۹) او نسبت معبود باطل ته (سورة
ابراهيم ۳۶) او نسبت مجرمانو ته (سورة شعراء ۹۹) او سامری ته (سورة طٰهٰ ۸۵)

اوګمراهانو ته (سورة مائده ۷۷) او سردارانو او ملایانو او پیرانو ته (سورة احزاب ۶۷) او هر مفتری (دروغژن) ته (سورة انعام ۱۴۴) او نسبت خواهش ته (سورة صٓ ۲۶) او نسبت منافقانو ته (سورة نساء ۱۴۳) او اهل کتابو باطل پرستو ته (سورة آلعمران ۶۹) او په دے ټولو کښ هغه معنی ده کومه چه په نسبت دَ شیطان کښ ده۔ بِهٖ ضمیر مثال یا ضرب مثال ته راجع دے دا اشاره دَ سبب دَ اضلال ده او مراد دَ دے تکذیب او تحقیر دَ مثال دے په قرینه دَ دے قول سره چه "فیقولون ماذا اراد الله"۔ نو دَ دے نه معلومه شوه چه خلق دَ ضلال دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دے او کسب دَ اسبابو دَ هغے دَ طرف دَ بندګانو نه دے او اسباب دَ ضلال په قرآن کښ ډیر ذکر دی اول تکذیب دَ مثال قرآنی لکه په دے ایت کښ۔ دویم تبدیل دَ کفر په ایمان سره (سورة بقره ۱۰۸) دریم شرک کول (سورة نساء ۱۱۶) څلورم کفر بالله والملائکه والکتب والرسول والیوم الآخر (سورة نساء ۱۳۶) پنځم عصیان دَ الله او رسول (سورة احزاب ۳۶) شپږم دوستانه دَ کافرانو سره (سورة ممتحنه ۱) اووم تابعداری دَ خواهش (سورة انعام ۵۶) اتم منع کول دَ لارے دَ الله تعالیٰ نه (سورة نساء ۱۶۷) نهم اطاعت دَ اکثریت یعنی موجوده جمهوریت (سورة انعام ۱۱۶) لسم دوستانه او اتباع دَ شیطان (سورة حج ۴)۔

وَيَهْدِي بِهٖ كَثِيْرًا، نسبت دَ هدایت په قرآن کښ الله تعالیٰ ته دوه اتیا کرت دے او دا نسبت هم حقیقی دے او مراد دَ دے نه خلق دَ هدایت او توفیق ورکول دی او دائے مشروط کړے دے په صفت دَ انابت سره په سورة رعد ۲۷ او سورة شوریٰ ۱۳ کښ او په صفت دَ اتباع دَ رضا دَ الله تعالیٰ سره لکه په سورة مائده ۱۶ کښ او کله نسبت دَ هدایت نبی صلی الله علیه وسلم ته وی لکه په سورة شوریٰ ۵۲ کښ او کله نسبت وی قرآن ته لکه په سورة اسراء ۹ کښ او دَ دے سورت په ۲ کښ هم تیر شویدی او دا دواړه نسبتونه اسبابو دَ هدایت ته دی او بِهٖ ضمیر مثال یا ضرب المثال ته راجع دے او دَ دے پشان په سورة مائده ۱۶ کښ دے۔

سوال:۔ کثرت او قلت خو دَ امورو متضائفه نه دی یعنی په دواړو جانبینو کښ کثرت نشی راتلے او دا رنګ مؤمنان خو لږ دی لکه په سورة سبا ۱۳ کښ؟

جواب:۔ دلته کثرة فی نفسه مراد دے یعنی ګمراهان ډیر دی او مؤمنان

چه ځان ته اوګوری نوهم ډیر وی اګرچه په نسبت د ګمراهانو سره لږ وی او
دلته کثرت فی نفسه ځکه راوړلے شوچه مقصد د ایت ډیرے فائدے د مثال
ذکر کول دی نو ډیر والے ئے دواړه جانبو ته ځکه ذکر کړو۔
سوال:- په فَاَمَّا الَّذِيْنَ کښ مؤمنان ئے مخکښ ذکر کړل او په يُضِلُّ اه کښ
ګمراهان مخکښ ذکر کړل؟۔
جواب:- اوله جمله کښ مقصد اثبات د حقانیت د مثال وؤ نو د هغے د پاره
علم د مؤمنانو ذکر شو او په دویمه کښ مقصد زیادت د تاثیر وؤ که ثبوتی
وی او که سلبی وی او زیات تاثیر سلبی په کافرانو کښ دے ځکه چه هغوی
په حقیقت کښ ډیر دی۔
وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ اِلَّا الْفٰسِقِيْنَ دا جواب د وهم دے هغه وهم دا دے چه دا ډیر
خلق الله تعالیٰ د څه وجے ته ګمراه کړل؟ حاصل د جواب دا دے چه سبب
د اضلال فسق د دے خلقو دے۔ الْفٰسِقِيْنَ د فسق نه ماخوذ دے او هغه
په لغت کښ وتل دی د یو څیز نه، او په عرف کښ وتل دی د حد نه په اذیت
ورکولو سره د دے وجے نه په یو حدیث کښ ئے پنځه حیواناتو ته فواسق
وئیلی دی چه په حِل او حرم دواړو کښ قتل کول پکار دی ځکه چه هغوی
په اذیت (ضرر) ورکولو کښ په انسان باندے ړومبے والے کوی لکه مار
(لړم)، کارغه، منږک، سپے حمله کوؤنکے او تپوس۔ او په اصطلاح د شریعت
کښ فسق وتل دی د طاعت د الله تعالیٰ او د رسول نه مِن وَجه یا من کل
الوجه نو اول ته فسق د مؤمن وئیلے شی او دویم ته فِسق د کافر وئیلے شی۔
په دے معنی سره په انسان باندے د فاسق اطلاق په کلام د عربو کښ
معروف نه وؤ نو قرآن د دے استعمال اوکړو او د عربو فصحاؤ بلغاؤ په
هغے باندے هیڅ طعن نه دے کړے (قاموس۔ لسان۔ راغب۔ جوهری ټولو
دا لیکلی دی)۔ او د فِسق استعمال په قرآن کښ پنځوس کرته په څلورمعانو
سره راغلے دے اول مطلق ګناه کبیره (سورة بقره ۱۹۷) دویم په معنی
د کفر او شرک (سورة مائده ۴۷) دریم ګناه کبیره بشکته د کفر او شرک نه
(سورة حجرات ۱۱، سورة نور ۴) څلورم صِرف وتل (معنی لغوی سره)
(سورة کهف ۵۰)۔ په دے ایت کښ دویمه معنی مراد ده یعنی فسق په کفر
کښ او اسباب د فسق په قرآن کریم کښ لس ذکر دی اول تولی د ایمان

مِنۢ بَعۡدِ مِيۡثَاقِهٖ ۪ وَيَقۡطَعُوۡنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ

روستو د پوخوالی د هغې نه۔ او پریکوی هغه څیزچه حکم کړیدے الله تعالیٰ

بِهٖۤ اَنۡ يُّوۡصَلَ وَيُفۡسِدُوۡنَ فِى الۡاَرۡضِ ؕ

په پیوستوالی د هغې سره، او ورانے کوی دوی په زمکه (ملک) کښ۔

اُولٰٓئِكَ هُمُ الۡخٰسِرُوۡنَ ﴿۲۷﴾ كَيۡفَ تَكۡفُرُوۡنَ

دغه کسان خاص دوی تاوانیان دی۔ څه رنګه تاسو کفر کوئ

او د اتباع د اخری رسول نه (سورة آلعمران ۸۲) دویم حکم نه کول په ما انزل الله باندے (سورة مائده ۴۴) دریم منافقت (سورة توبه ۷۷) څلورم کفر کول (سورة نور ۵۵) پنځم مسلمان ته د زنا کنځل کول (سورة نور ۴) شپږم ضرر ورکول کاتب او ګواه ته (سورة بقره ۲۸۲) اووم تبدیل د شرع (سورة بقره ۵۹) اتم حیله کول په احکامو شرعیه کښ (سورة اعراف ۱۶۵) نهم ذبح په نصب او استقسام بالازلام (قسمت معلومول په غشو سره) (سورة مائده ۳) لسم په وخت د ذبح کښ نوم د الله تعالیٰ قصداً پریخودل (سورة انعام ۱۲۱) نو په دے اسبابو سره په انسان کښ فسق راشي او بیا که هغه ته په قرآن سره وعظ ورکیدیشي نو د هغه ګمراهي زیاتی کیږی (الا ما شاء الله)۔

۲۷ په دے ایت کښ تعریف د فاسقانو دے او زجر دے هغوی ته په ذکر د درے صفاتِ قبیحو سره او په خسران سره او دا صفات د کافرانو دی ځکه چه د دے مقابل صفتونه د مؤمنانو د پاره ذکر دی په سورة رعد ۲۰ ۲۱ کښ۔ يَنۡقُضُوۡنَ عَهۡدَ اللّٰهِ نقض په لغت کښ سپړدلو د رسئ ته وئیلے شي او دا معنی مستعمل ده په سورة نحل ۹۲ کښ نو په دے کښ عَهۡدَ اللّٰهِ ئے مشابه کړے دے د رسئ سره چه هغه او سپړدلے شي نو بے کاره شي او په هغې سره بیا دوه څیزونه هم نشي یوځائے کیدلے نو دلته مراد مخالفت او انکار کول د عهودو الهیو دے۔ عَهۡدَ، خازن وئیلی دی چه عهد په اصل کښ حفاظت د یو څیز او لحاظ کول د هغې دی وخت په وخت د دے وجے نه په دے کښ د وعدے نه زیات معنی پرته ده او په عهد باندے وفاء واجب ده بالاتفاق او ماده د عهد په قرآن کښ شپږ څلویښت

کړت ذکر دہ پہ درے طریقو سرہ۔ یو امر اللہ (سورۃ بقرہ ۱۲۵) دویم نهی د اللہ تعالیٰ (سورۃ یٰسٓ ۶۰) او د دے نه علاوہ ځایونو کښں عام اوامر نواهی د اللہ تعالیٰ ته شامل دے۔

مِنْ بَعْدِ مِیْثَاقِهٖ دا د وثوق نه اخستے شوے دے پوخوالی ته وئیلے شی. لفظ د میثاق پہ قرآن کښں ۲۵ پنځویشت کرته او مادہ د وثوق اته دیرش ۳۸ کرته ذکر دہ میثاق پہ اصل کښں "عهد مضبوط پہ قسم سرہ" ته وئیلے شی او پہ دے معنی سرہ دے ۲۵ سورۃ بقرہ ۶۳ کښں او دے ته موثق هم پہ سورۃ یوسف ۶۶ ۸۰ کښں وئیلے شویدے او اکثر پہ معنی مصدری سرہ مراد وي لکه دلته هم معنی مصدری مراد دہ۔ او ہ ضمیر اللہ تعالیٰ ته راجع دے یا عهد ته. او مواثیق متعلق دی پہ بنی اسرائیلو پورے پہ سورۃ بقرہ ۶۳ ۸۳ ۸۴ ۹۳ او سورۃ مائدہ ۱۲ ۷۰ کښں او متعلق دی پہ نصارا ؤ پورے سورۃ مائدہ ۱۴ کښں او متعلق دی پہ الذین اوتوا الکتاب پورے سورۃ آلعمران ۱۸۷ کښں او متعلق دی پہ انبیاؤ پورے پہ سورۃ آلعمران ۸۱ سورۃ احزاب ۷ کښں۔ او مواثیق پہ مینځ د بندګانو کښں سورۃ یوسف ۶۶ سورۃ نساء ۹۰ ۹۲ سورۃ انفال ۷۲ او سورۃ نساء ۲۱ کښں دی۔

فائدہ:۔ دلته د عهد اللہ نه پہ مراد کښں ډیر اقوال دی اول دا چه امر د اللہ تعالیٰ بندګانو ته د طاعت کولو د هغه او نهی کول د معاصی نه چه اللہ تعالیٰ پہ خپلو کتابونو کښں او پہ ژبه د رسولانو خپلو سرہ ذکر کړیدی دویم دا چه اللہ تعالیٰ د توحید ښکارہ دلیلونه قائم کړی او موجود کړی دی، نو بندګانو ته ئے د هغے د پارہ عقل ورکړے دے نو دا عهد دے او پہ هغے کښں نظر او فکر نه کول دائے نقض دے۔ دریم هغه عهد دے چه اللہ تعالیٰ پہ قرآن کښں سورۃ اعراف ۱۷۲ کښں ذکر کړے دے، پہ دے درے وارہ قولونو باندے پہ دے کښں ټول مشرکان کافران منافقان داخل دی څلورم عهد دے پہ تورات کښں یهودیانو ته چه د دے نبی صلی اللہ علیه وسلم رسالت به پہ خپله هم منئ او نورو خلقو ته به ئے هم ښکارہ کوئ نو هغوی دغه حق پټ کړو بنا پہ دے دا خاص دے پہ یهودیانو پورے۔ غورہ دا دہ چه آیت عام دے ټولو کافرانو مشرکانو یهودیانو نصارا ؤ او منافقانو ته شامل دے چه عهود الٰهیه ئے پہ مختلفو طریقو سرہ

مات کړے دی او الله تعالیٰ د دغه عهودو وثوق (پوخوالے) کړیدے په عقلی دلیلونو او په قرآن او آخری نبی ﷺ سره -
وَيَقۡطَعُونَ مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِهِۦٓ أَن يُوصَلَ، قطع مقابل د وصل دے دوه ټکړے کول او پریکول یو څیز د بل نه جدا کول په دے معانیو باندے اکثر استعمال شویدے او کله په معنی د هلاکولو راځی (لکه سورة آلعمران ۱۲۷) او کله مسافت قطع کول په زمکه کښ (سورة توبه ۱۲۱ سورة رعد ۳۱) او کله په معنی د تعلقات ختمیدال (سورة بقره ۱۶۶) او کله په معنی د جرح کول (سورة یوسف ۳۱) او کله په معنی د نسل بندول (سورة عنکبوت ۲۹) او کله په معنی د بیخ کندئ کولو (سورة انفال ۷) او په معنی د تقسیم کولو (سورة اعراف ۱۶۰) او په معنی د مرئ خپه کولو (سورة حج ۱۵ بنا په یو قول) او په معنی د فیصلے کولو (سورة نمل ۳۲)- أَن يُوصَلَ دا په تاویل د مصدر سره بدل دے د ضمیر د بِهِۦ نه یعنی مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ بِوَصۡلِهِۦ- شربینی او قرطبی وغیره لیکلی دی چه مراد د دے نه هره خطیئة (غلطی) ده چه الله تعالیٰ په هغے باندے ناراض دی- خپلولی پریکول، د مؤمنانو د دوستانے نه مخ اړول، د انبیاء علیهم السلام او د کتابونو الٰهیو په مینځ کښ په ایمان راوړلو کښ فرق کول، جماعت د مسلمانانو پریښودل او هر هغه کار کول چه په هغے کښ خیر پریښودل او شرک کول وی چه دا ټول څیزونه د الله تعالیٰ او د بنده په مینځ کښ وصلت (پیوستوالے) ختموی او دا رنګ د قرآن او د حدیث په مینځ کښ فرق کول یعنی منل د قرآن او نه منل د حدیث، او احکام شرعیه بعض منل او بعض نه منل دا ټول په دے کښ داخل دی - مَآ أَمَرَ ٱللَّهُ دا قید ئے د دے وجے نه راوړلو چه هغه وصل چه الله تعالیٰ د هغے نه منع کړے وی نو هغه تر دینه خارج دے لکه براءت کول د مشرکانو او منافقانو سره او هجران کول د مبتدعینو او فاسقانو سره- يُوصَلَ، ماده د وصل په قرآن کښ دولس کرته ذکر ده کله په معنی د رسیدلو یو څیز ته (لکه سورة هود ۸۱) او کله په معنی د عهد سره (سورة نساء ۹۰) او کله په معنی د رعایت کولو د جمع او د وصل لکه په دے آیت کښ -
وَيُفۡسِدُونَ فِي ٱلۡأَرۡضِ تحقیق د لفظ فساد مخکښ تیر شویدے قرطبی وئیلی دی مراد د دے نه عبادت د غیر الله دے او ظلم کول دی په کارونو کښ

په سبب دَ شهواتو خپلو سره او خازن وشربيني وئيلي دي مراد دَ دے نه عام گناهونه او خلق منع كول دي دَ ايمان را وړلو نه په محمد صلى الله عليه وسلم او استهزاء كول په حق پورے او نسفي پكښ قطع السبيل (لاړے شوكول) هم شمار كړيدي. معلومه شوه چه دا لفظ عام دے دِے ټولو نه او دَ مخكښ چلے سرهٔ دَ مناسبت دَ وجے نه اعتراض كول په قرآن باندے پكښ هم داخل دے۔

فائده ۱ په دے درے كارونوكښ په هر روستني كښ ترقي ده په نسبت دَ مخكني. سپړدل دي نو دَ رسئ فائده ترينه نشي اخستلے كيدے ليكن دَ دوباره اودلو (جوړولو) احتمال ئے شته دے او قطع پريكول دي چه بيائے وصل امكان نه لري مګر عارضي وصل كيديشي او فساد خو بالكل بے كاره او بے فائدے كيدل دي. نو دا ترقي ده دَ ادنٰى نه اعلىٰ ته په گناهونوكښ.

فائده ۲ په دے درے صفاتوكښ دوه احتمالونه دي اول دا چه گناهونه په درے درجاتو او قسمونو سره دي اول هغه قِسم گناهونه دي چه دَ عهود و سره تعلق لري دويم قسم هغه دي چه په هغےكښ معنى دَ وصل پرته وي او هغه پرے كړے (ختم) شي دريم قِسم هغه دي چه په هغے سره نظام دَ عالم خرابيږي او دَ هر يو مثالونه مخكښ ذكر شول. دويم احتمال دا دے چه هر قِسم گناه كښ دا درے صفتونه دي چه په كښ نقض عهد دے او قطع دَ وصل ده او فساد دے، دَ دے وجے نه دَ دے درے واړو ذكر او كړے شو او دا په دے ترتيب سره په سورة رعد ۲۵كښ هم ذكر دي.

أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ دا تخويف دے چه مرتَّب دے په دغه درے صفتونو باندے. خسران په اصل كښ نقصان ته وئيلے شي كه په وزن كولوكښ يا بل څه كښ وي او په دے معنى سره په (سورة مطففين ۳) كښ ذكر دے او بقاعي نظم الدرر كښ وئيلي دي "خاسر هغه ځوک دے چه دَ هغه سره رأس المال وي او فائده (گټه) پكښ كيدلے شي ليكن په بے تدبيرئ سره په هغےكښ كمے اوكړي". او امام رازي وئيلي دي چه "خاسر هغه ځوک دے چه داسے عمل اوكړي چه په هغے باندے ثواب نه ملاويږي". قرطبي وئيلي دي هغه ځوک چه خپله حصه كمه كړي دَ فلاح او دَ كاميابئ نه نو هغه خاسر دے. او ضلال او هلاكت ته هم وئيلے شي په دے معنى

بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ

په الله تعالیٰ باندے او حال دا چه تاسو نیشت وئ نو ژوندی یئے کړئ تاسو بیا به مړه کوی تاسو

ثُمَّ يُحْيِيكُمْ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٢٨﴾

بیا به ژوندی کړی تاسو، بیا به خاص هغه (الله تعالیٰ) ته ورگرځولے شئ تاسو۔

باندے په (سورة مؤمن ۸۵ ۸۵) کښ دے۔

فائده ۱: په دے ایت کښ د خسران درے اسباب ذکر شول او د دے نه علاوه نور اسباب هم دی:- څلورم سبب شیطان سره دوستانه کول (سورة نساء ۱۱۹)، پنځم تکذیب د لقاء الله (د ملاقات د الله تعالیٰ) (سورة انعام ۳۱)، شپږم قتل د اولاد خپل (سورة انعام ۱۴۰)، اووم مرتد کیدل (سورة حج ۱۱ سورة آلعمران ۱۴۹)، اتم کفر بالکتاب (سورة بقره ۱۲۱)، نهم کفر بالله تعالیٰ (سورة عنکبوت ۵۲) لسم حزب الشیطان (سورة مجادله ۱۹)، یوولسم د اسلام نه سیوا بل دین منل (سورة آلعمران ۸۵)، دولسم قتل د مؤمن عمدًا (سورة مائده ۳۰)، دیارلسم حرمان د مغفرت او رحمت د الله تعالیٰ نه (سورة اعراف ۱۴۹)، څوارلسم تکذیب بالآیات (سورة یونس ۹۵)، پنځلسم تکذیب د نبی (سورة اعراف ۹۲)، شپاړسم شرک کول (سورة زمر ۶۵)، اوولسم په خپل رب باندے بدګمانی کول (سورة حم سجده ۲۳) او دے ټولو اسبابو ته اشاره ده په دے قول د الله تعالیٰ کښ چه "اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِيْ خُسْرٍ" (سورة عصر ۲)

فائده ۲: هغه درے صفات چه په دے ایت کښ ذکر شول دا جامع او شامل دی دغه ټولو اسبابو ذکر کړے شوؤ ته د دے وجے په دے سورت کښ دا درے ئے خاص کړل په ذکر سره۔ او هر کله چه دا صفات د کافرانو دی چه هغه پوره ګمراهان دی او الْخٰسِرُوْنَ نه مراد هم پوره خسران والا دی د دے وجے نه حصر ئے د دوی او کړو په ضمیر فصل او تعریف د مبتدأ او خبر دواړو سره۔ نو معلومه شوه چه مؤمن ګناهګار کښ لږ خسران راتلے شی او پوره خسران په کافر پورے خاص دے۔

۲۸ ربط د ایت د ماقبل سره دا دے چه مخکښ ایت کښ صفات او حال د کافرانو ذکر شو نو اوس زورنه ورکوی په کفر سره د وجود د دلیلونو د ایمان نه۔ دویم ربط دا دے چه مخکښ اثبات د توحید او د رسالت

اُوشوا او په مینځ کښې تخویف او بشارت او جواب وسوال ذکر شو نو اوس بیا واپسی ده اول مقصد ته چه اثبات د توحید دے په ذکر کولو د ځلورو انعاماتِ عامه سره (چه متعلق دی په انسان پورے) نو په دے ایت کښې اول انعام عام ذکر کوی چه حیات ورکول دی انسانانو ته۔

كَيْفَ دالفظ د پاره د استفهام د حالت راځی او دا لفظ په قرآن کښې درے اتیا کرته راغلے دے. نو کله په دے کښې معنی د انکار او زجر وی لکه په دے ایت کښې او په سورة آلعمران ۸۶ کښې، او کله پکښې معنی د اقرار وی لکه په سورة غاشیه ۱۷ ۱۸ ۱۹ ۲۰ کښې او اکثر په کښې معنی مصدری په معنی د کیفیت سره مراد وی لکه په سورة اعراف ۱۲۹ او سورة یونس ۱۴ کښې. او بعضو علماؤ وئیلی دی چه په دے کښې معنی د تعجب ده کله چه د انسان د طرف نه وی او چه د الله تعالیٰ د طرف نه وی نو هغه وخت معنی د تعجیب ده یعنی په تعجب کښې اچول. نو دلته حاصل د ایت دا دے چه سرهٔ د وجود د دے ښکاره انعامانو نه (چه روستو ذکر کیږی) ستاسو کفر کول ډیر عجیبه دی او دا نه دے پکار۔

تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ، قرطبی وئیلی دی چه معنی دا ده "څه رنګ د الله تعالیٰ د وجود نه انکار کوئ او د هغه نه سیوا د بل چا عبادت کوئ" اشاره ده چه دلته خطاب دے عام کافرانو ته که الله تعالیٰ نه منی یا مشرکان وی او عوام وی که کتابیان وی۔

وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا، واو د پاره د حال دے. اموات جمع د میّت ده که په تشدید سره وی او که تخفیف سره وی ځکه چه په دے لفظ کښې شد او سکون د یا دواړه جائز دی. او موت په قرآن کریم کښې یوسل ۱۵۹ نهه پنځوس کرته ذکر دے او قرآن کښې د دے یوولس ۱۱ اطلاقات راغلی دی اول په معنی د عدم سابق لکه په دے ایت کښې. دویم په معنی د موت عقابی (چه په هغے پسے دنیوی ژوند راتلے شی) (سورة بقره ۲۴۳) دریم موت اعجازی (په دنیا کښې په طریقه د خرق عادت سره چه ورپسے بیا ژوند دنیوی راځی) (سورة بقره ۲۵۹) څلورم مرګ د شهادت (سورة آلعمران ۱۴۳) پنځم اسباب د مرګ (سورة ابراهیم ۱۷) شپږم په معنی د جهل (سورة انعام ۱۲۲) او وم عدم د قوتِ نباتیه (سورة فرقان ۴۹) اتم عدم د ایمان

(سورة یونس ۳۱) نهم موت تمثیلي (سورة روم ۵۲) لسم ډیرغمونه (سورة ابراهیم ۱۷ بنا په یو تفسیر) یوولسم موت حقیقي یعنې جدا کیدل د روح د جسد نه دلته دامعنی مراد ده - بیا په موت کښ دوه قولونه دي اول داچه موت مطلق عدم الحیاة ته ویلے شي که وصف د ژوندا حساسي پکښ راتلے شي او که نشي راتلے لکه په سورة فرقان ۵۹ او یٰس ۳۳ او سورة قٓ ۱۱ کښ او په دے قول سره د دوي په مینځ کښ تقابل د تضاد دے - دویم قول داچه موت عدم د حیات دے د هغه څیزنه چه شان د هغے ژوندِ احساسي وي او په دے قول باندے تقابل عدم والملکة دے. نو بِنا په اول قول باندے دلته مراد د اَمۡوَاتًا نه هغه اجسام دي چه ژوند په کښ نه وي لکه عناصر، غِذاګانے، نطفے، ټکړے د وینے، ټکړے د غوښے. او بِنا په دویم قول مراد د دے نه صِرف حال د وجود د نطفے دے په شاګانو د پلارانو او په رِحمونو د مائینداو کښ نو په اول قول معنی د اَمۡوَاتًا نیشت ده لکه په سورة دهر ۱ کښ او په دویم قول معنی د اموات بے ساه څیزونه دي فَاَحۡیَاکُمۡ دلته مراد د احیاء نه حیاتِ حقیقیه دے یعنې ساه اچول په هغه بدن کښ چه د مور په رِحم کښ تقریبًا په څلورو میاشتو کښ تیار شویدے او دا حیات څه موده په خیټه د مور کښ دے او روستو د پیدائش نه په دنیا کښ دے چه روح په بدن کښ حقیقةً موجود دے او ټول احساسات حیوانیه پکښ پیدا شویدي -

فائده:- ماده د لفظ حیات په قرآن کښ یوسل اته اتیا ۱۸۸ کرته راغلے ده او د دے اوه اطلاقات دي اول قوتِ عاقله او علم (سورة انعام ۱۲۳) دویم قوتِ نباتیه (تازه کیدل) (سورة یٰس ۳۳) دریم حیاتِ اُخرویه ابدیه (سورة فجر ۲۴) څلورم مزے حاصلول او بے غمه کیدل (سورة بقره ۱۵۴ په قول د امام راغب سره په مفردات کښ) پنځم صفت د الله تعالیٰ او دا صفتِ حقیقیه د الله تعالیٰ دے په دے باندے بلا تشبیه وتمثیل او بلا تاویل او تحریف (سورة بقره ۲۵۶، سورة آل عمران ۲، سورة فرقان ۵۸) شپږم حیاتِ حکمیه د قبر (برزخ) (سورة بقره ۱۵۴ سورة آل عمران ۱۶۹) اووم حیات حقیقیه په معنی د قوت حساسه په روح اچولو سره په بدن کښ او دا معنی په دے لفظ فَاَحۡیَاکُمۡ کښ مراد ده او په ډیرآیاتونو کښ ده۔

ثُمَّ يُمِيتُكُمْ مراد دے نه موت حقيقيه دے يعني روح د بدن نه جدا كول په مقرر نيټه باندے۔
سوال :- په دے ايت كښ مقصد ذكر د انعاما تو دے نو اماتت (مرګ) څه رنګ انعام دے؟۔
جواب ۱ :- هر كله چه لوئے مقصد حيات د جنت دے او اماتت د هغے د پاره ذريعه او وسيله ده نو په قانون د لِلْوَسَائِلِ حُكْمُ الْمَقَاصِدِ سره اماتت هم په انعاما تو كښ شمار دے۔ دا رنګ د ټولو عقل والو په نيز باندے مسلّم ده (منلے شويده) چه انسان د ژوند اخرى وخت ته اُورسيږى چه هغے ته زمانه د هرم او د ارذل العمر وئيلے شى نو كله دا انسان يخپله بلكه نور انسانان هم د هغه مرګ انعام ګنړى۔
جواب ۲ :- په دے ايت كښ صرف انعام اول فَأَحْيَاكُمْ سره مقصود وُو او ورسره بل مقصد ذكر د قدرتِ عظيمه د الله تعالىٰ دے د دے وجے نه د احيا او اماتت نسبت ئے الله تعالىٰ ته ذكر كړے دے۔
ثُمَّ يُحْيِيكُمْ په دے كښ مشهور او صحيح قول دا دے چه مراد د دے نه بعث بعد الموت دے چه هغے ته حياتِ اُخرويه حقيقيه وئيلے شى او دليل په دے باندے اول روايت د ابن عباس او ابن مسعود رضى الله عنهم دے چه قرطبى او نورو مفسرينو نقل كړے دے او دويم دليل په دے باندے سورة مؤمنون ۱۵ او سورة زمر ۳۰ دے چه په هغے كښ په موت پسے بعث د يوم القيامت ئے ذكر كړے دے او ابن عطيه وئيلى دى چه دا قول په دے ايت كښ صرف مراد دے او ابن كثير او آلوسى په روح المعانى او شاه عبد العزيز او ابن جوزى په زاد المسير كښ دے قول ته صحيح وئيلى دى۔ دويم قول ابن كثير د سدى عن ابى صالح نه نقل كړے دے چه مراد د دے نه اِحياء فى القبر ده ځكه چه د غه حيات په قرآن (سورة بقره ۱۵۴ سورة آل عمران ۱۶۹) كښ او په احاديث صحيحه سره ثابت دے۔ ليكن اراده د دے قول په دے ايت كښ په څو وجوسره ضعيف ده اول خو ځكښ ذكر شوؤ مفسرينو رد كړے دے او دے ته ئے ابعد الاقوال وئيلى دى۔ دويم دا د ايت د سورة مؤمنون او سورة زمر نه خلاف راځى دريم دا چه خلاف راځى د ايت د سورة مؤمن ۱۱ نه، څلورم وجه دا ده چه دلته

حیاتِ فی القبر مراد شی نو ثم الیه ترجعون سره به بعث بعد الموت مراد وی اوکه نه وی مراد؟ که مراد وی نو په حیات فی القبر پسے په بل مرګ مراد وی اوکه نه وی؟ که بل مرګ مراد وی نو اول خو دَ هغے بل مرګ دَ پاره صحیح دلیل نیشته دویم دا چه لازم شول درے مرګونه او درے ژوندونه اوکه حیات فی القبر پسے بل مرګ مراد نه وی نو یو خو بعث بعد الموت سره احیاء دَ ژوندی لازمیږی او دا خو تحصیل حاصل دے او بله دا چه درے حیا تونه لازم شول او دا تول مخالف دی دَ ایت دَ سورة مؤمن ساا نه. او قرطبی وئیلی دی چه په یو احتمال سره په دے ایت کښ درے مرګه او درے ژوندونه ثابتیږی او په بل احتمال سره څلور څلور او په بل سره پنځه پنځه (هلته یې اوګورئ) لیکن دا ټول صِرف په درجه دَ احتمال کښ دی په تفسیر دَ دے ایت کښ دا مراد نه دی.

سوال:- هرکله چه دلته حیات فی القبر مراد نه شی نو معلومه شوه چه قول دَ معتزله حق دے چه هغوی دَ دے نه انکار کوی؟

جواب:- عدم ذکر دَ دغه حیات مستلزم نه دے عدم ثبوت لره ځکه چه دَ هغے دَ ثبوت دَ پاره نور دلیلونه دَ قرآن او دَ احادیثو موجود دی.

سوال:- هرکله چه حیات فی القبر ثابت دے نو په دے ایت کښ یې ولے نه ذکر کوؤ؟

جواب:- په دے ایت کښ هغه اماتت او احیاء ذکر کوی چه حقیقی دی او حیات فی القبر حیاتِ حکمیه دے هرکله چه مشرکان دَ حیاتِ حقیقیه دَ قیامت نه انکار کوی نو دَ حیاتِ حکمیه نه خو په طریق اولیٰ سره انکار کوی نو دلته حیاتِ حقیقیه یې دَ دے وجے نه ذکر کړو چه دَ هغے اثبات عقل ته قریب دے.

او حیاتِ فی القبر ځکه حیاتِ حقیقیه نه دے چه حیاتِ حقیقیه هغه ژوند دے چه په هغے کښ تعلق دَ روح دَ بدن سره وی په تعلق دَ اتصال او ادخال سره او حیات فی القبر کښ تعلق دَ روح دَ بدن سره نیشته او سید انور شاه کشمیری مؤلف دَ فیض الباری (او دَ نورو کتابونو) په مشکلات القرآن ص۹ کښ وئیلی دی "تحقیق آنست که معنی حیات تعلق روح به بدن است و در قبر اصلاً تعلق روح به بدن نیست بلکه بقاءِ شعور و ادراکِ روح را بعد از مفارقت از بدن تعبیر بحیات فرموده اند"

ترجمه :- تحقیق دا دے چه معنیٰ دَ حیات دا ده چه تعلق دَ روح دے دَ بدن سره او په قبر کښں بالکل تعلق دَ روح دَ بدن سره نیشته بلکه باقی پاتے کیدل دَ یو هے دَ روح روستو دَ جدا کیدلو دَ بدن ته دَ دینه تعبیر په حیات سره کیږی۔

او ابن قدامه المقدسی په مختصر منهاج القاصدین ص۳۳۴ کښں وئیلی دی چه دَ آیاتونو او احادیثو نه ثابته ده چه حقیقت دَ مرګ جدا کیدل دَ روح دی دَ بدن نه او روح باقی وی یا په نعمتونو کښں یا په عذاب کښں بغیر دَ تعلق دَ دهٔ نه دَ اعضاؤ دَ بدن سره۔ او محمد بن عبد الهادی متوفی ۷۴۴ھ په کتاب الصارم المنکی کښں ذکر کړیدی وَلِيُعْلَمَ اَنَّ رَدَّ الرُّوحِ بَعْدَ الْمُوْتِ لِلْبَدَنِ وَعَوْدُهَا اِلَى الْجَسَدِ بَعْدَ الْمَوْتِ لَا يَقْتَضِیْ اِسْتِمْرَارَهَا فِيْهِ وَلَايَسْتَلْزِمُ حَيَاةً اُخْرٰى قَبْلَ يَوْمِ النُّشُوْرِ نَظِيْرَ الْحَيَاةِ الْمَعْهُوْدَةِ بَلْ هِیَ اِعَادَةٌ بَرْزَخِيَّةٌ لَا تُزِيْلُ عَنِ الْمَيِّتِ اِسْمَ الْمَوْتِ، وَالْحَيَاةُ جِنْسٌ تَحْتَهَا اَنْوَاعٌ وَكَذٰلِكَ الْمَوْتُ اه ص۱۸۵ - ترجمه :- او معلومه دِ وی چه واپس کیدل دَ روح پس دَ مرګ نه بدن ته (لکه چه په حدیث دَ براءؓ بن عازب کښں ثابت دی) همیشوالے دَ هغه روح په بدن کښں نه غواړی او نه ترینه لازمیږی بل ژوند پشان دَ ژوند دنیوی مخکښں دَ ورځ دَ قیامت نه بلکه دینه اعاده برزخیه وئیلے شی چه نوم دَ مرګ دَ مړی نه نه زائیل کوی او ژوند یو جنس دے چه دَ هغه دَ لاندے ډیر اقسام دی لکه نوم دَ مرګ) او هرکله چه ثابته شوه چه حیات فی القبر حیاتِ حقیقیه نه دے نو دَ هغے سره نه لازمیږی اوریدل اولیدل او نور حرکات دَ ژوند دنیوی پشان. نو کوم جاهلان چه وائی چه تاسو دَ مړو سماع اولیدل وغیره نه منئ نو معلومه شوه چه تاسو دَ هغوی دَ ژوند نه انکار کوئ دا قول ئے په جهل باندے بِنا دے ځکه چه اوریدل اولیدل په حیاتِ حقیقیه باندے بِنا دی او هغه نیشته دے او مونږ ژوند منو لیکن حکمیه برزخیه ژوند، نه حقیقیه نور تفصیل کَ دے به انشاء الله تعالیٰ په تفسیر دَ ۱۵۴ او سورة زمر ۴۲ کښں راشی۔

ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ دا رجوع روستو دَ حشر او بعث نه دَ پاره دَ حساب او جزاء سزا مراد ده۔

سوال :- هرکله چه خطاب وُدَ کافرانو سره نو هغوی خو دَ بعث بعد الموت نه منکر وُ نو څه رنګ دا خطاب ئے اوکړو په يُحْيِيْكُمْ اه سره

هُوَ الَّذِیۡ خَلَقَ لَکُمۡ مَّا فِی الۡاَرۡضِ جَمِیۡعًا ٭ ق

الله تعالیٰ هغه ذات دے چه پیدا کړیدی ستاسو د فائدے دپاره هغه څیزونه چه په زمکه کښ دی ټول

ثُمَّ اسۡتَوٰۤی اِلَی السَّمَآءِ فَسَوّٰىهُنَّ سَبۡعَ

بیا اراده اوکړه الله تعالیٰ آسمان ته نو برابر ئے جوړ کړل اووه

سَمٰوٰتٍ ؕ وَ هُوَ بِکُلِّ شَیۡءٍ عَلِیۡمٌ ﴿۲۹﴾ ع

آسمانونه ۔ او هغه (الله تعالیٰ) په هرڅه باندے پوهه دے ۔

په طور د انعاماتو؟ ۔ جواب:۔ مخکښ تیر شول چه مقصد په ایت کښ صِرف ذکر د انعاماتو نه دے بلکه اظهار د قدرت د الله تعالیٰ دے په دوباره ژوندی کولو باندے او اول ژوند په دے باندے ښکاره دلیل دے نو د هغے نه انکار کول د عقل والو شان نه دے۔

فائده:۔ فَاَحۡیَاکُمۡ کښ ئے فا او په روستو دواړو ځایونو کښ ئے ثم راوړے دے وجه دا ده چه کله په رحم د مور کښ بچے جوړ کړے شو نو څلورمیاشتو پورے بے ساه وئ نو زر ئے پکښ ساه واچوله نو د دے وجے نه ئے فا ذکر کړیده او مرګ خو په پیدائیش او دارنګ په مرګ پسے دوباره ژوندی کیدل او په دوباره ژوند پسے جزا او سزا دا پیوست نه دی په مینځ کښ څه موده او وخت حاصل وی نو د هغے دپاره ثمّ، ثمّ ذکر کړے شو۔

۲۹ په دے ایت کښ دویم انعام عام ذکر کوی چه تعلق د اِبقاء د انسان سره لری روستو د احیاء د هغه نه او هر کله چه ظاهر ابقاء د انسان د زمکے په نعمتونو سره ده د دے وجے نه خلق د مَا فِی الۡاَرۡضِ ئے ذکر کړو۔ او دارنګ دا دلیل دے دپاره د بعث بعد الموت چه په اِلَیۡهِ تُرۡجَعُوۡنَ سره ذکر شویدے او هر کله چه دا مستقل انعام دے او علت هم دے د دے وجے نه بغیر د عطف نه ذکر شو۔

هُوَ الَّذِیۡ خَلَقَ، مبتدأ او خبر دواړه معرفے دی دلالت کوی په حصر باندے او حصر د دلیل دلالت کوی په حصر د دعوٰی باندے چه هغه حصر د عبادت دے د الله تعالیٰ دپاره۔

لَکُمۡ مَّا فِی الۡاَرۡضِ جَمِیۡعًا هر کله چه مقصد د خلق انتفاع ده د دے وجے نه

لَكُمْ ئې مخكښ ذكر كړو. لام په لغت د عربو كښ د مختلف معانو د پاره راځي لكه ملكيت، انتفاع او لام اجليه وغيره. لام د مِلك د پاره نه صحيح كيږي ځكه چه د ملكيت سره لفظ د خلق مناسب نه دے بلكه د هغے د پاره لفظ د جعل پكار دے دا رنګ د زمكے ټول څيزونه د انسانانو مملوك نه دي برابره خبره ده چه ملكيت نجي وي او كه ملكيت اجتماعي وي ځكه چه ډير څيزونه د انسانانو د ملكيت نه بهر دي. نو لام د انتفاع د پاره دے او لام اجليه هم دے ته په معنى كښ قريب دے د دے وجے نه شربيني، آلوسي او نسفي وغيرهم دلته لِاَجْلِكُمْ وَانْتِفَاعِكُمْ لفظونه لګولي دي او دا انتفاع برابره خبره ده كه دنيوي وي او كه ديني وي او دنيوي عامه ده كه بالذات وي او كه بالواسطه وي او ديني انتفاع عام ده توحيد ته او تذكير د آخرت او تذكير د جنت او د نار ته. يعني دا ټول څيزونه موجودات حيوانات نباتات جمادات مائعات هوائي وغيره دلالت كوي په توحيد د الله تعالى باندے دا رنګ د دے دنيا نعمتونه او مزے او تقمتونه او سختئ او زهريلي څيزونه دلالت كوي په ياد داشت د جنت او د اُور د جهنم باندے او دا رنګ مختلف نمونے د قدرتونو د الله تعالى دلالت كوي په قدرت د الله تعالى په بعث بعد الموت باندے. او دا تعميم غوره قول دے او په دے سره هغه سوال دفع شو كه څوك اُوائي چه په زهريلي ځناورو يا ګنده څيزونو وغيره سره انتفاع نيشته؟ حاصل د جواب دا دے چه په بعضو كښ انتفاع بالواسطه شته دے او انتفاع ديني اخروي خو په ټولو كښ شته دے. فِي الْأَرْضِ دا شامل دے هغه څيزونو ته چه په زمكه كښ دننه دي او هغے ته چه د زمكے د پاسه دي يعني محل او حال ظرف او مظروف پكښ دواړه داخل دي.

جَمِيعًا دا حال دے د لفظ د مَا نه د پاره د تاكيد لكه په سورة جاثية [۱۳] كښ. او مخكښ عموم نه معلومه شوه چه جميع څيزونه د پاره د انتفاع دي نو بعضِ علمائ چه دلته وئيلي دي چه د جَمِيعًا سره تقطيع ده په كلام كښ په اصل كښ اِعْتَقِدُوْا جَمِيْعًا مِنْهُ دے نو دا تكلّف دے بغير د دليل او بغير د ضرورت نه.

سوال:- دا آيت دليل دے د پاره د اباحيو په متصوفو كښ او اشتراكيو چه د دے نه معلومه شوه چه د دنيا ټول څيزونه حلال او مباح دي

اوزن، زر، زمین هم مشترک دی؟ جواب ع۱: د دے نه معلومه شوه چه د دُنیا هرڅیز د پاره د انتفاع دے او انتفاع عام ده دنیوی او دینی ته لکه چه مخکښ ذکر شول او انتفاع په دے معنی عام سره اباحت د هرڅیز لره مستلزم نه ده. جواب ع۲ دلته مقابله د جمع د جمع سره ده یعنی لکم او جمیعًا او قاعده د عرف د عربو دا ده چه مقابله د جمع د جمع سره تقاضا کوی د انقسام د احادو په احادو باندے او تخصیص د یو منفعت په یو شخص پورے د دلیل شرعی نه معلومیږی، دا سے نه ده چه د هرڅیز نه انتفاع هر شخص لره جائز شی۔

سوال:- د دے ایت نه معلومه شوه چه اصل په څیزونو کښ اباحت دے او مبتدعین په دے باندے تفریع کوی چه د یو کار نه په شریعت کښ نهی نه ده موجود نو معلومه شوه چه هغه بدعت نه دے بلکه مباح دے؟

جواب:- په دے مسئله کښ اختلاف دے چه اصل په اشیاؤ کښ اباحت دے یا حرمت دے یا توقف دے. لیکن د اصل معنی دا ده چه د هغے په باره کښ څه امر یا نهی یا حکم شرعی نه وی ښکاره نو اصل به څه څیز وی نو مسلم الثبوت کښ وئیلی دی چه دا اختلاف هغه وخت امکان لری چه شرع نه وه نازل شوے او روستو د نزول د شرع نه خو د هرڅیز حکم په شرع کښ موجود دے نو اصل ته اعتبار نیشته. او که او منلے شی چه روستو ورود د شرع نه هم اصل ته رجوع کیدیشی نو شاطبی په کتاب الاعتصام ص۳۰ کښ وئیلی دی چه دا اختلاف په امورو عادیو کښ دے عباداتو کښ نه دے او اکثر بدعات خو مبتدعینو په عباداتو کښ جوړ کړیدی او که او منلے شی چه دا مسئله په عباداتو کښ هم جاری ده نو در مختار کښ وئیلی دی چه صحیح د مذهب د اهل سنت نه دا دے چه اصل په اشیاؤ کښ توقف دے او اباحت رائ د معتزلو ده او نسفی په مدارک کښ وئیلی دی چه دا قول د کرخی او ابوبکر رازی او معتزلو دے او قرطبی وئیلی دی چه دا اقوال د معتزلو دی او زمونږ په نیز په هرڅیز کښ حکم شرعی موجود دے او په وخت د عدم علم د هغه حکم کښ توقف دے. او قرطبی د ابن العربی نه نقل کړیدے چه په دے ایت کښ داسے څه څیز نیشته چه تقاضا او کړی د حرمت یا اباحت یا توقف بلکه مقصد د دے ایت خو دلیل او تنبیه دی

د پاره د استدلال په توحید د الله تعالیٰ باندے او په مبتدعینو باندے الزامی رد دادے چه د هر بدعت حکم شرعی خو صریح موجود دے په حدیث صحیح کښې "کُلُّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ وَكُلُّ ضَلَالَةٍ فِي النَّارِ" او بالفرض که د بدعت اباحت ثابت شی نو د مباح نه مستحب جوړول یا واجب جوړول خو بدعت دے بالاجماع۔

ثُمَّ اسْتَوٰٓى اِلَى السَّمَآءِ، ثم د عطف د پاره د تعقیب سرهٔ د تراخی نه وضع شویدے او کله د استبعاد او کله د تعقیب ذکری او کله د تفاوت بین الامرین د پاره استعمالیږی. دلته بغیر د استبعاد نه د نورو معانو احتمال شته دے لکه چه روستو به د تفصیل نه معلومیږی. اسْتَوٰٓى ابن جریر د استواء پنځه معانی ذکر کړیدی اول پوره والے د ځوانئ د انسان، دویم استقامت بغیر د کوږوالی نه، دریم اقبال او توجه کول یو شیز ته، څلورم غلبه کول په یو شیز باندے پنځم ارتفاع او علو (اوچتوالے)۔ بیا هغه وئیلی دی چه دلته دریمه معنی یا پنځمه معنی مراد ده او ابن کثیر وئیلی دی چه استواء معنی د قصد لره متضمن ده او بیهقی وائي چه استواء په معنی د اقبل دے او امام بخاری د ابوالعالیه نه روایت کړے دے چه استواء په معنی د ارتفع دے (اوچت شو او ابن جریر دا قول د ربیع بن انس نه نقل کړے دے او فراء بغوی په معالم التنزیل کښې وئیلی دی چه ابن عباس او اکثر مفسرینو وئیلی دی چه دا په معنی د ارتفع دے او دا رنګ خلیل بن حمد نه دا روایت ابن عبدالبر په شرح د مؤطا کښې او ذهبی په کتاب العلو کښې راوړے دے بنا په دے باندے دا د ایاتونو د صفاتونه دے چه د هغے تفصیل به په سورة اعراف کښې ان شاء الله رائحی او مقبول په دے کښې مذهب د سلف صالحینو دے او قرطبی دلته قول د امام مالک رحمة الله علیه نه نقل کړے دے چه استواء مجهول نه ده او کیف معقول نه دے او ایمان لرل په دے باندے واجب دی او تپوس کول د دے نه بدعت دے. او قرطبی وئیلی دی چه کوم روایت د ابن عباس کښې راغلی دی چه استواء په معنی د صعد دے نو دا روایت په واسطه د کلبی دے او کلبی ضعیف دے۔

اِلَى السَّمَآءِ، سوال:۔ هر کله چه آسمان موجود نه وُو نو هلته ئے څنګه استواء او کړله؟۔

جواب ۱: مراد دَ دے نه معنی لغوی ده یعنی اوچت طرف او دَ دے وجے نه ئے دا مفرد ذکر کړو۔
جواب ۲: مراد دَ دے نه مادہ دَ سماء دہ لکه چه په سورة حم سجده ۱۱ کښ ذکر دہ هغے ته ئے سماء حکمًا اُوئیل۔
فَسَوّٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوٰتٍ، هُنَّ ضمیر سماء ته په اعتبار دَ جنس سره راجع دے یا سماء جمع دَ سماءة ده نو ضمیر دَ جمع ور ته ځکه راجع کړے شوے دے۔ او مراد دَ تسویه نه داعدل دَ اُوو پوره کول دی بغیر دَ کوږوالی او بغیر دَ تفاوت نه او سَبْعَ لفظ صریح دے په دے عدد خاص کښ او بل دلیل شرعی نیشته په زیات عدد باندے نو دا سے وئیل چه اسمانونه نهٔ دی دا دَ شرع نه خلاف قول دے او اسمانونه موصوف دی په طباقًا سره په سورة ملک ۳ او په شِدَادٍ سره په سورة نبا ۱۲ کښ او په طرائق سره په سورة مؤمنون ۱۷ کښ نو دا ښکاره دلیلونه دی چه اسمانونه خاص اجسام دی صرف دَ هواگانو او مدارونو نه عبارت نه دی لکه چه اهلِ باطل داسے وائی او څوک نمر سپوګمئ او ستوروته اسمانونه وائی دا هم غلط قول دے ځکه چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ دَ شمس او قمر او کواکب او نجوم ذکر دَ اسمانونه جدا کړے دے۔
فائده: په طور دَ سوال او جواب۔ سوال: دَ دے ایت او دَ سورة حم سجده دَ ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲ نه ښکاره معلومیږی چه پیدا ایښ دَ زمکے دَ پیدا ایښ دَ اسمانونو نه وړاندے دے او دَ سورة نازعات ۳۰ او په ډیر وایاتونو کښ تقدیم دَ سماوات په ارض باندے دے لکه په سورة انعام ۱ کښ معلومیږی چه دَ اسمانونو پیدا ایښ وړاندے دے؟۔
جواب: ابن کثیر وئیلی دی چه پیدا ئش دَ زمکے مخکښ دَ اسمان نه په دے مسئله کښ ماته دَ علماؤ نزاع او اختلاف معلوم نه دے ماسوا دَ دے نه چه ابن جریر دَ قتادہ نه نقل کړے دے، او قرطبی په تفسیر دَ سورة نازعات کښ په دے کښ توقف کړے دے۔ او امام بخاری په جامع صحیح کښ دَ ابن عباس رضی الله عنهما جواب هم دا ذکر کړے دے چه زمکه پیدا کړے شوے ده مخکښ دَ اسمان نه او غوړولے شوے ده روستو دَ پیدا ایښ دَ اسمانونو نه او دا قول دَ اکثر اهلِ علمو دے او بعضو وئیلی دی چه

دحُوَ (غوړول) هم مخکښ شویده او بَعْدَ په سورة نازعات کښ په معنی دَ مع سره دے لکه عُتُلٍّ بَعْدَ ذٰلِكَ زَنِيۡمٌ سورة قلم ۱۳ او دا سے قول قرطبی په تفسیر دَ سورة نازعات کښ ذکر کړے دے نو بنا په قول دَ اکثر مفسرینو پیدا ئیش دَ زمکے مخکښ دے بیا پیدا ئیش دَ اسمانونو او برابرول دَ هغے او وُدی نو ورپسے غوړول دَ زمکے شویدی لکه چه په قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما کښ ښکاره ذکر شول۔ په دے قول باندے سوال دا دے چه په دے ایت کښ خلق دَ ارض نه دے ذکر بلکه خلق دَ ما فی الارض یئے ذکر کړے دے او هغه په سورة حٰمٓ سجده کښ په تفصیل سره ذکر دی او خلق دَ ما فی الارض خو بغیر دَ غوړولو دَ زمکے نه نهٔ کیږی نو بیا اول سوال واپس شو چه زمکه مخکښ دَ اسمان نه غوړولے شویده؟۔ دَ دے یو جواب دا دے چه دلته خلق او په سورة حٰم سجده کښ جعل او بارك او قدرتول په معنی دَ قدّر سره دی یعنی دَ پیدا ئیش دَ زمکے سره یئے دَ دے څیزونو تقدیر اوکړو او روستو دَ دحو نه یئے تفصیلاً پیدا کړل۔ دویم جواب هغه دے چه مخکښ ذکر شو چه بعد په معنی دَ مع دے یا دَ پاره دَ بعدیتِ ذکری دے او بنا په دے قول باندے ثم په دے ایت او سورة حٰم سجده کښ په خپله اصل معنی باندے دے او چا چه وئیلی دی بنا په قول دَ قتاده باندے چه پیدا ئیش دَ اسمانونو مخکښ دے دَ زمکے نه مطلقاً نو هغوی وائی چه په دے ایت او په سورة حٰم سجده کښ ثمّ دَ پاره دَ تفاوت دَ دواړو دے دَ پاره دَ تراخی نه دے لیکن دَ مخکښ نه معلومه شوه چه دا قول ضعیف دے او دَ جمهورو علماؤ نه خلاف دے۔ او په دے باره کښ بحث په تفسیر دَ سورة نازعات کښ هم انشاء الله تعالیٰ ذکر شی۔

فائده:- الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ دَ اعداد و ټول اقسام معروفه ذکر کړیدی دَ احادونه واحد۔ واحدة۔ اثنین۔ مثنیٰ۔ ثلث۔ ثلثة۔ رباع۔ اربع۔ خمس۔ خمسة۔ ستة۔ سادس۔ سبع۔ ثمانیه۔ تسع۔ عشر۔ او دَ عشراتو نه احد عشر۔ اثنا عشر۔ تسعة عشر۔ عشرون۔ ثلثون۔ اربعون۔ سبعون۔ تسع وتسعون۔ او دَ مأتونه۔ مائة۔ مائتان۔ ثلثه مائة۔ او دَ الوفو نه الّا خمسین الف، الفان، ثلثة الاف، خمسة الاف، خمسون الف، مائة الف۔ او دَ کسورو نه نصف۔ ربع۔ ثمن ثلث۔ ثلثان۔ سدس۔

وَاِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلٰٓئِكَةِ اِنِّیْ جَاعِلٌ

او کله چه اووئیل رب ستا ملائیکو ته یقینًا زه جوړوم

فِی الْاَرْضِ خَلِیْفَةً ؕ قَالُوْٓا اَتَجْعَلُ فِیْهَا

په زمکه کښ خلیفه (فیصلې کوونکې)۔ اووئیل ملائیکو ایا جوړوې پدې (زمکه) کښ

مَنْ یُّفْسِدُ فِیْهَا وَیَسْفِكُ الدِّمَآءَ ۚ وَنَحْنُ

هغه څوک چه ورانے به کوی پدې کښ او توئیه وی به وینے په ناحقه سره، او مونږ (خو)

نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ؕ قَالَ

پاکی وایو سره د ستائینے ستا ته او یاد وو تا په پاکئ سره (یا ځان ساتو د ګناه نه ستا دپرده وجے نه) اووئیل

اِنِّیْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٣٠﴾ وَعَلَّمَ اٰدَمَ

یقینًا زه پوهیږم په هغه څه چه تاسو په هغے نه پوهیږئ۔ او او خودل یُے آدم علیه السلام ته

وَهُوَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ، دا هم دلیل دے د پاره د دعوے د توحید او د پاره دا اثبات د بعث بعد الموت په علم د الله تعالیٰ سره روستو د ذکر د تصرفاتو د هغه نه۔

**تنبیه :-** قرآن کریم کښ قانون دے چه د اثبات د توحید او د قیامت د پاره دوه قسمه دلیلونه یو ځائے ذکر کوی یو قسم هغه چه دلالت کوی په تصرف او قدرت د الله او دویم قسم هغه چه دلالت کوی په علم د هغه او دا په اصل کښ خلاصه د صفاتو د الله تعالیٰ دی او مقصد د استدلال دے په دلیل دا ایت د سورة طلاق ۱۲ سره او دا رنګ دلیلونه په سورة انعام، سورة یونس او سورة رعد کښ مشتمل دی په دے دوه مضامینو باندے او د دے دواړو په مینځ کښ ملازمه ده په دلیل د سورة ملك ۱۴ سره۔

او عَلِیْمٌ صفت د الله تعالیٰ په قرآن کښ یو سل دیرش کرته او اَعْلَمُ نهه څلویښت او عَلَّامٌ څلور کرته ذکر دے۔

**فائده :-** دا ایت دلیل دے چه علیم او عالم صفت د الله تعالیٰ دے په دے معنی سره چه عالم دے په کل څیزونو او دا صفت ازلی او قدیم دے مخکښ د وجود د اشیاؤ او روستو د وجود د اشیاؤ نه۔ او دا رنګ علم هم

صفت د الله تعالیٰ دے او قول د معتزلؤ باطل دے چه هغوی وائی عالم دے بغیر د علم نه۔ او الله تعالیٰ د ځان د پاره علم هم ذکر کړے دے لکه سورة نساء ۱۶۶ سورة هود ۱۴ سورة اعراف ۷ سورة رعد ۸ کښ دی او نور آیاتونه هم دی او تفصیل د آیاتونو د علم د الله تعالیٰ زما په کتاب تنشیط الاذهان کښ اوګورئ۔

نمبر۳ د دے نه ترڅلور و آیاتونو پورے واقعه د استخلاف آدم علیه السلام ذکر کیږی او دا واقعه د خلافت د آدم علیه السلام په قرآن کریم کښ یو کرت ذکر ده۔

ربط د دے د مخکښ سره په ډیرو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه اول د انسان احیاء ذکر شوه بیا د هغه د ابقاء د پاره یئے د زمکے اشیاء ذکر کړل اوس د دے اشیاؤ نه د فائده حاصلولو د پاره د انسان خلافت ذکر کوی۔

دویم ربط، د ابتداء د سورت نه عظمت د قرآن ذکر وؤ بیا مقصد د قرآن ذکر شو اوس د تنفیذ د دے مقصد د پاره مسئله د خلافت ذکر کوی۔

دریم ربط، مخکښ دوه انعامات ذکر شول د پاره د اثبات د توحید نو اوس ذکر کوی دریم انعام چه هغه استخلاف او تعلیم د اسماؤ دے آدم علیه السلام ته او دا احسان دے د الله تعالیٰ د هغه په ټول اولاد باندے۔

څلورم ربط، مخکښ ذکر شو وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ او س د نفی د شرک فی العلم د پاره حال د ملائکو او د ابلیس او آدم علیه السلام ذکر کوی چه د هغوی د پاره علم بکل شئ نه وؤ۔

وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ، واو د پاره د عطف د قصے د استخلاف دے په قصه د پیدائش د زمکے او د آسمانونو۔ إِذْ، د علماء عربیت اتفاق دے چه إِذْ او إِذَا توقیت او ظرفیت د پاره راځی إِذْ د پاره د تیر شوے زمانے او إِذَا د پاره د راتلونکے زمانے او کله کله د یو بل په ځائے باندے استعمالیږی او إِذْ د مستقبل سره د پاره د تیر شوے زمانے او إِذَا د ماضی سره د پاره د راتلونکے زمانے معنی ورکوی۔ قرآن کریم کښ د اکثر قصو په سر کښ إِذْ راځی او إِذْ خو ظرف دے او ظرف همیشه متعلَّق غواړی۔ او ابو عبیدهؒ او بغوی چه وئیلی دی چه إذ په داسے ځائے کښ زیاتی دی نو په هغے باندے زجاج، نحاس او ټولو مفسرینو رد کړے دے نو د دے په متعلَّق کښ اختلاف دے اکثرو وئیلی دی چه متعلَّق د دے پټ دی یعنی اُذکر لیکن په دے

بانده سوال وو چه اذکر فعل متعدی دے مفعول به غواړی او اذ خو ظرف دے، دے خو مفعول فیه کیدیشی نو یو جواب یې دا دے چه اصل عبارت داسے دے أُذكرالواقع إذ اه، نو اِذْ متعلِق دے په الواقع پورے۔
دویم جواب دا دے چه دلته دَ اذ نه معنی دَ ظرفیت وتلے ده او بځائے دَ مفعول به بانده واقع دے نو صرف اذکر عامل دَ دهٔ دَ پاره پوره دے او بعض علماؤ ویلی دی چه دَ دے متعلّق په کلام کښ روستو ذکر وی دلته قَالُوٓا لفظ دے په هغے پورے دا اِذْ متعلِق دے یعنی وخت دَ قول دَ ملائیکو هغه وخت وو چه رب تعالیٰ دا قول کړے وو۔ لیکن غوره دا ده چه دا لفظ اِذ دَ قصے په سر کښ دَ تنبیه معنی ورکوی قطع نظر دَ تعلق دَ دے نه۔
تنبیه:۔ تقدیر دَ لفظ دَ اذکر کښ هغه معنی ده کومه چه په سورة مریم ۱۶ ۴۱ ۵۱ ۵۴ ۵۶ کښ ده یعنی بیان کول دَ دے واقعے دَ پاره دَ تذکیر دَ اوریدونکو دی۔ دَ دے دا مطلب نه دے چه نبی صلی الله علیه وسلم ته دا قِصه دَ مخکښ نه معلومه وه اوس ورته وائي چه ته یې را یاده کړه دا قول دَ بریلیانو دے چه په دے سره اثبات دَ علم غیب کوی دَ پاره دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دا بالکل باطل قول دے په جهل بانده بِنا دے۔ قَالَ کلام دَ الله تعالیٰ صفتِ قدیم ازلی یقینی دے دَ هغے نه په قرآن کښ کله تعبیر کیدے شی په قول سره او قول کښ الفاظ او معانی دواړه داخل دی نو کلام لفظی هم کلام دَ الله تعالیٰ دے او دَ هغه صفت دے او چا چه تقسیم دَ کلام کړے دے لفظی او نفسی ته او لفظی ته کلام دَ الله تعالیٰ نه وائي دا صریح غلطی ده او دَ قرآن دَ نصوصِ صریحه نه خلاف دے او دا قول معتزله او خوک چه هغوی سره مشابه وی هغوی کړے دے۔
فائده:۔ قرآن کریم کښ دَ قال نسبت الله تعالیٰ ته یو شپیته کرته او په قلنا سره نسبت هغه ته شلیر[۲۴] یشت کرته شوید ے۔
رَبُّكَ په دے وصف ذکر کولو کښ اشاره ده چه مسئله دَ استخلاف دَ تربیت سره تعلق لری۔
لِلْمَلٰٓئِكَةِ قول دَ الله تعالیٰ ملائیکو ته دَ پاره دَ مشورے طلب کولو نه دے ځکه الله تعالیٰ مشورے ته هیڅ حاجت نه لری بلکه دَ اخبار دَ پاره دے او جوابِ ملائیکه دَ دے دَ پاره دے چه حکمتونه په خلافتِ انسانیه کښ

ښکاره شي او فرق معلوم شي ملائیکو ته د انسانانو او د ملائیکو. دویم د دے
د پاره چه دلیل شي په لوے والي د شان او د مرتبے د ادم علیه السلام.
ملائکه په قرآن کښ مفرد دیارلس کرته او تثنیه دوه کرته او جمع دریے اویا
کرته ذکر دے. او په وجود د ملائیکو په هغه صفتونو سره چه په قرآن
او سنت کښ ذکر دي ایمان راوړل فرض دي د هغے تفصیل په تنشیط الاذهان
کښ ما ذکر کړے دے. مَلَائك جمع د مَلَكْ ده ماخوذ دے د الوکة نه
رسالت ته وئیلے شي یا د مِلك نه ماخوذ دے په معنی د قوّة بانده اوتا
په دے کښ د تانیث د جمع د پاره یا د پاره د مبالغے ده. او ظاهر دا ده چه دلته
مراد د الملائکه نه ټول ملائیک دي که اسماني دي او که ارضي دي د تخصیص
د پاره هیڅ وجه نیشته.
اِنِّيْ جَاعِلٌ جعل په معنی د خلق سره دے لیکن فرق په دے دواړو کښ
دا دے چه جعل په هغه ځائے کښ ذکر کیږي چه څه صفتي معنی په کښ
موجود وي او خلق اکثر په صِرف اِنشاء کښ ذکر کیږي. دلته هم معنی
وصفي د خلافت ذکر ده.
فِي الْاَرْضِ مراد د دے نه ټوله زمکه ده د یو حصے تخصیص د پاره دلیل
نیشته دے او په دے کښ اشاره ده چه انسان په اسمان کښ هیڅ قسم
تصرف نه لري او په زمکه کښ دغه ژوند او اسباب د سکونت د پاره دي.
خَلِيْفَةً د دے مصدر خَلْفًا او خِلَافَتْ راځي په معنی د روستو راتللو او روستو
کیدلو او د بل په ځائے بانده قائم کیدل، د دے استعمال په سورة
اعراف ۱۴۲ ۱۵۰ ۱۶۹ او سورة مریم ۵۹ او سورة زخرف ۶۰ کښ شوے دے
دا وزن د فعیلةٌ دے سمعاني وئیلي دي چه خلیف او خلیفة یو شان دي
تاء د پاره د مبالغه ده. د خلیف جمع خلفاء راځي لکه په سورة اعراف ۶۹
۷۴ او سورة نمل ۶۲ کښ او د خلیفة جمع خلائیف راځي لکه په سورة انعام
۱۶۵، سورة یونس ۱۴ ۷۳ او سورة فاطر ۳۹ کښ. او دا وزن اکثر مبني
للفاعل راځي او مبني للمفعول هم کیدے شي په معنی د (خلیفة) چه بل
څوک په هغه پسے راځي. دلته د خلیفة نه مراد په قول د ابن مسعود او
ابن عباس رضی الله تعالی عنهم او اکثر مفسرینو کښ ادم علیه السلام دے
او اولاد د هغه تابع د هغه دي په دے وصف کښ لیکن په ذکر د پلار سره

حاجت پاتے نه شو ذکر کا اولاد ته ؤ دے وجے نه داؤد علیه السلام ته هم خلیفه وئیلے شویدی په سورة ص ۲٦ کښ او ؤ دے وعده ؤ مؤمنانو سره شویده په سورة نور ۵۵ کښ۔ او معنیٰ ؤ خلیفة دلته معروفه معنیٰ ده یعنی خلیفه ؤ طرف ؤ الله تعالیٰ نه په جاری کولو ؤ احکامو او ؤ اوامرو او نواهی ؤ هغه او په جاری کولو ؤ حدود شرعیه او ؤ اقامت ؤ دین ؤ هغه کښ او دا وظیفه په اصل کښ ؤ هر نبی ده او آدم علیه السلام اول نبی وؤ په صحیح حدیث سره ثابت ده او قرطبی وئیلی دی چه رسول هم وؤ خپل اولاد ته یا آدم علیه السلام ته خلیفه په دے وجے سره وئیلے دے چه روستو راغلے دے ؤ تیر شوؤ (ملائیکو ؤ زمکے یا ؤ پیریانو) نه دا قول ابن جوزی ؤ ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل کړیدے۔ او ابن کثیر وئیلی دی چه مراد ؤ دے قَوۡمًا يَخۡلُفُ بَعۡضُهُمۡ بَعۡضًا وَقَرۡنًا بَعۡدَ قَرۡنٍ دے او نسفی وئیلی دی مَنۡ يَخۡلُفُكُمۡ او خَلۡقًا يَخۡلُفُكُمۡ نو لفظ ؤ خلیفة په دے معنیٰ سره مفرد جنسی دے او ؤ دے قول تائید دا سے ذکر شوے دے چه روستو ؤ اَتَجۡعَلُ فِيهَا مَنۡ يُّفۡسِدُ الخ اعتراض خو په آدم علیه السلام باندے نشی کیدے بلکه ؤ هغه په اولاد باندے دے۔ دا رنګ ؤ دے تائید دا دے چه ټولو انسانانو ته خلفاء او خلائف وئیلی شویدی سورة اعراف ۶۹ ،۷۴ سورة نحل ۶۲ او سورة یونس ۱۵، ۷۳ او سورة انعام ۱۶۵ کښ۔ نو بنا په اول معنیٰ ؤ خلیفة نه مراد حاکم شرعی (بادشاه) دے او په دویمه توجیه باندے معنیٰ ؤ هغے نائب ؤ پیریانو او په دریمه توجیه معنیٰ دا ده "دا سے قوم او خلق چه په یو بل پسے به نائبان او روستو راتلونکی وی"۔ لیکن څوک چه دا سے معنیٰ کوی چه "ؤ الله تعالیٰ نائب" نو دا معنیٰ موهم ؤ باطل مقصد ده چه هغه احتیاج ؤ الله تعالیٰ دے نائب ته او حال دا دے چه نائب هغه څوک نیسی چه په هغه باندے فنا راځی یا کمزوری راځی ؤ بل چا مدد ته محتاج وی او الله تعالیٰ خو ؤ دے حالاتو نه پاک دے۔ او که څوک اعتراض اوکړی چه مفسرینو خلیفة الله او خلیفة من الله او عن الله لیکلی دی؟ ؤ هغے جواب دا دے چه من الله او عن الله معنیٰ خو دا ده چه ؤ طرف ؤ الله تعالیٰ نه خلیفه مقرر کړے شویدے او هرچه خلیفة الله وئیل دی نو ؤ هغے په باره کښ تفصیل ؤ سورة صٓ په تفسیر کښ اوکوړئ۔ حاصل دا دے چه الله تعالیٰ آدم علیه السلام او بنی آدم په

زمکه کښې د دے خبرے د پاره پیدا کړیدی چه دین د الله تعالیٰ په زمکه کښې نافذ کړی او د هغې د تنفیذ د پاره د زمکے د اشیاؤ نه استفاده اوکړی او دلیل ورپسے ایت کښې راځی فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَن تَبِعَ هُدَايَ (الآية) او د دے وجے نه قرطبی دلته مسئله د خلافت په تفصیل سره ذکر کړے ده او ابن کثیر د هغه نه نقل کړے ده۔

خلاصه دا ده چه انسانان د ژوند تیرولو د پاره یو پوره نظام ته محتاج دی لیکن د هغه نظام اهلیت په کافر مشرک کښې نیشته ځکه چه هغه مفسد او ظالم دے نو معلومه شوه چه دا کار د مسلمانانو دے او د نظام د پاره صرف د وحی (منزّل) قانون کافی دے په غیر منزّل نظامونو کښې ډیر نقصانات دی۔ بیا د دے نظام د نافذ کولو د پاره تمکین فی الارض شرط دے چه هغه په سورة حج ۴۱ کښې ذکر دے او د تمکین د بقاء د پاره په دغه ایت کښې کارونه ذکر کړے شویدی او د تمکین د حصول د پاره جهاد شرط دے او روستو د حصول د تمکین نه انتخاب د خلیفه ضروری دے او اوصاف د خلیفه او طریقے د انتخاب د هغه قرطبی په تفصیل سره ذکر کړے دی۔ او د دے ترتیب د پاره ژوند د رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغه د صحابه کرامو رضی الله عنهم مکمله نمونه ده۔ د نور تفصیل د پاره دا مقام مناسب نه دے۔

قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا سوال :- ملائیک خو معصوم دی په الله تعالیٰ باندے اعتراض نه کوی نو د دے قول څه وجه ده؟

جواب :- دا تپوس دے په طریقه د استفسار د حکمت یعنی هر کله چه معصوم مخلوق شته او د هغې باوجود هغه قوم د خلافت د پاره غوره کوے چه په هغوی کښې فسادات دی نو هغوی له د دے ترجیح ورکولو سبب څه دے؟ لکه چه یو استاد په یو مقام کښې یو توجیه د کلام لره په نورو توجیهاتو باندے ترجیح ورکړی نو شاګرد لره حق شته چه د مرجح په باره کښې د استاد نه تپوس اوکړی نو معلومه شوه چه دا اعتراض په الله تعالیٰ باندے نه دے لکه چه حشویه (باطله فرقه) وائی چه ملائیک معصوم نه دی د دے اعتراض د وجے نه، نو دا قول د حشویو مردود دے په هغه ایاتو نو سره چه صریح دی په باره د عصمت د ملائیکو کښې لکه سورة انبیاء ۲۷ سورة نحل ۴۹ سورة تحریم ۶۔

مَنْ يُّفْسِدُ فِيْهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَآءَ فساد خو عام دے لیکن لوئے فساد شرک او کفر کول دی نو دا لوئے گناه دے په حقوق الٰهیه کښ او په حقوق العباد کښ لوئے ظلم ناحق قتلونه کول دی نو دا دواړه ئے په طور د مثال سره ذکر کړل. او په دے کښ اشاره ده چه کافر مشرک او ظالم اهل د خلافت نشی کیدلے. يَسْفِكُ سفک خاص د وینے د پاره استعمالیږی او صب سفح فیض عام دی، د اوبو او وښکو د پاره استعمالیږی.

سوال:- آدم علیه السلام او د هغه اولاد خو ملائیکو لیدلے نه وو نو دوی ته څنګه معلومه شوه چه هغوی به فساد او ظلم کوی آیا د دوی د پاره علم غیب شته دے؟

جواب:- ابوحیان په البحر المحیط کښ وئیلی دی چه ملائیک په غیب باندے علم نه لری او داسے په تفسیر النهر الماد کښ هم دی نو د دے قول د پاره مفسرینو درے وجے ذکر کړے دی. اول دا چه الله تعالیٰ دوی ته خبر ورکړے وو لکه بعض مفسرینو روایات لیکلی دی. دویم دا چه دوی قیاس اوکړو د غائب (چه اولادِ آدم دی) په حاضر لیدلے شوؤ باندے چه جنات وو. ځکه چه مخکښ د پیریانو سکونت وو په زمکه باندے نو هغوی ډیر فسادونه او ظلمونه اوکړل نو الله تعالیٰ د هغوی نه د زمکے اختیارات واخستل نو ملائیکو اوکتل چه علت د فساد او ظلم خو د زمکے څیزونه دی نو چه دا څیزونه بنی آدم ته ورکړے شی نو دوی به هم فساد کوی. دریم توجیه دا ده (قرطبی، کبیر وغیره غوره کړیده) چه د صفت د خلیفة نه دوی استنباط اوکړو یعنی خلیفه ته به په هغه وخت ضرورت وی چه فساد او ظلمونه کیږی نو دلیل شو چه په اولادِ آدم کښ به فساد او ظلم وی. دا روستنی دواړه توجیه دلالت کوی چه قیاس او استنباط کار د عقل والو دے او په وخت د نیشتوالی د نص کښ به په قیاس او استنباط باندے عمل کیدے شی اګرچه احتمال د اصابت او خطا په کښ وی خو د حدیث صحیح په بِنا مصیب ته دوه اجرونه او مخطی ته یو اجر ملاویږی په دے مسئله باندے ابن قیم الجوزیه په کتاب اعلام الموقعین کښ طویل بحث کړیدے.

سوال:- بنی آدم موجود نه وو او ملائیکو د هغوی بدی ذکر کړله نو دا خو غیبت دے او ملائیک خو د ګناه نه پاک دی؟

جواب:- غیبت هغه ته وئیلے شی چه مقصد پکښې صِرف سپکوالے او توهین دَ غائب وی او هر کله چه مقصد پکښې حفاظت دَ دین او دَ مسلمانانو وی لکه بحث دَ اسماء رجال په احادیثو کښې چه دَ راویانو جرح ذکر کول په دے مقصد ده چه حفاظت دَ دین اوشی، نو دا رنګ مقصد دَ ملائیکو توهین دَ بنی آدم نه وُو بلکه تپوس کول وُو دَ حکمت دَ خلافت سره دَ وجود دَ مانع نه چه فساد او ظلم دے نو دَ هغه مانع ذکر ضروری شو.

وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ واو دَ پاره دَ علت دے دَ محذوف دَ پاره (یعنی دا سوال دَ اَتَجْعَلُ اه اعتراض او عیب کول په الله تعالیٰ باندے نه دی ځکه چه موږ الله تعالیٰ دَ هر عیب نه پاک ګڼړو دا قول رازی په تفسیر کښې ذکر کړے دے. او نسفی وئیلی دی چه دا واو دَ پاره دَ حال دے یعنی په داسے حال کښې چه موږ دَ فساد او ظلم نه بچ یو نو هغه مخلوق چه فساد او ظلم والا دی په څه وجه سره خلیفګان جوړوے او مقصود ئے تپوس دَ مرجح دے لکه چه مخکښې ذکر اوشو.

سوال:- دا قول خو دَ ملائیکو دَ خپل ځان دَ پاره تزکیه او فخر او تکبر دے او دا خو جائیز نه دے؟

جواب:- اول خو دا ده چه تزکیه دَ ملائیکو دَ پاره جائیز ده ځکه چه هغوی دَ فخر او تکبر نه معصوم دی لکه چه داسے حکم دَ پاره دَ انبیاء علیهم السلام دے. دویم دا چه دا قول دَ هغوی په طریقه دَ تزکیے سره نه دے بلکه بیان دَ حقیقت حال دے په وخت دَ ذکر دَ طرفینو کښې دَ پاره دَ طلب دَ علت دَ ترجیح.

فائده:- فرق په مینځ دَ تسبیح او حمد او تقدیس کښې دا دے، صفات دَ الله تعالیٰ دوه قسمه دی اول صفاتِ سلبیه یعنی دَ هر عیب (چه منافی دَ الوهیت وی) نه پاکوالے او دیته تسبیح وئیلے شی او دویم صفاتِ ثبوتیه هغه هم په دوه قسمه دی صفات دَ اکرام او صفات دَ جلال (په دلیل دَ ذوالجلال والاکرام سره) نو صفات دَ اکرام داخل دی په حمد کښې او صفات دَ جلال داخل دی په نُقَدِّسُ لَكَ کښې او دَ دے وجے نه قرطبی او ابن جوزی معنی دَ نُقَدِّسُ په نُعَظِّمُكَ وَنُكَبِّرُكَ سره کړے ده. دویم فرق تسبیح دَ صفاتو سره تعلق لری او تقدس دَ ذات سره تعلق لری. دریم فرق تسبیح او حمد دواړه دَ عقیدے او دَ ذکر سره تعلق لری او نُقَدِّسُ لَكَ په معنی (پاک

ساتو موږ ځانو نه خپل د وجې د ډیرې ستا نه یا د رضا ستا نه) دا نقل دے
د ضحاک نه ښا په دے معنی بانـدے لام اجلیه دے او ښا په اول دوه معانو
سره چه لام د تاکید د تعدیت د پاره دے په دے لحاظ سره نسبح بحمدك
مقابل د یفسد فیها دے ځکه چه توحید مقابل د شرک دے او نقدس مقابل
د یفسك دے ځکه چه د ګناه نه بچ کیدل مقابل د ظلم دی۔
**سوال**:۔ ملائیک خو معصوم دی په عصمتِ الٰهیه سره یعنی په ګناه بانـدے
هیڅ قدرت نه لری نو هغوی ځان ته ولے نسبت کوی په تقدیس کولو سره؟
**جواب**:۔ بعضِ وخت یو کار د انسان په اختیار کښ نه وی لیکن د تحدیث
نعمت په طور سره ځان ته ئے نسبت کولے شی لکه نسبت په اَنَا اٰتِیۡكَ بِهٖ
قَبۡلَ اَنۡ یَّرۡتَدَّ اِلَیۡكَ طَرۡفُكَ (سورة نمل ن۴۰) په یو قول سره دا معجزه او په
بل قول سره کرامت دے او معجزه او کرامت په اختیار د عبد کښ نه وی
او حال دا چه نسبت متکلم ته موجود دے۔
**فائده ع۲** حمد په قرآن او سنت کښ اکثر د تسبیح سره په حرف د با سره
ذکر کیږی کله په عطف سره او کله بغیر د عطف نه. اشاره ده چه تسبیح سره
حمد یو ځائے وئیل پکار دی او باء د ملا بست د پاره ده دا دے یو وجه دا ده
چه قرآن کریم کښ امر د تسبیح سرهٔ د حمد نه اُوۀ کرته راغلے دے (سَبِّحۡ
بِحَمۡدِ رَبِّكَ) او تسبیح د ملائیکو د حمد سره په قرآن کښ په پنځه ایاتونو کښ
ذکر ده (سورة رعد ۱۳ سورة انبیاء ن۲۰ سورة زمر ۷۵ سورة مومن ۷ سورة
شوری ۵) او تسبیح د هر یو څیز هم د حمد سره یو ځائے ذکر ده (سورة
اسراء ن۴۴)۔ دویمه وجه دا ده چه تسبیح کمال د توحید نه فائده کوی څو
پورے چه حمد ورسره نه وی یعنی صفاتِ سلبیه او ثبوتیه دواړه یو ځائے
منل توحید دے۔
قَالَ اِنِّیۡۤ اَعۡلَمُ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ، دا جواب دے د هغوی د تپوس کولو په باره
د حکمت کښ او دا جواب اجمالی ئے په لفظ مَا لَا تَعۡلَمُوۡنَ سره ذکر کړو
په دے کښ اشاره ده چه په دے کښ ډیر حکمتونه دی چه ستاسو د
علم نه بهر دی او په دے کښ اشاره ده چه د الله تعالیٰ هر یو کار کښ ضرور
حکمت وی که چا ته معلوم وی او که نه وی لیکن دا عقیده به ساتی د وجې
د عبدیت نه په کارونو د الله تعالیٰ کښ حکمت معلومول د ایمان او د عمل

الْاَسْمَآءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ

نومونه د ټولو شيزونو (سره د فائدو د هغې نه) بيا يې وړاندې کړل دغه شيزونه ملائيکو ته

فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِيْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ

پس اووئيل الله تعالىٰ خبر راکړئ ماته په نومونو (او فائدو) د دې څيزونو که يئ تاسو

صٰدِقِيْنَ ﴿٣١﴾ قَالُوْا سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ

رشتيني . اووئيل ملائيکو پاکي ده تا لره (د شريک د علم نه) نيشته هيڅ پوهه موږ لره

د پاره ضروري نه دی د دې وجې نه قرآن او سنت د احکامِ شرعيه د پاره د بيان د حکمتونو اهتمام نه دے کړے اګرچه علم د حکمتونو د فائدو نه خالي نه دے. لفظ د اعلم کښ دوه احتمالونه دی اول داچه داصيغه د فعل متکلم ده او دويم داچه داصيغه د اسم تفضيل ده مضاف دے مَالَا تَعْلَمُوْنَ ته ليکن معنی تفصيلي پکښ مراد نه ده - او تفسير د مَالَا تَعْلَمُوْنَ په ايت ۳۳ کښ موجود دے او دا رنګ په عَلَّمَ اٰدَمَ کښ ذکر د هغه حکمت ته اشاره ده- او دا دليل دے چه د ملائيکو د پاره علم محيط او علم کلي او علم الغيب نيشته او قرطبي وئيلي دی چه مَالَا تَعْلَمُوْنَ نه مراد مَا كَانَ وَمَا يَكُوْنُ او ما هو كائن دے-

۳۱ په دے ايت کښ ذکر د هغه سبب د فضيلت د ادم عليه السلام دے چه سبب دے د پاره د خلافتِ ارضي او دے سبب ته اشاره شويده پدے قول کښ چه مَالَا تَعْلَمُوْنَ. او دا معطوف دے په پټ عبارت باندے چه (ادم يې پيدا کړو په هغه طريقې سره چه په قرآن کښ ځائے په ځائے ذکر ده) - وَعَلَّمَ، نسبت د تعليم الله تعالىٰ ته په قرآن کښ په دوه طريقو سره دے اوله طريقه تعليم ورکول انبياء عليهم السلام ته او مراد په هغې سره تعليم وحی دے او دويمه طريقه تعليم ورکول دی نورو انسانانو ته نو مراد په هغې سره تعليم دے په واسطه د انبياؤ عليهم السلام او د کتابونو د هغوی او د نورو بيان کوونکو. او په دے مقام کښ طريقه د تعليم په طريقه د وحی سره ده پشان د نورو انبياء عليهم السلام. يا په طريقه د پيدا کولو د علم او د استعداد سره په هغه کښ-

سوال:- تعليم خو په طريقه د افادے او استفادے سره وی او هغه مخکښ

علم په يو لغت پورې بانده غواړي نو هغه علم چه آدم عليه السلام ته ښودلے شوے وو نو ډېرو لغتونو کښې وو. ولې ټولو لغتونو کښې علم دَ یو تعلیم شوے دے؟ نو دا ولې دَ هغه نه مخکښ علم دَ بل لغت يئے غوښتو نو تسلسل لازميږي؟ -

**جواب:** - تعليم دَ الله تعالىٰ انبياؤ ته مشابه نه دے دَ تعليم دَ بندګانو سره په کورنئ کښ لکه څنګه چه نورو صفتونه دَ الله تعالىٰ دَ تشبيه نه پاک دی نو دا تعليم په طريقه دَ وحي سره دے يا دا چه په طريقه دَ علمِ استعداد دی پیدا کولو سره خو علم دَ هيڅ لغت دَ مخکښ نه نه غواړي.

آدمَ دا عبراني لفظ دے او ادمه په عبرانئ ژبه کښ خاورے ته وئيلے شي قاسمي دا سے وئيلي دي او دَ دے لغت موافقت راغلے دے دَ عربئ سره په دے لفظ کښ نو په عربئ کښ دا ماخوذ دے دَ اَدَمَةُ الْاَرْضِ وَاَدِيمها ته (مخ دَ زمکے ته وئيلے شي) يا ماخوذ دے دَ اُدمة نه او هغه سمرةٌ (غنم رنګي) ته وئيلے شي نو وجه دَ تسميه دَ آدم په دے قول سره دا ده چه په حديث دَ ترمذي کښ وارد دي چه الله تعالىٰ پيدا کړے دے آدم عليه السلام دَ يو موټي نه چه راخستلے وۀ دَ مخ دَ زمکے ته نو پيدا کيږي اولاد دَ هغه په طريقه دَ رنګونو او صفاتو دَ زمکے سره يعني سره، سپين، تور او دَ دے په مينځ کښ او نرم طبيعت والا او سخت او دغه شان بے کاره او فائده مند ترمذي وئيلي دي چه دا حديث حسن صحيح دے حاکم هم دا سے روايت راوړے دے او هغه ته يئے صحيح وئيلي دي- او وجه تسميه په دويم احتمال سره دا ده چه آدم عليه السلام خو غنم رنګے (سور سپين) وۀ- په دے آيت کښ دا نوم ذکر کول بيان دے دَ پاره دَ مصداق دَ خليفة نه چه مخکښ آيت کښ ذکر شوے دے او تعليم ورکول دَ الله تعالىٰ آدم عليه السلام ته ښکاره دليل دے چه هغه نبي مُکلَّم وۀ لکه چه په حديث کښ راغلي دي.

**فائده:** - قرآن کريم کښ دَ او وِيشتو انبياء عليهم السلام نومونه ذکر دی آدم[1] - موسیٰ[2] - ابراهيم[3] - اسماعيل[4] - اسحاق[5] - يعقوب[6] (اسرائيل). عيسیٰ[7]. هارون[8] داؤد[9]. نوح[10]. عمران[11] - زکريا[12]. يحییٰ[13] - ايوب[14] - يونس[15] (ذوالنون). سليمان[16]. يوسف[17] الياس[18]. اليسع[19]. هود[20]. شعيب[21]. صالح[22]. لوط[23]. ادريس[24]. ذوالکفل[25]. عزير[26]. محمد[27] (احمد) صلوٰت الله وسلامه عليه وعليهم اجمعين- او دَ ذوالقرنين او لقمان په باره کښ اختلاف دے دَ اهلِ علمو چه دوی انبياء وۀ او که اولياء الله وۀ-

الْاَسْمَاءَ كُلَّهَا اسماء جمع دَ اسم ده او په عربيت کښ دَ اسم مختلف اطلاقات دی. اول اسم مقابل دَ فعل او حرف دے په دے معنی سره صفاتو ته شامل دے

دویم اسم مقابل دَ صفت۔ دریم اسم په معنی دَ مسمّٰی لکه زَيۡدٌ قَائِمٌ۔ څلورم مرکب دَ حروفو نه لکه اَسَدٌ ثَلَاثَةُ حروفٍ۔ پنځم اسم تعبیر دَ مسمّٰی۔ شپږم اسم په معنی دَ عَلَم سره۔ اُوم اسم په معنی دَ وصف۔ قرطبی دَ نحاس نه نقل کړے دے چه دَ اسماء نه مراد دلته اسماءِ اجناس او انواع دی (شخصی نومونه مراد نه دی) او سره دَ منافعو دَ هغے نه۔ لکه انسان۔ زمکه۔ اسمان۔ ځاروے۔ دریاب۔ غر۔ خر۔ اس اوښ وغیره دا رنګ ټول لغات (ژبے) او ملائیک او الات لکه کاسه او سمسئ وغیره او کَ دے هر یو فائدے او طریقه دَ استعمال ئے هم ورته اوښودله۔ امام رازی هم وئیلی دی چه مراد دَ اسماء نه صفات دَ څیزونو او خواص دَ هغے او فائدے دَ هغے دی۔ ځکه چه صِرف نومونه یادَول په مختلفو لغاتو سره څه کمال نه دے څو پورے چه دَ هغه څیزونو دَ منافعو نه خبر نه وی۔ کُلَّهَا ظاهر کَ دے نه استغراق دے لیکن مراد کَ دے نه استغراق عرفی دے لکه په تَفۡصِيۡلًا لِّكُلِّ شَيۡءٍ کښ په صفت دَ تورات کښ (سورة انعام ۱۵۴ سورة اعراف ۱۴۵) كُلِّ جَبَلٍ (سورة بقره ۲۶۰) كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيۡۤ اِسۡرَآءِيۡلَ (سورة آلعمران ۹۳)۔ وَلَا تَقۡعُدُوۡا بِكُلِّ صِرَاطٍ (سورة اعراف ۸۶)۔ دا رنګ په سورة توبه ۵ سورة یونس ۲۲ کښ۔ او دا سے ډیر آیاتونه چه په هغے کښ استغراق حقیقی مراد نه دے۔ او کوم روایات چه مفسرینو نقل کړیدی نو هغه هم دلالت نه کوی په علم دَ جمیع جزئیاتو بلکه اجناس او انواع مراد دی لکه چه مخکښ ذکر شول او آلوسی په روح المعانی کښ لیکلی دی چه حق زما په نیز دا ده چه علم دَ هغه څیزونو مراد دے چه تقاضا کوی منصب دَ خلافت لره نو کَ دے آیت نه دَ بریلیانو استدلال کول په علم کلی دَ آدم علیه السلام دَ پاره دا باطل دے۔

ثُمَّ عَرَضَهُمۡ ضمیر راجع دے مسمیاتو ته چه دَ الۡاَسۡمَآءَ نه التزامًا معلومیږی ځکه چه اسم بغیر دَ مسمّٰی نه نه وی او دا رنګ عرض دَ اسماء عین علم دَ اسماؤ دے نو هغه مراد نه دی۔

**سوال:۔** دَ عَرَضَهُمۡ په ځائے ئے عرضها ولے نه وئیلو؟

**جواب:۔** که هائے وئیلے وے نو ظاهرًا دلیل وُو چه اسماء ترینه مراد دی او حال دا دے چه مسمیات مراد دی او هر کله چه مسمیاتو کښ څه عقل والا وُو نو دَ هغوی دَ شرافت دَ وجے نه ئے غلبه ورکړه هغوی لره په غیر

اُولِي الْعَقل بانده- عَلَى الْمَلٰٓئِكَةِ فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِيْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ طريقه دَعرض داوه چه يو څيزيې ورته پيش کړو او ورته يې اوئيل چه دَ دے نوم اوو دَ دے فائدے څه دی - فَقَالَ فا دَ پاره دَ تفصيل دَ عرض ده يا فا دَ پاره دَ تعقيب ده بنا په اول عرض سره بعينه اَنۢبِـُٔوْنِيْ دے او بنا په دويم عرض سره صرف مخے ته کول دَ څيزونو دی. اَنۢبِـُٔوْنِيْ صيغهٔ امر اگرچه حقيقةً دَ ايجاب دَ پاره راځی ليکن دَ هغے نه علاوه دَ نورو معانو دَ پاره هم راځی لکه چه علم اصول الفقه کښ دَ هغے تفصيل دے او هغه نورے معانی دَ اسلوب دَ کلام او دَ قرينے نه معلوميږی نو دلته امر دَ پاره دَ اظهار دَ عجز دَ هغوی دے چه اشاره اوشی چه عبادات دَ تسبيح او حمد و تقديس مستلزم نه دی علم دَ هر څيز لره - فرق په مابين دَ دَ انباء او دَ تعليم کښ دا دے چه تعليم کښ افاده مقصد وی متعلم ته. او انباء عام دے اکثر په هغه ځائے کښ استعماليږی چه افاده دَ متعلم پکښ مقصود نه وی دلته هم په اَنۢبِـُٔوْنِيْ کښ افاده دَ ملائيکو الله تعالىٰ لره مقصود نه ده دَ دے وجے نه عَلِّمُوْنِيْ نه دے وئيلے - بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ مراد دَ اسماء نه نومونه دَ څيزونو سره دَ منافعو دَ هغوی دی-

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ جزاء يې پټه ده فَاَنۢبِـُٔوْنِيْ- سوال دا دے چه په دے کښ يې تعليق دَ صدق دَ ملائيکو په اَنۢبِـُٔوْنِيْ پورے کړے دے او انباء خو دَ ملائيکو قدرت او علم نه بهر ده نو په انتفاء دَ مشروط (جزاء) سره انتفاء دَ شرط راځی نو دليل شو په کذب دَ ملائيکو باندے او حال دا دے چه ملائيک خو معصوم دی ؟ -

جواب :- صدق لکه چه مقابل دَ کذب راځی نو دارنګ مقابل دَ خطا هم راځی نو دغه وخت صدق په معنیٰ دَ اصابت سره وی يعنی رسيدل حق ته دَ دے وجے نه ابن جرير او ابو حيان وئيلی دی چه دَ دے معنیٰ مصيبين دے او بل تاويل يې دَ صدق په علم سره کړے دے يعنی صٰدِقِيْنَ په معنیٰ دَ عَالِمِيْنَ بِالْاَسْمَآءِ دے-

سوال :- صدق او خطاء او کذب خو متعلق دی دَ يو کلام سره چه هغه په خارج کښ موجود وی نو دلته خو دَ ملائيکو دوه کلامونه وو يو اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ اه او دويم وَنَحْنُ نُسَبِّحُ اه او دا خو دواړه رشتيا دی ؟ -

جواب :- قاسمی وئيلی دی چه صدق لکه چه په منطوق (وينا) دَ کلام پورے

إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ۖ إِنَّكَ أَنتَ الْعَلِيمُ الْحَكِيمُ ﴿٣٢﴾

مگر دو مره چه تا پوهه راکړیده - یقیناً صرف ته پوهیږې (په هرڅه) او پوخ کار والا یې -

متعلق کیږی نو که په لازم د هغه منطوق پورې هم تعلق لری یعنی د کلام د ملائیکو نه لازماً معلومیدله چه مونږ (ملائیک) حقدار د خلافت یو نو نسبت د صدق دغه لازمی خبر طرف ته دے۔

فائده ۱ حاصل د آیت دا دے چه خلافتِ ارضیه هغه څوک کولے شی چه د زمکے د څیزونو په منافعو او د هغې په استعمال باندے پوهه لری او دا استعداد الله تعالیٰ آدم علیه السلام ته ورکړے دے او د هغه اولادته ئے هم ورکړیدے او ملائیکو کښ دا استعداد نه وؤ۔

فائده ۲ دا دلیل دے په فضیلت د علم باندے او په دے خبره چه علم شرط دے د پاره د خلیفه د دے وجے نه قرطبی په شرط دویم او دریم (د خلافت) کښ لیکلی دی چه خلیفه کښ اتفاقی شرط دا دے چه اهلیت د قضا پکښ موجود وی او اهلیت د قضاء دا دے چه مجتهد وی او دارنګ په تدابیر د فوج او په امورو د جنګ او په انتقام د ظالم نه د پاره د مظلوم په دا سے امور انتظامیه سیاسیه باندے هم ښهٔ علم لری. او په دے کښ اشاره شوه چه علم د عبادت نه افضل دے۔

۳۲ په دے آیت کښ اظهار د عجز د ملائیکو دے د علم د اسماؤ نه په اقرار د هغوی سره۔

سُبْحٰنَكَ په دے کلمه ذکر کولو کښ اشاره ده چه مونږ اعتراض په الله تعالیٰ باندے نه دے کړے او خپله لوئی کول او سپکوالے د بنی آدمو زمونږ مقصود نه دے او دا کلمه اکثر د کلام په سر کښ د اعتراف د قصور د پاره ذکر کیدیشی لکه موسیٰ علیه السلام په سورة اعراف ۱۴۳ او یونس علیه السلام په سورة انبیاء ۸۷ کښ د توبے په افتتاح کښ دا کلمه ذکر کړے ده۔ دلته د دے مراد ابن جریر او قرطبی ذکر کړے دے تَنْزِيهًا لِلّٰهِ مِنْ أَنْ يَّكُوْنَ أَحَدٌ يَعْلَمُ الْغَيْبَ غَيْرُهُ یعنی الله تعالیٰ د شریک فی العلم نه پاک دے بل عالم الغیب سیوا د هغه نه نیشته که چرے وے نو مونږ ته به علم د هر څیز وے۔ ګویا که دا یو دعویٰ ده د نفی د علم الغیب د غیرالله نه او دلیل د هغې دا قول وَلَا عِلْمَ لَنَا إِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا" دے. قرطبی دلته په تفصیل سره لیکلی دی چه ادب

دَملائیکو او انبیاؤ فضلاؤ دا دے چه په کومه مسئله نه پوهیږی
نو لَا اَعْلَمُ او لَا اَدْرِیْ دِے وائي۔ او څوک چه دا کلمه استعمالول بد ګنړی
نو هغه رئاست غواړی او بے انصافه وی، او په دے باب کښ یئے ډیر
روایات ذکر کړے دی (هغه اوګورئ)۔
اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا دا پشان دَ اِلَّا بِمَا شَآءَ دے چه په سورة بقره ۲۵۵ کښ دے۔ دا
صریح رد دے په هغه چا باندے چه دَ ملائیکو دَ پاره علم بکل شی او علم
غیب ثابتوی۔
سوال:۔ که اُوئیلے شی چه په نفی کښ علم ذاتی مراد دے او په اثبات (استثناء)
کښ علم عطائي مراد دے نو دَ دے نه نفی دَ علم غیب دَ ملائیکو نه ثابتیږی؟
جواب ۱:۔ دا دے چه دا قیدونه لګول تحریف دے دَ کلام اِلٰهی او خلاف
دے دَ مذاهب دَ ټولو اهلِ علمونه ځکه چه علماءِ سلف نه دا تقسیم (ذاتی
او عطائي) نقل نه دے۔
جواب ۲:۔ که په استثناء کښ مراد هم علم بکل شیءٍ شی نو استثناء دَکل به
دَکل نه راشی او دا باطل ده په نیز دَ ټولو اهلِ عربیت باندے۔
عَلَّمْتَنَا ظاهر دَ دے لفظ دلیل دے چه علم دَ ملائیکو صِرف په تعلیم دَ الله
تعالٰی سره دے دَ بل چا واسطه دَ هغوی دَ پاره نیشته نو دا خبره چه په عوامو
کښ مشهوره ده چه شیطان استاد وؤ دَ ملائیکو دا باطله خبره ده دَ هغے هیڅ
دلیل نیشته۔
اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِیْمُ الْحَكِیْمُ، فواصل دَ ټولو اٰیاتونو دَ هغه اٰیاتونو سره ضرور
مناسبت لری دلته هم مناسبت دَ الْعَلِیْمُ دَ لا علم لنا سره شته دے یعني
ته په هر څیز باندے عالم یئے او دا سے علم مونږ لره نیشته او الْحَكِیْمُ دَ اِلَّا
مَا عَلَّمْتَنَا سره مناسب دے یعني تا چه مونږ ته بعضِ علم راکړیدے نو
هغه ستا دَ حکمت تقاضا ده۔ حَكِیْم ماخوذ دے دَ حکمت نه او دَ حکمت
معنی دا ده چه هر فعل دَ هغه دَ حکمتونو او فائدونه ډک دے۔ یا ماخوذ دے
دَ حکم نه یعني پوره او مناسب فیصلے کوؤنکے دے۔ امام رازی وئیلی دی چه دَ
حَكِیْم معنی دا ده چه دَ هغه په فعل باندے دَ هیچا اعتراض نشی کیدلے که
اٰدم علیه السلام لره ئے علم دَ اسماؤ ورکړیدے او ملائیکو له یئے نه دے
ورکړے نو هغه باندے هیڅ اعتراض نشی کیدلے۔

قَالَ يٰۤاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ فَلَمَّاۤ اَنْۢبَاَهُمْ

اووئیل الله تعالیٰ، اے آدم (علیه السلام) خبر ورکړه دوی ته په نومونو (اوفائدو) د دے څیزونو، پس هرکله چه خبر ئے ورکړو هغوی ته

بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّیْۤ

په نومونو (اوفائدو) د هغه څیزونو، نو اووئیل الله تعالیٰ آیا نه وو وئیلے ما تاسو ته چه یقیناً زه

اَعْلَمُ غَیْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۙ وَاَعْلَمُ

پوهیږم په پټو څیزونو د آسمانونو او د زمکے او زه پوهیږم

مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۳۳﴾

په هغه څه چه تاسو ئے ښکاره کوئ او په هغه څه چه تاسو ئے پټوئ۔

ن۳۳ هرکله چه علم د آدم علیه السلام په اسمائو باندے او عدام علم د ملائیکو په هغے باندے ذکر شو نو اوس ذکر کوی اعلام د ملائیکو په علم د آدم علیه السلام اسمائو لوړے د پاره چه دوی ته د هغه فضیلت او حکمت د استخلاف د هغهٔ معلوم شی نو اوفرمائیل ئے قَالَ یٰۤاٰدَمُ۔

اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ دلته هم انباء ذکر شوه ځکه چه ملائیکو کښ استعداد د منافعو د اشیائو نیشته نه خو چه صرف هغوی ته معلوم شی علم د آدم علیه السلام په اسمائو باندے۔

فَلَمَّاۤ اَنْۢبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ انباء قولی او عملی د دواړو احتمال شته دے عملی داچه د هغوی په وړاندے د بعض څیزونو نه فائدے واخستلے۔

قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ دلته لفظ اَلَمْ د پاره د تنبیه دے لکه په اَلَمْ تَرَ کښ او استفهام انکاری په نفی باندے داخل دے د پاره د تقریر یعنی ما تاسو ته وئیلی وو۔ اِنِّیْۤ اَعْلَمُ غَیْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ دا بیان او تفصیل د مالا تعلمون دے۔ او دواړه جملے چه کله یو ځائے کړے شی یعنی مالا تعلمون او غیب السمٰوٰت الخ نو نتیجه ترینه را اوځی چه لا تعلمون غیب السموات الخ نو صریح دے په نفی د علم غیب کښ د ملائیکو نه او قرطبی دلته تصریح کړے ده چه دا دلیل دے په دے خبره باندے چه هیڅوک علم په غیب باندے نه لری سیوا د هغے نه چه الله تعالیٰ انبیاء علیهم السلام ته څه بښود نه کړیده په وحی سره۔ نو دعوی د علم غیب د نجومیانو او کاهنانو بالکل دروغ دعوی ده۔ غَیْبَ مصدر دے

وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا

او کله چه او وئیل مونږ ملائیکوته سجده اوکړئ آدم (علیه السلام) ته نو سجده اوکړه ټولو

اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰى وَاسْتَكْبَرَ ٭ وَكَانَ

مګر ابلیس اوتکړه - انکار ئے اوکړو او ځان ئے لوئے اوګڼړو او وو دے

مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۴﴾ وَقُلْنَا يٰٓاٰدَمُ اسْكُنْ

دَ کافرانو نه - او او وئیل مونږه! اے آدم (علیه السلام) اوسیږه

په معنی دَ مَا غَابَ فِی السَّمٰوٰتِ اه سره۔

سوال:- دَ الله تعالیٰ نه خو هیڅ څیز پټ نیشته نو څه رنګ هغے ته ئے غیب (پټ) اوئیلو؟- جواب:- مراد دا دے چه مَا غَابَ عَنِ الْخَلْقِ (هغه چه دَ مخلوق نه غائب دی۔

وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ دَ مَا تُبْدُوْنَ نه مراد هغه قول دَ هغوی دے چه اَتَجْعَلُ فِيْهَا مَنْ يُّفْسِدُ اه او مَا تكتمون، ابن عطیه وئیلی دی چه داجمع په معنی دَ مفرد دے یعنی ابلیس (چه په ملائیکوکښې آباد وُو) هغه په زړه کښې تکبر او حسد او معصیت پټ ساتلو. او غوره دا ده چه مراد دَ دے نه عموم دے چه ټول ښکاره او پټ رازونه الله تعالیٰ ته معلوم دی۔ شربینی وئیلی دی چه دَ دے واقعے نه معلومه شوه چه انبیاء علیهم السلام افضل دی دَ ملائیکو نه ځکه چه علم افضل دے دَ عبادت نه او معلِّم غوره وی دَ متعلم نه او دا مسلک دَ اهلِ سنت والجماعت دے دا رنګ معلومه شوه چه په علم دَ ملائیکوکښې زیاتے هم راتلے شی نو خلاف ثابت دے فلسفیانو لره چه هغوی دوی ته عقول وائي او وائي چه دَ دوی په علم کښې زیاتے نه رائي۔ دا رنګ معلومه شوه چه الله تعالیٰ علم لری په څیزونو مخکښې دَ وجود دَ هغے نه۔ او دا رنګ نسبت دَ تعلیم الله تعالیٰ ته صحیح دے لیکن دَ معلم اطلاق په الله تعالیٰ باندے صحیح نه دے ځکه چه هغه منقول نه دے او دا رنګ معلومه شوه چه لغات او ژبے ټولے توقیفی دی یعنی الله تعالیٰ ښودلے دی آدم علیه السلام ته۔

۳۴ ربط: دا ذکر دَ څلورم انعام عام دے په بنی آدم باندے چه هغه اکرام

دَ پلار دَ دوی دے په سجود دَ ملائیکو او په جنت کښ داخلول او خطائي دَ هغه په توبے دَ هغه سره معاف کول او دَ توبے کلمات ښودل او دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه دَ بنی آدم دَ هدایت انتظام جاری ساتل تر خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم پورے او دا انعامات دلیلونه دَ پاره دَ دعوے دَ توحید دی چه اعبدوا ربکم دے. دویم دا چه مخکښ نفی دَ علم غیب اوشوه دَ ملائیکو نه نو اوس نفی دَ علم غیب کوی دَ آدم علیه السلام او دَ ابلیس نه چه دا دواړه انواع دی دَ اهلِ علم وعقل پښان دَ ملائیکو نو دا متعلق دے دَ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ سره. دریم دا چه مخکښ ذکر شو خلافت دَ آدم علیه السلام او اهلیت دَ هغه په سبب دَ علم سره او ظاهر کړے شو اهلیت دَ هغه په ملائیکو باندے نو اوس حق دَ خلیفه ذکر کوی چه هغه دَ هغه اکرام او دَ هغه انقیاد دے په اذن دَ الله تعالیٰ سره.

وَإِذْ قُلْنَا لِلْمَلَٰٓئِكَةِ، **سوال:**- مخکښ واقعه کښ قال ربك او په دے کښ یے قُلْنَا اوئیلو؟

**جواب:**- هلته دَ استخلاف او تعلیم ذکر وُو او دغه امور دَ تربیت دی دَ الله تعالیٰ دِے خلقو لره او دلته دَ تعظیم او دَ اکرام او دَ امر کولو ذکر دے او مناسب دَ دے سره تعظیم دَ الله تعالیٰ او عظمت دَ امر دَ الله تعالیٰ دے دَ دے وجے په صیغه دَ جمع متکلم سره ذکر شو.

لِلْمَلَٰٓئِكَةِ مراد دَ دے نه ټول ملائیک دی ظاهر هم دلالت کوی او دا رنګ سورة حجر ۳۰ هم او دا قول دَ عام علماؤ دَ کتاب او سنت دے او قاسمی دَ شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة الله علیه نه نقل کړے دے چه چا دَ دے خلاف قول کړے دے (خاص ملائیک دَ زمکے یے مراد کړیدی) نو هغه قرآن رد کوی په کذب او بهتان سره یعنی دَ دغه تخصیص هیڅ دلیل نیشته.

**فائده:**- اختلاف دے دَ مفسرینو چه واقعه دَ استخلاف په سجود باندے مخکښ ده او که روستو ده. ابن کثیر وغیره دا غوره کړے ده چه واقعه دَ سجود مخکښ ده او تعلیم الاسماء او استخلاف روستو دے هغوی دلیل نیولے دے په سورة حجر ۲۹ سره چه په هغے کښ دَ پیدائش دَ آدم علیه السلام نه مخکښ وئیلی وُو چه هغه ته به سجده کوئی او دوی وائی چه دلته کښ واو دَ وَإِذْ قُلْنَا دَ ترتیب دَ پاره نه دے. دویم قول دَ بعض

مفسرینو دا دے چه واقعه د استخلاف او تعلیم په واقعه د سجود باندے
مخکښ ده او دا د ظاهر د قرآن سره موافق دے او ایت د سورۃ حجر کښ
امر د سجود تعلیقاً دے نو حاصل دا دے چه اول الله تعالٰی ملائیکو ته خبر
ورکړو چه خلیفه پیدا کوم او هغه به بشر وی د خاورے او ختے نه یے جوړوم
او چه پیدا او جوړ یے کړم نو بیا به ورته سجده کوئ بیا چه پیدا یے کړو نو
تعلیم د اسمائو یے ورته اوکړو او بیا یے ملائیکو ته امر تعجیزی اوکړو چه
اوس ورته سجده اوکړئ او د دے وجه دریم ربط کښ هم تیره شویده۔
فائده :- دا واقعه د سجود لآدم په قرآن کریم کښ اوو سورتونو کښ ذکر
ده ( بقره۔ اعراف۔ حجر۔ اسراء۔ کهف۔ طٰهٰ۔ صٓ ) او په هر سورت کښ په
تعبیراتو کښ لږ لږ فرق دے او په هر سورت کښ د جدا جدا مقصد د
پاره واقعه ذکر شویده۔ په دے سورت کښ مقصد ذکر د انعاماتو دے
چه د هغے ذکر په اول ربط کښ تیر شوے دے او په هر سورت کښ جدا جدا
مقصد په تفسیر کښ ذکر کړے شوے دے او هر کله چه دلته عظمت د انعام
مقصد دے د دے وجے نه ځلور کرته لفظ د قلنا ذکر کړے شویدے۔
اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ۔ سجده په لغت کښ انحناء یعنی سر ښکته کول دی، خضوع
او عاجزی کول، اطاعت او انقیاد کول۔ دا معانی اهل لغت ابن منظور وغیره
او مفسرینو قرطبی شربینی وغیره ذکر کړے دی۔ او سجده په عرف
کښ تندے ایښودل دی په زمکه باندے مطلقاً که د تعظیم په طور وی
یا د اکرام یا تحیه وسلام یا د عبادت په طور وی او په اصطلاح د شرع
کښ سجده تندے په زمکه باندے ایښودل دی په نیت (عقیدہ) د عبادت
سره او دا ټولے معانی په قرآن کښ استعمال شویدی۔ فراء وثیلی دی چه
په ایت "والنجم والشجر یسجدان" کښ معنی د خضوع او عاجزئ مراد ده
او د دے سورت په ۵۸ کښ انحناء ( په طریقه د رکوع ) او انقیاد و اطاعت
مراد دے۔
او انواع د سجود درے دی اول سجده په سر ښکته کولو سره د پاره
د تحیه او اکرام دویم مخ په زمکه باندے ایښودل په نیت د اکرام په وخت
د سلام کښ۔ دا دواړه په مخکښ امتونو کښ جائز وُو او دا طریقے په فارس
کښ موجود وے او دا دواړه زمونږ په دین کښ منسوخ دی مفسرینو

د دے ایت په تفسیر کښ قول د نسخ ښکاره لیکلے دے شربینی وئیلی دی فَلَمَّا جَاءَ الْإِسْلَامُ بَطَلَ ذٰلِكَ بِالسَّلَامِ وَالْكَلَامِ خازن هم دا سے عبارت وئیلے دے او نسفی حنفی وئیلی دی كَانَ سُجُوْدُ التَّحِيَّةِ جَائِزًا فِيْمَا مَضٰى ثُمَّ نُسِخَ بِقَوْلِهٖ علیه السلام لِسلمان رض لَا يَنْبَغِيْ لِمخلوق اَنْ يَّسْجُدَ لِاَحَدٍ (مِنَ الْمَخْلُوْقِ)۔
ابن کثیر وئیلی دی قَدْ كَانَ هٰذَا مَشْرُوْعًا فِي الْاُمَمِ الْمَاضِيَةِ وَلٰكِنَّهٗ نُسِخَ فِيْ مِلَّتِنَا، او هغه حدیث د معاذ رضی الله عنه ذکر کړیدے او دا سے قرطبی هم ذکر کړیدی او حدیث د معاذ رضی الله عنه ئے ذکر کړیدے بیا قرطبی په ص۲۹۴/۱ کښ وئیلی دی چه دا سجود منهی عنه (سر ښکته کول په وخت د سلام کښ) جاهلانو صوفیاؤ (پیرانو) عادت گرځولے دے کله چه خپلو بزرګانو ته ورداخلیږی تر دے پورے چه بعض د هغوی خپوته په سجده پریوځی، نو د دوی عملونه برباد دی۔
حکم په شرع کښ دا دے که چا بل چا ته مشر وغیره ژوندی حاضر ته سر ښکته کړو په وخت د سلام کښ نو دا مکروه تحریمی دی بالاتفاق او هغه حرام ته نزدے وی یا عین حرام وی بنا په اختلاف د فقهاؤ۔ او که چا بل چا ته سر په زمکه بانده کیښودلو په نیت د اکرام او سلام (نه په نیت د عبادت) دا خو حرام دے بالاتفاق او بعض فقهاؤ په دے بانده حکم د کفر کړے دے او بعض تفصیل د دے په التبیان فی تفسیر ام القرآن کښ لیکلے دے۔
دریم قسم سجده د عبادت ده یعنی چه عقیده او ساتی چه دا مسجود حقدار د بندگئ دے ځکه چه واکدار ذمه دار د کارونو د مخلوق دے فریاد رس غیب دان دے نو په دے عقیدے سره سجده غیر الله ته شرک حقیقی دے په ټولو امتونو او اسمانی دینونو کښ۔
تحقیق :- (سجود د ادم علیه السلام په دے اقسامو کښ کوم قسم وُو او په هغے کښ اقوال او غوره قول ذکر کول)۔ هر کله چه د سجود معانی او اقسام ډیر دی او دارنګ حرف د لام په لِاٰدَم کښ صله د اسجدوا ده یا لام اجلیه دے یا لام په معنی د اِلٰی دے یا لام په معنی د توقیت دے دا هم څلور احتمالات دی۔ تفصیل ئے دا دے چه اجماع او اتفاق دے په دے خبره بانده چه سجده ادم علیه السلام ته د عبادت په طور نه وه ځکه دا سجده په

هر دين کښ د غير الله د پاره شرک دے (قرطبي دا سے وئيلي دي) نو اول قول دا دے چه سجده په معنی لغوی سره ده يعنی انحناء (سر ښکته کول) او دا په طريقه د تحيه او د اکرام سره وه او دا قول ابن الانباری د فراء نه نقل کړيدے چه کان تَحِيَّةً وَتَسْلِيمًا لَا عِبَادَةً او دے قول ته امام رازی هم ترجيح ورکړيده او خازن هم ديته اصح وئيلي دی او نسفی وئيلي دی چه دا د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه دا انحناء وه (پريوتل په زنه باندے) يعنی تندے په زمکه لګول نه وُو. په دے معنی لام صِله ده د سجود په ديکښ اکرام د آدم عليه السلام اوشو او اطاعت د امر د الله تعالیٰ هم اوشو. دويم قول سجده په معنی لغوی انقياد ده او لام صِله ده د سجود قرطبی وئيلي دی چه د يو قوم په نيز دا سجده په معنی د تذلل او انقياد سره ده او دا قول په روح المعانی کښ هم ذکر کړے دے او مقصد د دے دا دے چه اقرار اوکړئ په فضيلت د آدم عليه السلام او د هغه د اولاد (بنی آدمو) په خدمت کښ مشغول شئ او دا سے امام راغب په مفردات کښ ليکلي دی چه أُمِرُوا بِالتَّذَلُّلِ لَهُ وَالْقِيَامِ بِمَصَالِحِهِ وَمَصَالِحِ أَوْلَادِهِ (مفردات ص۲۲۳) د دے وجے نه ډير ملائيک الله تعالیٰ د انسانانو په حفاظت او مرکز تيا او مدد کولو او په کتابت د اعمالو د دوی باندے مقرر کړيدی او هغوی هيڅ مخالفت نکوی. دريم قول دا سجده د عبادت وه او لام په معنی د اِلیٰ سره دے نو آدم عليه السلام پشان د قبله شو او سجده عبادت د الله تعالیٰ د پاره ده او قبله کښ هم شرافت او فضيلت شته دے او قرطبی دا قول د جمهورو د طرف نه خوښ کړے دے او سجده دلته په معنی شرعی ده. ليکن قاسمی د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمة الله عليه نه نقل کړے دی چه اهل العلمو وئيلي دی چه سجده د پاره د آدم عليه السلام ده په امر د الله تعالیٰ سره او په دے باندے اجماع ده د هر هغه چا چه دا الفاظ اوری اُسْجُدُوا لِآدَمَ، اِلیٰ آدم يئے نه دے وئيلي او په آخر کښ وئيلي دی چه د اهل سنت مسلک دا دے چه دا سجده د تسليم او تحية ده د پاره د آدم عليه السلام. او د معتزلو قول دا دے چه آدم عليه السلام صِرف د قبلے پشان وُو حاصل دا دے چه په دے ټولو کښ اول قول غوره دے او دغه معنی مراد ده په سجود د يوسف عليه السلام کښ هم فَسَجَدُوٓا إِلَّآ إِبْلِيسَ. يعنی ملائيکو امتثال اوکړو د امر د الله تعالیٰ بغير

دَ چون چرانه او دا شان دَ ملائیکو دے په سورة تحریم ایت ۶ کښ. لفظ دَ اِلّا دَ استثناء دَ پاره دے کله استثناء متصل وی او کله استثناء منقطع وی متصل دَ جمهور نحویانو په نیز هغه دے چه ما قبل (مستثنیٰ منه) او مستثنیٰ دَ یو جنس نه وی او منقطع هغه دے چه دَ دواړو په جنسیت کښ فرق وی صِرف دَ هغے سره من وجه مناسبت وَی نو دَ وهم دَ دفع کولو دَ پاره په اِلّا سره دَ ما قبل دَ حکم نه جدا او خارج کړے شی. او بعضِ نحویانو په متصل کښ جنسیت نه دے شرط کړے وئیلے یې دی چه صِرف اخراج دَ حکم دَ جماعت نه شرط دے. اِبْلِيْسَ نو بِنا په اول قول سره ابلیس که دَ جنس دَ ملائیکو نه شمار کړے شی (بِنا په یو قول بانده) نو استثناء متصل ده او بِنا په بل قول سره که دَ هغوی په جماعت کښ داخل وَی نو بیا هم استثناء متصل شوه. او چه ابلیس دَ جنس دَ ملائیکو نه نه شی (بِنا په بل قول بانده) نو بیا استثناء منقطع ده. اِبْلِيْسَ، خازن وئیلی دی چه دا اسم صفتی دے دَ ابلاس نه ماخوذ دے په معنی دَ نا اُمیده دَ رحمت دَ الله تعالیٰ نه او نوم یې په سریانی کښ عزازیل وَو او عبرانی کښ حارث وَو او شیطان هم دَ دهٔ اسمِ صفتی دے. او دَ ابلیس نوم په قرآن کښ یو ولس کرته ذکر دے.

فائده:- دَ ابلیس په باره کښ اختلاف دے چه دَ ملائیکو دَ جنس نه دے یا دَ جن نه دے بیا په جن کښ هم اختلاف دے چه هغه یو قبیله ده دَ ملائیکو نه او که جدا جنس دے په دیکښ اقوال دی دَ علماؤ.

اول قول قرطبی وئیلی دی قول دَ جمهور اهل علم (ابن عباس ابن مسعود رضی الله عنهم. ابن جریج. ابن المسیب او قتاده او ابوالحسن وغیرهم) وئیلی دی چه ابلیس دَ جنس دَ ملائیکو نه وَو او دا طبری هم راجح گرځولے دے او نسفی دَ علی رضی الله عنه نه نقل کړے دے او خازن هم دے ته اصح وئیلی دی او فراء بغوی وئیلی دی چه دا قول دَ اکثر مفسرینو دے او دلیل دَ دوی ظاهر دَ دے استثناء دے چه دا متصل ده او متصل مجانست غواړی بل دلیل دَ دوی مونږ ته معلوم نه دے.

دویم قول ابن جریر دَ ابن مسعود رضی الله عنه او دَ حسن بصری او دَ ابن زید، او قرطبی دَ شهر بن حوشب وغیرهم نه روایت راوړے دے چه ابلیس دَ جن دَ جنس نه وَو او ملائیکو دَ هغوی سره قتال کړے وَو او ابلیس

د ملائیکو سره شامل شو او عبادت کښې مشغول شو او اول دلیل د دے قول
د الله تعالیٰ په سورة کهف ۵۰ کښې کَانَ مِنَ الْجِنِّ او دویم په سورة اعراف
۲۷ کښې قَبِیْلُهٗ او سورة کهف ۵۰ ذُرِّیَّتَهٗ دلالت کوی چه د دے د ملائیکو نه
نه دے ځکه چه په ملائیکو کښې تسل او پیدائیش نیشته. او دریم په
سورة سبا ۴۱ کښې عبادت د ملائیکه او عبادت د جن کښې فرق کړے شوے
دے او حرف د بل ئے استعمال کړے دے. او څلورم حدیث چه ملائیک د
نور نه پیدا دی او جن د نار نه او انسانان د خټې نه. دا حدیث امام مسلم په
روایت د عائشه رضی الله عنها سره ذکر کړے دے. پنځم په سورة تحریم
۶ کښې چه ملائیک عصیان نه کوی او ابلیس او د هغه ذریة خو عصیان
والا دی. شپږم هغه احادیث چه په هغے کښې ذکر دے د جنا تو د خوراک څښاک
او په جماع کښې شرکت وغیره او ملائیک خو دا اعمال نه کوی.
دریم قول ابلیس د جن نه دے لیکن جن یو قبیله ده د ملائیکو نه دا
قول قرطبی د سعید بن جبیر نه او ابن کثیر د ابن عباس رضی الله عنهما
نه نقل کړے دے. نو چا چه اول قول کړیدے د دغه دلیلو نو تاویلونه ئے
کړیدی او دریم قول هم په تاویلونو بانده بنا دے لکه چه بیضاوی
نقل کړیدی. نو غوره قول دویم قول دے چه په هغے بانده بنکاره
دلیلونه شته او تاویلاتو ته حاجت نیشته او کوم روایات چه په قول اول او
دریم قول کښې د صحابه او تابعینو نه نقل دی ظاهر دا ده چه هغه نقل دی
د اهل کتابونه او هغه اسرائیلی روایات دی. او ابن کثیر په تفسیر د سورة
کهف ۵۰ کښې وئیلی دی چه دا ټول اسرائیلیات دی او نور تفصیل ئے
کړے دے او سیوطی په درمنثور کښې ص۲/۵۰ کښې د حسن نه روایت کړے
دے قَاتَلَ اللهُ اَقْوَامًا یَزْعَمُوْنَ اَنَّ اِبْلِیْسَ کَانَ مِنْ مَّلَائِکَةِ اللهِ وَاللهُ تَعَالٰی
یَقُوْلُ کَانَ مِنَ الْجِنِّ. باقی دا استثناء ده نو دا منقطع ده او قرآن کریم کښې
منقطع استثناء ډیر واقع ده لکه قرطبی د سورة نساء ۱۵۷ او سورة مائده
۳ آیاتو نه ذکر کړے دی دا رنګ سورة اعراف ۱۸۸ او سورة غاشیه ۲۳
او سورة نمل ۶۵ بنا په یو قول بانده.
سوال:- هر کله چه ابلیس د ملائیکو نه نه دے نو بیا استثناء څه رنګ
صحیح کیږی؟-

جواب :- دا سوال ابن جوزی په زاد المسیر کښ ذکر کړے او جواب ئې دا سے ذکر کړے دے چه ابلیس ته امر د سجدے خو شوے دے (په دلیل د سورة اعراف ۱۲ کښ) لیکن سجده ئې او نکړه نو د دے وجے نه (د تذلیل د پاره) په جانب د مامورینو کښ ذکر نشو او په جانب د استثناء کښ ذکر شو مثال ئې دا دے چه یو کس او وائي اَمَرْتُ اِخْوَتِيْ فَاَطَاعُوْنِيْ اِلَّا عَبْدِيْ (حکم او کړو ما خپلو رونړو ته نو هغوی زما خبره او منله سیوا د مریي زما نه) او دا ئې د زجاج نه نقل کړے دے۔
او دویم جواب دا دے چه د ملائیکو ذکر او شو په امر بالسجود سره او هغوی اعلیٰ وو نو د ادنیٰ حکم پخپله معلوم شو چه هغه هم مامور وو دا مهائمی په تبصیر الرحمٰن کښ ویلی دی۔
اَبٰى وَاسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ۔ په دے سورت کښ د ابلیس څلور گناهونه ئې ذکر کړل اول ترک د سجدے چه د اِلَّا نه معلوم شو۔ دویم اباء انکار کول۔ دریم استکبار۔ څلورم کفر کول۔ او په سورة اعراف ۱۱ کښ لَمْ يَكُنْ مِّنَ السّٰجِدِيْنَ ذکر وو یعنی مخالفت کول د جماعت د ساجدینو نه۔ نو دا پنځم جرم دے او شپږم تفصیل د استکبار او قیاس پیش کول په مقابله د نص کښ دا په سورة اعراف ۱۲ کښ دے۔ او په سورة حجر ۳۱ کښ انکار کول د مرکزتیا د ساجدینو نه دا ئې اووم جرم دے او بیا توهین او تذلیل کول د آدم علیه السلام په سورة حجر ۳۳ کښ او دا ئې اتم جرم دے او په سورة اسراء ۶۱ کښ تذلیل او توهین کول د آدم علیه السلام۔ او په سورة کهف ۵۰ کښ نهم جرم ذکر دے چه فسوق کول دی د امر د رب نه او په سورة طٰهٰ ۱۱۶ کښ صرف انکار کول او په سورة ص ۷۶ کښ تفصیل د استکبار او قیاس کول په مقابله د نص کښ پشان د سورة اعراف۔ او په هر سورت کښ د هغے سره مناسب جرم د هغه ذکر شوے دے او دا اول مقام دے نو په دے کښ د اختصار د وجے نه جامع جرمونه ئې ذکر کړل۔ اَبٰى دا جمله مستانفه ده علت دے د ماقبل د پاره او دفع د وهم ده که وهم او کړیشی چه کیدے شي چه په هغه وخت کښ به ئې ترک کړے وی بیا به ئې بل وخت سجده کړے وی؟ جواب او شو چه اباء ئې کړیده۔ وَاسْتَكْبَرَ دا عطف د علت دے په معلول باندے او دفع د وهم ده که څوک وهم او کړی چه انکار به ئې د وجے د اجتهادی غلطئ نه کړے وی یا به ئې دا گنړله چه

سجده کول غیر الله ته جائز نه ده، نو جواب اوشو چه انکار یئے د وجے د استکبار نه کړے دے او استکبار دلته مستلزم دے اعتراض کولو لره په الله تعالیٰ باندے چه الله تعالیٰ ولے حکم اوکړو اعلیٰ ته چه سجده اوکړئ ادنیٰ ته۔ کبر او تکبر دا دے چه یو انسان خپل ځان د بل چا نه لوئے ګڼړی نو د هغه حکم هم نه منی۔ په حدیث کښ راغلی چه تکبر دا نه دے چه انسان غواړی چه زما جامه یا څپلئ (پیزار) دِ ے خائسته وی داخو جمال دے الله تعالیٰ جمال خوښوی لیکن کبر دا دے چه د حق نه په ضد او عناد سره انکار کوی او اهل حق سپک ګڼړی دا مسلم روایت کړے دے۔ نو ابلیس هم حق خبره یعنی د امر د الله نه سرۀ د پوهے نه انکار اوکړو او آدم علیه السلام ته یئے سپک اوکتل۔

فائده:- په قرآن کریم کښ تکبر دوه کرته او استکبار دوه څلویښت کرته ذکر دے۔ تکبر په صفت د ابلیس کښ په سورۃ اعراف ۱۳ کښ او په صفت د کافرانو کښ په سورۃ اعراف ۱۴۶ کښ ذکر دے او استکبار په صفت د ابلیس کښ څلور کرته او په صفت د کافرانو کښ یو دیرش کرته ذکر دے او عدم استکبار په صفت د صالحینو کښ د نصارٰی نه په سورۃ مائده ۸۲ کښ او په صفت د صالحینو د دے اُمت کښ په سورۃ الم سجده ۱۵ کښ او په صفت د ملائیکو کښ په سورۃ اعراف ۲۰۶، سورۃ نحل ۴۹ او سورۃ انبیاء ۱۹ کښ ذکر دے او وصف د متکبر، متکبرین په صفت د کافرانو کښ شپږ کرته ذکر دے او په صفت د الله تعالیٰ کښ منکبر په سورۃ حشر ۲۳ کښ او کبریاء په سورۃ جاثیه ۳۷ کښ ذکر ده او کبر په صفت د کافرانو کښ په سورۃ مؤمن ۵۶ کښ ذکر دے او فرق په مینځ د تکبر او استکبار کښ دا دے استکبار په هغه ځائے کښ استعمالیږی چه حق د لویئ نه لری او لوئی کوی نو دا وصف همیشه د قباحت د پاره راځی او تکبر کله په استحقاق سره وی په دے معنی صفت د الله تعالیٰ دے او کله چه بغیر د حق نه وی نو دغه صفتِ قبیحه د بندګانو دے۔ او سزا د استکبار په قرآن کریم کښ په سورۃ نساء ۱۷۳ او سورۃ اعراف ۳۶، ۴۰ او سورۃ مؤمن ۶۰ او سورۃ احقاف ۲۰ کښ ذکر ده۔

وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ په کان کښ دلته دوه قولونه دی اول دا چه په معنی د صَارَ دے (د انتقال د پاره راځی) لکه په سورۃ هود ۴۳ کښ او دا شکاره

دلیل دے چه چا انکار اوکړو دَ امر دَ الله تعالیٰ یا استکبار یې اوکړو نو هغه کافر او مرتد دے. دویم قول دا چه کان په خپله معنی سره دے (چه دَ زمانه ماضی دَ پاره راځی کله ورسره استمراروی او کله نه وی هاں په صفت دَ الله تعالیٰ کښ دَ دوام او استمرار دَ پاره دے قطع نظر دَ زمانے دَ ماضی او استقبال نه) او هر کله چه کان په خپله معنی شی نو دَ هغے هم دوه احتمالونه دی اول دا چه دے په علم دَ الله تعالیٰ کښ دَ کافرانو نه وو یعنی الله تعالیٰ ته علم وو چه دے به په آخر کښ کافر کیږی او دے ته مسئله دَ موافات وئیلے شی چه دَ الله تعالیٰ په نیز اعتبار خاتمے ته دے- دویم احتمال دا دے چه دے منافق وو او منافق دَ کافرانو نه وی.
سوال:- هر کله چه دے کافر وو نو ملائیکو ولے په خپل مجالسو کښ ساتلو؟
جواب:- دا دے چه عاقبت خو ملائیکو ته معلوم نه وی هغه علم په الله تعالیٰ پورے خاص دے او دویم جواب دا دے چه دے منافق وو دا قول قاسمی ذکر کړے دے- لیکن ملائیکو په غیب باندے علم نه لرلو لکه نبی صلی الله علیه وسلم چه دَ منافقانو په حال باندے علم نه لرلو دَ دے وجے نه ابلیس دَ ملائیکو سره اوسیدو لکه منافقین چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم سره اوسیدل.
فائده:- الله تعالیٰ ته علم وو چه دے منافق دے یا به روستو کافر کیږی او سره دَ دے نه الله تعالیٰ دهٔ لره په مجلس دَ ملائیکو کښ ساتلو او هغه اکرام چه دَ ملائیکو وو هغه دَ دهٔ هم وو، دا دلیل دے چه دا سے امورِ خارقه دَ عادت نه (چه دَ خلقو په نظر کښ کرامت ښکاره کیږی) کله کله دَ کافر، فاسق نه هم ښکاره کیږی نو معلومه شوه چه بِنا دَ ولایت عند الله په امور خارقه باندے نه ده، دا سے ابن کثیر وئیلی دی او دلیل یې نیولے چه کله امر خارق دَ غیر ولی په لاس باندے هم کیږی لکه په واقعه دَ ابن صیاد سره چه دے به کله غصه شو نو تنوله لار به یې ډکه کړله په بدن خپل سره او دا رنګ په حالاتو دَ دجال سره چه ډیر نا اشنا کارونه به ترینه صادریږی او دا رنګ روایت یې ذکر کړے دے چه یونس بن عبد الاعلی صدفی امام شافعی رحمة الله علیه ته اووئیل چه لیث بن سعد به وئیل چه هر کله تاسو یو سړے اُوینئ چه دَ اوبو دَ پاسه روان وی او په هوا کښ الوځی نو په هغه باندے مه دهوکه کیږئ تر دے پورے چه پیش کړئ دَ هغه حال په کتاب

أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا

ته او بی بی ستا په جنت کښې اوخوراک کوئ دواړه د دے نه بسیاره

حَيْثُ شِئْتُمَا وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ

هرځائے چه خوښه شی ستاسو او مه نیزدے کیږئ دے اونے ته

فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿٣٥﴾ فَأَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ

گنی شئ به دواړه د گنهګارونه - نو واوخویول دواړو لره شیطان

اوسنت بانـدے، نو امام شافعی رحمۃ اللہ علیه اووئیل چه لیث په دے کلام کښې لږ قصور کړیدے (ورپسے د امام شافعی قول بعینه د لیث پشان ذکر کړے دے واللہ اعلم چه عبارت نه څه حصه غورزیدلے ده)۔ اودارنګ امام قرطبی ذکر کړیدی چه هغه څوک چه اللہ تعالیٰ د هغه په لاسونو باندے نااشنا کارښکاره کړی او هغه نبی نه وی نو دا دلیل د ولایت د هغه نه دے خلاف ثابت دے بعض صوفیه او روافضو لره۔ او دلیل زمونږ دا دے چه علم زمونږ په ولایت د یو شخص نه صحیح کیږی مګر روستو د علم نه چه دا شخص مړ دے په ایمان باندے او هرکله چه علم په موت علی الایمان باندے مونږ د پاره ممکن نه دے ځکه چه عاقبت باندے صرف اللہ تعالیٰ عالم دے نو د هغه په ولایت او په دغه کارونو باندے د کرامت فیصله یقینی مونږ نشو کولے۔

مِنَ الْكٰفِرِينَ دالفظ دلیل دے چه په هغه وخت کښې د کافرانو ډله په پیړیانو کښې موجود وه یا مراد تر ینه روستو کفر کوونکی خلق دی۔

۳۵ په دے ایت کښې دوه اوامر او یو نهی ذکر کوی او دا اتول انعامات اواعزاز دے د آدم علیه السلام۔ اول انعام اُسْكُنْ دا د سکنیٰ نه ماخوذ دے او سیدل مراد دی د سکون نه (چه مقابل د حرکت دے) ماخوذ نه دے ځکه چه عدم حرکت د روستو حَيْثُ شِئْتُمَا سره خلاف دے، خازن وئیلی دی چه امر د سکنیٰ مستلزم د پاره د استقرار نه ذے اشاره ده چه آدم علیه السلام د لږ وخت د پاره په جنت کښې داخل شو چه د هغے د مزو اولذتونو نه بالمشاهده خبر شی او بیا به ترینه د استقرار د پاره زمکے ته

راکوزیږی۔ اودا سے قرطبی هم وئیلی دی۔ اَنْتَ دا ئے د دے وجے نه ذکر کړو
چه روستو وَ زَوْجُكَ عطف په ضمیر د اسْکُنْ باندے صحیح شی۔
وَ زَوْجُكَ دلیل دے چه الله تعالیٰ آدم علیه السلام لره بی بی پیدا کړه او حدیث
صحیح سره ثابت ده چه د آدم علیه السلام د کیڼږے پوختئ نه ئے پیدا کړه
او د هغے ذکر په سورة نساء سلے کښ راغی او د هغے نوم حوّاء دے۔ او ظاهر
داده چه جنت ته د داخلولو نه مخکښ ئے پیدا کړے ده دا قول ابن کثیر
د محمد بن اسحاق نه نقل کړے دے۔
الْجَنَّةَ د دے جنت په باره کښ د علماؤ اختلاف دے چه دا په آسمان کښ
وؤ کوم چه دار الثواب دے یا په زمکه کښ وؤ او په دے مسئله کښ د هر
جانب نه دلیلونه ابن قیم الجوزیه په کتاب حادی الارواح الیٰ جنة الافراح
کښ ذکر کړے دی لیکن غوره دا ده چه دا مشهور جنت (دار الثواب) دے،
الف لام د یا ره د عهد دی او معهود د مسلمانانو په نیز باندے جنت دار الثواب
دے۔ او دا رنګ هغه نعمتونه چه سورة طٰهٰ ۱۱۸، ۱۱۹ کښ ذکر دی هغه هم
په دغه جنت پورے خاص دی۔ او قرطبی او نسفی او ابن کثیر وغیرهم وئیلی
دی چه څوک چه وائي چه دا باغ (جنت) په زمکه کښ وؤ نو دا قول د معتزلؤ
او قدریؤ دے او دلته بعض سوال او جواب قرطبی هم ذکر کړے دی۔
وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا دا ذکر د بل نعمت دے چه په دیکښ دوه
وسعتونه ذکر دی یو رَغَدًا او دویم حَيْثُ شِئْتُمَا۔
**سوال:**۔ خوراک ته انسان د سکن نه مخکښ محتاج دے نو ولے اسکن ئے
مقدم کړو په كُلَا باندے؟
**جواب:**۔ صرف خوراک ته خو مخکښ احتیاج دے لیکن خوراک په وصف
د رَغَدًا او تعمیم د مشیت سره دا تقاضا کوی د مخکښ سکن او آرام ګاه د یاره۔
**سوال:**۔ په اسْكُنْ کښ خطاب صرف آدم علیه السلام ته وؤ او زوج ئے
ور باندے عطف کړو او په كُلَا کښ دواړو ته خطاب ولے په صیغه د تثنیه سره؟
**جواب:**۔ زنانه په سکنیٰ کښ د خاوند تابع وی او هر چه خوراک دے نو
هر څوک نارینه او زنانه هغے ته مستقلاً احتیاج لری بغیر د تابعدارئ د
بل نه۔ رَغَدًا "ژوند په داسے کور کښ چه مبارک وی بغیر د مشقت
او تکلیف نه" (قرطبی) دا رنګ "واسع او ډیر او مزیدار بغیر د مانع نه (خازن، شربینی)

دې کې مراد د خوراک ته اشاره ده. خازن وئیلی
حَیْثُ شِئْتُمَا وسعت د مکان او د انواعو د خوراک ته اشاره ده. خازن وئیلی
دی چه مراد د دے نه کیف، این، او متٰی شِئْتُمَا دے یعنی وسعت د طریقے
او مکان او زمان " یعنی څنګه موچه خوښه وی، چرته موچه خوښه وی او
کله موچه خوښه وی نو خورئ ".

فائده :- داسے په سورة اعراف ۱۹ کښې هم شته لیکن دواړو آیاتونو کښې فرق دے په څو وجوهو سره. اول دلته وَقُلْنَا شته او هلته نیشته. دویم دلته فَکُلَا دے په فاء سره. دریم دلته رَغَدًا شته وَکُلَا دے په واو سره او هلته فَکُلَا دے په فاء سره. دریم دلته رَغَدًا شته او هلته نیشته نو د اول فرق وجه دا ده چه په دے سورت کښې دا آیت په طور د ذکر د انعاماتو سره دے نو په مخکښې باندے یې عطف کړو او هر انعام مستقل دے د دے وجے نه د دے سره یې مستقل قُلْنَا ذکر کړو. د دویم وجه دا ده چه هر فعل چه په هغه باندے بل فعل عطف شی او اول فعل په شان د شرط وی د دویم د پاره نو دویم باندے فاء داخلیږی او چه معنی د شرطیت پکښې نه وی نو هلته واو داخلیږی. نو دلته مراد د اسکن نه سکنٰی ده او سکنٰی شرط د پاره د اکل نه دے بلکه اکل بغیر د حال د سکنٰی نه هم حاصلیږی او په سورة اعراف کښې اسکن کښې معنی د دخول مراد وه په دے وجه سره چه هغه عطف دے په اخرج باندے او دخول فی الجنة شرط دے د پاره د خوراک کولو د جنت نه او هر کله چه په دے سورت کښې تذکیر د انعاماتو مقصد دے نو لوئے انعام سکنٰی ده په جنت کښې او خوراک د هغے نه دا هم مستقل انعام دے د دے وجے نه په دے سورت کښې اسکن په معنی د سکنٰی او واو په کُلَا کښې ذکر شو. د دریم فرق وجه دا ده چه په دے سورت کښې ذکر د نعمتونو مقصود دے نو رَغَدًا د هغے سره مناسب دے او سورة اعراف کښې دا مقصود نه وُو نو کلام یې هلته مختصر کړو ځکه چه مقصد د رغد په حیث شئتما سره هم حاصلیږی.

وَلَا تَقْرَبَا سوال :- دا نهی خو نعمت نه دے نو ولے یې ذکر کړو؟

جواب :- دا نهی د خوراک د دغه شجرے نه مستقل نعمت دے په دے وجے سره چه د دے نهی امتثال کول سبب دے د پاره د بقا په جنت کښې او د دائمی خوراک کولو په جنت کښې چه دواړه مخکښې ذکر شو.

سوال :- مقصود خو منع کول دی د خوراک د شجره نه نو دلته یې منع

د نزدیکت نه ولے ذکر کړه؟ - **جواب**:- چه په دا سے مقام کښې مقصد مبالغه دی په نهي کښې نو منع د اسبابو د منهي ته او کړیشي او نزدیکت سبب دے د پاره د ارتکاب د منهي عنه او سبب لره حکم د مسبب وی لکه چه وئیلے شویدی لِلْوَسَائِلِ حُكْمُ الْمَقَاصِدِ او دا سے نهي په سورة اسراء ۳۲ او په سورة انعام ۱۵۲ او سورة اسراء ۳۴ کښې هم ذکر ده - او تائید د دے هغه حدیث صحیح دے چه مَنْ يَّرْعٰى حَوْلَ الْحِمٰى يُوْشِكُ اَنْ يَقَعَ فِيْهِ (څوک چه د چراګاه نزدے څاروی سَروی نو نزدے ده چه په هغے کښې به ورپریوځی).

**فائده**:- لَا تَقْرَبَا (په زور د راء) او (په پیښ د راء) کښې صاحب قاموس وغیره وئیلی دی چه د دے په مینځ کښې فرق نیشته لیکن په شرح قاموس کښې سید مرتضی او دارنګ ابن العربي او ابن مفلح وئیلی دی چه زور د راء راشي نو مقصد یے داوی چه دغه فعل مه کوه او په پیښ د هغے سره چه راشي نو معني داده چه نزدے مه ورځه.

هٰذِهِ الشَّجَرَةَ، هٰذِهِ اسم اشاره کښې دوه احتمالونه دی اول دا چه مراد په دے سره تعیین د ذات دے او دا معنی په کلام د عرب کښې ډیر استعمال ده، لکه هٰذِهٖ بِضَاعَتُنَا (سورة یوسف ۶۵). دویم دا چه مراد د دے نه جنس د هغه څیز دے لکه چه حدیث کښې راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم سره زر او ریښم په لاس مبارک اونیول او فرمائیل یے "هٰذَا نِ حَرَامَانِ عَلٰی ذُكُوْرِ اُمَّتِيْ". نو مراد د دے نه جنس د هغه زرو او ریښمو دے.

اَلشَّجَرَةَ هغه بوټی ته وئیلے شی چه د هغه پنډۍ وی او څانګے وی. او د دے شجرے په باره کښې مفسرینو ډیر اقوال ذکر کړیدی او د ابن جریر نه نقل دی چه زمونږ علم نیشته چه هغه کومه خاصه اونه وه ځکه چه په قرآن کریم او هیڅ یو حدیث مرفوع صحیح کښې د هغے تعیین نه دے راغلے. او بیا یے وئیلی دی چه دا دا سے مسئله ده که یو انسان پرے عالم شی نو فائده نه ورکوی او که جاهل شی په دے مسئله باندے نو جهل ورته ضرر نه ورکوی او د دے پشان قرطبی او خازن او بیضاوی او ابن عطیه وغیره هم ذکر کړیدی.

**فائده**:- په قرآن کښې د خاص اونو اته اقسام ذکر شویدی، اول دا شجرة د ابتلاء آدم علیه السلام په جنت کښې. دویم شجرة اخضر (سورة یٰس ۸۰) دریم شجرة الزقوم (سورة صافات ۶۲) څلورم شجرة طیبه (کهجوره) (سورة ابراهیم ۲۴)

پنځم شجرة خبيثة (سورة ابراهیم ۲۶)۔ شپږم زیتون (سورة نور ۳۵) اووم شجرة یقطین (سورة صافات ۱۴۶)۔ اتم شجرة البیعة (کیکر) (سورة فتح ۱۸) فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ په نهی کښ معنی د شرط ده یعنی که چرے دغه اونے ته نزدے شوے (قصدًا) نو د ظالمانو نه به اوګرځے داسے خازن او الوسی ذکر کړیدی الظّٰلِمِيْنَ د ظلم نه ماخوذ دے ظلم په اصل لغت کښ نقصان ته وئیلے شی لکه په سورة کهف ۳۳ کښ دی او په دے سورت ۵۷ کښ او نقصان د ثواب د پاره ډیر استعمالیږی او کله کله په زیادت کولو د حد نه هم اطلاق کیږی لکه په سورة طٰهٰ ۱۱۲ کښ او په عام عرف کښ کیښودل دی د یو څیز په بے مناسبه ځائے کښ۔ او په اصطلاح د شرع کښ مخالفت کول دامر د الله تعالٰی یا ارتکاب د منهی عنه، برابره خبره ده که په هیره وی او که قصدًا وی یا په خطاء یا عمدًا وی په دے معنی سره د ظلم داطلاق په خطاء اجتهادی او مخالفت کولو په هیره سره او خلاف اولٰی او ګناه صغیره او ګناه کبیره او کفر او شرک ټولو باندے کیږی هر ځائے کښ به د هغه ځائے مناسب په سبب د یو قرینے سره معنی اخستلے کیږی۔

**فائده:**- قرآن کریم د ظلم ډیر اسباب ذکر کړے دی او د هغے نه چه هر سبب موجود شی نو د ظلم اطلاق به کیږی، هغه دا دی:۔ اول[1] شرک (سورة بقره ۵۴)، تبدیل[2] د قول شرعی (سورة بقره ۵۹)، د مساجد[3] ونه ذکر الٰهی منع کول (سورة بقره ۱۱۴)، ضرر[4] ورکول او عدوان کول په بل چا باندے (سورة بقره ۲۳۱)، حق[5] پټول (سورة بقره ۱۴۰)، د حق[6] نه عنادًا انکار کول (سورة بقره ۱۵۰)، محبت[7] د غیر الله پشان د محبت الٰهیه (سورة بقره ۱۶۵)، تعدی[8] کول د حدود الله نه په طلاق ورکولو کښ (سورة بقره ۲۲۹)، تحکیم[9] غیر رسول ته او غیر د ما انزل الله ته (سورة نساء ۶۴، سورة مائده ۴۵)، فرض[10] هجرت ترک کول (سورة نساء ۹۷)، افتراء[11] په الله تعالٰی باندے (سورة انعام ۲۱) شړل[12] د فقراؤ مؤمنانو د مجلس نه د پاره د رعایت د مالدارو خلقو (سورة انعام ۵۲)، تکذیب[13] د ایاتِ الٰهیه (سورة انعام ۱۵۷)، خطاء[14] اجتهادی یا په نسیان سره (سورة اعراف ۲۳، سورة انبیاء ۸۷)، منع[15] کول د سبیل الله نه (سورة اعراف ۴۴)، دوستانه[16] کول د کافرانو سره (سورة توبه ۲۳)، دعاء[17] د غیر الله نه یعنی رامدد شه وئیل غیر الله ته چه حاجت روائے ګڼړی (سورة یونس ۱۰۶)

عَنْهَا فَاَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيْهِ ۖ وَقُلْنَا

دَهغه ونې په وجه نو او ويستل يې دواړه له دَهغه ځائے نه چه وو په هغے كښ. او اوئيل موږ

اهْبِطُوْا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۚ وَلَكُمْ

كوز شئ، بعض ستاسو به دَ بعضو دَپاره دشمنان وى او ستاسو دَپاره

فِى الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَّمَتَاعٌ اِلٰى حِيْنٍ ﴿۳۶﴾

په زمكه كښ ځائے دَ اوسيدلو دے او فائده (نفع) ده تر يو وخت پورے.

غلا كول (سورة يوسف ۷۷)، غير مجرم ته سزا وركول (سورة يوسف ۷۹) دَ قرآن نه اعراض كول (سورة كهف ۵۷)، طعن كول په رسول باندے (سورة انبياء ۳)، په حرم مكه كښ الحاد كول (سورة حج ۲۵)، دَ رسول لار پريښودل (سورة فرقان ۲۷)، دَ خواهش تابعدارى كول (سورة روم ۲۹)، پردے حق اخستل (سورة ص ۲۴)، توبه نه كول دَ گناهونو نه (سورة حجرات ۱۱) نو دا ټول دَ ظلم اسباب دى. په دے كښ بعض كفر او شرك دے او بعضِ گناهونه كبيره دى او بعض خلاف اولىٰ او بعض اجتهادى خطايئ يا په نسيان سره دى.

۳۶ په دے ايت كښ څلور جملے دى په اوله جمله كښ سبب دَ اكل دَ شجرے او په دويم كښ په هغے باندے اثر مرتبه، او په دريم كښ امر دَ اهباط (كوزيدلو) او حالت دَ دشمنئ او په څلورمه كښ طريقه دَ اوسيدلو په زمكه كښ.

فَاَزَلَّهُمَا، دا دَ زَلَّة او زُلَل نه ماخوذ دے خوئيدل په خنه كښ بے اختياره. نسفى وئيلى دى چه دا دليل دے چه په فعل دَ انبياء عليهم السلام دَ لفظ زلة اطلاق كيدے شى ځكه چه زلة نوم دَ هغه كار دے چه او شى خلاف دَ حكم نه بغير دَ قصد كولو دَ خلاف نه لكه چه يو شخص په خټو كښ روان وى او خپے يې او خوئيږى. او گناه په شرع كښ هغه فعل دے چه او كړيشى په خلاف دَ حكم شرعى په قصد او په اراده سره نو معلومه شوه چه زلة ته گناه نشى وئيلے كيدے. او سبب دَ ازلال دَ جانب دَ شيطان نه ذكر دے په سورة اعراف ۲۰ ۲۱ او سورة طٰه ۱۲۰ كښ. او سبب دَ زلة دَ جانب دَ

آدم علیه السلام ته اول خو نسیان دے چه په سورة طٰهٰ ۱۱۵ کښ ذکر دے دویم شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة الله علیه لیکلی دی چه هرکله شیطان په تاکید سره قسم اوکړو نو آدم علیه السلام گمان اوکړو چه داسے څوک نشی کیدے چه په الله تعالیٰ باندے په دروغه قسم کوی او ابن حزم په کتاب الملل والنحل کښ وئیلی دی چه نیشته پاکوالے د گناه نه ډیرلوئے پاکوالے په نسبت د هغه چا چه گمان اوکړی چه هیڅوک په دروغه قسم نه کوی او آدم علیه السلام د شجرے نه خوراک په هیره باندے اوکړو او قصد ئے اوکړو د خیر چه هغه حاصلول د لوئے برخے دی (نزدیکت د الله تعالیٰ پشان د مقرب ملک) او همیشوالے دے په جنت کښ او په دهٔ باندے واجب وو چه په ظاهر د نهی باندے عمل کړے وے لیکن دهٔ تاویل اوکړو د پاره د ارادے د خیر (تاویل په نهی کښ چه کراهتِ تنزیهیه دے یا تاویل په شجره کښ چه مراد په نص کښ شجره معینه ده او خوراک ئے اوکړو د بلے شجرے نه) لیکن هغه مقصد کښ خطا شو او داسے کار چه بل مجتهد اوکړی نو د هغه د پاره اجر وی (نو معلومه شوه چه آدم علیه السلام گناه نه دے کړے) نور بحث به روستو (انشاء الله) راځی الشَّيْطٰنُ په دے کښ الف لام عهدی دی مراد تربنه ابلیس دے او دا لفظ ماخوذ دے د شطن نه په معنیٰ د لرے والی ځکه چه شیطان هم لرے دے د رحمت د الله تعالیٰ نه یا ماخوذ دے د شاط یشیط نه په معنیٰ د هَلَكَ یا احْتَدَّ فِي غَضَبِهٖ (هلاک شو یا تیره شو په غصه خپله کښ) نو شیطان هم هلاک دے او ډیر غصه او عداوت کوؤنکے دے د ایمان والو سره۔ لیکن په دے دواړو کښ اول قول غوره دے (لسان العرب)۔

سوال:- ابلیس خو جنت نه راویستلے شوے وو په دلیل د سورة اعراف ۱۳ ۱۸ سره او آدم علیه السلام خو په جنت کښ وو نو بیا څه رنگ قادر شو هغه ته په وسوسه اچولو باندے؟۔

جواب:- په ډیرو وجوسره دے: اول جواب دا دے چه دا وسوسه د ابلیس مشافهةً وه ځکه چه په سورة اعراف ۲۰ او سورة طٰهٰ ۱۲۰ کښ خطابات دلالت کوی چه خبرے مخامخ وے او دا قول د ابن مسعود او ابن عباس رضی الله عنهم او جمهور علماؤ نه نقل دے لیکن په دیکښ یو قول دا دے چه ابلیس د جنت د اوسیدلو او په هغے کښ دخول په

طريقه د عزت او اکرام نه منع کړے شوے وؤ هسے داخلیدل ئے منع نه وؤ داشربيني ذکر کړيدی، دويم قول دا دے چه هغوی ئے دروازے ته راأوغوښتل اوپه دروازه کښ ئے ورسره خبرے اوکړے دا قول خازن وغيره ذکر کړيدے۔

دويم جواب دادے چه وسوسه خو معنوی قوت دے چه الله تعالیٰ ابليس او د هغه اولاد ته ورکړيدے هغه حضورکا ابليس نه غوارې په حديث صحيح کښ وارد دی چه اِنَّ الشَّيْطٰنَ يَجْرِيْ مِنَ الْاِنْسَانِ مَجْرَى الدَّمِ (بخاری كتاب الاحكام. باب الشهادة) (شيطان د انسان په رګونو د وينه کښ چليږي)

دريم جواب بعض مفسرينو ذکر کړے دی چه د مار په خُله کښ دننه شو او ملائيک د دروازے وربانده خبر نه شول دا قول خو د اسرائيلياتو نه معلوميږی د دے وجے ته بيضاوی او ابوحيان وئيلی دی چه الله تعالیٰ په دے بانده پوهه دے۔ څلورم جواب زمونږ شيخ غلام الله خان رحمة الله عليه ذکر کړيدے چه د سورة اعراف د ۱۸، ۱۹، ۲۰ د ترتيب نه معلوميږی چه الله تعالیٰ ابليس ته امر د خروج او آدم عليه السلام ته امر د سکنیٰ اوکړو نو ابليس په وخت د راوتلو کښ آدم عليه السلام ته وسوسه اوکړه ځکه چه ۲۰ کښ فاء ئے داخل کړے ده چه دلالت کوی په اتصال بانده بغير د روستو والی نه۔ دا قول د تکلفاتو نه پاک دے او اول قول هم دينه شامل کيدے شی چه دا وسوسه مشافهةً وه مګر کښ د خروج د ابليس نه۔

عَنْهَا په دے ضمير کښ څلور احتمالات ابوحيان ذکر کړيدی اول دا چه راجع دے شجرے ته او عن سببيه دے يا راجع دے جنت ته يا راجع دے طاعت ته چه دلالةً معلوميږی يا راجع دے حالت د مزو او د خوشحالئ ته په جنت کښ۔ فَاَخْرَجَهُمَا نسبت شيطان ته مجازی دے۔ مِمَّا كَانَا فِيْهِ په دے کښ احتمالات دی، اول دا چه او ويستلے شول د طاعت نه عصيان ته، دويم د نعمت د جنت نه تکليف د دنيا ته، دريم د رفعت د مرتبے نه ښکته والی ته۔

وَقُلْنَا اهْبِطُوْا د اهباط نسبت ئے شيطان ته نه دے کړے اشاره ده چه دا په سبب د عصيان سره نه دے بلکه صِرف يو اثرِ مرتبه دے د طرف د الله تعالیٰ نه په خوراک کولو د شجرے نه لکه روستو به انشاء الله تعالیٰ ذکر کړے شی۔ او دا خطاب آدم عليه السلام او حواء او ابليس ته دے دا قول د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے يا آدم او حواء او ذرية د دوی ته

(چه حکماً موجود وو) دا قول د فراء دے دا روستو قول اکثر علماؤ غوره کړے دے ځکه چه ابلیس خو د دے نه مخکښ شړلے شوید ے او په صیغه د تثنیه سره په سورة طٰهٰ ۱۲۳ کښ مراد په هغې سره ادم علیه السلام او حواء ده او په صیغه د مفرد سره په سورة اعراف ۱۳ کښ صرف ابلیس مراد دے۔
اهباط حقیقةً وئیلے شی د بره ځائے نه ښکته راکوزول دا دلیل دے چه مراد د جنت نه دار الثواب دے چه هغه په اسمانونو کښ دے د هغې نه ئې تول زمکے ته راکوز کړل۔ او هر کله چه په اسکن کښ ډیر اکرام وُو نو هلته ئې حرف نداء (چه دلیل د محبت دے) ذکر کړے وُو او اهباط کښ معنی د اکرام ښکاره نه ده د دے وجے نه ئې دلته نداء ذکر نه کړه۔
بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ هر کله چه مخاطب په دے سره ادم علیه السلام او حواء او اولاد د هغوی دی بنا په قول د مجاهد نو مراد په دے سره دشمنی او تقاتل او بغض وحسد دے په کورنئ د انسانانو کښ او په دے کښ دینی او دنیوی دشمنئ او د یو بل ګمراه کول داخل دی۔ او که په دے خطاب کښ ابلیس سرهٔ د ذریة نه او ادم علیه السلام او حواء داخل وی بنا په قول د زجاج نو بیا مراد تر ینه دشمنی د ابلیس او د اولاد د هغه ده د انسانانو او مسلمانانو سره او عداوت د شیطان د مؤمنانو سره په ډیرو ایاتونو کښ ذکر دے (سورة بقره ۱۶۸ ۲۰۸، سورة انعام ۱۴۲، سورة اعراف ۲۲، سورة یوسف ۵، سورة کهف ۵۰، سورة طٰهٰ ۱۱۷ او نور ایاتونه هم دی) او دشمنئ انسانانو په کورنئ کښ هم په ډیرا یاتونو کښ ذکر ده (سورة نساء ۹۲ ۱۰۱، سورة انفال ۶۰، سورة توبه ۱۲۰، سورة طٰهٰ ۳۹، سورة منافقون ۴، سورة تغابن ۱۴، سورة ممتحنه ۱، سورة مائده ۱۴ ۶۴ ۸۲ ۹۱)۔
سوال:- دلته خو اعداء جمع راوړل د ظاهر سره موافق وُو نو مفرد ئې ولے ذکر کړو؟ جواب ۱ ابن فارس لغوی وئیلی دی چه عدو لفظ واحد تثنیه جمع مذکر مؤنث ټولو د پاره استعمالیږی لکه په سورة کهف ۵۰۔
جواب ۲ لفظ د بَعْضٍ او کل په اعتبار د لفظ سره مفرد دے نو خبر ئې مفرد راځی لکه په سورة مریم ۹۵ کښ او په اعتبار د معنی سره جمع ده نو خبر ئې جمع راځی لکه په سورة نمل ۸۷ کښ۔
وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ، لکم خبر مقدم دے او فِي الْأَرْضِ متعلق دے

دَ دغه خبر سره او مُسْتَقَرٌّ مبتداء مؤخره ده - ابوالعالیه وئیلی دی مستقر ظرف دے یعنی مکان دَ استقرار - او سدی وئیلی دی چه دا مصدرِ میمی په معنیٰ دَ استقرار دے او تقدیم دَ خبر (لکم) کښ اشاره ده چه خلافتِ ارضی دَ انسانانو سره خاص دے ملائیک خو دیته حاجت نه لری او دَ جناتو نه دا اختیار اخستلے شوے دے او په تقدیم دَ (فی الارض) کښ اشاره ده چه دا انسانی عادتی ژوند په زمکه پورے خاص دے لکه په سورة اعراف ۱۰ او ۲۵ کښ دی او خلاف دَ عادت نه کله په اوبو کښ وی او کله خلاء ته ورأوخیژی لیکن استقراری ژوند دَ زمکے نه علاوه بل ځائے کښ نشی کولے۔

وَمَتَاعٌ اِلٰی حِیْنٍ ۔ هر کله چه استقرار په زمکه کښ بغیر دَ متاع نه نشی کیدلے دَ دے وجے نه ورپسے دا لفظ ذکر شو۔ قرطبی وئیلی دی هر هغه څیز چه په هغے سره په ژوند کښ فائده حاصلیږی (خوراک ۔ څښاک ۔ لباس ۔ خیر، مینه محبت دَ یو بل سره) هغے ته متاع وئیلے شی ۔ او ابوحیان وئیلی دی چه منافع توښه ۔ عمر ۔ ابادی دیته متاع وئیلے شی ۔ او بقاعی په نظم الدرر کښ وئیلی دی چه په لسان دَ عرب کښ متاع هغه مردارے ته وئیلے شی چه مضطر شخص هغے ته محتاج وی او خوراک دَ درندګانو او سپو وی ۔ نو دا رنګ دنیا یو مرداره ده چه په هغے سره اضطراری فائده اخستل پکار دی دنیا مقصد ګرځول نه دی پکار ۔ او دَ دے وجے نه دَ دنیا سامانونه او ژوند باندے دَ متاع اطلاق کیږی ۔ او نکره راوړل دَ متاع هم په قِلّت او فنا باندے دلالت کوی

فائده :- متاع لفظ څلور دیرش کرته راغلے دے او دَ هغے مختلف مصداقات دی ۔ اول ټول څیزونه دَ دنیا لکه په (سورة رعد ۲۶ او سورة قصص ۶۰ کښ) ۔ دویم ژوند دنیوی (سورة مؤمن ۳۹) ۔ دریم اُوګه څیزونه (سورة العمران ۱۴) ۔ څلورم اُورد دُنیا (سورة واقعه ۷۳) ۔ پنځم اوبه ،ګیا ، غرونه (سورة نازعات ۳۳) ۔ شپږم اتّه څیزونه (سورة عبس ۳۲) ۔ اووم سامان دَ مسافر (سورة یوسف ۶۵) ۔ اتم ملبوسات دَ وړئی وغیره (سورة نحل ۸۰) ۔ نهم دَ سمندر مهیان وغیره (سورة مائده ۹۶) ۔ لسم کوټے ، دروازے ، کټونه ، تختونه او سره زر سپین زر (سورة زخرف ۳۵) ۔ یوولسم سامان دَ مجاهدینو (سورة نساء ۱۰۲) ۔ دولسم سامان دَ کور او لباس دَ زنانه (سورة بقره ۲۴۱ ، سورة رعد ۱۷) ۔ دا ټول دلته په لفظ دَ متاع کښ داخل دی۔

اِلٰی حِیۡنٍ د دې لفظ په باره کښې تفسیر قرطبي ډېر اقوال نقل کړي دي اول قول وخت د مرګ که مراد د مُسْتَقَرٌّ نه دنیا وي، دویم قول وخت د قیام د قیامت که مُسْتَقَرٌّ قبرونو ته شامل شي، دریم قول نیټه د مرګ، او بیا يې د حین معاني ذکر کړي دي موده، یو ساعت، ټکړه د زمانې که لنډه وي یا ډېره وي، وخت د فنا، یو کال، شپږ میاشتې، صبا بېګاه، صحیح دا ده چه د لفظ د حین د مصداق د پاره خاص څه حد نیشته.

فائده ۱ لفظ د حین په قرآن کریم کښې څلور دېرش [۳۴] کرته راغلې دې او د هغې استعمال په دوه طریقو سره دې اول په طریقه د غایې سره چه په هغې پاندې لفظ د اِلٰی یا د حتّٰی یا بعد داخل دې نو په هغې سره مراد وخت غیر معین دې تعیین يې په قرینې سره کېږي دا رنګ هغه چه په من الدهر سره يې تقیید شوې دې. دویم په طریقه د اضافت سره دې لکه په سورة بقره ۱۷۷، سورة مائده ۱۰۱ ۱۰۶ او سورة هود ۵ کښې او ټول آیاتونه د دې اتلس [۱۸] دي نو هلته مراد هغه ساعت دې چه تقیید او تحدید يې شوې دې په مضاف الیه سره.

فائده ۲ قرطبي د بعض علماؤ نه نقل کړي دي چه په دې لفظ کښې بشارت دې آدم علیه السلام ته چه ژوند په دنیا کښې همیشه نه دې بلکه جنت ته به بیا واپس راځئ لیکن د جنت د حصول د پاره په روستو آیت کښې فَمَنْ تَبِعَ اه سره قانون ذکر کوي چه هغه د اولاد آدم د پاره دې. بل په دې لفظ کښې فنا د دنیا ته اشاره ده او ابو حیان وئیلي دي چه په دې کښې اشاره ده قیامت راتللو ته. او په ټوله واقعه کښې یره ورکول دي بني آدمو ته چه د مخالفت د امر د الله تعالٰی نه ځان بچ اوساتئ که په طریقه د قصد سره وي او که په تاویل سره وي او اشاره ده چه مخالفت کولو سره د مرتبې نقصان پیدا کېږي.

## باب د عصمة الانبیاء

:- په دې کښې درې بحثونه دي اول بحث په مواقعو د عصمت کښې سره د اختلاف نه.

**موقع اول په باره د عقیده کښې** :- قاضي عیاض په شفاء ص ۸/۲ کښې وئیلي دي (معنی يې دا ده) "چه اجماع ده د مسلمانانو چه انبیاء علیهم السلام په باره د توحید او علم بالله وصفاته او ایمان په هغه په نهایتِ معرفت

او پوره یقین کښې دی بغیر د شک او جهل نه، او عصمت دوی لره په دې باب کښې پوره ثابت دے او په ص۹۳/۲ کښې وئیلی دی چه په دے باره کښې محققین د نبوت نه هم حقه خبره داده چه دوی معصوم دی د جهل بالله والصفات او د کفر او شرک وغیره نه" (او په دے باره کښې چه څومره د مخالفینو دلیلونه دی نو قاضی د هغې تفصیلی جوابونه ذکر کړیدی او مونږ هم په تفسیر کښې په خپل خپل موضع کښې جوابات د هغې ذکر کړے دی) او فرقه امامیه د شیعه گانو وئیلی دی چه د کفر اظهار د دوی په طریقه د تقیه سره جائز دے او دا ئے باطل قول دے۔

موقع دویم، عصمت په باره د بلاغ او دعوت کښې دے:- نیشاپوری او قاضی عیاض وئیلی دی چه اجماع د امت ده چه انبیاء علیهم السلام په باره د تبلیغ کښې د هر قسم دروغو او تحریف نه معصوم دی که عمداً وی او که سهواً او خطاءً د ټولو نه منزه دی (تفسیر نیشاپوری ص۲۷/۱ شفاء ص۱۰۱/۲) او قاضی په شفاء کښې د هغه سوالاتو جوابونه ذکر کړیدی چه په دے باره کښې راغلی دی او تفسیر کښې مونږ هغه ځائے په ځائے ذکر کړے دی. او دا مسئله خو ضرور د بعد النبوت سره تعلق لری۔

موقع دریم، عصمت په باره د هغه اقوالو او اخبارو کښې چه د امورو د دنیا یا د احوالو د نفس مبارکه د هغه سره تعلق لری:- قاضی په شفاء ص۱۱۱/۲ کښې تفصیل د دے ذکر کړے دے وئیلی ئے دی چه اتفاق د سلف صالحینو او اجماع د هغوی ده چه انبیاء علیهم السلام پاک دی د کذب او خلافِ واقع خبرے نه هغه که عمداً وی او که سهواً او خطاءً په حال د رضا او غصه او مزاح او صحت او مرض هر وخت کښې او دلیل ئے دا دے چه صحابه کرامو د نبی صلی الله علیه وسلم هره یو خبره بے د څوڼ چرا نه منلے ده هیڅ تردد او شک ئے ځائے نه دے ورکړے او په دے باب کښې چه کوم اعتراضونه په باب د سهو د نبی صلی الله علیه وسلم او کذبات د ابراهیم علیه السلام کښې راغلی دی نو د هغې تفصیلی جوابونه ئے ذکر کړیدی۔

موقع څلورم، عصمت د دوی په باره د اعمالو او کارونو د دوی کښې:- نو په شفاء ص۱۲۵/۲ کښې ذکر کړیدی چه جمهور اهل العلم وائی چه دوی معصوم دی د کبائرو گناهونو نه په اختیار سره او هر چه صغائر وو نو په هغې کښې

اختلاف دے د محدثینو او فقهاؤ او متکلمینو د ابوجعفر طبری نه نقل کړیدی چه صغائر د دوی نه واقع کیدیشی او بعضو علماؤ په دے کښ توقف کړے دے او اکثر اهل علمو د محدثینو او فقهاؤ (چه هغوی ملګری د امام مالک او ابوحنیفه او شافعی رحمهم الله دی (قرطبی)) - وئیلی دی چه انبیاء د صغائرو او کبائرو دواړو نه پاک دی. او حشویه (فرقه د مبتدعینو) وائي چه کبائر د دوی نه جائز دی او اکثر معتزلو صغائر د دوی عمداً جائز کړے دی او جبائي معتزلی وئیلی دی چه صغائر او کبائر د دوی نه صادریږي په طریقه د عمد سره او په طریقه د تاویل سره جائز دی. او د شیعه ګانو مسلک دا دے چه دوی پاک دی د صغائر او کبائر نه عمداً او سهواً او تاویلاً او خطاءً (مګر تقیة کفر کوی)۔

بیا واوړئ چه په موقع دریم او څلورم کښ اختلاف دے چه دا عصمت قبل النبوت هم ثابت دے او که نه صرف بعد النبوت دے. تو دا موقع پنځم شوه د دے تفصیل هم قاضی عیاض د شفاء په ص۱۲۵/۲ کښ ذکر کړے دے حاصل ئے دا دے چه په دے کښ اختلاف دے چه چا انکار کړے دے (او دا بعض اهلِ سنت او معتزله دی چه د هغوی په نیز قبل النبوت عصمت ثابت نه دے) او د ډیرو اهل سنت او د شیعه ګانو مسلک دے چه قبل النبوت هم عصمت ثابت دے۔ او قاضی وئیلی دی چه صحیح انشاء الله دا قول دے چه دوی د نبوت نه مخکښ هم د هر عیب او ریب نه پاک او معصوم دی او نیشاپوری هم وئیلی دی چه دا قول مختار دے۔ او ملا علی قاری حنفی په مرقات ص۱۲۷/۱ کښ وئیلی دی چه انبیاء علیهم السلام معصوم دی مخکښ د نبوت او روستو د نبوت د کبائرو او صغائرو نه اګر چه سهواً وی او دا حق ده په نیز د محققینو. او دارنګ په شرح فقه اکبر ص۶۹ کښ هم وئیلی دی او دغه عبارت په شرح فقه اکبر د ابوالمنتهی او په تمهید د ابوشکور سالمی کښ هم دے او تفسیر خازن سورة الضحٰی کښ هم دا سے وئیلی دی او شامی په مجموعة الرسائل ص۳۱۲ کښ هم دا سے ذکر کړیدی۔

**دویم بحث** ذکر د دلیلونو د عصمت د اثبات د پاره او بعض د هغے نه د پاره د بعد النبوت او بعض د قبل النبوت دی او دا هم دوه قسمونه دی یو قسم نقلی دلیلونه او دویم قسم عقلی دلیلونه. دلیلونه نقلی دا دی

اول دلیل :- امام رازی په تفسیر دَ "غَیۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ وَلَا الضَّآلِّیۡنَ" کښې لیکلی دی چه دا دلالت کوی چه هیچا دَ ملائیکو او انبیاؤ نه دَ اَلَّذِیۡنَ اَنۡعَمَ اللّٰهُ عَلَیۡهِمۡ دَ عمل او دَ عقیدے نه خلاف نه دے کړے ګنی هغوی به په اَلۡمَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ او ضَآلِّیۡنَ کښې داخل شی نو بیا دَ هغوی اقتداء ناجائز شوه نو په دے ایت سره عصمت دَ انبیاء او ملائیک علیهم السلام معلوم شو۔

دویم دلیل :- یٰنِسَآءَ النَّبِیِّ مَنۡ یَّاۡتِ مِنۡکُنَّ بِفَاحِشَةٍ مُّبَیِّنَةٍ یُّضٰعَفۡ لَهَا الۡعَذَابُ ضِعۡفَیۡنِ (سورة احزاب ۳۰) طریقه دَ استدلال داده چه دَ چا مرتبه په نیز دَ الله تعالیٰ لویه وی نو په وخت دَ معصیت کښې دَ هغه عذاب هم لوئے وی نو که دَ نبی نه ګناه صادر شی نو دَ یو ادنیٰ امتی نه به هم دَ هغه عذاب لوئے وی او دا خو دَ اجماع نه خلاف ده۔

دریم دلیل :- اِنۡ جَآءَکُمۡ فَاسِقٌۢ بِنَبَاٍ فَتَبَیَّنُوۡۤا (سورة حجرات ۶) طریقه دَ استدلال داده چه که دَ نبی نه ګناه وشی نو فاسق به شی او دَ فاسق شهادت قبول نه وی او حال دا دے چه دَ دوی خبره منل په دنیا کښې په ټول اُمت باندے فرض دی او په ورځ دَ قیامت کښې به هم شهادت ورکوی په خپلو امتونو باندے۔

څلورم دلیل :- اِنَّ الَّذِیۡنَ یُؤۡذُوۡنَ اللّٰهَ وَرَسُوۡلَهٗ لَعَنَهُمُ اللّٰهُ فِی الدُّنۡیَا وَالۡاٰخِرَةِ (سورة احزاب ۵۷) دا ایت دلیل دے چه نبی ته ایذاء ورکول سبب دَ لعنت دے او که بالفرض ګناه اوکړی نو هغه ته ایذاء ورکول په طور دَ زجر او سزا ورکول به جائز شی۔

پنځم دلیل :- اَطِیۡعُوا اللّٰهَ وَاَطِیۡعُوا الرَّسُوۡلَ ، فَاتَّبِعُوۡنِیۡ ، وَاِنۡ تُطِیۡعُوۡهُ تَهۡتَدُوۡا (سورة نور ۵۴) دا ایتونه ښکاره دلیل دے چه دَ نبی اطاعت او تابعداری په هر قول او عمل کښې په مونږ باندے فرض ده او هغه هدایت دے نو که بالفرض ګناه ئے کړے وی نو په ګناه کښې به هم اطاعت او اتباع دَ هغه فرض شی او دا خو باطله خبره ده۔

شپږم دلیل :- اَتَاۡمُرُوۡنَ النَّاسَ بِالۡبِرِّ وَتَنۡسَوۡنَ اَنۡفُسَکُمۡ (سورة بقرة ۴۴) که بالفرض دَ نبی نه ګناه صادر شی نو دَ دے زجر به لائق شی او دا هم باطله خبره ده۔

اووم دلیل :- اِنَّهُمۡ کَانُوۡا یُسٰرِعُوۡنَ فِی الۡخَیۡرٰتِ (سورة انبیاء ۹۰) یعنی

په الخیرات کښې الف لام د استغراق دی شامل دے هر طاعت د الله تعالیٰ او د هر ګناه نه بچ کیدلو ته۔

اتم دلیل:۔ وَاِنَّهُمْ عِنْدَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْاَخْيَارِ (سورۃ صٓ ۴۷) او وصف د اصطفا د ګناه کولو سره منافی دے۔

نهم دلیل:۔ وَلَاُغْوِيَنَّهُمْ اَجْمَعِيْنَ ۝ اِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِيْنَ (سورۃ حجر ۳۹ ۴۰) نو که بالفرض نبی ګناه اوکړی نو په اغوا د شیطان کښې به داخل شی او د مخلصینو نه به خارج شی او حال دا چه انبیاء مخلصین دی په نورو ایاتونو او په اجماع سره۔

لسم دلیل:۔ وَلَقَدْ صَدَّقَ عَلَيْهِمْ اِبْلِيْسُ ظَنَّهٗ فَاتَّبَعُوْهُ اِلَّا فَرِيْقًا مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ (سورۃ سبا ۲۰) نو که انبیاء علیهم السلام بالفرض ګناه اوکړی نو د فریق من المؤمنین نه به خارج شمار شی او دا باطله خبره ده۔

یوولسم دلیل:۔ اَلَا اِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ (سورۃ مجادله ۲۲)۔ اَلَا اِنَّ حِزْبَ الشَّيْطٰنِ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ (سورۃ مجادله ۱۹) یعنی خلق دوه ډلے دی په هغې کښې ګناه والا د شیطان ډله ده نو که بالفرض انبیاء علیهم السلام ګناه ګاروی نو حزب الله نه به بهروی او دا باطله ده۔

دولسم دلیل:۔ اِنِّيْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا (سورۃ بقرہ ۱۲۴) امام (نبی) هغه وی چه د هغه په هر عمل کښې اقتداء کیدی شی او په ګناه کښې اقتدا ناجائز ده۔

دیارلسم دلیل:۔ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِيْنَ (سورۃ بقرہ ۱۲۴) عهد نه مراد عهد د امامت د نبوت دے نو چا چه ظلم (ګناه) کړے وی مخکښې د نبوت نه یا روستو نو هغه نبی نشی کیدلے (دا سے تفسیر بیضاوی او آلوسی وغیره ذکر کړیدی)

څوارلسم دلیل:۔ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ (سورۃ آل عمران ۱۶۱) غلول عام دے که په مال کښې وی او که عمل یا قال کښې وی نو هر ګناه نه شامل دے او دا د نبی د شان سره مناسب نه دے۔

پنځلسم دلیل:۔ لِمَ تَقُوْلُوْنَ مَا لَا تَفْعَلُوْنَ ۝ كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا لَا تَفْعَلُوْنَ (سورۃ صف ۲ ۳) طریقه د استدلال دا ده چه نبی که بالفرض ګناه اوکړی او خلقو ته خوائي چه ګناه مکوئ نو د دے ایت په زجر کښې به داخل شی او دا جائز نه ده۔

تنبیه :- په دے دلیلو توکښ بعضِ دلیلونه صراحتًا او بعضِ التزامًا عصمت قبل النبوت باندے دلالت کوی او د عصمت بعد النبوت د اثبات د پاره خو ټول دلیلونه صریحی دی۔

عقلی دلیلونه : اول :- ګناه کول خو د قباحت او خباثت کار دے او درجه د نبوت د هر قسم قباحتونو او خباثتونو نه پاکه ده۔

دویم :- انبیاء علیهم السلام په نیز د اکثر اهل علمو د ملائیکو مقربینو نه افضل دی او د نورو ملائیکو نه خو بالاتفاق افضل دی او ملائیک ټول معصوم دی نو انبیاء به ولے معصوم نه وی۔

دریم :- قرطبی وئیلی دی چه مونږ مامور یو په اتباع د انبیاؤ سره په ټولو کارونو او اقوالو کښ په امر مطلق سره نو که چرے جائز شی په هغوی باندے صغائر یا کبائر ګناهونه نو لازم به شی اتباع د ګناهونو او دا خو باطله خبره ده۔

څلورم :- قاضی په شفاء کښ په باره د عصمت قبل النبوت کښ وئیلی دی چه دا مسئله (یعنی مخکښ د نبوت نه ګناه کول) په شان د ممتنع ده ځکه چه د ګناهونو حکم خو کیږی روستو د تقرر د شرع نه۔ نو انبیاء مخکښ د وحی د هغوی نه د مخکښ شرع په اتباع مکلف دی او که نه دی نو جمهورو وئیلی دی چه مخکښ د وحی د دغے نه په بل شرع سره دے مکلف نه دے نو ګناهونه څهٔ رنګے ثابتیږی او بعضو چه وئیلی دی چه په مخکښ شرع سره مکلف دی نو بیا پکښ اختلاف دے چه مکلف دی په معین شرع سره یا بغیر معین سره یا ټولو شریعتونو مخکنو سره، روستنی دوا ړه حالات خو نشی کیدلے ځکه چه تکلیف په مجهول او دا رنګ په متضاد باندے خو ممتنع دے او که په متعین شرع باندے مکلف وی نو په هغے باندے خو اشکال دے هغه دا دے چه مخکنئ شرع سیوا زمونږ د شرع نه خو عامے نه وے نو دے په هغے باندے په کوم دلیل سره مکلف شو، نو صحیح دا شوه چه مخکښ د نبوت نه د معصیت په وصف سره هیڅ نبی نشی موصوف کیدلے۔

دریم بحث :- جوابات د هغه اعتراضونو چه په عصمت د انبیاؤ باندے وارد شویدی او هغه دوه قسمونه دی اول قسم هغه چه په هغے کښ په ایاتونو قرآنیو سره تمسک کړے شوے دے دویم قسم خارجی اعتراضونه

دی- اول قسم چه په هغې کښ تمسک دے په قصه دَ آدم علیه السلام په باره دَ شجرة کښ- او په قصه دَ ابراهیم علیه السلام په باره دَ هٰذَا رَبِّی، او بَلْ فَعَلَهُ کَبِیْرُهُمْ، او اِنِّیْ سَقِیْمٌ، او په قصه دَ نوح علیه السلام په (سورة هود کښ) او په قصه دَ یوسف علیه السلام، او په قصه دَ داؤد علیه السلام (په سورة انبیاء او سورة ص کښ) او په قصه دَ یونس علیه السلام (په سورة انبیاء کښ) او په قصه دَ موسیٰ علیه السلام (په سورة شعراء او سورة قصص کښ) او په واقعه دَ زینب چه متعلق ده دَ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم سره (په سورة احزاب کښ) دَ دے ټولو جوابونه په خپل خپل مواضعو کښ به (ان شاء الله تعالیٰ) کیدے شی- په دے سورت کښ په قصه دَ آدم علیه السلام کښ دلیلونه دَ مخالفینو پنځه دی اول استدلال په مخالفت کولو دَ نهی دَ الله سره- دویم استدلال په لفظ دَ ظالمین سره دریم په شیطانی وسوسه قبلولو سره- څلورم اخراج او اهباط دَ جنت نه، پنځم توبه کول دَ هغه-

دَ اول دلیل جواب دا دے چه خلاف دَ نهی نه شویدے لیکن هلته په نهی کښ دوه احتمالونه دی اول دا نهی دَ تحریم ده او که دَ تنزیه ده، بنا په دویم احتمال سره ګناه نه لازمیږی او که تحریمی شی نو دا مخالفت کول نسیانًا او که سهوًا وؤ او که قصدًا وؤ که نسیانًا وؤ نو هغې ته ګناه نشی وئیلے او نسیانًا خو وؤ په دلیل دَ سورة طٰهٰ ﴿۱۱۵﴾ سره- او په حسامی ص۱۰۲ کښ وئیلی دی چه فعل دَ ناسی منسوب وی شارع ته نو دَ کوؤنکی نه معنیٰ دَ جنایت ساقطه شوه او فعل معاف دے. او که بالفرض نسیانًا نه وی نو په سبب دَ اجتهاد سره ده یعنی په اجتهاد سره ئې معلومه کړه چه دا نهی دَ پاره دَ تنزیه ده یا په اجتهاد سره ئې معلومه کړه چه دَ شجرهٔ معینه نه منع شویده دَ جنس دَ هغې نه منع نه ده شوے. او دا ټول احتمالات مفسرینو او نسفی په شرح عقائد نسفی او ملا علی قاری په شرح فقه اکبر کښ ذکر کړیدی-

دَ دویم دلیل جواب دا دے چه مخکښ دَ ظلم مصداقات بیان شوی دی دَ هغې نه معلومیږی چه دَ دے اطلاق په اجتهادی خطایئ او په خلافِ اولیٰ باندے هم کیږی. هدایه اخیرین ص۱۳۴ کښ لیکلی دی چه اطلاق دَ ظلم په مجتهد فیه مسئله کښ کیدیشی او دَ دے نه مذهب

دامام ابو حنیفه رحمة الله علیه معلوم شو چه مجتهد که مصیب وی او که خطا کیږی نو حاصل دا دے چه لفظ د ظلم نه دا نه معلومیږی چه گناه ئے کړیده اوکه او منلے شی چه دلته د ظلم نه مراد گناه دے او نهی د پاره د تحریم ده نو بیا جواب دا دے چه نهی مقید ده په شرع کښ په عمد او په قصد سره لکه چه آلوسی په روح المعانی کښ وئیلی دی نو معنی دا ده چه په قصد او عمد سره د دے اونے نه خوراک مکوئ اوکه عمداً مو خوراک اوکړو نو گناه گار به شئ لیکن هغوی دا کار نسیاناً یا خطا سره کړے دے نو ظالمان نه دی او د دے وجے نه د ظلم شرعی (گناه) په اطلاق کښ قصد شرط دے لکه چه صاحب هدایه ص۳۷۳ (اولین) وئیلی دی لَا ظُلْمَ اِلَّا عَنْ قَصْدٍ- او بیا آلوسی وئیلی دی چه دا سے جواب ته حاجت نیشته چه دا گناه د نبوت نه مخکښ وۀ ځکه چه دا مذهب د معتزلۀ دے۔

د دریم دلیل جواب دا دے چه د وسوسے او د بعض مکایدو د شیطان نه د انبیاؤ عدم عصمت لازم نه دے لکه چه په حدیث کښ دی چه زما سره قرین (شیطان) شته لیکن اَسْلَمَ یا اَسْلَمُ د هغه په باره کښ راغلے دے۔ دارنگ بل حدیث د بخاری کښ راغلی دی چه شیطان د شپے په مونځ کښ نبی صلی الله علیه وسلم ته سرۀ د لمبے د اُور نه پیش (مخامخ) شو لیکن الله تعالیٰ نبی صلی الله علیه وسلم لره د هغه په نیولو باندے طاقت ورکړو او د هغه کید نه ئے بچ کړو هاں شیطان د انبیاء علیهم السلام اغواء نشی کولے۔ بله خبره دا ده چه دلته د وسوسے نه صِرف زَلَّتْ پیدا شو او مخکښ ذکر شویدی چه زَلَّتْ گناه نه دے۔

د څلورم دلیل جواب دا دے چه اخراج او اهباط د جنت نه په سبب د گناه سره نه دی ځکه چه الله تعالیٰ د هغه توبه قبوله کړله او عفو ئے ورته اوکړله نو پکار دا وۀ چه د اخراج سزا ئے نه ورکولے نو معلومه شوه چه اخراج او اهباط یو اثرِ مرتبه دے په خوراک د دغه شجرة باندے په اثر طبعی سره یعنی الله تعالیٰ په هغه اونه کښ دا سے اثر کیښودلے وۀ چه د هغے په خوراک سره انسان په جنت کښ نه شی پاتے کیدلے او دا سے ابوحیان په البحر المحیط او قرطبی په تفسیر کښ وئیلی دی د هغے ترجمه دا ده چه حق ته قریب خبره دا ده چه امر د اهبطوا امر تکلیف دے (امر تعبدی) ځکه چه

په دے کښې مشقت شلایده دے په نسبت د جنت نه یعنې دا سے مکان ته نقل کیدل چه په هغې کښې معیشت سره مشقت لازم دے او په دے سره باطل شوقول د هغه چاچه وائي چه دا عقوبت وؤ ځکه چه تشدید په تکلیف (عبادت) کښې سبب د زیات ثواب دے نو څه رنګ دا عقاب کیدے شی بله داچه په دے اهباط او سکنۍ د زمکه کښې د الله تعالیٰ د حکمتِ ازلیه اظهار دے چه هغه خوړول د نسل د آدم علیه السلام وؤ د دے د پاره چه مکلف شی په شرع سره او مرتب شی په هغې باندے دخول د جنت او د جهنم - او بعضِ علماؤ د دے مثال ذکر کړیدے چه یو انسان په قصد یا په خطاء سره زهر او خښکی او بیا توبه او باسی اګرچه ګناه په توبه کولو سره معاف شی (بمشیة الله تعالیٰ) لیکن زهرو کښې چه کوم اثرِ طبعی الله تعالیٰ کیښودلے دے هغه به دغه شخص باندے ضرور راځی په صورت د مرګ یا مرض کښې. (د پنځم دلیل جواب روستو راځی)

## دویم قسم خارجی اعتراضونه او د هغې جوابات

اول اعتراض؟ هرکله چه مختار قول دا دے چه انبیاء علیهم السلام مخکښې د نبوت او روستو د هغې نه د ګناهِ صغیره او کبیره نه معصوم دی نو دا قول خو مشابه دے د شیعه ګانو سره -

جواب ؏۱ مشابهت او موافقت په یو قول کښې چه په دلیل سره وی د قول د مبتدعینو او مشرکینو سره نو هغه ناجائز نه دے هاں د هغوی متابعت او تقلید حرام دے مثلاً ډیر مشرکان توحید د خالقیت باندے عقیده ساتی او مسلمانان هم دا عقیده لری نو دا خو څه عیب نه دے -

جواب ؏۲ د هغوی سره مشابهت نیشته ځکه د هغوی مسلک دا دے چه انبیاء علیهم السلام خو معصوم دی لیکن تَقیةً کفر کوی او دا قول زمونږ په نیز باندے کفر دے دا تفصیل په کتاب نبراس ص۵۵ مؤلفه (عبد العزیز الفرهاوی) کښې موجود دے -

دویم اعتراض په ډیرو کتابونو د اهل سنت کښې ذکر دی چه صدور د ګناهونو د انبیاء علیهم السلام نه جائز دے لکه تفتازانی په شرح عقائد نسفی کښې په باره د صدور د کبیره پس د نبوت نه سهواً یا په خطاءِ اجتهادی سره وئیلی دی جَوَّزَهُ الْاَکْثَرُوْنَ . دا رنګ د صغائر بعد النبوة په باره کښې

وئیلی دی تجوز عند الجمهور؟
جواب ۱ دا دے چه دۀ په دواړو مواضعو کښې مختار مسلک پریښودلے دے۔ مختار هغه قول دے چه مونږ مخکښې ذکر کړے دے۔
جواب ۲ جواز په عرف د اهل علم کښې صرف امکان ته وئیلے شی برابره خبره ده که واقع وی او که نه وی نو د معتزلو او شیعه گانو سره اختلاف په امکان او په امتناع کښې دے د هغوی په نیز ارتکاب د گناه د انبیاؤ نه ممتنع دے او د اهلِ سنت په نیز باندے ممکن دے او په وقوع کښې اختلاف نیشته یعنی گناه د انبیاء علیهم السلام نه بالکل واقع شوے نه دے او د دے تفصیل علامه شامی په کتاب مجموعة الرسائل رساله ۱۳ (رفع الاشتباه) کښې ذکر کړے دے۔
دریم اعتراض په قرآن کریم کښې د انبیاء په باره کښې د گناه د وقوع د پاره ښکاره نصوص دی په لفظ د عصیان او ظلم او ذنب او توبه وغیره سره او تاسو په هغې کښې ظاهر د قرآن پریږدئ او ټول تاویلات کوئ؟
جواب ۱ د هغې چه کوم معانی (په خپل خپل) ایاتو نو کښې ذکر شویدی نو هغه تاویلات (په دے معنی سره چه حقیقت پریښودلے شویدے او مجاز اخستلے شوے دے) نه دی بلکه دا خو یا مشترک الفاظ دی نو یو معنی دا سے اخستلے شویده چه دلالت په گناه باندے نه کوی نو دا حمل د لفظِ مشترکه دے په یو معنی د معانیو د هغے نه دیته هم د علم اصول اصطلاح کښې تاویل وئیلی دی لیکن دا تاویل محمود دے دا په ډیرو مسائیلو کښې جاری دے په نیز د سلف صالحینو باندے۔
جواب ۲ تفتازانی په شرح العقائد النسفیه کښې وئیلی دی چه کوم د انبیاء علیهم السلام نه نقل دی او ظاهراً خبر ورکوی د هغوی په دروغو یا په بل معصیت باندے نو که په طریقه د اخبارِ احاد سره نقل وی نو هغه خو مردود دی (او د هغے مثالونه په نبراس کښې ذکر کړیدی) او دا سے خو په قرآن کریم نیشته بلکه اخبارِ احاد صحیحه کښې هم نیشته او کوم چه په طریقه د تواتر سره نقل دی نو هغه د ظاهری معنی نه اړولے شویدی که تاویل ئې کیدے شی او که نه شی کیدے نو هغه به حمل دی په ترکِ اولی باندے۔
نو دا عبارت دلالت کوی په تاویل باندے لیکن د اهل علمو نه نقل ده

فَتَلَقّٰٓى اٰدَمُ مِنْ رَّبِّهٖ كَلِمٰتٍ فَتَابَ

پس ایزده کړے آدم علیه السلام د رب خپل نه یوڅو کلمے نو رحم ئے را اوګرځوو

عَلَيْهِ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۳۷﴾

په هغه باندے. یقیناً الله تعالیٰ ډیر توبه قبلوونکے مهربان دے.

چه تاویل کول بلکه کذب وئیل د پاره د عصمت د نبی او د پاره د بچ کولو د بری هم جائز دی لکه چه محب الله بهاری په مسلم الثبوت کښ وئیلے دی.

[دا بحث په فضل د الله تعالیٰ سره ختم شو].

۳۷ په دے آیت کښ ذکر د نورو انعاماتو خاصځ د الله تعالیٰ دے په آدم علیه السلام چه یو خو دل د کلماتو د توبے دی او بل د هغه توبه قبلول دی.

فَتَلَقّٰٓى د ترتیب د سورة اعراف نه معلومیږی چه هرکله د اکل د شجرے نه روستو الله تعالیٰ دوی ته تنبیه ورکړه چه په سورة اعراف ۲۲ کښ ذکر ده نو په هغے پسے متصل دوی دا کلمات اولوستل. نو معلومه شوه چه فَتَلَقّٰٓى عطف دے په فَاَزَلَّهُمَا باندے او په مینځ کښ فَاَخْرَجَهُمَا او قُلْنَا اهْبِطُوْا ترالٰی حِيْنٍ پورے جمله معترضه ده. نیشا پوری وئیلی دی چه اصل د تَلَقّٰى مخامخ کیدل د پاره د لقاء دی بیا استعمالیږی د پاره د صرف مخامخ کیدلو د راتلونکی څیز بیا مستعملیږی په ځائے د نفس اخستلو او قبلولو کښ. او ابو حیان وئیلی دی چه په دے کښ معنیٰ د اخستلو او قبلولو او فهم، فطانت، الهام، تعلم او په هغے باندے عمل کول او استغفار پرته ده. او دا رنګ استعمالیږی په هغه وحی کښ چه د الله تعالیٰ د طرف نه وی رسول ته او رسول سره د فهم نه قبول کړے وی لکه په سورة نمل ۶ کښ. نو دلته هم مقصد دا دے چه کلمات د طرف د الله تعالیٰ نه په وحی سره آدم علیه السلام ته راغلل او هغه قبول کړل او عمل ئے ورباندے شروع کړلو په وئیلو سره په طریقه د استغفار او تضرع سره.

آدَمُ هرکله چه په تَلَقّٰى کښ معنیٰ د وحی پرته وه او محل د وحی صِرف آدم علیه السلام وؤ او حوا د هغه تابع وه د دے وجے نه تخصیص د آدَمُ ئے په تَلَقّٰى کښ اوکړو او په عمل کښ ئے حوا ورسره ذکر کړه لکه په سورة اعراف ۲۳ کښ.

مِنْ رَّبِّهٖ دا هم دلیل دے چه دا وحی وه او کہ دے بله فائده روستو ذکر کیږی.

کَلِمٰتٍ دا مفعول دَ تَلَقّٰی دے. دَ دے کلماتو په تعیین کښ ډیر اقوال مفسرینو نقل کړیدی. لیکن په سند مرفوع متصل صحیح سره یو روایت هم ثابت نه دے هاں اقوال دَ صحابه کرامو شته دے دَ اکثر صحابه او تابعینو (لکه ابن عباس. حسن. ابن جبیر. مجاهد. ابن کعب. عطاء. ضحاک. عبید بن عمیر. ابن زید بن اسلم. ابوالعالیه. ربیع بن انس. قتاده. خالد بن معدان) نه روایات نقل دی چه مراد په دے سره هغه کلمات دی چه په سورة اعراف ۲۳ کښ ذکر دی. او دا تفسیر دَ قرآن دے په قرآن سره او په مقابل کښ بل روایت په صحیح سند مرفوع متصل سره ثابت نه دے نو دَ دے نه بل طرف ته عدول کول مناسب نه دی.

**سوال:-** په دے باب کښ حدیث مرفوع شته چه دَ هغے مضمون داسے دے چه آدم علیه السلام په وسیله دَ آخری نبی (محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم) سره دعا اوکړه او قبوله شوه نو دَ دے نه وسیله بالذوات الفاضلة هم ثابته شوه. دارنګ په هغه حدیث کښ داسے هم راغلی دی چه اے آدم علیه السلام که دغه نبی صلی الله علیه وسلم نه وے نو ما به نه هم نه وے پیدا کړے نو دَ دے نه معنی دَ لَوْلَاكَ لَمَا خَلَقْتُ الْاَفْلَاكَ هم ثابته شوه؟

**جواب:-** دَ هر حدیث دار و مدار دَ هغے په سند باندے وی او دَ هغے په معنی باندے هم وی نو دغه حدیث سند صحیح متصل مرفوع نه دے ځکه چه دَ دے په سند کښ کمزوری راویان دی. په کنز العمال ص۳۵۹/۲ کښ وئیلی دی چه سند دَ دے واهی (کمزورے) دے په دے کښ حماد بن عمر النصیبی روایت کوی دَ سری نه او هغه دَ خالد نه او هغوی دواړه واهیان دی دارنګ په ص۴۵۵/۱۱ کښ وئیلی دی چه دا حدیث ضعیف دے دارنګ په صیانة الانسان ص۱۲۴ او ص۱۲۹ کښ وئیلی دی چه په دے کښ عبد الرحمان بن زید بن اسلم راوی دے او هغه ضعیف دے. او دارنګ په دے کښ یو راوی رافضی (شیعه) دے. دارنګ په معجم صغیر دَ طبرانی کښ ص۱۸۲/۲ هم وئیلی دی بلکه امام ذهبی په تعلیق علی المستدرك ص۶۱۵/۱ کښ دے حدیث ته موضوعی وئیلی دی. دارنګ ذهبی په میزان الاعتدال ص۲۴۶/۳ کښ وئیلی دی چه دا خبر باطل دے او ابن کثیر په بدایه ص۸۰/۱ کښ دے ضعیف قرار کړے دے او ابن حجر په لسان المیزان کښ دَ ذهبی سره موافقت کړے دے او شیخ الاسلام ابن تیمیة

په التوسل والوسیلة ص۶۹ او فتاوی ص۱۵۱/۲ ص۲۵۴/۱ کښ په دے حدیث باندے تفصیلًا جرح ذکر کړے ده. دارنګ حاکم داسے بل حدیث په مستدرک ص۶۱۴/۲ ص۶۱۵/۲ کښ ذکر کړے دے ذهبی وئیلی دی چه ګمان دا دے چه دا هم موضوعی دے. دارنګ دا حدیث په اعتبار د معنی سره مخالف دے د قرآن نه ځکه چه په قرآن کریم کښ د پیدائیش د عالم د پاره علت او غایة اثبات د حق او امر د عبادت ګرځولے دے لکه په سورة یونس ۵ او سورة ذاریات ۵۶ کښ دی او د کثیر جن او انس د پاره غایه په سورة اعراف ۱۷۹ کښ جهنم ذکر کړے دے دارنګ غایه ابتلاء د کیفیت د عملونو په سورة یونس ۱۴ کښ. او په دغه حدیث کښ علت د پیدائیش د عالم پیدائیش د محمد صلی الله علیه وسلم ئے ګرځولے دے. او د حدیث د لَوْلَاكَ لَمَا خَلَقْتُ الْاَفْلَاكَ په باره کښ شوکانی وئیلی دی چه صغانی دیته موضوع وئیلے دے (الفوائد المجوعة ص۳۲۶) کښ او داسے عبارت ملا علی القاری په کتاب المصنوع فی معرفة الحدیث الموضوع ص۱۵۰ کښ ذکر کړیدے او داسے په موضوعات کبیر ص۵۹ کښ هم دی. او بعض مفتیانو د دے زمانے د دے حدیث د تصحیح د پاره کوشش کړے دے او څه اثار ئے ذکر کړیدی خو د هغے نه یو هم ثابت او صحیح نه دے او دائے بے فائدے کوشش کړے دے.

**سوال:-** سیوطی ذکر کړیدی چه آدم علیه السلام توسل کړے وُو په بحقِ محمد صلی الله علیه وسلم وفاطمه وعلی وحسن وحسین؟-

**جواب:-** سیوطی دا بے سنده ذکر کړیدے او بے سنده روایت ته هیڅ اعتبار نیشته.

فَتَابَ عَلَيْهِ، تاب په اصل کښ رجع ته وئیلے شی تو تائب هم رجوع کوی د ګناه خپل نه او کله چه دا نسبت الله تعالیٰ ته هم کړے شویدے نو الله تعالیٰ رجوع په رحمت سره کوی په بنده باندے کله چه دا بنده رجوع اوکړی د ګناه نه. او رجوع د رحمت د هغه کله په قبلولو د توبه سره وی او کله په تخفیف او آسانتیا راوستلو سره.

**فائده ۱:** ماده د توبے په قرآن کریم کښ اوه اتیا کرته راغلے ده په لس طریقو سره ده اول په صیغه د امر سره د طرف د الله تعالیٰ نه او دغه دلیل دے په فرضیت د توبه باندے او دا اوه کرته دے لکه په سورة نور ۳۱ سورة تحریم ۸. دویم په طریقه د صفت د نارینه او زنانه په صیغه د اسم فاعل سره التائبون یو کرت. التوابین یو کرت تائبات یو کرت. دریم نسبت

بنده ته په طريقه دَ فعل ماضي يا مضارع سره دوه ديرش كرته لكه په سورة مائده ٣٩ او سورة نساء ١٧. څلورم نسبت بنده ته په طريقه دَ اضافت يا مصدر دَ هغه نه لكه په سورة آل عمران ٨٩، په سورة توبه ١٠٤ او سورة شورىٰ ٢٥ كښ. پنځم نسبت دَ توبې الله تعالىٰ ته په وصف دَ تواب سره يوولس ځله او په صيغه دَ فعل ماضي سره لس كرته او په صيغه دَ مضارع سره لس كرته او په صيغه دَ امر سره دَ پاره دَ طلب او دعا يو كرت (سورة بقره ١٢٨). شپږم نسبت دَ توبې الله تعالىٰ ته په باره دَ انبياء عليهم السلام كښ. په باره دَ آدم عليه السلام كښ (سورة بقره ٣٧، سورة طٰهٰ ١٢٢) په باره دَ خاتم النبيين صلى الله عليه وسلم كښ (سورة توبه ١١٧) په باره دَ ابراهيم عليه السلام كښ (سورة بقره ١٢٨). اووم نسبت الله تعالىٰ ته په باره دَ صحابه كرامو او نورو مؤمنانو كښ (سورة بقره ١٨٧، سورة توبه ١١٧ ١١٨، سورة مجادله ١٣، سورة مزمل ٢٠، سورة نساء ٢٦ ٢٧، سورة احزاب ٧٣). اتم نسبت الله تعالىٰ ته په باره دَ بني اسرائيلو كښ (سورة بقره ٥٤، سورة مائده ٧١). نهم نسبت خائستنه آثار چه مرتب كيږي په توبه دَ بنده باندې: ١ قبوليت په (سورة مائده ٣٩) ٢ مغفرت او رحمت په (سورة انعام ٥٤) كښ ٣ دخول جنت په (سورة مريم ٦٠) كښ ٤ تبديل دَ سيئاتو په (سورة فرقان ٧٠) كښ ٥ فلاح په (سورة قصص ٦٧) كښ ٦ اعراض دَ هغه دَ زورنې وركولو نه (سورة نساء ١٦). ٧ معيت دَ مؤمنانو سره (سورة نساء ١٤٦) ٨ لاره دَ هغه خالي كول (سورة توبه ٥) ٩ اخوت في الدين (سورة توبه ١١) ١٠ متاع حسن حاصليدل (سورة هود ٣) ١١ بارانونه وخت په وخت كيدل (سورة هود ٥٢) ١٢ محبت دَ الله تعالىٰ حاصليدل (سورة بقره ٢٢٢). لسم نسبت، توبه نه كول او نه قبليدل او دَ هغې ناكاره آثار اول ظلم (سورة حجرات ١١) دويم عذاب دَ جهنم (سورة بروج ١٠) عدم قبوليت (سورة نساء ١٨، سورة آل عمران ٩٠).

فائده ٤: په كومو آياتونو كښ چه توبه دَ انبياء عليهم السلام سره متعلق ذكر ده نو مراد دَ هغې نه (په نسبت دَ نبي) تعبد او خپل عجز ښكاره كول دي لكه په توبه دَ موسىٰ عليه السلام كښ په سورة اعراف ١٤٣ كښ يا مراد دَ هغې نه (په نسبت دَ الله تعالىٰ) تخفيف راوستل او درجات پورته كول دي لكه په دې آيت كښ او په سورة توبه ١١٧ كښ او دا معنىٰ په سورة بقره ١٨٧

او سورة نساء ۹۲ کښې هم مراد ده ځکه چه په دغه آیاتونو کښې ذکر د ګناه کولو نیشته دے. او په دے کښې جواب د هغه چا دے چه دلیل نیسی چه انبیاء علیهم السلام ګناه کوی ځکه چه هغوی ته نسبت د توبے شوے دے حاصل د جواب دا دے چه لفظ د توبه مستلزم د ګناه نه دے.

فائده ۳: د ګناه نه د توبے کولو د پاره علماؤ شرطونه لیکلی دی اول په دغه ګناه کولو پښیمانه کیدل په زړه سره او په ژبه باندے استغفار کول او اقرار کول د ګناه او پریښودل د هغه ګناه او اسبابو د هغے لره او ورپسے نیک عمل کول تاکید دے د توبه کولو دا قول شربینی او خازن لیکلے دے. او تفصیل د دے شرطونو ابن قدامة المقدسی په کتاب مختصر منهاج القاصدین د ص ۲۸۵ نه لیکلے دی او د توبة نصوحا تشریح په سورة تحریم کښې رائحی.

سوال:- عَلَیۡهِ په ځائے یے علیهما ولے او نه وئیلو او حال دا چه سورة اعراف کښې کلمات د توبے د دواړو ذکر دی؟

جواب:- اول دا دے چه ښځه په اکثر احکامو کښې تابع وی د سړی د پاره. دویم دا چه مخکښې آیت کښې اُسۡکُنۡ امر مفرد ذکر وؤ د دے وجے نه دلته هم مفرد ذکر کړے شو.

اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِیۡمُ دا علت دے د مِنۡ رَّبِّهٖ او د تَابَ عَلَیۡهِ د پاره یعنی رب ورته دا کلمات او خودل ځکه چه تواب دے او توبه یے قبوله کړه ځکه چه الرَّحِیۡم دے. دارنګ په دے کښې تسلّی او ترغیب الی التوبه دے نورو ګناهګارانو د پاره. اَلتَّوَّابُ، وجه د مبالغے په دے صفت کښې د ډیر والی د ګناهګارانو او د ګناهونو ده او د ډیر کرته توبه کولو قبلول دی. الرَّحِیۡمُ کښې اشاره ده چه ډیر ځله توبه قبلوی د وجے د صفت د رحیم نه، نه د وجے د چپلے نفع حاصلولو یا د ضرر د بچ کیدلو نه او اشاره ده چه د توبے کولو طریقه بندګانو ته پخپله ښائي لکه چه آدم علیه السلام ته یے کلمات او خودل. دارنګ اشاره ده چه د توبه قبلولو سره رحمتونه او نعمتونه هم ورکوی بل دا چه د ګناهونو نه یے بچ ساتی. نو تواب د تیر وخت سره تعلق لری او رحیم د راتلونکی وخت سره متعلق دے.

فائده:- قرطبی وئیلی دی چه تائب په صفت د الله تعالیٰ کښې نقل نه دے د دے وجے نه د هغے اطلاق کول په الله تعالیٰ باندے جائز نه دی ځکه چه

قُلْنَا اهْبِطُوْا مِنْهَا جَمِيْعًا ۚ فَاِمَّا يَاْتِيَنَّكُمْ

اووئيل مونږ کوز شئ د دې ځائے نه ټول پس که راشي تاسو ته

مِّنِّیْ هُدًی فَمَنْ تَبِعَ هُدَایَ فَلَا خَوْفٌ

ځما د طرف نه څه لارخودنه نو چا چه تابعداري اوکړه د هدايت ځما نو نه به وي هيڅ يره

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٣٨﴾ وَالَّذِيْنَ

په دوي باندے او نه به دوی غمژن کيږي۔ او هغه کسان

په الله تعالیٰ باندے د هغه اسماؤ او صفتونو اطلاق جائز دے چه الله تعالیٰ په قرآن کښ د ځان د پاره او رسول الله صلی الله علیه وسلم په صحیح حدیث کښ د هغه د پاره وئيلی وی او د هغے نه علاوه نوموته صفتونه اګرچه په اعتبار د لغت سره جائز وی لیکن شرعًا جائز نه وی نو هغه استعمالول نه دی پکار۔

۳۸ په تکرار د امر د اهْبِطُوْا کښ ډیر اقوال دی۔ اول دا چه مخکښ امر د اهباط وؤ د جنت نه اسمان ته او دا دویم اهباط دے د اسمانونو نه زمکے ته۔ او نیشاپوری په دے باندے اعتراض کړے دے چه لفظ د وَلَكُمْ فِي الْاَرْضِ مُسْتَقَرٌّ او دلته لفظ د مِنْهَا د دے قول په مخالفت باندے دلالت کوی۔ دویم دا د پاره د دفع د وهم دے هغه دا دے چه هر کله الله تعالیٰ د دوی توبه قبوله کړه نو کیدے شی چه حکم د اهباط به ئے منسوخ کړے وی نو په دے امر د اهْبِطُوْا سره هغه وهم دفع شو او دا دلیل شو چه امر د اهباط د وجے د سزا او عقوبت نه نه دے کنی روستو د توبه قبلولو نه خو سزا هم ختم شی بلکه اهباط د پاره د پوره کولو د هغه وعدے دے چه په اِنِّيْ جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً کښ ذکر شوے وه دا قول نیشاپوری غوره کړے دے۔ دریم قول دا دے چه دا تکرار د اهباط نه دے بلکه د اهباط سره متعلق دوه قسمه احکام وؤ یو حکم تکوینی یعنی ژوند په طریقه د دشمنئ او د زمکے د څیزونو نه فائدے اخستل نو دا ئے اول ذکر کړو او دویم قسم حکم دینی او د هغے کمونو کو او د نه منونکو احوال نو هغه ئے د دویم اهباط سره ذکر کړو او دیته زمونږ د مشائخو په اصطلاح کښ اِعَادَه بُعْدِ عَهْد وئيلے شی۔

جَمِيْعًا دا حال دے د اهْبِطُوْا نه او دا تعمیم د حکم غواړی او اجتماع د زمانے

ضرور نه غواړي نو دلته هم امر د اهباط خو تو لو (آدم، حوا او ابلیس) ته عام دے برابره خبره ده که په یو ځائے راکوز شوي وی یا جدا جدا خو ظاهر داده چه جدا جدا راکوز شویدی. او ابو حیان په البحر المحیط کښ رد کړیدے په هغه مفسرینو باندے چه چا دلته تقدیر د عبارت کښ وئیلے دے هبوطاً جمیعًا یا هابطین جمیعًا یا فهبطوا جمیعًا ځکه دغه تکلفاتِ غیر مناسبه دی.
فَاِمَّا یَاْتِیَنَّکُمْ مِّنِّیْ هُدًی، خازن وئیلی دی چه په دے کښ لوئے نعمت ته اشاره ده یعنی اگرچه د جنت نه راکوز شول لیکن الله تعالیٰ پرے داسے انعام (هدایت) اوکړو چه د هغے په وجه سره بیا همیشه جنت حاصلین ی. او دا خطاب اولاد د آدم او حوا علیهما السلام ته دے په قرینه د سورة اعراف ۳۵ چه هلته یے یا بنی آدم وئیلی دی. مِنِّیْ دالفظ دلیل دے چه مراد د هدایت نه وحی ده چه هغه د طرف د الله تعالیٰ نه ده او د هغے مصداق رسولان انبیاء علیهم السلام او کتابونه او صحیفے منزلے دی او وحی متلو او غیر متلو ته شامل دے لکه چه سورة اعراف ۳۵ کښ ذکر دی او په روستو آیت کښ لفظ د آیات هم دلالت کوی چه دلته د هدًی نه مراد وحی منزله ده.
سوال :- اِمَّا په اصل کښ اِنْ مَا دے. نو ان په مقام د شک کښ رائحی او یاْتِیَنَّکُمْ کښ نون د تاکید د پاره د تحقق او د یقین دے نو د دے دواړو جمع په یو جمله کښ څه رنگه صحیح ده؟
جواب :- تاکید خو په اعتبار د حقیقت سره دے یعنی هدایت راتلل خو یقینی دی او اِنْ د وجے د مِنِّیْ نه دے یعنی چه دغه هدایت د طرف د الله تعالیٰ نه دے یا نه دے په دے کښ د بعضِ انسانانو شک وی نو دوی ته به د دغه هدایت راتلل د طرف د الله تعالیٰ نه په دلیلونو سره یقینًا ثابت شی او دیته مهائمی په تبصیر الرحمان کښ اشاره کړیده.
فَمَنْ تَبِعَ هُدَایَ، ابو حیان د سجاوندی نه نقل کړیدی چه د فَاِمَّا یَاْتِیَنَّکُمْ جزاء پټه ده (فَاتَّبِعُوْهُ) او فاء په فَمَنْ کښ د پاره د تفصیل ده. او مَن شرطیه دے فَلَا خَوْفٌ الخ د هغے جزاء ده او احتمال شته چه دا مَنْ موصوله وی په قرینه د روستو آیت سره چه په هغے کښ یے اَلَّذِیْنَ موصول راوړے دے.
تَبِعَ دالفظ ایمان تقوی او اعمالِ صالحه ته شامل دے په قرینه د سورة اعراف ۳۵ سره او په دے کښ اشاره ده چه په ایمان او اعمالو کښ تابعداری د

دلیل شرعی شرط ده- **سوال**:- دَ هُدَایَ په ځائے یائِ دے ضمیر ولے نه راوړو یعنی (فَمَنْ تَبِعَهٗ)؟-

**جواب**:- په اضافت دَهُدًای کښ الله تعالیٰ ته دَ هغے عظمت ته اشاره ده او شاه عبدالعزیز په فتح العزیز کښ وئیلی دی چه په دے کښ تعمیم دَ هدایت ته اشاره ده یعنی یو قسم هدایت خو صریح وحی ده چه هغه په مِنِّیْ هُدًی کښ ذکر شوه او دویم قسم هدایت اجماع او قیاس شرعی دے هغه اگر چه صراحةً دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه نه دے لیکن هدایت الٰهیه دے نو هُدَایَ هغے ته شامل دے-

فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ، فرق په مابین دَ خوف او حزن کښ په ډیرو وجو سره دے اول دا چه خوف دَ مستقبل زمانے سره تعلق لری او حزن دَ تیرے شوے زمانے سره- دویم دا چه دواړه دَ مستقبل سره تعلق لری لیکن خوف وی دَ مطلوب دَ روکیدلو په وجه سره او حزن وی دَ محبوب دَ فوت کیدلو په وجے سره- دریم دا دے چه خوف دَ عذاب سره تعلق لری او حزن دَ عدام ثواب دَ وجے نه وی او شلورمه وجه نیشاپوری ذکر کړیده چه په دے دواړو لفظونو کښ هغه ټولو نعمتونو ته اشاره ده چه الله تعالیٰ دَ خپلو دوستانو دَ پاره تیار کړیدی ځکه خوف هغه درد دے چه حاصلیږی نفس ته دَ وجے دَ توقع کولو دَ مکروه حالت او دَ محذور ځیز نه نو زوال دَ دے حال شامل دے سلامتیا لره دَ ټولو آفاتونه او حزن هغه درد دے چه حاصلیږی نفس ته دَ وجے دَ روکیدلو دَ مطلوب یا فوت کیدلو دَ محبوب نه نو نفی دَ دے حالت مستلزم ده حصول دَ ټولو مقصدونو او ولذتونو لره- او هر کله چه زوال دَ نامناسب حال او بچ کیدل دَ آفاتو مقدم وی په حصول دَ مرادونو باندے دَ دے وجے نه نفی دَ خوف یٔے مقدم کړه په نفی دَ حزن باندے- او دا دلیل دے چه نیکانو بندګانو باندے په وخت دَ مرګ او په قبر کښ او په وخت دَ بعث کښ دَ قبرونو نه او په میدان دَ قیامت کښ او په وخت دَ تقسیم دَ عملنامو کښ او په وخت دَ میزان او دَ صراط کښ هیڅ خوف به نه وی ځکه چه نکره په سیاق دَ نفی کښ عموم او شمول غواړی او دلیل دَ دے په سورة حٰمٓ سجده ۳۰ کښ دے-

**سوال**:- په نیکانو بندګانو باندے خو دَ دشمنانو دَ طرف نه ډیر خوفونه

بلکه د طرف د الله تعالیٰ نه هم ډیر غمونه مصیبتونه راځی په دلیل د حدیث صحیح اَشَدُّ الْبَلَايَا الْاَنْبِيَاءُ فَالْاَمْثَلُ وَالْاَمْثَلُ يُبْتَلَى الرَّجُلُ بِقَدْرِ دِيْنِهٖ۔ الحدیث۔ او دا رنګ په وخت د وفات د ابراهیم ځویٔ د نبی صلی الله علیه وسلم کښ هغه فرمائیلی وُو يَا اِبْرَاهِيْمُ اِنَّا بِفِرَاقِكَ لَمَحْزُوْنُوْنَ۔ دا رنګ په سورة بقره ۱۵۵ کښ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ الاية دا ټول نصوص دلالت کوی چه په پیغمبرانو باندے او په اولیاؤ باندے هم خوف او حزن راغلی دے؟۔

**جواب:۔** اکثر مفسرینو وئیلی دی چه دا حال په دار دنیا کښ مراد نه دے بلکه په آخرت کښ دے او دلیل د دے دا دے چه په اکثر آیاتونو کښ د اجر اخروی نه روستو دا جمله ذکر ده لکه په سورة بقره ۶۲ ۱۱۲ ۲۶۲ ۲۷۴ ۲۷۷ او په سورة اعراف ۴۹ کښ د دخولِ جنت سره یٔے دا جمله ذکر کړیده او په سورة زخرف ۶۸ کښ لفظ د الیوم سره تقیید کړیدے او کوم آیاتونه چه مطلق راغلی دی نو دغه قید پکښ مراد دے۔ او بعضِ مفسرینو (نیشاپوری وغیره) وئیلی دی چه دا په دنیا کښ هم دے ځکه چه هغه مؤمن چه راضی دے په قضا د الله تعالیٰ او په تقدیر د هغه نو هغه ته هیڅ تکلیف او مصیبت مکروه نه ښکاری او په دغه رضا سره خوف او حزن نه یو ځائے کیږی۔

**سوال:۔** نفی د خوف په جمله اسمیه او نفی د حزن یٔے په جمله فعلیه سره ولے ذکر کړیده؟۔

**جواب:۔** دار دنیا کښ اګرچه خوف وُو لیکن هغے ته دوی دار الخوف (ډیر ګور) نه دی وئیلی نو اشاره ده چه نفی د خوف د اتم او مستمر مراد ده او دنیا ته دوی ځائے د الحزن وئیلے دے په قرینه د سورة فاطر ۳۴ سره او هغه حزن په قیامت کښ بالکلیه زائیل شو چه هیڅ تجدد او حدوث به یٔے نه کیږی۔

**فائده:۔** خوف سره "عَلَيْهِمْ" او یحزنون سره "هُمْ" لفظ راوړلو کښ فائده داده چه علیٰ دلالت کوی په غلبه او احاطه باندے یعنی خوف به په دوی باندے احاطه او غلبه نه کوی اګرچه هیبتونه د قیامت به وی لیکن په نیکانو باندے به آسان وی او چه جنت ته اُورسی نو هغه به ترینه هم هیر شی. دا نکته قرطبی او ابو حیان ذکر کړیده. او "هُمْ" یٔے د يَحْزَنُوْنَ سره د حصر او اختصاص د پاره ذکر کړو یعنی نفی د حزن په دوی پورے خاص ده او د دوی نه علاوه په نورو کسانو باندے به هر وخت حزن وی او د دوی نه

كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ

چه کفر يې کړيدے (په زړه سره) او دروغژن کوي (په ژبه سره) اياتونه زمونږه دغه کسان

اَصْحٰبُ النَّارِۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٣٩﴾

دوزخ والا دي دوی به په دے (اور) کښ هميشه وی -

رکوع ٤

نفی دحزن په سورة انبياء ١٠٣ کښ ذکر دے -

٣٩ دا تخويف اخروى دے منکرينو لره د اولاد آدم عليه السلام نه او مقابل دے د فمن تبع سره او کړ دے نور تعبيرونه په سورة اعراف ٣٦ او سورة طٰه ١٢٤ کښ راغلی دی - او فرق په مينځ د کفر او تکذيب کښ اول دا دے چه کفر په زړه سره دے او تکذيب په ژبے سره دے - او بِاٰيٰتِنَآ په طريقه د تنازع الفعلين د دواړو سره متعلق دے - دويم دا دے چه کفر نه مراد کفر بالله دے لکه چه په ٢٨ کښ ذکر شويدے او تکذيب نه مراد د اياتونو تکذيب دے -

سوال :- د مَنْ تَبِعَ هُدَایَ په مقابله کښ يې ومن لم يتبع هدای ولے او نه ويلو؟

جواب :- نفی د اتباع خو عام ده عدم اهليت او عدم استعداد او غفلت کول او قصداً پريښودلو د اتباع ته شامل ده او په اولو حالتونو کښ عذاب نيشته او کفر خو صريح دے په دے کښ احتمال د عدم اهليت او غفلت نيشته -

سوال :- کفر خو عام دے او شامل دے تکذيب ته نو تکذيب يې ورپسے ولے ذکر کړو؟

جواب ١ :- دلته د کفر او تکذيب فرق ونه ذکر شول نو معلومه شوه چه د دواړو ذکر کول ضروری دی -

جواب ٢ :- هر کله چه کفر کښ قسمونه دی کفر د نعمت (ناشکرئ) ته او کفر د معصيت ته هم شامل وؤ او په اول قسم باندے خو دا تخويف صادق نه دے نو وَكَذَّبُوْا اه ذکر کولو کښ اشاره ده چه دلته د کفر نه مراد شرک دے دا قول ابو حيان کړے دے -

فائده :- سورة اعراف ٣٦ کښ استکبار ذکر کړے دے ځکه چه په هغه سورت کښ مخکښ تفصيلی استکبار د ابليس يې ذکر کړو نو اشاره ده چه په اولاد آدم عليه السلام او ابليس کښ چه څوک د ابليس په صفت سره متصف دی نو د هغوی د پاره عذاب دے او په سورة طٰه ١٢٤ کښ وَمَنْ اَعْرَضَ اه

ذکر دی ځکه چه په هغه سورت کښې مخکښې په ښنا کښې اعراض ذکر وړ نو په هغه مناسبت سره یې روستو هم ذکر کړو۔
بِاٰیٰتِنَآ دا لفظ شامل دے ټولو نازل کړے شوؤ کتابونو ته او معجزاتو د انبیاء علیهم السلام ته او قرآن کریم ته او دلیلونو عقلیؤ د توحید ته۔ اٰیات جمع د اٰیَةٌ ده په لغت کښې علامت ته وئیلے شی او په اصطلاح د قرآن کښې هغه ټوکړه د کلماتو د قرآن چه جدا وی د نورو ټکړو نه په ذکر د فاصلے سره (فاصله اٰخر د اٰیت ته وئیلے شی)۔
اُولٰٓئِكَ دا لفظ یې روستو د اَلَّذِیْنَ اه نه راوړونو اشاره ده چه د روستو حکم د پاره سبب دغه اوصاف (کفر او تکذیب) دی۔
اَصْحٰبُ النَّارِ اول اٰیت او دا اٰیت مشتمل دی په اختصار باندے یعنی په هریو کښې یو یو جمله محذوف ده. نو اول اٰیت په اصل کښې فَمَنْ تَبِعَ هُدَایَ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ فَلَا خَوْفٌ اه دے او دویم اٰیت په اصل کښې وَالَّذِیْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰیٰتِنَا فَعَلَیْهِمُ الْخَوْفُ وَالْحُزْنُ وَهُمْ اَصْحٰبُ النَّارِ اه دے۔ اصحاب جمع د صاحب ده د صحبت نه ماخوذ دے او صحبت مطلق اقتران (پیوستوالے) دے د یو څیز د بل څیز سره اګرچه په یو حالت او په یو زمان کښې وی د دے وجے نه د صحابی اطلاق په هغه چا باندے کیدے شی چه د نبی صلی الله علیه وسلم سره یې ملګرتیا شوی وی په حالت د ایمان کښې اګرچه لږ وخت وی او بیا په ایمان سره مړ وی. بیا د دے لفظ اکثر اطلاق په ملازمه، دوام او ملګرتیا باندے کیږی په طریقه د سکونت سره وی او که په حفاظت سره وی۔ او راغب په مفردات کښې وئیلی دی چه صاحب ملازم ته وئیلے شی که انسان وی او که حیوان وی زمان وی او که مکان وی نو کوم ملائیک چه د اُور د حفاظت او څوکیدارئ د پاره مقرر دی نو هغوی ته هم اصحاب النار په سورة مدثر ۳۱ کښې وئیلی شوی دی۔ او کافرانو ته هم اصحاب النار وئیلے شی ځکه چه هغوی به همیشه په اُور د جهنم کښې اوسیږی د هغې نه به نه جدا کیږی۔ د دے وجے نه دا لفظ (اصحاب النار) د مؤمنانو د پاره نه استعمالیږی او لفظ د اصحاب کله د اوسیدونکو د پاره دے په طریقه د لزوم اګرچه دوام نه وی لکه اصحاب مدین اصحاب الایکه. اصحاب الحجر. اصحاب الرس. اصحاب القریه. اصحاب الکهف. او کله د متصف په یو صفتِ خاصه سره لکه اصحاب السبت اصحاب الاعراف

يٰبَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِیَ الَّتِیْۤ

اے اولاد دَ یعقوب علیه السلام یاد کړئ (په شکر کولو سره) نعمت ځما هغه چه ما

اَنْعَمْتُ عَلَیْكُمْ وَ اَوْفُوْا بِعَهْدِیْۤ اُوْفِ

انعام کړیدے په تاسو باندے او پوره کوئ لوظ ځما (تاسو سره) نو پوره به کړم ځه

بِعَهْدِكُمْ ۚ وَ اِیَّایَ فَارْهَبُوْنِ ﴿٤٠﴾ وَ اٰمِنُوْا

لوظ ستاسو لره او خاص ځما نه یره اوکړئ (په احکامو منلو سره)۔ او ایمان راوړئ

اصحاب الصراط۔ اصحاب المیمنه۔ اصحاب الیمین۔ اصحاب المشئمه۔ اصحاب الشمال او اصحاب الاخدود او اصحاب السفینة۔ اوکله دَ جنت والا دَ یاره ذکر وی او دا دیارلس۱۳ کرته ذکر دے اوکله دَ نار سره ذکر وی او دا نولس۱۹ کرته ذکر دے او کله دَ جحیم سره ذکر وی او دا شپږ۶ کرته ذکر دے اوکله دَ سعیر سره ذکر وی او دا دوه کرته ذکر دے اوکله صِرف ملګری او شریک فی الصفة ته وئیلے شی لکه په سورة ذاریات ۵۹ کښ۔

هُمْ فِیْهَا خٰلِدُوْنَ دَ خلود نه مراد خلود ابدی دے او لفظ دَ هُمْ او فِیْهَا ښکاره دلیل دے چه جهنم او اصحاب جهنم باندے به فنا نه راځی۔

نکته: دَ دے ایت نه تر ۱۲۳ پورے خطاب خاص دے روستو دَ خطاب عام نه په ذکر کولو دَ نهه ۹ اوامرو یعنی (اذکرو۔ اوفوا۔ فارهبون۔ امنوا۔ فاتقون۔ اقیمو الصلوٰة۔ اتوالزکوٰة۔ وارکعوا۔ واستعینوا) او پنځه نواهیو سره یعنی (لاتکونوا اول کافر به۔ لاتشتروا۔ لاتلبسوا۔ لاتکتموا او وتنسون انفسکم په معنیٰ دَ لاتنسوا)۔ او پدیکښ دعوت دے ایمان بالتوحید او قرآن او رسول ته۔ او تحذیر دے دَ هغه کارونو نه چه هلاک (نه زول) دَ دین کوی۔ او تیزی ورکول دی په ذکر دَ داسے امورو چه په هغے سره قِوام (مضبوطی) دَ دین او دَ خلافتِ حقه راځی۔ او ربط دَ ما قبل مضمون سره دا دے چه هرکله استخلاف دَ ادم علیه السلام ذکر شو نو اوس ذکر کوی دَ هغه دَ اولاد نه هغه قوم چه هغوی له الله تعالیٰ خلافتِ حقّه ورکړے وو چه هغه بنواسرائیل دی سره دَ ذکر دَ هغه امورو نه چه په هغے سره مضبوطوالے دَ خلافت راځی۔ دویم ربط دا دے چه مخکښ عام دعوت دَ توحید طرفته نو اوس خاص بنی اسرائیلو ته دعوت دَ توحید ورکوی ځکه دا سورت

اول دے د مدنی سورتونو نه او په مدینه کښې مخالفت کوونکی یهودیان وو
چه هغوی ته دعوت د توحید او رسول او قرآن ضروری وو. او ربط د
ایت ۳۹ سره دا دے چه په دے کښې ذکر کوی کافران د بنو اسرائیلو چه
هغوی د اوامرو او نواهی د الله تعالیٰ نه کفر کړے وو او تکذیب د قرآن کریم
ئے کړے وو.
یٰبَنِیٓ اِسۡرَآءِیۡلَ، دا سے نداء په قرآن کریم کښې څلور کرته ذکر ده چه هغه
په دے سورة بقره ۴۷ ۱۲۲ او سورة طٰهٰ ۸۰ کښې دی او د عیسیٰ علیه
السلام یو خطاب په سورة مائده ۷۲ کښې او دویم په سورة صف ۶ کښې
او بغیر د نداء نه لفظ بنی اسرائیل اووه دیرش کرته او لفظ اسرائیل دوه
کرته ذکر دے. بَنِیٓ دَ دے لفظ په عرف کښې ټول اولاد با ندے اطلاق کیږی
که نارینه وی او که زنانه وی که نزدے اولاد وی او که لرے وی.
اِسۡرَآءِیۡلَ په دے کښې د مفسرینو ډیر اقوال دی اول دا چه دا په معنیٰ د عبدالله
دے او اکثر اهل علمو وئیلی دی چه اسر په عبرانی (یا سریانی) کښې عبد ته
وائی او ایل الله تعالیٰ ته وئیلے شی او ابن خلدون د دے په عکس سره ذکر
کړیدی چه ایل عبد ته او اسر الله تعالیٰ ته وئیلے شی. دویم دا چه صفوة الله
ته وئیلے شی. دریم دا چه اسر شدت ته وئیلے شی نو معنی دا ده شدة الله
یعنی الله تعالیٰ هغه لره کلک کړے وو په بدنی لحاظ سره او په دین کښې.
څلورم د سهیلی نه روایت دے چه دا په معنیٰ اُسری الی الله (په معنیٰ د هجرت
دے) بنا په دے دا نوم مرکب دے د عربئ او عبرانئ نه او د دے نه علاوه نور
اقوال هم شته لیکن اکثر ابو حیان ضعیف کړیدی. د دے ټولو وجوهو نه
معلومیږی چه دا اسمِ صفتی (لقب) وو د یعقوب علیه السلام.
**سوال:-** دا سے ئے ولے او نه وئیل چه یا بنی یعقوب؟
**جواب ۱** په اسم صفتی ذکر کولو کښې په وخت د نداء کښې ادب وی.
**جواب ۲** په دے کښې تاکید او ترغیب دے منلو د توحید فی العبادت
(اعبدوا) ته ځکه چه مقصد دا سے شو یٰبَنِیٓ عَبۡدِ اللّٰهِ یعنی ستاسو پلار (یعقوب
علیه السلام) د الله تعالیٰ عبادت کوو او په هغے سره ئے وصیت کړے وو لکه
په دے سورت ۱۳۳ کښې دی نو توحید فی العبادت ستاسو د پلار زوړ دین
دے نو تاسو خوئے ضرور اُومنئ.

اذْكُرُوا دا ماخوذ دے دَ ذِکر او ذُکر نه او په نیز دَ اکثر علماؤ دَ دے فرق نیشته
هاں ذُکر په ژبے سره او مقابل دَ هغے انصات (چپ کیدل) دے او ذِکر په زړه سره
او دَ هغے مقابل نسیان (هیرول) دی او دَ کسائي نه نقل دے چه په زیر دَ
ذال سره وی نو ذکر په ژبه دے او چه په پیښ سره وی نو په معنی دَ ذکر
قلبی سره دے۔
فائده :- ذکرِ مفرد او مضاف په قرآن کښ دوه اویا کرته راغلے دے۔ سیوطی
په اتقان کښ وئیلی دی چه ذکر په قرآن کښ په شل معانو سره دے اول
ذکر دَ ژبے (سورة بقره ۲۰۰)۔ دویم ذکر قلبی (سورة آلعمران ۱۳۵)۔ دریم حفظ
(سورة بقره ۶۳)۔ څلورم طاعت او جزا دَ هغے (سورة بقره ۱۵۲)۔ پنځم مونځونه
ټول (سورة بقره ۲۳۹)۔ شپږم وعظ (سورة اعراف ۱۶۵)۔ اووم بیان (سورة
اعراف ۶۹)۔ اتم خبره کول (سورة یوسف ۴۲)۔ نهم قرآن (سورة طٰهٰ ۱۲۴)۔
لسم تورات (سورة نحل ۴۳)۔ یوولسم خبر ورکول (سورة کهف ۸۳)۔ دولسم
شرافت (سورة زخرف ۴۴)۔ دیارلسم عیب کول (سورة انبیاء ۳۶)۔ څوارلسم
لوح محفوظ (سورة انبیاء ۱۰۵)۔ پنځلسم ثناء کول (سورة احزاب ۲۱)۔ شپاړسم
وحی (سورة صافات ۳)۔ اوولسم رسول (سورة طلاق ۱۰ ۱۱)۔ اتلسم صلوٰة
(سورة عنکبوت ۴۵)۔ نوولسم صلوٰة الجمعه او خطبه (سورة جمعه ۹)۔
شلم صلوٰة العصر (سورة ص ۳۲)۔ او زه وایم چه دوه معانے نورے هم
شته یوویشتم ذکر مقابل دَ نسیان (سورة بقره ۲۸۲) دوویشتم ذکر په
معنی دَ شکر سره (سورة بقره ۴۰)۔ نو دلته ذکر په معنی دَ شکر کولو دے
ځکه چه دَ نعمت سره ذکر شوے دے او دارنګ زاد المسیر او تفسیر قرطبی
کښ هم وئیلی دی او یل قول دا چه دا په معنی دَ ذکر بالقلب سره دے یعنی
غفلت دَ دے نه مه کوئ او قرطبی دے له ترجیح ورکړے ده۔
نِعْمَتِيَ دا مفرد اسم جنس دے بے شماره نعمتونه ترے مراد دی که په
موجوده بنی اسرائیلو باندے وۀ او که دَ دوی په مشرانو باندے او که
عام نعمتونه وی او که خاص وی۔ خاص روستو رکوع کښ ذکر کړے شوی
او په اضافت کولو دَ نعمت کښ الله تعالیٰ ته اشاره ده چه نعمتونه ټول
په ملکیت او اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دی نو شکر صرف دَ هغه پکار دے او
دارنګ په دے اضافت کښ اشاره ده عظمت دَ نعمتونو ته۔

**فائده:** قرطبي وئيلي دي چه بني اسرائيلو ته امر دوؤ د ذکرِ نعمت او دے امت ته امر دے د ذکر د الله تعالیٰ (اذکروني اذکرکم) نو د هغوی نظر به اول په نعمت باندے وي او روستو به نقل کيږي منعم (انعام کوونکی) ته او د دے امت نظر به د اول نه منعم ته وي نو دا هم سبب د فضيلت د اخري اُمت دے او نيشاپوري وئيلي دي چه نقل ده چه د نعمتونو بندګان ډير دي او د منعم بندګان لږ دي۔

**اَلَّتِیۡۤ اَنۡعَمۡتُ عَلَیۡکُمۡ، سوال:** نِعۡمَتِیَ خو دلالت کوؤ په نعمت د الله تعالیٰ نو په هغے پسے اَلَّتِیۡۤ اَنۡعَمۡتُ ته څه ضرورت دے؟۔

**جواب:** په نِعۡمَتِیَ کښ اشاره ده چه نعمت مِلک د الله تعالیٰ دے او په دے لفظ کښ اشاره ده چه انعام د طرف د الله تعالیٰ نه ملاؤ شویدے يعني نعمت د هغه دے او ورکړے هم هغه دے نو شکر هم صرف او صرف د هغه کول ضروري دي۔

**عَلَیۡکُمۡ،** شربيني وئيلي دي چه په دے لفظ کښ هم تاکيد د شکر ته اشاره ده هغه دا چه د انسان په فطرت کښ غيرت او دا رنګ غِل او حسد شته دے نو کله چه خپل نعمت ته او ګوري نو د غيرت د وجے نه به شکر کوي او چه د بل چا نعمت ته ګوري نو بيا ناشکري او حسد کوي۔

**فائده:** شکر د نعمت او په زړه کښ ياد ساتل کنايه ده د توحيد في العبادت د منلو نه ځکه چه اول او لوئے شکر د نعمتونو دا دے چه د دے نعمتونو نسبت الله تعالیٰ ته او کړے شي او د هغه په رضا کښ خرچ کړيشي (لکه چه روستو په تحقيق د شکر کښ به ذکر شي) او دغه نفسِ توحيد دے نو دا (اذۡکُرُوۡا نِعۡمَتِیَ) د دعوت الی التوحيد يوه طريقه ده۔

**تنبيه:** کنز العمال ص ۳۵۷/۲ کښ روايت دے چه عمر رضی الله تعالیٰ عنه او لوستلو یٰبَنِیۡۤ اِسۡرَآءِیۡلَ اذۡکُرُوۡا اه نو بيا يے اوئيل چه" دا قوم خو تير شويدي نو په دے کښ اوس تاسو مراد يئ"۔ مطلب دا دے چه مؤمنان هر کله دا اوامر او نواهي اوري نو ځان طرف ته دے متوجه کوي او عبرت دِے د هغے نه اخلي دا سے دِے نه وائي چه دا آيا تونه په بني اسرائيلو پورے خاص دي۔ وَاَوۡفُوۡا بِعَهۡدِیۡۤ دا د دعوت الی التوحيد دويمه طريقه ده. ايفاء پوره کولو ته وئيلے شي په ميزان او کيل (تول، ناپ) کښ هم استعماليږي

اوپه وعده او عهد کښ هم استعمالیږی۔ عهد ابوحیان په تفسیر دَ ۲۷ کښ وئیلی دی چه دَ عهد شپږ معانی دی وصیت۔ ضامن کیدل۔ امر۔ التقاء۔ رویت۔ منزل۔ او هغه وعده چه دَ دوه طرفو نه وی نو هغه هم عهد دے او خازن وئیلی دی چه عهد په اصل کښ حفاظت او رعایت کول دی دَ یو څیز وخت په وخت۔ او نیشاپوری وئیلی دی چه نسبت دَ عهد معاهِد او معاهَد دواړو ته کیدیشی۔ دلته مراد دَ عهد نه څه دے په دے کښ ډیر اقوال دی دَ حسن نه روایت دے چه مراد هغه عهود دی چه په سورة بقره ۶۳، ۸۳، ۸۴ او سورة آلعمران ۸۱، ۱۸۷ او سورة مائده ۱۲ او سورة اعراف ۱۷۲، ۱۵۶ کښ دی او عهد اسم جنس دے نو دے ټولو ته شامل دے۔ او زجاج وئیلی دی چه مراد هغه عهد دے چه په تورات کښ وو په باره دَ اتباع کولو دَ محمد رسول صلی الله علیه وسلم کښ او دَ ایمان راوړلو په باره کښ په هغه باندے۔ او نیشاپوری یو عبارت دَ تورات دَ نهم فصل دَ سفر اول دَ تورات نه نقل کړے دے چه په هغے کښ دغه عهد اشارةً ذکر دے۔ دریم قول، ادا دَ فرائضو په اخلاص او سنت سره مراد دہ۔ څلورم قول عبادات۔ پنځم قول آدابِ ظاهره ادا کول۔ شپږم عام دے ټولو اوامرو او نواهیو او وصیتونو ته او قرطبی وئیلی دی چه دا روستو قول صحیح دے او ټولو اقوالو ته شامل دے۔ او بِعَهْدِیٓ کښ اضافت دے فاعل ته ځکه چه دا عهود دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دی۔

اُوفِ بِعَهْدِكُمْ داجواب دَ امر (واوفوا) دے نو دلالت کوی په شرط باندے یعنی په دے شرط چه تاسو وفا اوکړئ نو زه به هله وفا کووم نو چه دَ بندګانو دَ طرف نه وفا اونشی نو الله تعالیٰ باندے اعتراض نشی کیدے چه هغه ولے وفا اونکړله۔ او دلته عهد مضاف دے مفعول ته ځکه دا عهد هم دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه دے او هغه په سورة مائده ۱۲ کښ ذکر دے او زجاج وئیلی دی چه دلته مراد دَ عهد نه ضمان دے یعنی چه دَ کوم څیز چه زه ستاسو دَپاره ضامن شوے یم هغه جنت دے۔ بل قول دا دے چه وفا به اوکړم په قبولیت او جزا درکولو سره۔

تنبیه:- وفا مجرد هم متعدی راځی لیکن صیغه دَ ایفاء مزید دَ کمال او دَ مبالغے دَپاره دے۔

فائده :- دغه عهود چه په اياتونو مخکنو کښ ذکر دی د هغې حاصل دا دے، اول کتاب د الله تعالیٰ باندے عمل کول، دویم شرک فی العبادت نه ځان ساتل۔ دریم حقوق د والدينو او ذوی القربیٰ او يتيمانو، مسکينانو اداکول. څلورم خلقو ته دعوت کول۔ پنځم اقامة الصلوٰة۔ شپږم زکوٰة اداکول۔ اووم د ناحق قتل نه بچ کيدل۔ اتم د يو بل د اخراج نه بچ کيدل۔ نهم د اخری نبی تصديق کول۔لسم خلقو ته د کتاب الله تبيان (تشريح او تفسير) کول يوولسم اقامة الصلوٰة ايتاء الزکوٰة او ايمان په ټولو رسولانو باندے او د هغوی د دين امداد کول او په دين حق باندے خرچ کول۔ دولسم تقویٰ کول او مضبوط ايمان په ټولو اياتونو باندے لرل۔ ديارلسم توحيد د ربوبيت منل، او دا ټول داخل دی په اُعْبُدُوا رَبَّكُمْ کښ نو حاصل دا دے چه اُعْبُدُوا رَبَّكُمْ ضرور او منئ ځکه چه تاسو او ستاسو مشرانو د دے په باره کښ عهود کړيدی د دے وجے نه دا دويمه طريقه د دعوت د توحيد ده بنی اسرائيلو ته او قرطبی ليکلی دی چه دا وعده د دے امت نه هم مطلوب ده لکه چه اوفوا بالعقود او اوفوا بعهد الله او دا سے نور دی۔ او دا وفا د بندګانو نسبه ده د پاره د وفا د الله تعالیٰ خو علت نه دے بلکه فضل د الله تعالیٰ دے۔ وَاِيَّايَ فَارْهَبُوْنِ په دے جمله کښ د اِيَّاكَ نَعْبُدُ په نسبت سره ډير تاکيدات او حصر دے ځکه چه اِيَّايَ پسے فعل د اِرْهَبُوْا پټ مراد دے ځکه چه روستو فَارهبوا په اِيَّايَ کښ عمل نشی کولے د وجے د وجود د فاء نه او فاء په دے کښ جواب د امر پټ دے لکه تنبهوا فارهبون يا په تقدير د شرط سره ده يعنی اِنْ كُنْتُمْ رَاهِبِيْنَ شَيْئًا فَارْهَبُوْنِ. نو حاصل د ټول عبارت داسے دے "وَاِيَّايَ اِرْهَبُوْا وَاِنْ كُنْتُمْ رَاهِبِيْنَ شَيْئًا فَارْهَبُوْنِيْ" نو په دے کښ تکرار د جملے دے او ورسره مخکښ راوړل د اِيَّايَ دی د پاره د تخصيص. او په اخر د فَارْهَبُوْنِ کښ ياء حذف شويده د رعايت د فاصلے د وجے نه او دا رعايت د وقف هم دے.

فائده عه ماده د رهبت په قرآن کريم کښ دولس کرته ده په شپږ وجوهو سره اول په صيغه د امر سره د پاره د ايجاب د رهبت په دے ايت او په سورة نحل ۵۱ کښ. دويم دا صفت د انبياء عليهم السلام دے (سورة انبياء ۹۰)۔ دريم دا صفت د صالحينو دے (سورة اعراف ۱۵۴ سورة مائده ۸۲)

بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُوْنُوْٓا

په هغه کتاب چه نازل کړی دے ما تصدیق کوونکے دے د هغه کتابونو چه تاسو سره دی او مه کیږئ

اَوَّلَ كَافِرٍۢ بِهٖ ۠ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا

اول انکار کوونکی د دے نه، او مه اخلئ په آیاتونو ځما قیمت (دُنیا)

قَلِيْلًا ۡ وَّاِيَّايَ فَاتَّقُوْنِ ﴿۴۱﴾ وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ

لږ او خاص ځما نه او یریږئ (په ځان بچ کولو سره د حرامو نه) - او مه ګډوډ کوئ حق لره (په مخلوق باندے)

څلورم صفت دے په مقابل د احبارو کښې (سورة توبه ۳۴ ۳۱). او په دے څلورو مواضعو کښې رهبت د الله نه مراد دے. پنځم رهبت په طریقه د ابتداع (سورة حدید ۲۷). شپږم اثر د اسبابِ ظاهره یعنی اسلحه یا ډیرماران بنکاره کول او د انسان نه ویره کول (سورة اعراف ۱۱۶، سورة انفال ۶۰، سورة حشر ۱۳)

فائده ۲ فرق په مینځ د رهبت او د تقوٰی او د خوف او خشیت کښې دا دے چه خوف خو ټولو نه عام دے او رهبت خوف دے سره د تحرز نه یعنی ځان بچ کول او تقوٰی خوف دے سره د حزم (هوښیارئ) نه. دارنګ رهبت صفت د زړه دے او تقوٰی صفت دے په اعمالِ ظاهره کښې. دارنګ رهبانیت په عرف د مخکنو کتابونو کښې وُو او تقوٰی په اصطلاح د قرآن کښې ده او دارنګ رهبت په هغه ځائے کښې استعمالیږی چه امکان د وقوع وی او تقوٰی په هغه ځائے کښې مستعملیږی چه وقوع د هغے یقینی وی. او خشیت هم صفت د زړه دے سره د عظمت د مخشی عنه نه.

فائده ۳ دلته فاصله د آیت ئے په رهبت سره د پاره د تاکید د رغبت ده په عمل کولو د اذکروا او د اوفوا کښې نو ذکر صفتِ قلبیه دے او ایفاء د عهد د پاره د تحرز (ځان بچ کول د بے لوظئ کولو نه) دے نو د ابن عباس رضی الله عنهما قول دے چه رهبت (یره) او کړئ د نازلیدلو د عذابونو نه په تاسو باندے لکه چه ستاسو په مشرانو باندے نازل شوی وُو. او دویم قول دا دے چه یره او کړئ د بے لوظئ کولو نه. او دا دریمه طریقه د دعوت الی التوحید ده.

۴۱ په دے آیت کښې هم دوه اوامر او دوه نواهی ذکر کوی او ربط ئے دا دے

چه په اول ایت کښ طریقۀ دعوت الی التوحید وے نو په دے ایت کښ
دعوت دے ایمان بالقرآن او رسول ته او دفع کول د موانعو د هغے دی.
وَاٰمِنُوْا واو دلالت کوی چه دا معطوف دے په ماقبل اُذْکُرُوْا باندے نو
داخل دے په خطاب د بنی اسرائیلو کښ.
بِمَآ اَنْزَلْتُ مراد د دے نه قرآن کریم دے په قول د ډیرو اهلِ علمو کښ
په قرینه د مصَدِّقًا سره. او په قول د قتاده کښ مراد د دے نه هغه کتاب
او رسول دے چه هغه د دوی په تورات او انجیل کښ مکتوب وُو نو مستلزم
شو ایمان بالرسول لره - او وصف د انزلت سره ئے ذکر کړو چه وحی غیر
متلو (حدیث) ته هم شامل شی.
مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ دا حال دے د انزلت د ضمیر متکلم نه یا د هغه ضمیر
مفعول نه چه محذوف دے او په اصل کښ انزلته وُو. لِمَا مَعَكُمْ مراد د
دے نه تورات او انجیل دے او لفظ مَعَكُمْ دلالت کوی چه تر وخت د نزول
قرآن پورے د دوی سره خپل اصل تورات او انجیل موجود وُو اگر چه
تحریف معنوی ئے پکښ کولو. مصدق د تصدیق نه ماخوذ دے او دا تصدیق
په درے طریقو سره دے. اوله طریقه دا چه په قرآن کښ دی چه موسیٰ
علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام حق انبیاء دی او تورات په موسیٰ او
انجیل په عیسیٰ علیهما السلام باندے نازل کړے شوے وُو لکه په سورة
بقره ۱۳۶ او سورة آل عمران ۸۴ کښ دی نو ایمان په قرآن کریم باندے
تاکید او کړو د حقانیت د موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام او د تورات او انجیل
په دے توجیه سره مصدق په معنیٰ د تاکید کوونکی دے. دویمه طریقه
دا چه په تورات او انجیل کښ اِخبار او بِشارت ذکر وُو په باره د محمد رسول
الله صلی الله علیه وسلم کښ او د قرآن کریم د راتللو او په صفاتو د صحابه
کرامو سره نو هرکله چه قرآن او رسول صلی الله علیه وسلم راولیږلے شول
نو د اِخبار د تورات او انجیل تصدیق اوکړے شو او د دے تائید په سورة
اعراف ۱۵۷ کښ دے او په دے توجیه سره مصدق په معنیٰ د رښتینی
کوونکی دے خبر د تورات او انجیل لره او په دے دواړو توجیهاتو سره تصدیق
اجمالی مراد دے او دا نیشاپوری لیکلی دی. او دریمه طریقه دا ده چه په
تورات او انجیل کښ د توحید او نور اصول الایمان او دارنګ اصول د محرما

چه په ټولو اديانو سماويو کښ حرام وؤ او فرضيت د پنځه بناګانو د اسلام (چه په حديث کښ ذکر دی) دا ټول ذکر وؤ او دا په قرآن کريم او په تعليماتو د آخری نبی صلی الله عليه وسلم کښ هم ذکر دی نو دا کتابونه په دغه امورو کښ موافق دی. بنا په دے باندے تصديق په معنی د موافقت سره دے او دا معنی په تفسير سراج المنير او تفسير خازن کښ ذکر ده.

فائده ۱: تصديق په صفت د قرآن کريم کښ په سورة يونس ۳۷ او سورة يوسف ۱۱۱ کښ ذکر دے او مصدق په صفت د قرآن کښ يوولس کرته او په صفت د رسول الله صلی الله عليه وسلم کښ درے کرته او په صفت د عيسیٰ عليه السلام او انجيل کښ څلور کرته دے.

فائده ۲: د تصديق په صله کښ کله لام راځی لکه په دے ذکر شوو آيتونو کښ دی نو مراد د تصديق نه دغه معانی دی چه مخکښ ذکر کړے شويدی او کله د دے په صله کښ بآء راځی لکه په باره د يحيیٰ عليه السلام (سورة آل عمران ۳۹) کښ او په صفت د مريم عليها السلام په (سورة تحريم ۱۲) کښ او په صفت د نبی صلی الله عليه وسلم او د صحابو کښ په (سورة زمر ۳۳) کښ نو په دے آيا تونو کښ مراد بيان کول د کلماتو د توحيد او د ايمان دی او بيان کول د صدق دی په طريقه د دعوت او تبليغ سره د معنی موافقت کولو نه.

وَلَا تَكُونُوٓا۟ أَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهِۦ دا جمله او د دے نه روستو جملے د نهی د پاره د ذکر د نواقضو د ايمان دی چه د ايمان د صداقت او د حفاظت د پاره د دے کارونو نه ځان بچ اوساتئ نو اول د نواقضو د ايمان نه کفر کول دی چه د هغے نه په دے جمله کښ نهی ذکر کوی.

سوال:- اول لفظ مفرد او تَكُونُوٓا۟ صيغه د جمع ده نو د دواړو موافقت خو نيشته؟ جواب:- په ډيرو وجوهو سره دے اول وجه په تقدير د اول قوم يا اول فوج، دويم دا چه په اعتبار د کل واحد سره دے.

سوال:- په دوه وجوهو سره دے اوله وجه دلته ئے منع کړيده د دوی د اوليت (ړومبی والی) نه په کفر کښ او حال دا چه د دوی نه مخکښ خو مشرکان مکه په قرآن کفر کړے دے دويمه وجه دا ده چه دوی ئے د اوليت د کفر نه منع کړيدی نو آيا تابعداری په کفر کښ جائز ده؟-

**جواب:**- په ډیرو طریقو سره دے اول داچه لفظ دَ مِنْ اَهْلِ الْكِتَابِ پټ دے- دویم داچه لفظ دَ مِثْل پټ دے- دریم داچه دلته کفر په معنی دَ کفر عنادی دے سره دَ علم او معرفت نه. څلورم داچه دلته اولیت مقابل دَ ثانویت نه دے بلکه تقدم کول په کفرکښ په معنی دَ تلوار کول بغیر دَ فکر او سوچ کولو نه دی. پنځم دا اولیت دلته قیدِ واقعی دے یعنی چه دوی سره دَ علم نه کفر او کړی نو دَ دوی تابعداران (شاګردان- مریدان) به دَ دوی دَ وجے نه کفر کوی نو دوی به امامان دَ کفر شی. شپږم دا ټیر شوی توجیهات خو په هغه وخت کښ دی چه ضمیر دَ بِهٖ راجع شی مَآ اَنْزَلْتُ (قرآن) ته لیکن بل احتمال دا دے چه دا ضمیر راجع دے مَا مَعَكُمْ ته یعنی کفر کول په قرآن بانده مستلزم دے کفر کولو لره په تورات بانده او په تورات بانده دَ دوی نه مخکښ (په اهل کتابو) کښ بل چا کفر نه وؤ کړے- اووم په دے توجیه بانده بل احتمال دا دے چه کفر په معنی دَ کتمان (پټولو) سره دے سره دَ علم نه-

وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰیٰتِیْ ثَمَنًا قَلِیْلًا دا منع ده دَ دویم دَ نواقضو دَ ایمان نه چه دنیا لره په دین بانده غوره کول دی-

**سوال:**- اشتراء کښ قانون دا دے چه بآ داخلیږی په ثمن بانده نه په مبیعه بانده نو دلته خو عبارت پکار وؤ لَا تَشْتَرُوْا اٰیَاتِیْ بِثَمَنٍ قَلِیْلٍ یا لا تبیعوا آیاتی بثمن قلیل؟-

**جواب ۱** دلته اشتراء په معنی دَ استبدال سره ده او په استبدال کښ قاعده داده چه کوم شیز دَ ځان نه ورکول وی نو بآء په هغے بانده داخلیږی.

**جواب ۲** په دے کښ مبالغه ده دَ دے عملِ قبیح دَ دے خلقو یعنی دوی دنیا دا سے لوئے مقصد ګرځولے دے چه آیاتو نه یے دَ هغے دَ پاره ذریعه ګرځولے ده-

بِاٰیٰتِیْ، **سوال:**- دَ دے نه معلومیږی چه قرآن یا بل کتاب اِلٰهی خرڅول (په طور دَ تجارت کولو) حرام دی ځکه چه په آیاتو نو سره قیمت حاصلول دی او حال دا دے چه دَ دے په جواز بانده اتفاق دَ امت دے؟-

**جواب:**- آیات خو کلام الله دے الفاظ سره دَ معانو نه او کلام الله خو مخلوق نه دے او نه مال دے نو خرڅول اخستل دَ هغے خو امکان هم نه لری

کوم چه خرڅیږی هغه خو قیمت د کاغذ او د محنت د کتابت او د طباعت او د جلد دے د دے وجے نه په دے ځائے کښ د مفسرینو دوه قولونه دی ځوک وائي چه ایات نه مراد عینِ ایاتونه نازل کړے شویدی نو هغوی وائي چه دلته مضاف محذوف دے نو د حسن بصری په روایت سره بِتَغْيِيرِ اٰيَاتِيْ یعنی په تحریف او تبدیل د ایاتونو سره دنیا حاصلوی او د سدی په قول سره بِكِتْمَانِ اٰيَاتِيْ (په پټولو د ایاتونو سره) او په نیز د بعضِ علماؤ بِكُفْرِ اٰيَاتِيْ (د ایاتونو په انکار کولو سره) او په نیز د نورو علماؤ بِتَرْكِ الْعَمَلِ بِاٰيَاتِيْ (په پریښودلو د عمل سره په ایاتونو باندے). او په نیز د ابوالعالیه بِتَعْلِيْمِ اٰيَاتِيْ (په درس و تدریس د ایاتونو). دویم قول دا دے چه مراد د ایات نه اوامر او نواهی او احکام د الله تعالیٰ دی دا اقوال ابوحیان، ابن کثیر، قرطبی وغیره ذکر کړیدی.

ثَمَنًا قَلِيْلًا ثمن عوض د مبیع ته وئیلے شی که روپئ اشرفئ وی او که نور مال وی او دلته مطلق بدل مراد دے که نقود وی او که سامانونه وی او که عزت و مرتبه د دنیا وی او که سرداری او مشری وی او که رشوت وی او که اُجرت وی. قَلِيْلًا دا خو مقابل د کثیر راځی لیکن قِلّت او کثرت دوه قسمه دے اول په اعتبار د کمیّت (مقدار) او دویم په اعتبار د صفت او کیفیت سره دلته اول قسم مراد نه دے یو وجه دا ده چه د لږ او د ډیرحدِ فاصل معلوم نه دے یو شخص یو روپئ ته ډیر وائي نو بل کس به یو لاکھ ته هم لږ وائي دویمه وجه دا ده چه د ایاتِ الٰهیه په مقابله کښ ټوله دنیا وَمَا فِيْهَا هیڅ قیمت نه لری نو معلومه شوه چه دلته دویم قِسم قِلّت مراد دے او هغه ټوله دنیا او د هغې مزے د هغې ژوند مرتبے او عزت وغیره دے لکه چه په سورة نساء ۷۷ او سورة توبه ۳۸ کښ ذکر دی. او تفسیر قرطبی کښ دی چه ثمن قلیل ټوله دنیا او د هغې مدات (عمر) او ژوند دے. او آلوسی وئیلی دی چه حظوظ (برخے) د دے فانی دنیا، یا هغه څیزونه چه دوی به د خپلو تابعدارونه هر کال کښ اخستل د فصلونو او د څاروؤ د پیئو او نقد و روپونه. او بحر محیط کښ وئیلی دی چه ثمن قلیل هغه ریاست (مشری) دے چه دوی لره په خپل قوم کښ وو. او منع د اشتراء د دین په ثمن قلیل او قباحت د دے

عمل په ډیر وایاتونوکښ ذکر دے بعض د هغے نه په پاره د بنی اسرائیلو
کښ نازل شویدی لکه په دے سورت ۷۹ او ۱۷۴ او سورة العمران ۱۸۷ او
سورة مائده ۴۴ کښ او بعض عام دی لکه په سورة آلعمران ۷۷ او سورة
توبه ۹ او سورة نحل ۹۵ کښ. دا ایاتونه په اعتبار د الفاظو عام وسره
د دے اُمت علماءِ سوء او عوامو ته هم شامل دی او قرطبی داسے وئیلی
دی چه دا ایت هغه چا ته شامل دے چه د دوی (بنی اسرائیلو) پشان عمل
کوی او داسے د عمر رضی الله عنه نه په کنز العمال ص ۳۵/۲ او تفسیر فتح
العزیز کښ نقل دی چه هغه دا ایاتونه اولوستل نو بیا یے او فرمائیل چه
قوم (بنو اسرائیل) خو تیر شویدی دا ایاتونه خو تاسو اورئ نو تاسو
په دے سره مرادیئ.
**فائده**: یهودیا نو ملیا نو اشتراء بالدین په ډیرو طریقو سره کوله،
اول دا چه دوی د نبی صلی الله علیه وسلم صفتونه او د هغه متعلق پیشنګوئی
چه په تورات کښ وه په هغے کښ تبدیلی اوکړه د پاره د دے چه د دوی تقلید
کوونکی هسے نه چه په هغه باندے ایمان راوړی او دوی پریږدی نو
د دوی مشری او اقتدار به ختم شی. دویم دا چه که د دوی مقلدین په
دے نبی پسے تابعداری اوکړی نو کومے امداتئ چه دوی ته د خپلو مقلدینو
نه رسیدلے هغه به د دوی نه فوت شی. دریم دا چه دوی به د تورات په
بعض ایاتونو او احکامو کښ تحریف، تبدیلی یا کتمان کولو د یو شخص
د رعایت د پاره او د هغه نه به یے رشوت اخستلو. څلورم دا چه دوی په
تعلیم کد دین باندے اجرت اخستلو وحال دا چه دوی د هغے نه منع کړے
شوی وو لکه چه قرطبی د ابو العالیه نه نقل راوړے دے چه د دوی په
کتابونو کښ لیکلے شوی وو یَا ابْنَ اٰدَمَ عَلِّمْ مَجَّانًا کَمَا عُلِّمْتَ مَجَّانًا (اے ابن
آدمه بے اجرته تعلیم ورکوه لکه چه تا ته بے اُجرته ښودلے شوے دے).
پنځم دا چه دینِ حق پریږدی او د دنیا د لالچ د وجے نه مرتد شی او دا
ټولے طریقے اوس زمونږ په دین والو بعض علماؤ او امیانو کښ موجود
شویدی. قرطبی وئیلی دی چه چار رشوت واخستلو د حق د بدلولو
یا د باطلولو د پاره یا د تعلیم د هغے نه چه په دۀ باندے د هغے تعلیم فرض
عین وی ځان منع کړی یا منع اوکړی د اداء کولو د هغه علم نه چه په

دهٔ بانده هغه معین شوے وی تردے پورے چه په هغے بانده اجرت داخلی نو دا ټول د دے آیت په مقتضی کښ داخل دی. او قرطبی او ابن کثیر حدیث د ابو داؤد نمبر ۳۶۶۴ ذکر کړے دے چه "مَنْ تَعَلَّمَ عِلْمًا مِمَّا يُبْتَغٰى بِهٖ وَجْهُ اللّٰهِ لَا يَتَعَلَّمُهٗ اِلَّا لِيُصِيْبَ بِهٖ عَرَضًا مِنَ الدُّنْيَا لَمْ يَرَحْ رَائِحَةَ الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ" (چا چه ایزده کړو هغه علم چه طلب کیدلے شی په هغے مخ د الله تعالیٰ او دے ئے نه ایزده کوی مګر د دے د پاره چه حاصل کړی په هغے سره مال د دنیا نو نه به مومی بوئي د جنت په ورځ د قیامت کښ).

**فائده ۲: تفصیل د مسئلے د اجرت په طاعت باندے زمونږ په ملت کښ**

په دے کښ پنځه مباحث دی بحث اول په مقام د اتفاق کښ دے یعنی هغه طاعت چه په هغے باندے اجرت اخستل په اتفاق د اهلِ علمو سره حرام وی یا هغه چه هغه په اتفاق سره حلال او جائز وی. اول هغه طاعت او عبادت چه فرض عین او معین وی لکه چه په یو علاقه کښ صِرف یو عالم وی او نور خلق جاهلان وی چه محتاج وی تعلیم د قرآن او تبلیغ او دعوت د دین ته نو که دغه عالم دوی ته دا تعلیم او تبلیغ او نه کړی نو بله ذریعه نیشته هغوی ته د دین د رسولو نو په داسے عالم باندے اجرت اخستل حرام دی لکه حال د رسولانو په هره زمانه کښ د دے وجے نه په باره د رسولانو کښ په سورة انعام ۹۰ او سورة شعراء ۱۰۹، ۱۲۷، ۱۴۵، ۱۶۴، ۱۸۰ کښ راغلی دی نو دا خاص دی په رسولانو پورے نو داسے په هغه عالم باندے هم کیږی چه مخکښ د هغه وصف ذکر شویدے لکه چه د قرطبی د تیر شوی عبارت نه معلومه شوه. او قول د امام شافعی رحمة الله علیه کښ دا لفظ ذکر دے کُلُّ مَالًا يَتَعَيَّنُ عَلَى الْاَجِيْرِ اِقَامَتُهٗ دا دلالت کوی چه کوم عمل چه د هغے ادا کول متعین وی په یو شخص باندے نو په هغے باندے اجرت په نیز د امام شافعی رحمة الله علیه اخستل منع دی او دا رنګ قول دے د نورو اهلِ علمو او متقدمین او متأخرین احناف په دیکښ متفق دی. دویم هغه عمل د لوستلو د قرآن کریم چه مقصد په هغے سره علاج او دواء کول دی یعنی دم اچول مقصد په هغے کښ ثواب حاصلول نه دی نو اتفاق دے د اهلِ علم چه په هغے باندے اجرت اخستل جائز دی او دلیل په دے باندے حدیث د لدیغ دے (چه روستو به انشاءالله ذکر شی)

بنایه شرح هدایه ص۳۴۴ کښ ذکر دی چه رقیه یو قسم دوائي کول دی او په هغې باندې اجرت اخستل مباح دی او داسې شامی په مجموعة الرسائل ص۱۵۷/۲ کښ وئیلی دی جائز دے استیجار په دم کولو باندې اګرچه په قرآن سره وی ځکه چه دا عمل په نیت د قربت (ثواب) سره نه وی بلکه دوائي کول مقصد دے لکه طبابت کول شول او د جواز د پاره دلیل حدیث د لدیغ دے، او داسې په مبسوط د امام سرخسی رحمة الله علیه ص۱۵۸/۴ کښ هم دی۔ دریم هغه عمل چه د هغې کول په مسلمان پورے خاص نه وی بلکه کافرئې هم کولے شي نو په هغې باندې د مسلمان د پاره اجرت اخستل بالاتفاق جائز دی او د دے د پاره د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه او د متقدمینو په عبارت کښ دا لفظ ذکر دے (الطاعات التی لا یجوز اداءها من الکافر لا یجوز عندنا) او چه د کافر نه د هغې ادا کول صحیح وی لکه مسجد جوړول، رباط جوړول وغیره نو هغې باندے هم اجرت اخستل جائز دی۔ داسې تفصیل شامی په دغه صفحه سابقه کښ ذکر کړے دے۔ څلورم هغه عمل چه مقصد په هغې کښ ثواب وربښل وی یل چا ته که مړے وی او که ژوندے وی لکه تلاوت د قرآن کریم د پاره د ثواب د مړونو په دے کښ اتفاق دے د علماؤ چه په دے باندې اجرت اخستل (که مشروط وی او که معروف وی که حقیقی اجرت وی او که مشبه اجرت وی) حرام دے۔ د امام شافعی رحمة الله علیه او نورو اهلِ علمو په نیز خو د عبادت بدنیه ثواب بل چا ته بښنه نه کیږی او دا بدعت دے (او دا مسئله به په تفسیر د سورة نجم کښ رائحی) او د احنافو په نیز باندے اګرچه د عبادتِ بدنیه ثواب بل چا ته بښلے کیدلے شی لیکن په عبادت باندے چه نیت د اُجرت اوکړے شی نو د هغې ثواب اخروی باطل شی لکه په سورة اسراء ۱۸ او سورة شورٰی ۲۰ کښ دی۔ نو هر کله چه د لوستونکی ثواب او نه شو نو بل چا ته څه اُوبښی؟ بلکه دهوکه کوی او د دے مسئلے ذکر په تفصیل سره شامی په پنځم جلد ص۳۵ او په مجموعة الرسائل کښ کړے دے او دیته ئې بدعت وئیلے دے په ص۱۶۵ کښ او ډیره بدی ئې بیان کړے ده د هغه ملایانو چه دینه جائز وائي په ص۱۹۰ کښ او ردئې کړیدے په هغه کتابونو د فقه باندے چه دے نه ئې جائز وئیلی دی او دائې داخل کړیدے په "لا تشتروا بآیات الله" کښ په ص۱۶۷ ص۱۶۵ ص۱۸۱ کښ۔ او وئیلی دی چه په دیکښ اخستونکے او ورکونکے

دوارو ګناهګار دی په ص۱۷۱ ص۱۸۰ کښ او دا سې په شرح عقیدة طحاویه ص۲۸۶ کښ او تفسیر روح المعانی په تفسیر د اخری ایت د سورة کهف کښ او په تفسیر فتح العزیز ص۳۰۸ کښ او کتاب الزهد د ابن مبارک ص۵۰۵ او مصنف د عبدالرزاق ص۴۸۱ کښ ذکر دی. او پنځم په ختم د قرآن کریم په تراویحو کښ اجرت اخستل او ورکول په اتفاق د علماؤ سره منع دی دا سې په السنن والمبتدعات ص۱۶۱ او قیام اللیل د مروزی ص۲۴۶ کښ دی. اوله وجه دا ده چه دے ته دا سې ضرورت نیشته کوم ضرورت چه په تعلیم د قرآن او د حدیث او د فقهے او په اجرت د امامت کښ دے. دویمه دا چه دا سې هیئت خو سلفِ صالحینو نه ثابت نه دے. دریم دا چه په دے کښ مقصد هم صِرف ثواب دے او ثوابِ آخروی په نیت د اُجرتِ دنیوی سره باطلیږی لکه چه په څلورمه مسئله کښ ذکر شول نو دا پنځه مسائیل اتفاقیه دی.

**دویم بحث په مقام د اختلاف کښ دے:** علامه بدرالدین عینی په شرح د بخاری ص۹۵/۱۲ کښ وئیلی دی چه اختلاف دے د علماؤ په اجرت اخستلو کښ په تعلیم القرآن. او دا جائز کړیدے عطاء او ابو قلابه او دا قول د امام مالک او امام شافعی او امام احمد او ابو ثور رحمهم الله علیهم دے. او قرطبی د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه نه په باره د دم اچولو کښ جواز نقل کړیدے (لکه مخکښ ذکر شول) او زهری اجرت په تعلیم القرآن باندے مکروه ګنړلے دے او امام ابوحنیفهؒ او اصحابو د هغه وئیلی دی چه دا جائز نه دے او وئیلی دی چه نه دے جائز استیجار په طاعاتو باندے لکه تعلیم د قرآن او د فقهے او اذان او تذکیر او تدریس او حج او غزو او په نیز د اهل مدینه (مالکؒ وغیره) جائز دے او په جواز باندے عمل کړے دے امام شافعی او نصیر او عصام او ابو نصر الفقیه او ابو اللیث رحمهم الله او حاصل دا دے چه کوم عبادت او طاعت مسلمان پورے خاص وی نو په هغے باندے اجرت اخستل منع دی په نیز د احنافو متقدمینو که فرض عین دی او که نه وی او په نیز د نورو اهلِ علمو او امامانو جائز دی په دے شرط چه فرض عین نه وی په اداکوونکی د هغے باندے. او د هر فریق د پاره دلیلونه شته چه روستو بحث کښ به انشاءالله تعالی ذکر کیږی او دا سې اختلاف او محل د اختلاف صاحب هدایه او مبسوط سرخسی او نورو فقهاؤ احنافو او شوافعو ذکر

کړیدے او ابن حجر په فتح الباری ص۱۲۱ کښې دَ قاضی عیاض نه نقل کړیدے
چه استیجار په تعلیم القرآن باندے دَ ټولو اهل علمو په نیز جائز دے سیوا
دَ علماء حنفیه نه - لیکن متأخرینو احنافو فتوٰی کړیده په جواز دَ اخستلو دَ
اجرت باندے په تعلیم القرآن او فقه باندے او ورسره روستو فقهاؤ امامت
او اقامت او وعظ هم لیکلے دے او مبسوط کښې وئیلی دی چه دا مشائخ بلخ
فتوٰی ورکړیده او ټولو فقهاؤ احنافو دَ دے دَ پاره وجه ضرورتِ دینیه
ذکر کړیدے - یعنی سُستی په امورِ دینیه کښې ډیره شروع شوېده او دَ بیت
المال دَ طرف نه هم تعاون نیشته نو که اجرت اخستل منع شی نو بربادی
دَ قرآن او امورِ دینیه به راشی دا سے تفصیل عامو فقهاؤ لیکلے دے او شامی
په مجموعة الرسائل ص۱۵۵ کښې لیکلے دے او سخت رد ئے کړیدے په هغه کسانو
چه ختم دَ ایصال ثواب دَ مړو دَ پاره ئے هم په دے قیاس کړے دے چه
دا قیاس صحیح نه دے ځکه ختم کولو ته او مړو ته دَ ثواب بښلو ضرورتِ
شرعیه نیشته او دَ دے فتوٰی کولو بله وجه دا هم ده چه هغه دلیلونه چه
په منع دَ اجرت دَ تعلیم وغیره باندے پیش شویدی نو په هغے باندے کلام
هم دے لکه چه روستو بحث کښې انشاء الله ذکر کیږی نو دَ ضعف دَ دلیل
دَ وجے نه رجوع ضروری ده صحیح او قوی دلیلونو ته -

**دریم بحث په باره دَ دلیلونو دَ فریقینو کښې :-** دلیلونه دَ احنافو چه
منع کوی اُجرت اخستل په تعلیم او نورو طاعتو باندے -

اول دلیل قول دَ الله تعالیٰ "وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا" بنا په تفسیر دَ
ابوالعالیه چه مخکښې تیر شویدے - او دا سے شامی استدلال کړے دے په
دے آیت سره په حرمت دَ اجر په تلاوتِ قرآن دَ پاره دَ ایصال دَ مړی
مجموعة الرسائل ص۱۸۱ او وجه دَ استدلال دا ده چه آیت اګرچه نازل شوے
دے په باره دَ یهودیانو کښې لیکن اعتبار عموم دَ الفاظ ته دے خصوص دَ
مورد ته نه دے -

دویم دلیل حدیث دَ مسند احمد په روایت دَ عبد الرحمٰن بن شبل سره
چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی "اِقْرَءُوا الْقُرْاٰنَ وَلَا تَاْكُلُوْا بِهٖ"
الحدیث (قرآن لولئ او خوراک و ر باندے مه کوئ) -

دریم دلیل حدیث دَ ابوداؤد په روایت دَ عباده بن صامت رض سره (حدیث دَ قوس (لیندۍ))

فرمائیلی وُو رسول الله صلی الله علیه وسلم دهٔ ته که ته غواړے چه الله تعالیٰ تالره بنګری د اُور درکړی نو دا قبوله کړه۔
څلورم دلیل حدیث د امام بیهقی په روایت د بریده سره چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چاچه قرآن لوستلو او په هغې سره یٔے د خلقو نه خوراک کوؤ نو را به شی په ورځ د قیامت مخ به یٔے اډوکے وی غوښه به ورباندے نه وی
پنځم دلیل حدیث د ترمذی د عمران بن حصین نه چه قرآن لولئ او د الله تعالیٰ نه سوال کوئ ځکه چه ستاسو نه په روستو خلق راشی قرآن به لولی او په هغې سره به د خلقو نه سوال کوی۔ دا احادیث عینی په عمدة القاری شرح صحیح بخاری ص۹۵/۱۲ کښ او زیلعی په نصب الرایه ص۱۳۵/۴ کښ ذکر کړیدی۔
شپږم دلیل حدیث د سنن اربعه په روایت د عثمان ابن ابی العاص سره چه داسے مؤذن اونیسه چه په اذان باندے اجرت نه اخلی او ترمذی وئیلی دی چه دا حدیث حسن دے۔
دلیلونه د هغه اهلِ علمو چه اجرت په تعلیم القرآن او نورطاعات (چه معیّن نه وی په یو شخص باندے) جائز وائی۔
دلیل اول حدیث د بخاری او مسلم په کتاب الاجارت کښ په روایت د ابو سعید خدری رضی الله عنه (مضمون) چه یو سردار د کافرانو مار یا لړم چیچلے وؤ او صحابه کرام هلته پیخ شوی وؤ نو دوی ورسره شرط اولګولو چه مونږ دم نه اچوؤ ترڅو پورے چه مونږ د پاره تاعوض نه وی مقرر کړی نو هغوی ورسره په یو کنډک د ګډو بیزو فیصله اوکړه۔ ابو سعید دم اوکړو هغه سردار جوړ شو او عوض یٔے دوی لره ورکړو او روستو نبی صلی الله علیه وسلم هم د هغې تائید اوکړو۔ نو په دے دم کښے سورة فاتحه لوستلے ده او شرط یٔے هم ایښودلے دے۔
فائده:۔ د دے حدیث احنافو او نورو علماؤ درے توجیهات کړیدی لیکن غوره توجیه دا ده چه دا دم کول دی او دم کول ثواب محضه نه دے بلکه دوائی کول دی نو په هغې باندے اجرت اخستل په اتفاق سره جائز دی او تعلیم القرآن په دے باندے نشی قیاس کیدلے۔
دلیل دویم حدیث د بخاری په کتاب الطب کښ په روایت د ابن عباس رضی الله عنهما (په مضمون مخکنی سره) او د دے په اخر کښ قول د نبی کریم

صلی الله علیه وسلم دے چه" ان احق ما اخذتم علیه اجرا کتاب الله" (ډیر غوره دے چه اخلئ تاسو په هغې سره اجرت هغه کتاب الله دے) یعنی په نسبت د هغه چه اجرت اخلی په سحر منتر او الفاظ غیر منزله سره۔

فائده:۔ په دے کښې اجر په معنیٰ د ثوابِ اُخروی باندے حمل کول ضعیفه توجیه ده او الفاظ د دے حدیث عام دی نو ماسیوا د رقیه نه نور وظائف تو نه هم شامل دے۔

دلیل دریم، حدیث د بخاری په روایت د سهل بن سعد الساعدی سره باب د نکاح کول په تعلیم د قرآن سره۔ چه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ځه دا ښځه ما تا لره په نکاح سره درکړه په عوض د هغې چه تا سره دے د قرآن کریم نه۔

فائده:۔ په دے حدیث کښې هم توجیهات ډیر دی لیکن امام شافعی او امام بخاری رحمهم الله غوره کړیدہ چه باء د پاره د عوض ده او تعلیم د قرآن ئې عوض د نکاح او ګرځولو نو معلومه شوه چه د تعلیم د قرآن په مقابله کښې عوض جائز دے۔

دلیل څلورم، زیلعی په حواله د بیهقی سره د عمر رضی الله عنه نه روایت ذکر کړیدے دے چه هغه بعضو خپلو عاملانو ته لیکلی وُو چه په تعلیم د قرآن به خلقو ته عطئے ورکوئ او بل روایت کښې دی چه هغه به معلمینو ته وظیفه ورکوله ص۱۳۷ ج۴ نصب الرایه۔ او دا سے په کتاب الاموال د قاسم بن سلام کښې دی ص۲۶۱

**څلورم بحث په باره د تنقیح د دلیلونو کښې دے:۔** اول استدلال د منع کوونکو په لا تشتروا الخ سره، بنا دے په تفسیر د ابو العالیه باندے نو هغه حدیث مرفوع او موقوف نه دے په مقابله د صحیح احادیثو مرفوعه او موقوفه کښې (چه د مجوزینو د پاره ذکر شویدی) د استدلال د پاره صلاحیت نه لری۔ او نور باقی دلیلونه د منع کوونکو د اجرت په مجموعی طور سره ټول ضعیف دی قابل د استدلال نه دی۔ آلوسی په تفسیر کښې وئیلی دی چه بعضِ اهلِ علمو په دے آیت سره دلیل نیولے دے د پاره د منع د اجرت په تعلیمِ کتاب الله باندے او د دے د پاره ئې احادیث راوړی دی چه په هغې کښې یو هم صحیح نه دے، روح المعانی ص۲۴۵ ج۱۔ او علامه عینی په شرح د بخاری کښې وئیلی دی (روستو د ذکر کولو د احادیثو د منع نه) چه دا

احادیث اگرچه په بعضِ کښ مقال دے لیکن تاکید کوی بعضِ د بعضو خاص
طور حدیث د قوس چه دا صحیح دے۔ بیا ئے وئیلی دی" او بعضِ علماؤ وئیلی
دی چه دا احادیث ذکر کړے شوی نیشته په دے کښ صالح د حجت نیولو د
پاره په مقابله د احادیث صحیحه کښ" ص۹۶/۱۲۶ دا رائے د علامه عینی ده لیکن
دعوی د صحت د حدیثِ قوس بے دلیله ده، تفصیل دا دے چه زیلعی د
امام بیهقی نه نقل کړیدے چه په سند د حدیثِ قوس کښ اختلاف دے
په نقل کښ د عباده بن نسی نه (بیا ئے وئیلی دی) ظاهر د دے حدیث
متروک (پریښودلے) شوے دے په نیز د ټولو علماؤ باندے ځکه چه په
هغې لفظ د هدایئے لیږلے دے او هدیه چه مشروطه هم نه وی نو د هغې قبلول
خو سبب د دا سے سخت وعید د پاره نشی کیدلے۔ او کیدے شی چه دا حدیث
(قوس) منسوخ وی په حدیث د ابن عباس رض او حدیث د ابو سعید خدری رض
سره (چه په دلیلونو د جواز کښ ذکر شویدی)۔ او ابن جوزی په العلل المتناهیه
ص۱/۵ کښ په باره د حدیث د قوس کښ (چه روایت کړے شویدے د ابی بن
کعب رضی الله عنه نه) وئیلی دی چه دا حدیث صحیح نه دے ځکه چه
ابو عبیده او عبد الرحمٰن بن سلیم دواړه ضعیفان دی او په باره د حدیث
د عباده بن الصامت رضی الله عنه کښ وئیلی دی چه دا حدیث صحیح نه دے
امام احمد رحمة الله علیه وئیلی دی چه مغیره بن زیاد راوی ضعیف الحدیث
او منکر الحدیث دے نو معلومه شوه چه دا حدیث په حرمت د اجرت په
تعلیم القرآن باندے دلالت نشی کولے۔ او دارنګ قرطبی نقل کړیدی
چه حدیث د عباده بن الصامت ابو داؤد روایت کړیدے د مغیره بن زیاد نه
او د هغه د پاره منکرات دی او دا په روایت د ابی بن کعب رض سره هم نقل دے
او هغه منقطع دے او نیشته په دے بابت کښ حدیث چه په هغه باندے
عمل واجب شی۔ او حدیث د امام احمد چه" أقرؤا القرآن ولا تأکلوا به" په
دے باندے حافظ ابن حجر په الدرایه فی تخریج احادیث الهدایه کښ کلام
کړے دے او دارنګ د دے دوه عبارتونه دی اول په زیر د همزه سره (اِقرؤا)
نو دا په باره د تلاوت کښ دے یعنی په تلاوت د قرآن باندے خوراک
مکوئ او اجرت مه اخلئ او دا خو اتفاقی مسئله ده۔ دویم په زور د همزه
سره دے (أقرؤا) یعنی په تعلیم د قرآن باندے خوراک مه کوئ نو حدیث ضعیف

دے مقابله ذ احاديثِ صحیحه نشی کولے۔ اوشلورم او پنځم دليلونوکښې چه احاديث ذکر شويدي نو هغه دلالت کوی چه په تلاوت ذ ايا تو باندے اجرت اخستل منع دی او شپږم دليل دے په منع ذ اجرت ذ اذان کولو باندے نه په تعليم باندے او اصح دا ده چه په اذان کولو باندے اجرت مکروه دے په سبب ذ دغے حديث سره چه مخکښې ذکر شويدے۔

تنبيه :۔ ذ مخکښې تفصيل نه معلومه شوه چه په تعليم ذ قرآن او حديث باندے اجرت ورکول او اخستل جائز دی او ورسره چه ذ چا نيت وی ذ اشاعت ذ دين او اجرت ذ کفايت په طور سره وی نو ذ ثواب اخروی اميد کيدے شی اوکه دا نيت نه وی نو اجرت اخستل ورله حلال دی ليکن ذ اخرت ذ ثواب نه به محروم وی دارنګ قاضی خان په فتاوٰی کښې او ابن همام فتح القدير کښې وئيلی دی چه اخستل ذ اجرت په مقابله ذ ذکر کښې منع کوی استحقاق ذ ثواب لره۔ او تلاوت ذ قرآن او ختم شريف ذ پاره ذ ثواب ذ مړی يا په تراويحو کښې په تعليم باندے قياس کول غلط دی دا بحث اګرچه ذ تفسير سره يئے ډير تعلق نيشته ليکن ذ ضرورت ذ مسئلے ذ وجے نه دلته ذکر کړے شو ذ پاره ذ دے چه افراط او تفريط کول په دے مسئله کښې معلوم شي۔

وَاِيَّایَ فَاتَّقُوۡنِ، ذ دے جملے تفسير په تفسير ذ اِيَّایَ فَارۡهَبُوۡنِ کښې ذکر شويدے۔ فائده :۔ ذ تير شوی ايت فاصله يئے په فارهبون سره او ذ دے په اتقون سره اوکړه۔ ذ دے يو وجه دا ده چه حال ذ پرهيزګارئ نه په عرف ذ مخکښې کتابونوکښې رهبت او رهبانيت وئيلے کيدلو او په عرف ذ قرآن کښې هغے ته تقوٰی وئيلے شی نو مخکښې ذ دعوت نه ذ ايمان بالقرآن نه دويته ذ دوی ذ عرف لفظ استعمال کړے شو او روستو ذ دعوت نه ايمان بالقرآن نه په لفظ ذ وَاٰمِنُوۡا بِمَاۤ اَنۡزَلۡتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمۡ لره ذ عرف ذ قرآن لفظ ذ تقوٰی مستعمل کړے شو۔ دويمه وجه دا ده چه رهبت اکثر استعماليږی په امتثال ذ اوامرو کښې نو اول ايت کښې اوامر وو۔ او تقوٰی اکثر استعماليږی په اجتناب ذ منهياتو کښې نو په دے ايت کښې ذکر ذ نواهی وو۔

---

بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٤٢﴾

په سبب د باطل سره او مه پټوئ حق لره او حال دا چه تاسو پوهیږئ -

٤٢ په دے ایت کښ نهی ده د نورو دوه موانعو د ایمان بالقرآن نه چه هغه تلبیس او کتمان دے مخکښ سره ربط دا دے چه کفر او اشتراء بالایات اسباب دی د خپلے گمراهئ او تلبیس او کتمان اسباب دی د گمراه کولو د نورو خلقو یعنی د ضلال او د اضلال دواړو نه نهی کول مقصد دے او هرکله چه د علمائو نه سیوا خلق دوه قسمه دی اول نیمگړی ملایان او طالبان او دویم خالص عوام نو د اول فریق د گمراه کولو طریقه تلبیس دے او د دویم فریق د گمراه کولو طریقه کتمان دے۔

وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ دا د لَبس (زور د لام) نه اخستلے شوے دے په معنی د خلط او گډوډ کول او د لُبس (پیښ د لام) نه په معنی د جامے اغوستلو دے۔ اَلْحَقَّ د حق معانی په تفسیر د ٢٦ کښ تیرے شویدی دلته مراد د دینه هغه دے چه په دلیل شرعی سره ثابت وی جواز یا عدم جواز، حِل او حرمت یا په عقیده او اعمالو کښ۔ اَلْبَاطِلِ دا ماده په قرآن کښ په اتّه معانو سره راغی اول ثواب برباد ول لکه لا تبطلوا صدقاتکم بالمن والاذی سورة بقره ٢٦٤، سورة محمد ٣٣۔ دویم حرام طریقے لکه وَلَا تَأْكُلُوٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ سورة بقره ١٨٨۔ دریم عبث (بے فائدے) لکه رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا سورة آل عمران ١٩١۔ څلورم اثر محو کول لکه اِنَّ اللّٰهَ سَيُبْطِلُهٗ (سورة یونس ٨١)۔ پنځم هر معبود باطل لکه اَفَبِالْبَاطِلِ يُؤْمِنُوْنَ (سورة نحل ٧٢)۔ شپږم شبهاتِ باطله وَ يُجَادِلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالْبَاطِلِ (سورة کهف ٥٦)۔ اووم مقابل د حق یعنی هغه څیز چه په دلیل شرعی سره ثابت نه وی که عقیده وی او که عمل وی په دے ایت کښ دا روستو معنی مراد ده۔ او مفسرینو د دے مختلف مصداقات ذکر کړیدی لکه حق رشتیا او باطل دروغ۔ حق اسلام، باطل یهودیت او نصرانیت۔ حق هغه چه په کتاب د الله تعالیٰ کښ دی، باطل تغییر او تبدیل۔ حق تورات، باطل تبدیل د صفت د محمد صلی الله علیه وسلم۔ حق مبعوثیت د نبی صلی الله علیه وسلم، باطل قید لګول چه دے مبعوث دے بغیر زمونږ نه نورو

خلقوته نو داتهولے معاني په دے کښ داخل او مراد دی. او باء په بالباطل کښ
په معنی دَ مع سره ده یعنی اختلاط دَ حق دَ باطل سره مه کوئ او دَ هغے ډیرے
طریقے دی اول په مُنزّل کښ څه لفظ دَ ځان نه زیاتول لکه دَ قرآن کریم
دَ ایاتونو په مینځ یا په آخر کښ یو لفظ زیاتول او په شکل دَ ایت سره لیکل
او داسے په کتابونو دَ شیعه گانو کښ شته دے په کافی کلینی کښ دی فبدّل
الذین ظلموا آل محمد حقهم قولاً. الایة صـ۳۹۴/۲ او په صـ۳۸/۲ کښ دی بئسما
اشتروا به انفسهم ان یکفروا بما انزل الله فی علیؑ. الایة او په فصل الخطاب
صـ۲۰۵ کښ دی واذا قیل لهم اٰمنوا بما انزل الله فی علیؑ قالوا نؤمن بما انزل
علینا. الایة. او داسے ډیر مثالونه دی په کتاب تفسیر قمیؒ او په فصل
الخطاب کښ. او دویمه طریقه تبدیل دَ یو کلمے په بله کلمے سره چه یو بل ته
نزدے وی په تلفظ کښ دا هم دَ شیعه گانو په کتابونو کښ ډیر دی لکه
په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ "وجعلناکم امةً وسطًا" نو دوی اُمَّةً بدل کړے
دے په اَئِمَّةً سره (فصل الخطاب صـ۲۱۳) داسے په ایت ولتکن منکم امةً نو دوی
اَئِمَّةً وائی (فصل الخطاب صـ۲۱۷) دا رنګ په دے قول دَ الله تعالیٰ کښ کنتم
خیر اُمةٍ اخرجت للناس دوی لولی کنتم خیر اَئِمَّةٍ (فصل الخطاب صـ۲۱۷)
داسے دَ دوی په کتابونو کښ ډیر دی. دا رنګ په حدیث دَ نزولِ عیسیٰ علیه
السلام کښ لفظ دَ جِزْیَة مرزائیانو بدل کړیدے په حربة سره او یا باء
په الباطل کښ په معنی دَ سببیت سره ده یعنی مه ګډوئ حق په خلقو
باندے په سبب دَ تاویلاتو یا شبهاتو باطلو سره او دَ دے امثال هم ډیر
دی هرچه په تاویلاتو سره دی لکه چه مشرکان ایاتونه عامه چه دلالت
کوی په رد دَ شرک باندے مطلقًا او دوی یے خاص کوی په عبادت دَ بتانو
پورے او دا رنګ ایاتونه عامه خاص کوی په یهودیانو پورے. دا رنګ
جهمیه او بعضِ اشاعره او ماتریدیه دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ چه استواء ده په
عرش باندے او ید، وجهه، ساق، قدم وغیره دی تاویلونه کوی او دا رنګ
حدیث دَ اثبات دَ رفع الیدین په مانځه کښ سیوا دَ تکبیر تحریمه نه دَ هغے
تاویل کوی په لاس لړے کولو سره دَ خیل ځائے نه. هرچه تلبیس دے
په شبهاتو باطلو سره دَ هغے مثالونه هم ډیر دی لکه چه تخصیص دَ عامو
ایاتونو کوی په شبه دَ سبب نزول سره یعنی دَ سبب دَ نزول دَ وجے نه دَ ایت

تخصیص کوی۔ دارنګ عمل په ایت او حدایث باندے نه کوی په بهانه ذ نسخ سره او حال داچه هغه نسخ ئے په دلیل شرعی سره ثابت نه وی۔ دارنګ حمل ذایاتونو ذ صفاتِ الٰهیه په معنی مجازی باندے کوی په شبهه ذ تجسیم سره یعنی چه معنی حقیقی واخستلے شی په طریقه ذ سلفِ صالحینو بغیر ذ بیان ذ کیف نه) نو مبتلاء وائی چه دا ذا هل تجسیم کار دے۔

وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ، دا طریقه ذ اضلال ذ عوامو خلقو ده چه حق ورته معلوم نه وی او علماء تربینه حق پټ کړی نو ذ دینه ئے منع اوکړله۔ او په دے کښ دوه احتمالونه دی اول داچه دا عطف دے په تلبسوا باندے ذ لَا ذ لا تلبسوا ئے داخل دے او حال ذ جزم کښ دے دویم داچه په حال ذ نصب (زور) کښ دے په تقدیر (پټولے) ذ آن سره او په دے کښ جمع کول ذ تلبیس او کتمان منع دی اګرچه هر یو جدا جدا هم منع دے لیکن اول احتمال غوره دے ځکه چه په هغې کښ منع ذ هر یو مستقلاً ثابت ده۔

**سوال:**۔ هر کله چه کتمان ذ حق مطلقاً او مستقلاً منع او حرام دے نو په څه وجه سره ذ هغې نه لا حداف دے او ذ لا تلبسوا ذ لا ندے ئے داخل کړیدے؟

**جواب:**۔ اشاره ده چه تلبیس مستلزم دے کتمان ذ حق لره اګرچه کتمان ذ حق ذ پاره نورے طریقے هم شته دے لیکن اهلِ علموکښ ذ حق ذ کتمان ذ پاره اکثر طریقه ذ تلبیس استعمالیږی۔

او الْحَقَّ کښ رسالت ذ اخری نبی صلی الله علیه وسلم او ذ هغه صفتونه چه په مخکښ کتابونوکښ ذکر وُو داخل دی سره ذ نورو مسائیلو ذ دین اسلام نه۔

**تنبیه:**۔ دا دلیل دے چه کتمان ذ حق غټ ګناه دے او ذ دے ذکر په قرآن کریم کښ په مختلف طریقو سره دے اول نهی او زجر لکه په سورة آلعمران ۱۸۷ او سورة بقره ۱۴۶ کښ۔ دویم په طریقه ذ زجر او تخویف سره لکه په سورة بقره ۱۵۹ کښ۔ دریم نهی ذ کتمان ذ بعضِ حق نه لکه په سورة بقره ۲۲۸ کښ۔ څلورم چه دا عمل ذ نفاق دے لکه په سوره نساء ۳۷ کښ۔ پنځم منع ذ کتمان ذ شهادت نه (چه حق وی) لکه سورة بقره ۱۴۰ او ۲۸۳ کښ۔ او په احادیثوکښ هم ذ دے ډیر قباحتونه ذکر دی۔

وَأَنْتُمْ تَعْلَمُونَ په مفعول ذ دے کښ دوه احتمالونه دی اول لفظ ذ حق نو دا خطاب هغه علماؤ ته دے چه حق پیژنی او پټوی ئے ذ عناد یا ذ مداهنت

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا

او پابندی کوئ دَ مانځه او ورکوئ زکوٰة او رکوع کوئ

مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾ اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ

سرهٔ دَ رکوع کوونکو نه . آیا حکم (بیان) کوئ خلقو ته په نیکئ کولو سره

یا دَ دنیا پرستئ دَ وجے نه، دویم احتمال دا دے چه تاسو پیژنئ چه تلبیس او کتمان کښ گناه دے دَ گمراه کولو دَ خلقو او ضرر دے هغوی ته او قرطبی وئیلی دی چه دا قید (دَ علم) دَ پاره دَ تغلیظ دے یعنی دَ جهل دَ وجے نه هم دا کار گناه ده لیکن سرهٔ دَ علم نه غټه گناه ده.

۴۳ په دے آیت کښ درے اوامر دی. ربطیئ دا دے چه مخکښ دعوت دَ ایمان او طریقے دَ حفاظت دَ ایمان ذکر شوے اوس اعمال ذکر کوی دَ پاره دَ تکمیل او دَ تاکید دَ ایمان. اول اقامت دَ مونځ او دَ دے بیان او تفصیل په تفسیر دَ ۳ کښ تیر شویدے او دا عبادت بدنیه دے. دویم ورکول دَ زکوٰة او دا عبادتِ مالیه دے او دا دلیل دے چه مونځ او زکوٰة په دین دَ بنی اسرائیلو کښ هم فرض وُ لیکن دلته روستو دَ دعوت دَ ایمان بالقرآن نه اشاره ده چه اوس مونځ او زکوٰة په طریقه دَ آخری نبی صلی الله علیه وسلم سره کوئ.
اٰتُوا دا دَ ایتاء نه اخستلے شویدے او دا صیغه په قرآن کښ په ورکولو دَ مالونو او نورامورِ محسوسه او امورِ معقوله او منزله کښ استعمال شوے ده. په مالونو کښ لکه سورة بقره ۱۷۷ او امورِ محسوسه لکه په سورة اعراف ۱۹۰ سورة نمل ۳۶ او امورِ معقوله لکه سورة نساء ۳۷ او سورة محمد ۱۷ او امورِ منزله لکه سورة هود ۲۸ او سورة مریم ۳۰ او سورة بقره ۸۷ او سورة اسراء ۱۰۱، نو معلومه شوه چه صیغه دَ ایتاء په مالونو پورے خاص نه ده لکه چه منکرینو دَ حدیث (پرویز یانو) په آیت دَ "وما اتاکم الرسول" په تفسیر کښ داسے وئیلی دی. او دا سے دا صیغه په تملیك پورے خاص نه ده لکه چه بعضِ احنافو وئیلی دی چه ایتاء دلالت کوی په تملیك با ندے (په اباحت کښ مستعمل ده لکه سورة بقره ۱۷۷) نو دا تخصیص کول بے دلیله دے. نو تملیك په زکوٰة کښ شرط کول په دلیل دَ ایتاء سره صحیح نه دی.
الزَّكٰوةَ دا په لغت دَ عرب کښ پاکوالی ته وئیلے شی که ظاهری وی او که

باطني دي لکه په سورة کهف ۸۱ او سورة مريم ۱۳ او په معنی شرعي سره په څلور طريقو سره ذکر کړے شوي دے۔ اول په صيغه د امر سره نهه کرته نو په دے سره فرضيت د زکوٰة ثابت شو۔ دويم دا د صفاتو د اهل ايمان نه دے لکه په سورة بقره ۱۷۷ ، ۲۷۷ وغيره۔ دريم دا فرض دے په مخکنو امتونو کښ لکه په ملت د عيسیٰ عليه السلام کښ په سورة مريم ۳۱ او په ملت د اسماعيل عليه السلام کښ په سورة مريم ۵۵ او په ملت د بنی اسرائيلو کښ سورة بينه ۵ او په ملت د ټولو انبياء عليهم السلام کښ لکه په سورة انبياء ۷۳ کښ۔ او څلورم فائده د زکوٰة چه هغه لس دي اول دا د نيکو اعمالو نه دے (سورة بقره ۱۷۷) دويم دا سبب دے د اجر عند الله (سورة بقره ۲۷۷) دريم دا سبب د حصول د جنتونو او د تکفير د سيئاتو دے (سورة مائده ۱۲) څلورم دا وصف د هغه چا دے چه حقدار د دوستانے کولو وي (سورة مائده ۵۵) پنځم دا سبب د حصول د رحمتِ خاصه دے (سورة اعراف ۱۵۶) شپږم دا سبب دے د عصمت د دم او د عصمت د مال (سورة توبه ۵ ، ۱۱) اووم دا سبب د فلاح دے (سورة مؤمنون ۴) اتم دا سبب د زيا توالي دے (سورة روم ۳۹) نهم دا د صفاتو د محسنون نه دے (سورة لقمان ۴) لسم د دے پريښودل د اوصافو د مشرکانو نه دي (سورة حٰم سجده ۷)۔

وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ، ماده د رکوع په قرآن کريم کښ ديارلس کرته ذکر ده په اوو وجوهو سره اول وجه امر په رکوع سره مؤمنانو ته (سورة الحج ۷۷)۔ دويمه وجه صفت د مؤمنانو (سورة توبه ۱۱۲)۔ دريمه امر مريم عليها السلام ته (سورة آلعمران ۴۳)۔ څلورمه صفت د صحابه کرامو (سورة فتح ۲۹)۔ پنځمه وجه صفت د داؤد عليه السلام (سورة ص ۲۴)۔ شپږمه تعلق د رکوع کوؤنکو د بيت الله سره (سورة بقره ۱۲۵ سورة حج ۲۶)۔ اوومه انکار د مشرکانو د رکوع کولو نه (سورة مرسلات ۴۸)۔

فائده ۱: رکوع په لغت کښ سر او ملا ګکولو ته وئيلے شي اوبښکته والی نه هم وئيلے شي او انقياد ته هم وئيلے شي او په اصطلاح د شريعت کښ سر او ملا برابر کوزول په نيت د عبادت سره نو دلته مراد د رکوع نه په نيز د اکثر مفسرينو رکوع شرعي ده۔

سوال :- مخکښ اقيموا الصلوٰة ذکر شو په هغے کښ رکوع داخل وه نو دوباره ئے

رکوع والے ذکر کړله؟ - **جواب ع۱** یهودیانو او مشرکانو به رکوع بدګنړله نو د اهتمام د هغے د پاره ئے امر مستقل ذکر کړو - **جواب ع۲** بعضو وئیلی دی چه په مونځ د یهودیانو کښ رکوع مشروع نه وه نو اوس هغوی ته ئے امر او کړو لیکن دا قول ضعیف دے په دلیل د دے سره چه مریم علیها السلام ته امر د رکوع شوے دے په سورة آل عمران ۴۳ کښ شته دے او هغه خو د بنی اسرائیلو نه ده نو معلومه شوه چه رکوع په هغوی کښ مشروع وه لیکن هغوی پریښودلے وه - **جواب ع۳** د بعضو علماؤ په قول سره مراد د رکوع نه مونځ دے په طریقه د ذکر د جزء اهم او مراد ترینه کل دے لیکن بیا د تخصیص د دے لفظ د پاره وجه په اول جواب کښ ذکر ده - دویم قول دا دے چه مراد د رکوع نه معنی لغوی (سر ښکته کول او انقیاد کول حکم د الله تعالیٰ ته) دے او ابن کثیر دیته اشاره کړیده چه د مؤمنانو سره په هر خائسته عمل کښ شریک شئ.

مَعَ الرّٰكِعِيْنَ معانی د مع مخکښ ذکر کړے شوے دلته په نیز د بعضو مفسرینو معیت د عمل او د زمان او مکان مراد دے نو مراد د دینه مونځ د جماعت دے او د دینه بعضو علماؤ دلیل نیولے دے په فرضیت د مونځ د جماعت باندے او قرطبی د ابن عبد البر نه نقل کړیدی چه مونځ په جماعت سره فرض کفائي دے او وئیلی دی چه دا قول صحیح دے او قرطبی په تفسیر کښ احکام د صلوٰت بالجماعت په تفصیل سره ذکر کړیدی هغه او ګورئ. او په نیز د بعض اهلِ علمو مراد د معیت نه اشتراک او مشابهت دے په وصف د رکوع او د صلوٰت او انقیاد شرعی کښ اګر که جماعت سره نه وی یعنی کوم خلق چه الله تعالیٰ ته رکوع کوی او مونځ کوی او شرعی تابعداری کوی نو تا سو د هغوی په شان کوئ یعنی دغه وصف په ځان کښ پیدا کړئ -

فائده ع۲ الرّٰكِعِيْنَ اګرچه عام دے هغه چا ته چه وصف د رکوع په هغوی کښ موجود وی په عقیده او په عمل کښ لیکن دلته د دے اول مصداق نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام رضی الله عنهم دی نو اشاره ده چه مونځ او رکوع او انقیاد په شان د نبی صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو کوئ او دا صحیح مسلک او مذهب دے په دلیل د حدیث "مَا انا علیه واصحابی" نو معلومه شوه چه مونځ ایزده کوئ د احادیثو مرفوعه او موقوفه صحیحو نه او مونځ په طریقه د نبی صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو کوئ او دلالت کوی

وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَاَنْتُمْ تَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ط

او هیروئ ځانونه خپل او (حال دا چه) لولئ تاسو کتاب۔

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿٤٤﴾ وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ

نو ایا عقل نه لرئ تاسو۔ او مدد حاصل کړئ په صبر کولو

په دے باندے حدیث صحیح "صَلُّوْا کَمَا رَاَیْتُمُوْنِیْ اُصَلِّیْ"۔

تنبیه:۔ بعض تحریف معنوی کوونکی د دے جملے په ذیل کښ وائي چه زمونږ په جماعت کښ داخل شئ او په جماعت سره ژوند تیروئ او دا ښکاره تلبیس دے ځکه چه مراد د دینه جماعت د نبی صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو دے نو چه کوم جماعت او د هغے افراد په رښتیا سره د نبی صلی الله علیه وسلم او د صحابه کرامو تابعداروی نو هغه پکښ داخل دی که په هر نوم سره معروف وی۔

﴿٤٤﴾ په دے ایت کښ زجر (زورنه) دے په عمل نه کولو سره د علم نه۔ ربط ئے د مخکښ ایت سره دا دے چه یهودو علماؤ دعوی کوله چه دا تیرشوی اوامر نواهی خومونږ منلی دی نو مونږ ته ولے دعوت د هغے راکوئ؟ حاصل جواب دا دے چه دا اگرچه تاسو منئ لیکن عمل ورباندے نه کوئ۔ مفسرینو لیکلی دی چه علماؤ یهودو به خپلو خپلوانو او دوستانو (چه ایمان ئے په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے راوړے وو) ته وئیل چه په دغه دین باندے کلک شئ لیکن پخپله ئے نه منلو۔ دا رنگ د تیر شوی اوامرو او مناهی به ئے د تورات نه خلقو ته بیان او وعظ کولو لیکن پخپله ئے په هغے باندے عمل نه کوؤ نو الله تعالی دوی ته په دے باندے زورنه ورکوی، لیکن دا حکم د دے امت علماؤ ته هم شامل دے په اتفاق د مفسرینو سره یعنی چه کوم عالم خلقو ته د حق دعوت کوی او کتاب الله او سنت ته بلنه کوی لیکن پخپله په هغے باندے عمل نه کوی هغه هم په دے ایت کښ داخل دے او په دے باره کښ ډیر احادیث ابن کثیر رانقل کړیدی۔

اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ همزه د استفهام تقریری توبیخی دے۔ تَاْمُرُوْنَ مراد د دینه خاص صیغه د امر نه ده بلکه امر کولو، ترغیب ورکولو، دعوت کولو ټولو ته شامل ده۔ النَّاسَ مراد د دے نه عوام خلق دی۔ بِالْبِرِّ دا لفظ په

قرآن کریم کښ اته کرته ذکر دے امام راغب په مفردات کښ وئیلی دی چه بِرّ وسعت کول دی په خیر کښ او په لغت کښ مطلق وسعت او فراخئ ته وئیلے شی نو دا لفظ هر طاعت او عمل شرعی او ایمان بالرسول او بالقرآن او مونځ او زکوٰة وغیره ته شامل دے او تفسیر کړے په قرآن کریم کښ په سورة بقره ۱۷۷ کښ په لسو امورو سره او په ۱۸۹ کښ په یو صفت سره او سورة آل عمران ۹۲ کښ په یو وصف سره ذکر دے او ترغیب په تعاون کولو په بِرّ او جرګے کول د بِرّ د پاره په سورة مائده ۲ او سورة مجادله ۹ کښ ذکر دی۔

وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ ماده د نسی (ن س ی) په قرآن کریم کښ پنځه څلویښت کرته ذکر ده۔ نسیان په لغت کښ په معنی د هیرولو دے یعنی مقابل د حفظ او د ذکر دے او د دے وصف نه الله تعالیٰ پاک دے په دلیل د سورة مریم ۶۴ او سورة طٰهٰ ۵۲ سره او په کومو څلورو آیاتونو کښ چه الله تعالیٰ ته د نسیان نسبت شوے دے (سورة اعراف ۵۱، سورة توبه ۶۷، جاثیه ۳۴، سورة بقره ۱۲۶) نو د هغے نه مراد پریښودل دی۔ دارنګ د بندګانو په صفت کښ دا په دوه معانو سره دے اوله معنی هیرول بے اختیاره لکه په سورة کهف ۶۳، سورة یوسف ۴۲، سورة طٰهٰ ۱۱۵ او دغه ګناه نه دے او دویمه په معنی د پریښودلو دے په قصد سره او هغه د ګناه په ځائے کښ په ډیرو آیاتونو کښ ذکر دے لکه چه په دے آیت کښ هم په معنی د پریښودلو سره دے۔ لیکن په تعبیر د نسیان سره ذکر کولو کښ اشاره ده چه څوک دا ترک همیشه کوی نو دا سے دی لکه چه هیروی یئ۔ اَنْفُسَكُمْ جمع د نفس ده، او مفرد په قرآن کریم کښ یو سل څلویښت کرته او جمع په نفوس او انفس سره یو سل پنځوس کرته ذکر دے او د دے مصداقات دولس دی اول نفس په معنی د شخص د انسان لکه په سورة بقره ۴۸، ۲۳۳ کښ وغیره۔ دویم په معنی د آدم علیه السلام لکه په سورة نساء ۱ کښ۔ دریم په معنی د بدن د انسان لکه په سورة مائده ۴۵ کښ۔ څلورم په معنی د جنس لکه په سورة اعراف ۱۸۹ او سورة بقره ۸۴ او سورة روم ۲۱ کښ۔ پنځم په معنی د پټ قوت په انسان کښ چه هغه په درے قِسمه دے۔ اول نفس امّاره بالسوء (وسوسے اچوونکے) لکه په سورة یوسف ۵۳ کښ دویم نفس لوّامه (توبه کوونکے روستو

دګناه نه) لکه سورة قیامه ٢ کښ دریم نفس مطمئنه لکه په سورة فجر ٢٧ کښ.
شپږم په معنی د قلب (زړه) دے لکه په سورة یوسف ۶۸ او سورة نساء ۶۴ کښ.
اووم صفت د الله تعالیٰ لکه په سورة مائده ۱۱۶ او سورة انعام ۱۲ کښ. اتم په معنی
د شهوت نفسانی لکه په سورة یوسف ۲۳ کښ. نهم په معنی د روح (ساه)
لکه په سورة توبه ۵۵ او سورة تکویر ۷ او سورة زمر ۴۲ کښ. لسم نسبت
د بعض صفاتو نفس ته لکه وسوسه کول (په سورة ق ۱۶) او یولسم په معنی شح (حرص)
(سورة حشر ۹) او دولسم په معنی تسویل (خائسته کول د ګناه) لکه په سورة طٰهٰ ۹۶ کښ.
فائده:- همزه د استفهام د زورنے اګرچه په سر د تَأْمُرُوْنَ النَّاسَ کښ داخل
دے لیکن اصلی محل د هغے تَنْسَوْنَ دے یعنی په امر کولو په نیکئ باندے زورنه
ورکول نیشته بلکه زورنه په خپله عمل نه کولو باندے ده. نو که یو انسان
امر په نیکئ سره کوی لیکن په خپله عمل نه کوی نو اول کار ئے ګناه نه دے
بلکه دویم کار ئے ګناه دے او که یو شخص دواړه کارونه نه کوی نو ډبل ګناهګار به وی.
سوال:- هر کله چه محل د زورنے تَنْسَوْنَ دے نو د څه وجے نه ئے په تَأْمُرُوْنَ
باندے همزه داخل کړے دے؟
جواب:- تَأْمُرُوْنَ کښ اشاره ده چه دوی په نیکئ باندے علم لری
لیکن سره د علم نه عمل نه کوی نو په دے کښ مزید قباحت ته اشاره
ده نو سبب د زیادتِ قباحت امر بالبِرّ ذکر دے وجے نه هغه ئے اول ذکر کړو.
وَاَنْتُمْ تَتْلُوْنَ الْکِتٰبَ په دے جمله کښ مقصد زیادت د تقبیح دے.
سوال:- په اوله جمله (اَتَأْمُرُوْنَ النَّاسَ) کښ د دوی علم ته اشاره وه
لکه چه مخکښ ذکر شول او اَنْتُمْ تَتْلُوْنَ کښ هم علم د هغوی ته اشاره
ده نو دا خو تکرار دے؟
جواب:- هلته عام علم د دوی ته اشاره ده او دلته خاص علم مراد دے
چه هغه علم د قباحت او د عذاب د هغه چا دے چه مخالفت د قول لری
د عمل نه او بِرّ پریږدی او بد عملئ کوی او دا عذاب او قباحت په
تورات کښ ذکر وو لکه چه په قرآن کښ هم ذکر دے او دوی به دغه
ایاتونه د تورات لوستل او بل دا چه په دے کښ اشاره ده هغه قسم
علماؤ ته چه تورات ئے پریښودلے نه وو ضدا و عنادکښ پابند نه وو
او د دے وجے نه به ئے امر د بِرّ (نیکئ کولو) خپلوانو او دوستانو ته کوؤ.

وَالصَّلٰوةِ ؕ وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ ﴿۴۵﴾

او په مونځ کولو سره. او یقینًا دا کار ضامخا گران دے مگر په عاجزي کوونکو (نه دے گران).

اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ داهم ډیره زورنه ده دغه کارکوؤنکوته یعنی هر کله چه یو انسان بل ته خیر ښائي او ځپله په هغې باندے عمل نه کوی نو دا تناقض دے او تناقض مستلزم دے نیشتوالی دَ عقل لره. ما ده دَ عقل په لغت کښې دلالت کوی په منع باندے او په معنی دَ علم سره هم استعمالیږی او فعل دَ دے دلالت کوی په چلولو دَ عقل باندے دلته ډیر توجیهات دی اوله توجیه داچه عقل په معنی دَ منع سره دے او مفعول ئے پټ دے معنی دا ده "ایا تاسو خپل ځانونه دَ داسے قبیح حال نه نه منع کوئ" (قرطبی) دویمه داچه عقل په خپله معروفه معنی سره دے او فعل کښې معنی مصدری مراد ده معنی فعلی مراد نه ده نو مفعول ته غواړی معنی داچه "ایا ستاسو عقل نیشته" (بیضاوی) دریمه توجیه عقل په معنی دَ علم سره دے او مفعول ئے پټ دے معنی داچه "ایا تاسو نه پوهیږئ په قباحت دَ دے عمل باندے" (مدارک) او دے ته عقل چلول وئیلے شی.

۴۵ دا معطوف دے په مخکښې اوامرو او نواهیو باندے نو خطاب دے بنی اسرائیلوته او وجه دَ ربط ئے دا ده چه یهودیان دَ صلٰوة زکٰوة وغیره تیر شوی احکامو اقرار کوونکی وُو په دے دلیل باندے چه دا بِرّ (نیکی) ئے نورو خلقوته ښیا تو لو لیکن په خپله ئے عمل نه کوؤ دَ محبت دَ سردارئ دَ وجے نه او دَ مال دَ وجے یا دَ یرے دَ مخالفت کولو دَ عوامو دَ دوی نه نو دوی ته او ئیلے شو چه وَاسْتَعِيْنُوْا الخ دَ دغه ماموراتو او منهیا تو دَ عمل کولو دَ پاره امداد حاصل کړئ په صبر کولو سره دَ لذ توتو نفسانیو نه (چه مال او جاه او مشری وغیره دی) (خازن). نو استعانت نه مراد دلته حصول دَ عون (مدد) دے په عمل دَ صبر او صلٰوة سره مراد دَ دے نه دعا غوښتل نه دی په وسیله دَ صبر او صلٰوة سره اگرچه دا قول بعض مفسرینو ذکر کړے دے او دا وسیله په عمل کولو سره هم مطلوب ده په شرع کښې. یا په دے خطاب کښې مؤمنان هم داخل دی معنی دا ده چه عون حاصل کړئ په پوره والی دَ حاجا تو کښې دَ الله تعالٰی نه په صبر کولو او مونځ کولو سره. دا رنګ عون حاصل کړئ په مقابله دَ بلا یا او مصائبو کښې په صبر کولو سره

په مصائبو باندے۔ دا رنګ عون حاصل کړئ په حق ښکاره کولو باندے په صبر او صلوٰة سره۔

بِالصَّبْرِ ماده دَ دے په قرآن کریم کښ درے دَ پاسه سل کرته ده او هغه دوه قسمه دے یو قسم صبر مذموم، یعنی صبر په ناکاره کار یا ناکاره حالت باندے او دا په پنځه آیاتونو کښ ذکر دے سورة بقره ۱۷۵، سورة فرقان ۴۲، سورة حٰمٓ سجده ۲۴، سورة ص ۶، سورة طور ۱۶۔ دویم قسم صبر محمود دے هغه په باقي آیاتونو کښ ذکر دے او هغه څلور قسمونه دے اول صبر په مصیبتونو باندے که اختیاری وی لکه صبر دَ ابراهیم علیه السلام په اور باندے یا غیر اختیاری وی لکه صبر دَ یعقوب علیه السلام په روکیدلو دَ یوسف علیه السلام باندے۔ دویم صبر دے په طاعتونو او عبادتونو باندے یعنی په هغے باندے پوخ پاتے کیدل سره دَ مشقت نه۔ دریم صبر کول (منع کیدل) دَ ګناهونو نه۔ څلورم صبر ځان منع کول دی دَ لذاتو دنیوؤنه چه هغه سبب دَ حصول دَ لذاتونو اخرویو دے۔ دلته دا لفظ څلورو وارو قسمونو ته شامل دے لکه چه ابن کثیر او خازن ذکر کړیدی۔ او ابن قیم الجوزیه په مدارج السالکین ص۱۵۲ ج۲ کښ وئیلی دی چه صبر بندول دَ نفس دی دَ فریاد کولو او خفګان نه او بندول دَ ژبے دی دَ شکایت کولو دَ الله تعالیٰ نه او بندول دَ اندامونو دی دَ پریشان کیدلو نه۔ او وئیلی دی چه صبر په قرآن کریم کښ په شپاړس وجوهو سره ذکر دے۔ اول امر کول په صبر سره (سورة نساء ۲۰۰)۔ دویم منع کول دَ ضد دَ صبر نه لکه ولا تستعجل لهم۔ ولا تولوهم الادبار۔ لا تبطلوا اعمالکم۔ فلا تهنوا ولا تحزنوا دا ټول مقابل دَ صبر دی۔ دریم ثناء کول دَ صابرینو لکه (سورة البقره ۱۷۷)۔ څلورم ذریعه دَ محبت الٰهیه، والله یحب الصابرین (سورة العمران ۱۴۶)۔ پنځم سبب دَ معیتِ خاصه دَ الله تعالیٰ (سورة بقره ۱۵۳) شپږم خیریت دَ صبر (سورة نحل ۱۲۶)۔ اووم ذریعه دَ جزاءِ دَ ښائسته عملونو (سورة نحل ۹۶)۔ اتم سبب دَ بے حسابه اجر (سورة نحل ۹۶)۔ نهم مطلق بشارتِ الٰهیه (سورة بقره ۱۵۵)۔ لسم وعده دَ الله تعالیٰ په نصرت او مدد سره (سورة آلعمران ۱۲۵)۔ یوولسم حکم دَ اولوالعزم کیدلو په اهل صبر باندے (سورة آلعمران ۱۸۶)۔ دولسم ثواب دَ ایمان او اعمالِ

صالحه په صبر سره حاصليدل (سورة حم سجده ۳۵). دیارلسم انتفاع په آیاتونو الهیو او عبرت اخستل کار د صبر والو دے (سورة ابراهيم ۵، سورة سبا ۱۹). څوارلسم فوز او نجات حاصليدل او جنت ته داخليدل په سبب د صبر سره دی (سورة رعد ۲۴). پنځلسم سبب د حصول د امامت دینیه (سورة سجده ۲۴). شپاړسم یوځائے کول د صبر د مقاماتِ ایمانیه او اسلامیه سره. یقین او ایمان او تقوی او توکل او شکر او عمل صالح او رحمت (د دے سره یے صبر ذکر کړے دے په مختلف آیاتونو کښ).

وَالصَّلٰوةِ سوال:- صبر په عام معنی سره شامل دے صَلٰوة ته نو بیا یے صَلٰوة ولے ذکر کړو؟

جواب ۱:- دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه د وجے د ډیر اهتمام نه یعنی د دین د پوخوالی او د مصیبتونو د پاره لوئے علاج مونځ کول دی لکه په سورة هود ۱۱۴ او سورة عنکبوت ۴۵ کښ دی دا رنګ په حدیث د ابوداؤد کښ دی چه كَانَ رسول الله صلى الله عليه وسلم اِذَا حَزَبَهٗ اَمْرٌ صَلّٰى. وَ فِی رِوَايَةٍ فَزِعَ اِلَى الصَّلٰوةِ (د رسول الله صلى الله عليه وسلم عادت وو چه کله به تکلیف ورکوو هغه لره څه کار نو مونځ به یے کوو او مانځه ته به یے میلان کوو). جواب ۲:- صلٰوة په معنی د دعا سره دے (قرطبی).

جواب ۳:- مجاهد وئیلی دی چه دلته صبر په معنی د روژے سره دے.

جواب ۴- خازن او مدارک وئیلی دی چه مراد د دے نه صبر کول دی په تکالیفو د صلٰوة باندے.

وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ په مرجع د ضمیر د اِنَّهَا کښ قرطبی اته اقوال نقل کړیدی لیکن غوره په هغے کښ اول قول دے چه دا راجع دے صلٰوة ته یا شپږم قول دے چه ضمیر استعانت ته راجع دے چه مصدر دے په ضمن د اسْتَعِيْنُوْا کښ. لَكَبِيْرَةٌ دا ماخوذ دے د كَبُرَ عَلَيْهِ نه په معنی د ثِقل او دروند والی سره دے یعنی مونځ کول یا صبر او مونځ دواړه په عامو نفسونو باندے ګران او درونه کار دے.

اِلَّا عَلَى الْخٰشِعِيْنَ په دے کلام کښ مقصد ترغیب ورکول دی صفت د خشوع پیدا کولو ته یعنی دا صفت سبب دے د آسانتیا د صبر او صلٰوة د پاره نو معلومه شوه چه دا صفت ډیر ضروری دے. الْخٰشِعِيْنَ د خشوع نه

اخستلے شویدے او دا مادہ په قرآن کریم کښ اوولس کرته په صیغه فعل او د اسم فاعل سره ذکر دہ په لسو وجوهو سره اول صفت د انبیاء علیهم السلام لکه په سورة انبیاء ۹۰ کښ دویم په صفت د صالحینو او صالحاتو کښ په عام اوقاتو کښ لکه په سورة احزاب ۳۵ کښ، دریم صفت د مؤمنانو په حالت د مونځ کولو کښ لکه په سورة مؤمنون ۲ کښ. څلورم په صفت د صالحینو اهل کتابو کښ (سورة آل عمران ۱۹۹). پنځم په صفت د نیکانو علماؤ کښ په وخت د اوریدلو د قرآن کریم کښ (سورة بنی اسرائیل ۱۰۹). شپږم صفت د مجرمانو په قیامت کښ (سورة شوری ۴۵). اووم صفت د سترګو د هغوی په ورځ د قیامت (سورة قمر ۷، سورة قلم ۴۳، سورة معارج ۴۴ سورة نازعات ۹). اتم په صفت د مخونو د هغوی په ورځ د قیامت (سورة غاشیه ۲). نهم صفت د آوازونو په ورځ د قیامت کښ (سورة طٰهٰ ۱۰۸). لسم صفت د زمکے (سورة حم سجدہ ۳۹). نو معلومه شوه چه خشوع په لغت کښ سکون او تذلل او عاجزئ ته وئیلے شی. د زمکے سکون دادے چه اوچه وی بوټی تری نه راوخی په دے معنی سره په حم سجده ۳۹ کښ او د سترګو خشوع داده چه ذلیلے او ښکته وی لکه دا صفت د مجرمانو دے په ورځ د قیامت کښ. او د آواز خشوع چپ کیدل د صوت دی. او د شریعت په اصطلاح کښ یو هیئت دے په نفس کښ چه د هغے نه سکون او تواضع په اندامونو کښ پیدا کیږی (قرطبی). نو معلومه شوه چه خشوع په اصل کښ صفت د زړه دے او ثمره د هغے په اندامونو باندے ښکاره کیږی چه هغے ته خضوع وئیلے شی او اثریځ په ژبه باندے ښکاره شی چه هغے ته تضرع وئیلے شی. د حذیفه رضی الله عنه نه روایت دے چه د خشوع د نفاق نه ځان بچ او ساتئ هغه داده چه په بدن ظاهری کښ عاجزی ښکاری خو په زړه کښ خشوع نه وی (مدارج). او د ابراهیم نخعی نه ثوری روایت کړیدے چه خشوع دا نه ده چه اوچه ډوډئ خوری او زړے جامے اغوندی او سر ئے ټیټ کړے وی خشوع داده چه مالدار او غریب ورته په حق کښ مساوی ښکاری او په هر فرض کښ الله تعالیٰ ته عاجزی کوی. دلته ابن کثیر د خاشعین څلور معانی ذکر کړیدی. تصدیق کوونکی د ما انزل الله - مؤمنان یقینی - یره کوونکی د الله تعالیٰ د غضب او

الَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ

(دا عاجزي كوونكي) هغه كسان دي چه يقين كوي چه يقيناً دوى به مخامخ كيږي د رب خپل سره

وَاَنَّهُمْ اِلَيْهِ رٰجِعُوْنَ ﴿۴۶﴾ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

او يقيناً دوى خاص هغه ته ور گرځيدونكے دي ـ اے اولاد د يعقوب عليه السلام

عذاب نه . تواضع كوونكي . يعني دا ټول صفتونه په يكښ جمع وى نو په دا سے صفت والو باندے صبر او صلوٰة او هر عبادت د دے وجے نه آسان وى چه دوى په هغے كښ اُميد د رضا د الله تعالىٰ او د ثواب لرى او په پريښودلو د هغے كښ يره د عذاب د دنيا او د آخرت كوى او په چا كښ چه دا صفات نه وى نو په هغه باندے عبادت درو ند او گران وى ـ

۴۶ دا صفت د الْخٰشِعِيْنَ دے ـ صفت موضحه يعني وضاحت كوى د معنى د خاشعين يا صفت په مقام د علت كښ دے يعني د خشوع د پيدا كيدلو سبب يقين كول دى په بعث بعد الموت باندے ـ

يَظُنُّوْنَ ، ظن دلته په نيز د ډيرو مفسرينو په معنى د يقين سره دے په دے قرينے سره چه ورپسے اَنَّ د تاكيد د پاره راغلى دے او وجه دا ده چه ايمان په آخرت په ظن (گمان) سره نه حاصليږي بلكه ايمان په مرتبه د يقين پورے خاص دے او نسفى او امام رازى وئيلى دى چه دا په خپله معنى دے يعني توقع او طمع كول ليكن دا په هغه وخت چه د مُلٰقُوْا رَبِّهِمْ نه مراد حصول د ثواب وى ـ

**فائده** :- ابن جرير وئيلى دى چه عرب كله يقين مسمّٰى كوى په ظن سره دا رنگ شك هم مسمّٰى كوى په ظن سره او دا تسميه د څيز ده په نوم د ضد د هغه سره او ابن جرير او ابن كثير په سند صحيح سره د مجاهد نه روايت ذكر كړے دے چه هر ظن په قرآن كښ علم دے او قرطبى وئيلى دى چه ظن په اصل كښ شك دے سره د ميلان نه يو جانب ته او واقع كيږي په ځائے د يقين كښ ليكن په هغه څيز كښ چه محسوس او حاضر نه وى او ابن قيم مدارج السالكين ص ۳۸۸/۳ كښ وئيلى دى چه علم يقيني مخكښ د مشاهدے د معلوم نه مسمّٰى كيږي په ظن سره او دا ظن علم يقيني دى ليكن د خبر او د معائنے (مشاهدے) په مينځ كښ ضرور فرق وى لكه چه

حدیث کښې وارد دی لَیْسَ الْخَبَرُ کَالْعِیَانِ۔
فائدہ:- مادہ دَ ظن پہ قرآن کریم کښې نهہ شپیتہ کرتہ ذکر دہ پہ مختلفو طریقو سرہ۔ اولہ طریقہ ناکارہ او ناجائز گمان او هغہ شپږ دیرش کرتہ ذکر دے او هغہ وصف دَ کافرانو او منافقینو دے۔ دَویمہ طریقہ ظن پہ مقابل دَ علم او یقین کښې لکہ پہ سورۃ جاثیہ ۳۲ سورۃ نجم ۲۸، سورۃ بقرہ ۷۸ سورۃ نساء ۱۵۷ کښې۔ دریمہ طریقہ چہ پہ ظن سرہ حق نہ ثابتیږی لکہ پہ سورۃ نجم ۲۸ او سورۃ یونس ۳۶ کښې۔ څلورمہ طریقہ امر پہ اجتناب کولو سرہ دَ ظن نہ سورۃ حجرات ۱۲۔ پنځمہ طریقہ ظن پہ صفت دَ انبیاؤ او مؤمنانو کښې یوؤلس کرتہ لکہ پہ سورۃ یوسف ۴۲، سورۃ انبیاء ۸۷ سورۃ ص ۲۴ سورۃ الحاقہ ۲۰ سورۃ الجن ۵ ۱۲ او نور آیاتونہ هم دی۔
اَنَّهُمْ مُّلٰقُوْا رَبِّهِمْ، مُلٰقُوْا دَ لقاء نہ ماخوذ دے او مادہ دَ لقاء پہ قرآن کښې اتہ دیرش کرتہ ذکر دہ او دَ هغې مختلف وجوہ دی اولہ وجہ اِلتقاء اولیدل لکہ سورۃ بقرہ ۷۶، سورۃ آلعمران ۱۱۹ او نور آیاتونہ۔ دویمہ وجہ دیدار دَ اللہ تعالیٰ پہ جنت کښې (سورۃ احزاب ۴۴)۔ دریمہ وجہ ترغیب دَ حصول دَ لقاء اللہ (سورۃ انعام ۱۵۴، سورۃ رعد ۲، سورۃ کهف ۱۱۰ سورۃ عنکبوت ۵) څلورمہ وجہ دا دَ صفاتو دَ مؤمنانو نہ دے (سورۃ بقرہ ۲۴۹، سورۃ هود ۲۹)۔ پنځمہ وجہ زجر پہ انکار دَ لقاء اللہ باندے (سورۃ انعام ۳۱، سورۃ یونس ۴۵، سورۃ کهف ۱۰۵) او نور آیاتونہ۔ شپږمہ وجہ عنوانات دَ لقاء، اول تعبیر لقاء اللہ ولقاءنا یوؤلس کرتہ، دویم لقاء دَ رب اتہ کرتہ، دریم لقاء الیوم الآخر والآخرۃ یوؤلس کرتہ، څلورم لقاء الحساب یو کرت، نو معلومہ شوہ چہ لقاء پہ معنی دَ دیدار اِلٰهی او پہ معنی دَ بعث او وقوف دَ پارہ دَ حساب پہ ورځ دَ قیامت او پہ معنی دَ مرګ سرہ استعمالیږی۔ نو پہ دے آیت کښې هم اقوال دی دَ مفسرینو۔ اول قول، مراد دَ دینہ ملاقات دَ جزاء او دَ حساب او دَ رب دے (قرطبی)۔ دویم قول دیدار دَ اللہ تعالیٰ پہ آخرت کښې (خازن)۔ دریم قول ملاقات دَ ثواب دَ رب تعالیٰ نہ (مدارک)۔ کہ اولہ معنی مراد وی نو یَظُنُّوْنَ پہ معنی دَ یقین سرہ دے او کہ دویمہ یا دریمہ معنی وی نو یَظُنُّوْنَ پہ معنی دَ توقع او امید لرلو سرہ دے۔
وَاَنَّهُمْ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ اِلَیْهِ ضمیر راجع دے رب تہ یا جزاء تہ او مراد پہ دے

اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ

یاد کړئ (په شکر کولو سره) نعمت زما هغه چه ما انعام کړیدے په تاسو باندے

وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۷﴾ وَاتَّقُوْا

او یقیناً غوره والے درکړیدے ما تاسو ته په ټول مخلوق (د زمانے ستاسو) باندے - او اویریږئ

جملے سره دا دے چه په ورځ د قیامت اختیارمند د جزاء صرف الله تعالیٰ دے

یا مراد د دینه عقیده د بعث او د جزاء ده -

**فائده:-** په دے ایت کښ دوه توجیهات دی اول داچه داحال د هغه چا دے چه هر وخت خشوع کوونکی دی او دا سبب د دوام خشوع دے. دویم داچه داحال د هغه چا دے چه خشوع په مونځ کښ کوی نو دا سبب د پیدا کیدلو د خشوع فی الصلوٰة دے یعنی طریقه د خشوع د مونځ دا ده چه ځان په داسے حالت کښ ګڼړی چه ګویا که الله تعالیٰ مخامخ وینی او خیال کوی چه دا زما اخری مونځ دے او په دے پسے مرګ دے پشان د هغه حدیث صحیح اَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ (چه عبادت د الله تعالیٰ داسے کوه چه ګویا که الله تعالیٰ لره ته وینے) -

۴۷ د دے ایت نه تر ۹۶ پورے د دے حصے څلورم باب دے په یکښ اول ذکر د هغه انعاماتو الٰهیو دے چه حاصل شویدی په صحیح خلافت قائم کولو سره په بنی اسرائیلو کښ او بیا ذکر د هغه قبائحو د بنی اسرائیلو دے چه سبب او ګرځیدلو د پاره د انتقال د خلافت د دوی نه بنی اسماعیلو (عربو) ته او په دے باب کښ شپږ قسمه د خطابا تو دی - خطاب اول تر ۶۲ پورے په دے کښ خطاب خاص دے بنی اسرائیلو ته د پاره د ترغیب او د تخویف اخروی بیا ذکر داته انعاما تو خاصو دے په سبب د ایمان او د اتباع د موسیٰ علیه السلام سره او دوه عذابونو د وجے د ناشکرئ د نعمتونو نه او په اخر کښ تتمه د خطاب ده په ترغیب ورکولو سره ایمان او عمل صالح ته او پریښودل د صرف دعوے کولو د دین سماوی نو په دے ۴۷ ایت کښ خاص خطاب دے بنی اسرائیلو ته -

**سوال:-** داسے خطاب مخکښ تیر شویدے نو دوباره راوړلو کښ څه فائده ده ؟ -

يَوْمًا لَّا تَجْزِىْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا

(دعذاب) دغه ورځې نه چه نه به شي دفع کولے هيڅ نفس د بل نفس (مجرم) نه د هيڅ عذاب

وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا

او نه به قبليدے شي د دغه نفس نه څه سفارش کول او نه به اخستے کيږي د دغه نه

عَدْلٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ

څه بدله (مالي) او نه به دوی سره امداد کيدے شي. او کله چه بچ کړي مونږ تاسو

جواب:- هلته مقصد په خطاب کښ امتثال دا وامرو او اجتناب د منهياتو وو او دلته مقصد تذکير د نعمتونو دے د پاره د شکر کولو. دويم دا چه هلته ذکر د ترغيب وو د وجے د نعمتونو نه او دلته مقصد تخويف دے د وجے د ناشکرئ کولو نه. دريم دا چه هلته مقصد ذکر د نعمتونو وو په موجوده بنی اسرائيلو باندے او دلته مقصد ذکر د هغه انعاماتو دے چه د دوی په مشرانو باندے وو اگرچه نعمتونه په مشرانو باندے نعمتونه وی په کشرانو باندے.

اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ د دے تفسير مخکښ تير شو يدے او د دے نعمتونو تفصيل روستو ذکر دے.

وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ دا ذکر د خاص نعمت دے روستو د ذکر د عام نه ځکه چه دا نعمت لوئے دے د ټولو نعمتونو نه او ذکر د فضليت دے او مراد د دے نه اسباب د فضليت دی چه هغه رسولان ليږل او غټ کتابونه راليږل دی په بنی اسرائيلو کښ (ابن کثير). په دليل د سورة مائده ۲۰ او قول دا ابو العاليه دے چه مراد د دينه ملك او رسولان او کتابونه منزله دی او په دے اسبابو د فضيلت کښ آخری امت د هغوی سره شريک دے نو په فضيلت کښ دا اُمت د بنی اسرائيلو سره برابر دے او په سبب د نورو نعمتونو خاصو د دے اُمت سره دا اُمت د هغوی نه اوچت دے په فضيلت کښ. نو معلومه شوه چه العالمين نه مراد د دے اُمت نه علاوه نور خلق دی ځکه چه د دے اُمت خيريت (غوره والے) په سورة آلعمران ۱۱۰ کښ او سورة بقره ۱۴۳ کښ ذکر دے. نو په دے جمله

کښ مقصد ترغیب دے استقامت ته په اسبابو د فضیلت باندے چه هغه توحید او ایمان دے په آخری رسول او په آخری کتاب باندے چه قرآن دے.
۴۸ په دے آیت کښ تخویف اخروی دے روستو د ترغیب نه. حاصل دا دے چه په ورځ د قیامت په هغه څلورو طریقو (چه په دنیا کښ د نجات د پاره استعمالیږی) سره نجات نشی حاصلیدلے نو د نجات د پاره طریقه صِرف ذکر د نعمتونو دے په طریقه د توحید او اتباع رسول سره
وَاتَّقُوْا يَوْمًا، دلته تقویٰ په معنی د خوف او خشیت سره ده او يَوْمًا دلته مفعول بِهٖ دے په حذف د مضاف سره یعنی عَذَابَ يَوْمٍ او د یوم نه مراد ورځ د آخرت ده په قرینه د روستو صفتونو سره.
لَا تَجْزِىْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْـًٔا دا نفی د اولے طریقے د نجات ده په دنیا کښ هغه دا ده چه کله یو انسان غیر مجرم د مجرم نه عذاب دفع کړی په طریقه د ضمانت د نفس یا ضمانت د مال سره په دنیا کښ نو دا طریقه په آخرت کښ نه چلیږی. لَا تَجْزِىْ، جزی په معنی د قضا سره ده حق ادا کولو ته وئیلے شی- او په معنی د کفٰی (کفایت کول او نائب کیدل) او په معنی د اغنیٰ (دفع کول) او بعضِ اهلِ لغت فرق کړے دے چه جزٰی (مجرد) په معنی د قضا دے او اجزٰی (مزید) په معنی د اِغناء او کفایت کولو دے. نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ اول نفس غیر مجرم دے او دویم مجرم مراد دے. او سورة لقمان ۳۳ کښ مثال د نفس ئے په ولد او والد سره ذکر کړے ځکه چه د هغوی په مینځ کښ قربت او شفقت د ټولو خلقو نه ډیر دے. شَيْـًٔا دا مفعول بِهٖ دے یعنی هیڅ حق د حقوقو نه. یا مفعول مطلق دے یعنی هیڅ حصه د قضا او کِفَايَت او اِغنا نه. حاصل د جملے دا دے چه په ورځ د قیامت هیڅ یو نفس د بل نفس د طرف نه هیڅ حق نشی ادا کولے او د هغه په ځائے باندے هیڅ نیابت او کفایت هم نشی کولے او د هغه نه هیڅ تکلیف او مصیبت نشی دفع کولے.
وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَاعَةٌ دا نفی د دویمے طریقے د نجات ده. لفظ د شفاعت په قرآن کښ دیارلس کرته ذکر دے او ماده د دے بغیر د دے لفظ نه اتلس کرته ده. ش ف ع دلالت کوی په جوړئ کیدلو باندے نو شفا (د چا د پاره سفارش کول دی د پاره د مدد د هغه یا د بچ کولو د مصیبت نه هغه لره)

په دے کښې هم معنی د جوړه کیدلو راځی نو شفیع په معنی د مددګار او د مصیبت نه بچ کوؤنکی ته وئیلے شی. او قبولیت په اصل کښې اثر مرتب کول دی په څه کار باندے او کله په معنی د صحت سره راځی لکه په حدیث صحیح کښې دی لَا تُقْبَلُ صَلٰوةٌ بِغَیْرِ طُهُوْرٍ (نه صحیح کیږی مونځ بغیر د اودس نه) نو دلته هم مراد معنی د صحت ده یعنی شفاعت به نه وی د کافر د پاره نو قبولیت به ئے څنګه اوشی. مِنْهَا ضمیر نفس اول ته راجع دے چه هغه مؤمن غیر مجرم دے او دویم نفس نه مراد کافر دے.

فائده ۱ نفی د شفاعت په پنځو طریقو سره ذکر ده. اول د نفی د وجود د شفاعت د کافر د پاره (سورة اعراف ۵۳، سورة شعراء ۱۰۰، سورة انعام ۵۱ ۹۴، سورة سجده ۴، سورة غافر ۱۸، سورة روم ۱۳، سورة بقره ۲۵۴). دویمه طریقه نفی د اغناء (سورة یٰسٓ ۲۳، سورة نجم ۲۶). دریمه طریقه نفی د نفع (سورة بقره ۱۲۳، سورة مدثر ۴۸، سورة طٰهٰ ۱۰۹، سورة سبا ۲۳). څلورمه طریقه نفی د ملکیت (سورة مریم ۸۷). پنځمه طریقه نفی د قبولیت (سورة بقره ۴۸).

فائده ۲ ذکر د شفاعت په پنځو وجوهو سره دے. اول شفاعت د بندګانو په کورنئ کښې (سورة نساء ۸۵). دویم نفی د شفاعت بغیر د استثناء نه په مجلس ایاتو کښې. دریم نفی سره د استثناء نه په اووه ایاتو کښې په لفظ د اِلَّا لِمَنْ ارْتَضٰی. او مِنْ بَعْدِ اِذْنِهٖ. اِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا. اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهُ الرَّحْمٰنُ. اِلَّا لِمَنْ اَذِنَ لَهٗ. اِلَّا مَنْ شَهِدَ بِالْحَقِّ. اِلَّا مِنْ بَعْدِ اَنْ یَّاْذَنَ اللّٰهُ لِمَنْ یَّشَآءُ وَیَرْضٰی. او په دے ټولو کښې مراد توحید والا دی که شفیع وی او که مشفوع لهٗ وی. څلورم اختیار د شفاعت خاص دے الله تعالیٰ پورے (سورة زمر ۴۴). پنځم تقبیح د شفعاؤ په شرک کولو سره یا په کارونو د شرک سره (سورة روم ۱۳، سورة انعام ۹۴ سورة یونس ۱۸ سورة زخرف ۸۶).

فائده ۳ مذهب د اهل سنت والجماعت دا دے چه شفاعت د شافعینو په اذن د الله تعالیٰ سره حق دے د پاره د هغه موحدینو چه ګناه کبیره ئے کړے وی یا ګناه صغیره. قرطبی وئیلی دی چه په دے کښې احادیث متواتره معنیً وارد دی او اجماع د سلفو صالحینو د اُمت هم ده (اوزه وایم) چه هغه ایاتونه

د قرآن کریم چه په هغې کښې قید د استثناء موجود دے ځکه د مستثنیٰ د پاره مصداق ضروری دے او هغه مؤمنان دی او معتزله، خوارج، اباضیه وغیره باطلې فرقې انکار کوی د شفاعت د ټولو اقسامو نه سیوا د یو قسم نه چه روستو ذکر کیږی هغوی دلیل نیسی د ایاتِ مطلقه نه چه په هغې کښې نفی د شفاعتِ عامه ده لیکن دوی ړانده دی د مقیدو ایاتونو نه چه مخکښې ذکر شول۔ نو د مقیدو ایاتونو نه معلومه شوه چه په عام ایاتونو کښې مراد د نفی نه شفاعت دے د پاره د مشرکانو یا بے اجازته شفاعت کول۔ او دا مسئله د شفاعت موجود ده په شرح عقیدة الطحاویه او شرح فقه اکبر او په نورو کتابونو د عقیده د اهلِ سنت کښې۔

فائده ۴ ذکر د اقسامو د شفاعت :- ابن ابی العز په شرح د عقیده طحاویه کښې لیکلی دی چه شفاعتِ حقّه په اته قسمه دے اول شفاعتِ عظمیٰ چه مختص دے په خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم پورے هغه د دے د پاره چه الله تعالیٰ حساب شروع کړی د خلقو سره او د هغې په باره کښې صحیح حدیث وارد دے۔ دویم قسم شفاعت د هغه چا د پاره چه نیکئ او بدئ ئے برابر وی نو شفاعت ورله جنت ته د دخول د پاره دے دریم قسم شفاعت د هغه مؤمنانو د پاره چه امر شوے وی د هغوی په باره کښې د دخول د نار جهنم نو شفاعت د دے د پاره دے چه د اُور نه بچ شی۔ څلورم قسم شفاعت دے د پاره د پورته کیدلو د درجاتو په جنت کښې روستو د دخول د جنت نه او دا قسم شفاعت په نیز د معتزلو هم ثابت دے۔ پنځم قسم شفاعت د پاره د دے چه داخل شی جنت ته بے حسابه۔ شپږم شفاعت د پاره د بعضِ مشرکانو د پاره د تخفیف د عذاب او دا مختص دے په ابوطالب پورے او خاص کړے شوے د ایاتونو د نفی د شفاعت نه د پاره د کافرانو۔ اووم شفاعت د پاره د ټولو مؤمنانو د دخول د جنت۔ اتم شفاعت د پاره د هغه مؤمنانو چه د گناهونو د وجے نه اُور ته داخل شوی وی او سوزیدلے وی بغیر د اندامونو د سجدے کولو نه او دا ټول قسمونه په صحیح احادیثو سره ثابت دی د دے نه انکار کول جهل او عناد او بدعتِ اعتقادیه دے او کله کله رسول کوی کفر ته

فائده ۵ دا مخکښې ذکر شوی اقسام د آخرت سره تعلق لری او هرچه

عقیده لرل د شفاعت کولو د انبیاء یا صالحینو بزرګانو دی په دنیا کښ او دیته مسئله د توسل هم وئیلے شی نو په هغے کښ تفصیل دے او هغه مونږ ذکر کړے دے د تفسیر د سورة مائده لاندے په ایت وابتغوا الیه الوسیلة کښ هغه اوګورئ۔

وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ دا نفی د دریمے طریقے د نجات موندلو ده چه هغه فدیه او جرمانه ادا کول دی چه مجرم ئے پخپله ورکړی یا بل څوک ئے د هغه د طرف نه ورکړی۔ وَلَا يُؤْخَذُ، اخذ اکثر استعمالیږی په مالونو کښ او عدل هم د قبیلے د مالونو نه دے د دے وجے نه دلته ئے اخذ ذکر کړو۔ مِنْهَا دا ضمیر هم راجع دے نفسِ اول ته او دا راجح قول دے او احتمال شته چه راجع شی دویم نفس ته۔ عَدْلٌ دا ماده په قرآن کښ اته ویشت کرته ذکر ده په اصل کښ برابر والی ته وئیلے شی لکه په سورة مائده ۹۵ کښ دا معنی لغوی ده او دلته په معنی د فدیئے او جرمانے سره دے چه هغه برابر ګڼړلے شی د جرم سره او د هغے ذکر په (سورة بقره ۱۲۳ او سورة آلعمران ۹۱ او سورة مائده ۳۶ او سورة انعام ۷) کښ دے او قرآن کریم کښ د دے نه علاوه په نورو معنو سره هم ذکر دے، اول په معنی د حق پوره ادا کولو سره لکه په سورة بقره ۲۸۲ کښ۔ دویم په معنی د ځان بچ کولو د ګناهونو کبیرو نه او د اصرار کولو نه په صغیره باندے (سورة مائده ۹۵)۔ دریم کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم (سورة نساء ۵۸)۔ څلورم برابری په الوهیت کښ (سورة انعام ۱)۔ پنځم رشتیا وئیل (سورة انعام ۱۵۳)۔ شپږم فیصله او عمل کول (سورة اعراف ۱۵۹)۔ اووم د حق نه اوړیدل (سورة نمل ۶۰)۔

فائده:۔ قرطبی د عَدل او عِدل په مینځ کښ په دوه طریقو سره فرق ذکر کړے دے اول دا چه په زور د عین سره په معنی د فدیئے او په زیر د عین سره په معنی د مِثل (مساوی) دے۔ دویم دا چه عدل هغه څیز دے چه د بل څیز سره په قیمت او قدر کښ برابر وی اګر چه د هغه د جنس نه نه وی او عِدل هغه دے چه برابر وی په جنس او جِرم (جوسه) کښ۔

وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ دا نفی د څلورمے طریقے د نجات موندلو ده په دنیا کښ۔ چه د مجرم د خلاصولو د پاره د هغه تابعداران او دوستان وغیره خپل

مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ

دَ فرعونیانو نه چه رسول ئې تاسو ته بد عذابونه ،

يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ط

حلالول ئې ځامن ستاسو (چه کوم پیدا به شو) او ژوندی ئې پریخودے (بے حیا یئی له) زنانه ستاسو

وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۴۹﴾

او په دے (مصیبتونو) کښ امتحان وو ستاسو د رب د طرف نه (امتحان) لوئے۔

زور او قوت استعمال کړی او هغه لره په زور سره نجات ورکړی دا سے په اخرت کښ نشی کیدلے۔ هُمْ ضمیر دویم نفس ته راجع دے په اعتبار د معنی د هغے سره چه جمع ده۔

سوال :- په مخکښ جملو کښ مفردات ذکر کړے دی او په دے جمله کښ ضمیر او صیغه د جمع ذکر ده؟ - جواب :- د جزاء او شفاعت او عدال ورکولو په وخت کښ یو شخص هم کافی کیږی لیکن د نصرت په مقام کښ ډله او ګڼره پکار وی نو د هغے سره مناسب جمع ده۔

ماده د نصرت په قرآن کریم کښ په ډیرو معانو سره ده اوله معنی اسباب د غلبے پیدا کول که اسباب ظاهری وی او که روحانی وی لکه په (سورة آل‌عمران ۱۲۳ او سورة نصر ۱ کښ)۔ دویمه معنی بچ کول هر کله چه د هغے نه روستو حرف د مِن راشی (سورة انبیاء ۷۷)۔ دریمه معنی ملګرتیا کول او ډله کول (سورة اعراف ۱۵۷ سورة حشر ۱۲)۔ څلورمه معنی جهاد فی سبیل الله کول (سورة محمد ۷)۔ پنځمه معنی غلبه ورکول (سورة بقره ۲۵۰، ۲۸۶، سورة آل‌عمران ۱۲۶)۔ شپږمه معنی بدله اخستل (سورة غافر ۵۱)۔ او ومه معنی قوت او زور استعمالول دلته دا اخری معنی مراد ده یعنی دوی په هیڅ قوت او زور سره نشی بچ کیدلے۔ او خازن دا سے معنی لیکلے ده لَا يُمْنَعُوْنَ مِنَ الْعَذَابِ (نه به شی بچ کیدلے د عذاب نه)۔ او قرطبی او نسفی معنی کړیده په معونت امداد کولو سره۔ او ابن کثیر وئیلی دی چه نه به دوی هیڅوک چه د دوی د وجے نه په غضب شی او دوی لره خلاص کړی د عذاب نه۔

۴۹ په دے ایت کښ دا اول نعمتِ خاصه دے په بنی اسرائیلو باندے

د هغه نعمتونو نه چه د دوی په پلارانو باندے شوی وُو په سبب د عقیدے د توحید او د اتباع د موسیٰ علیه السلام. وَاِذْ دا معطوف دے په نعمتی باندے په عطف د خاص سره په عام باندے او په دے کښ تفسیر د فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ دے. په دے کښ خطاب دے موجوده بنی اسرائیلو ته ځکه چه نعمتونه په مشرانو باندے نعمتونه وی په کشرانو باندے. نَجَّيْنٰكُمْ، د نجات یا نجوت نه اخستلے شویدے او چتے زمکے ته وئیلے شی او په عرف کښ نجات "وتل دی د تنگسیا نه فراخئ ته". په قرآن کریم کښ د نجات نسبت صرف الله تعالیٰ ته شویدے په صیغه د نجّٰا. نَجَّيْنَا. تنجی. ینجی. اَنْجا. منجوكَ. او دعا د نجات د پاره هم په الله تعالیٰ پورے خاص ده لکه په سورة یونس ۸۶، سورة شعراء ۱۱۸، سورة قصص ۲۱، سورة تحریم ۱۱ کښ نو دا دلیل دے چه نسبت د نجات ورکولو د الله تعالیٰ نه سیوا بل چاته جائز نه دے صرف په طور د نسبتِ مجازی تجارت ته نسبت شویدے په سورة صف ۱۰ کښ.
او دا نجات د بنی اسرائیلو په طریقه د هجرت د دوی او په هلاکت د فرعونیانو سره شویدے. اشاره ده چه نجات د ظالم حاکم نه خاص نعمت د الله تعالیٰ دے.

مِنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ، اٰل د یو شخص قومیانو، تابعدارو او د هغه مسلک والو ته وئیلے شی. که د هغه په اولاد کښ وی او که نه وی ځکه د دے وجے نه ځوک چه ایمان او د توحید عقیده نه لری نو هغه اٰل د محمد صلی الله علیه وسلم کښ داخل نه دی اگرکه د هغه قریب او نسبی وی (قرطبی). او د لفظ اٰل اضافت د قوم مشر ته کیدے شی او اشرافو کښ استعمالیږی او دا رنگ په وخت د اضافت د اٰل کښ په حکم د هغې کښ مضاف الیه داخل وی (جلاء الافهام لابن قیم). او اهل لفظ عام دے کلو ته یې اضافت کیدے شی لکه اهل قریه. او د هغې په حکم کښ مضاف الیه داخل نه وی قرطبی لیکلی دی چه د فرعون ځوئے، لور، پلار، تره او رور او خاندان (نزدے خپلوان) نه وُو نو د اٰل نه مراد د هغه تابعداران دی.

فِرْعَوْنَ، صحیح دا ده چه دا لقب وُو د هر بادشاه د مصر لکه چه قیصر لقب وُو د بادشاه د رومیانو او کسریٰ لقب وُو د بادشاه د فارس او د ده په نوم کښ ډیر اقوال دی قرطبی وئیلی دی قابوس. ولید بن مصعب

بن ریان او بل قول دا دے چه نوم ئے مصعب وؤ (ابن کثیر). او بعض تاریخونو کښ لیکلی دی چه نوم ئے مرنفتاح بن رعمیس ثانی وؤ۔
یَسُوْمُوْنَکُمْ، دَ سوم نه اخستلے شویدے په معنیٰ دَ اراده او نزدے کول او څکه ول او دوام (همیشوالے) او تکلیف رسول۔
سُوْٓءَ الْعَذَابِ عذاب خو هر یو قبیح او ناکاره دی نو په اضافت دَ سوء کښ اشاره ده اَشَدَّ او اَسْوَءَ (ډیر ناکاره) ته۔ دا عذابونه په ډیرو قسمونو سره وؤ دَ بعضونه ئے خادمان جوړکړی وؤ په چا باندے ئے په زور زمینداری کوله او بعضو باندے به ئے دَ غرونو نه کټے راوړلے او بعضو به کچه ښخته جوړولے او چا به پخے ښختے جوړولے او چا باندے به ئے نور کسبونه کول چه په سورة مؤمنون ۴۷ او سورة شعراء ۲۲ کښ ذکر دی۔
یُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَکُمْ دا بغیر دَ واو عاطفه نه تفسیر دے دَ پاره دَ سوء العذاب دا تفسیر دے په ذکر دَ لوئے عذاب سره ځکه چه نور عذابونه هم وؤ دَ دے وجے نه په سورة ابراهیم ۶ کښ حرف واؤ ذکر کړے دے اشاره ده نورو عذابونو ته او په سورة قصص ۴ کښ ئے دا ذبح په تفسیر دَ استضعاف (کمزوری کول) کښ ذکر کړیده او یُذَبِّحُوْنَ په شد دَ بَا سره دَ پاره دَ مبالغے او دَ کثرت دَ ذبح ده او کثرت دَ ذبح په اعتبار دَ کثرت دَ مذبوحینو سره دے۔ اَبْنَآءَکُمْ بچی په وخت دَ پیدائش کښ مراد دی او دا دَ دے دَ پاره چه یو هم دَ دوی حد دَ بلوغ او سړیتوب ته او نه رسیږی۔
وَیَسْتَحْیُوْنَ دا دویم عذاب دے په دے کښ درے احتمالات دی اول دا چه استحیاء دَ حیات نه ماخوذ ده یعنی ژوندئ ئے پریښودلے دا هم عذاب دے ځکه ډیروالے دَ زنانو او کموالے دَ نارینو سبب دَ ډیرو فتنو دے لکه چه په علاماتِ قیامت کښ په حدیث سره ثابت ده چه نارینه به لږ شی او زنانه به ډیرے شی۔ دویم احتمال دا دے چه دا دَ حیاء نه ماخوذ دے او دا صیغه په سورة احزاب ۵۳ کښ ذکر ده۔ نو معنیٰ دا ده چه حیاء به ئے اخستله دَ زنانو نه یعنی دَ بے حیایئ کارونه ئے دَ دوی نه اخستل۔ دریم احتمال دا چه دا دَ حَیَا (مقصور) نه اخستلے شوے دے (شرمګاه دَ ښځے ته وئیلے شی) یعنی دَ زنانو دَ شرمګاهونو به ئے تفتیش کوؤ چه آیا دَ دوی څه بچے شوے دے او که نه۔

نِسَآءَكُمْ بنات یې نه دے وئیلے ځکه چه اوله معنی یا تلا ے چه بنات به یې ژوندۍ پریښودلے تو هغه به نساء شولے او په روستو دوا ړو احتمالونو سره لفظ دَلویو زنا تو سره مناسبت لری۔

فائده:۔ دَ دے خاص عذاب ورکولو سبب څه وو؟ په دے کښ درې اقوال دی اول هغه دے چه ابن کثیر په حدیث الفتون (تفسیر سورة طٰه کښ) ذکر کړیدے چه بنی اسرائیلو دَ انبیاؤ دَ اخبار دَ وجے نه په کورنۍ کښ داسے مذاکره کوله چه الله تعالیٰ به زمونږ په قوم کښ یو داسے سړے پیدا کوی چه دَ هغه په وجے سره به دَ فرعونیانو حکومت ختم شی او زمونږ دولت به قائم شی نو فرعون چه کله بادشاه شو او دا خبره دهٔ دَ بنی اسرائیلو نه واؤریدله نو هغه دَ دے خبرے تصدیق په دے وجے سره اوکړو چه دا کورنۍ دَ نبوت ده دوی رشتیا وائی۔ دویمه وجه قرطبی خازن ابن کثیر وغیره لیکلے ده چه فرعون خوب کښ اولیدل چه اور دَ بیت المقدس نه راؤوتلو او په کورونو دَ قبطیانو دَ مصر کښ داخل شو او دَ بنی اسرائیلو کورونه ترینه بچ شول نو تعبیر کوؤنکو داسے تعبیر اوکړو چه په بنی اسرائیلو کښ به یو شخص پیدا کیږی او ستا حکومت به ختم کړی۔ دریمه وجه مدارک او جلالین کښ وئیلے ده چه کاهنانو فرعون ته داسے خبر ورکړو۔ په اوله توجیه کښ تصدیق دَ حدیث او دَ خبرو دَ نبوت دے او په دویمه وجه کښ رشتینوالے دَ خوب دَ فرعون دے او خوب دَ کافر هم کله کله رشتیا وی لکه په زمانه دَ یوسف علیه السلام کښ خوب دَ بادشاه او په دریمه وجه کښ تصدیق دَ کاهنانو لازمیږی او په حدیث صحیح سره ثابت ده چه تصدیق دَ کاهن خو کفر دے نو دغه توجیه صحیح نه ده هاں که داسے اووئیلے شی (لکه چه بعض مفسرینو لیکلی دی) چه کاهنانو دَ فرعون دَ خوب تعبیر داسے اُوویستلو نو بیا دَ صحت دَ پاره څه وجه کیدے شی۔

وَفِيْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ، داما ده په اصل لغت کښ دَ پاره دَ حقیقت ښکاره کولو او دَ پاره دَ امتحان راځی او په امتحان سره هم حقیقت معلوم شی او امتحان کله په نعمتونو ورکولو سره وی دے دَ پاره چه شکر اوکړی او کله په مصیبتونو سره وی چه صبر معلوم شی۔ په اوله معنی (حقیقت معلومولو) سره په سورة یونس ۳۰ او سورة کهف ۷ او سورة ملك ۲ کښ ...

وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَا

او كله چه اوچوو موږ ستاسو (دَ تېږ كولو) دَپاره دریاب، پس بچ كړي موږ تاسو او غرق كړل موږ

اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۵۰﴾

(ټول) فرعونيان او تاسو كتل.

اوپه معنى مطلق امتحان سره كه په خير سره يا شر سره وى لكه په سورة اعراف ۱۶۸ اوسورة قلم ۱۷ كښ اوپه معنى دَ امتحان په مصيبتونو سره په سورة بقره ۱۵۵ اوپه معنى دَ امتحان په نعمتونو وركولو سره په سورة انفال ۱۷ اوسورة فجر ۱۵ كښ دے اوپه معنى دَ امتحان په احكامِ شرعيه سره لكه په سورة مائده ۴۸ او ۹۴ اوسورة بقره ۱۲۴ كښ دے. په دے ايت كښ په نيز دَ اكثر مفسرينو په معنى دَ امتحان (په مصيبتونو) سره دے اوپه دے وخت كښ ذٰلِكُمْ اشاره ده عذابونو ته اوپه نيز دَ بعضِ مفسرينو په معنى دَ نعمت سره دے او ذٰلِكُمْ اشاره ده نجات وركولو ته داروستو قول دلته راجح دے ځكه چه مقام دَ تعداد دَ نعمتونو دے.

مِنْ رَّبِّكُمْ په دے لفظ كښ اشاره ده چه هر خير او شر دَ الله تعالىٰ دَ طرف نه كڼل ضرورى دى.

**فائده:-** ابن جرير وئيلى دى چه بَلٰى يَبْلُو مجرد په شر كښ استعماليږى او اَبْلٰى يُبْلِى (مزيد) په خير كښ استعماليږى او دا قاعده اكثريه ده.

نمبر ۵ په دے ايت كښ دويم نعمتِ خاصه ذكر كوى چه هغه انجاء ده دَ غرق نه اوپه دے كښ نتيجه دَ ظلمونو دَ فرعونيانو ذكر ده او په دے كښ ذكر دَ هجرت دَ موسىٰ عليه السلام او دَ بنى اسرائيلو دے سره دَ ذكر دَ معجزے دَ موسىٰ عليه السلام نه.

وَاِذْ فَرَقْنَا، فرق په اصل كښ فصل (جدا كولو) ته وئيلے شى. دلته دَ اوبو په مينځ كښ جدا جدا حصے او برخے جوړول مراد دى چه دَ هغے نه هرے حصے ته فِرْق وئيلے كيږى لكه په سورة شعراء ۶۳ كښ. او دَ دے واقعے تفصيل په سورة اعراف ۱۳۶ ۱۳۸ اوسورة يونس ۹۰ اوسورة طٰهٰ ۷۷ ۷۸ اوپه سورة شعراء كښ دَ ۵۲ نه تر ۶۶ پورے دے.

بِكُمْ با په معنى دَ لام سره ده يا باءِ سببيه ده او مضاف پټ دے (بِسَبَبِ

إِنْجَاءُكُمْ اَوْ دُخُولُكُمْ)- اَلْبَحْرَ دالفظ په قرآن کریم کښ درے ديرش کرته او تثنيه پنځه کرته او جمع درے کرته ذکر دہ۔ مفرد په اعتبار دَ جنس سره دَ لکه په دے سورت ۱۶۴ کښ او نور هم ډیر ایاتونه دی او کله په الف لام عهدی سره یو معین څیز مراد وی لکه په دے ایت کښ۔ او تثنیه په اعتبار دَ دوه قسمو دَ بحر سره ده لکه سورة فاطر ۱۲ او سورة فرقان ۵۳۔ او جمع په اعتبار دَ ډیرو شاخونو دَ سمندر سره ده۔ او دا بحر چه په دے ایت کښ ذکر دے دا مشهور وُو په بحیرۂ قلزم سره۔ او په دے وخت کښ هغے ته بحر احمر وئیلے شی۔

فَاَنْجَيْنٰكُمْ دَ حدیث صحیح نه ثابت ده چه دا ورځ دَ نجات دَ بنی اسرائیلو ورځ دَ عاشورے وه چه یهودیانو په دَ شکر دَ پاره دغه ورځ روژه نیوله او مشرکین مکه به هم دَ هغوی دَ اقتداء یا دَ ملت ابراهیمیه دَ وجے نه دغه روژه نیوله او په اسلام کښ هم دا روژه نیول دَ اکثر اهلِ علمو په نیز باندے فرض وه لیکن بیا په رمضان سره دَ هغے فرضیت منسوخ شو او استحباب ئے باقی پاتے دے سرۂ دَ نهمے ورځے نه دَ پاره دَ دے چه مشابهت دَ یهودیانو سره رانشی۔

فائده:- په مخکښ ایت کښ نَجَّيْنَا په شد سره او په دے ایت کښ اَنْجَيْنَا په باب اِفعال سره ذکر کړو ځکه چه اول نجات باندے ډیره موده تیر شوے وه او په دویم انجاء باندے ډیر وخت نه دے تیر شوے بلکه په یو ځل ټول بنی اسرائیل دَ دریاب نه روغ را اووتل۔ او باب تفعیل دلالت کوی په تدریج باندے (چه په دمه دمه باندے کار کول وی) او بابِ افعال دلالت کوی په یو کرت کار کولو باندے۔

وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ، سوال:- بعضِ متصوفه ملحدینو دعوی کړیده چه فرعون نه دے غرق شوے او وئیلی دی چه دَ هغه ایمان قبول شوے وُو او دلیل نیسی دَ لفظ دَ ال فرعون نه چه مضافٌ اِلیه په حکم دَ مضاف کښ داخل نه وی او دا رنګ دلیل نیسی دَ سورة یونس ۹۲ نه چه فَالْيَوْمَ نُنَجِّيْكَ بِبَدَنِكَ۔ چه دَ هغه بدان دَ غرق نه بچ کړے شوے وُو؟

جواب:- دا دَ قرآن کریم دَ صریح ایاتونو نه خلاف کول دی هغه ایاتونه چه په هغے کښ دَ فرعون هلاکت مستقل ذکر کړے شوے دے دا دی سورة بنی اسرائیل ۱۰۳ سورة یونس ۹۰ سورة ذاریات ۴۰ سورة نازعات ۲۵۔ او ابن قیم په جلاء الافهام کتاب کښ لیکلی دی چه لفظِ ال چه کوم ځائے

وَإِذْ وٰعَدْنَا مُوسَىٰ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً ثُمَّ

او کله چه وعده اوکړه موږ د موسٰی (علیه السلام) سره د څلویښتو شپو (د پوره کولو) بیا

اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهِ وَأَنْتُمْ ظٰلِمُونَ ﴿۵۱﴾

اونیوو تاسو سخی لره (په خدائی سره) روستو د تللو د موسٰی علیه السلام نه او تاسو ظلم کوونکی وئ (په شرک کولو)

مضاف ذکر وی نو مضاف الیه په حکم د مضاف کښ داخل وی۔ او تفسیر د نُنَجِّيكَ بِبَدَنِكَ به انشاء الله په سورة یونس کښ راشی چه په هغې کښ د فرعون نجات د عذاب نه نه معلومیږی۔

وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ مراد د دوی نظر دے په سترګو سره د هغوی هلاکت او غرقیدلو ته۔ یا داکنایه ده د مخامخ غرقیدلو نه یعنی هغوی ستاسو په مخامخ غرق کړے شول په دے دواړو توجیهاتو کښ اشاره ده بل نعمت ته ځکه چه د دشمن غرقیدل مخامخ د خوشحالئ سبب دے۔

۵۱ په ایت کښ تمهید دے د پاره د ذکر د دریم نعمت خاصه چه هغه په وړاندے ایت کښ ذکر کوی نو په دے ایت کښ جرم د بنی اسرائیل ذکر کوی چه هغه عبادت کول د عجل دی او دا شرک دے۔

وٰعَدْنَا **سوال** :- دا باب مفاعله ده صدور غواړی د دواړه طرفو نو نه نو صدور د وعدے خو د موسٰی علیه السلام د طرف نه نیشته؟

**جواب ۱** صیغه د مزید کله په معنی د مجرد سره وی لکه عاقبت اللص او دلته بل قراءت کښ په لفظ د وَعَدْنَا (مجرد) سره دے۔

**جواب ۲** د الله تعالیٰ د طرف نه وعده وه په طریقه د امر کولو په ذریعه د وحی سره او د طرف د موسٰی علیه السلام نه قبلول او راتلل وو میقات مقرره ته نو دے ته مواعده وئیلے کیږی۔

مُوسَىٰ ذکر د دے لفظ په قرآن کریم کښ یوسل شپږ دیرش کرته شوے دے۔ او د ده نسب نامه داسے ده موسٰی ځوئے د عمران او هغه ځوئے د یصهر او هغه ځوئے د قاهث او هغه ځوئے د لاوی او هغه ځوئے د یعقوب علیه السلام او هغه ځوئے د اسحاق علیه السلام او هغه ځوئے د ابراهیم علیه السلام دے۔

أَرْبَعِينَ لَيْلَةً، تفصیل د دے په سورة اعراف ۱۴۲ کښ دے او هغه ټوله

میاشت د ذوالقعدے اولس ورځے د ذوالحجے وے۔ دَلَيْلَةً ذکر یې د دے وجے نه دے کړے چه په اسلامی (قمری) حساب کښ شپه مخکښ وی په ورځ باندے او د لفظ اَرْبَعِيْنَ نه مخکښ لفظ د اتمام یا اِنْقِضَاء پټ مراد دے۔

سوال:۔ سورة اعراف نه معلومیږی چه اوله وعده د دیرشو شپو شوے بیا لس ورباندے زیاتے کړے شوے او دلته وعده د څلویښتو ذکر ده؟۔

جواب:۔ سورة اعراف کښ په واقعه د موسیٰ علیه السلام کښ تفصیل مراد وو نو دیرش اولس یې جدا جدا ذکر کړو او په دے سورت کښ اجمال د واقعے د پاره د ذکر د نعمت مقصد دے نو دلته یې مجموعه ورځے ذکر کړے دی۔ او د مفسرینو په روایت سره معلومه ده چه په دے ورځو کښ په موسیٰ علیه السلام باندے روژے نیول هم لازم شوے وے۔ لیکن د دے نه دلیل نیول د صوفیانو د پاره د جواز د وصال او د چیلے ویستلو صحیح نه دے د وصال نه د منع د پاره صریح حدیث د نبی صلی الله علیه وسلم ثابت دے او چیله دلته د پاره د حصول د کتاب الله ده د نورو مقصد و نو د پاره داچیله نه وه او په دے کښ قیاس هم شرعًا صحیح نه دے۔

ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ، اتخاذ استعمالیږی په هغه ځائے کښ چه حقیقت د څیز یو وی او د هغه صفت بدل کړے شی دلته هم حقیقت د عجل سره زروو او دوی ورله صفت د عجل خیال اوکړو او دارنګ حقیقت د عجل حیوان (مخلوق) دے او دوی ورله صفت د الوهیت اوګڼړلو. نو دلته د اتخاذ په معنیٰ کښ دوه احتمالونه دی اول داچه اتخاذ په معنیٰ د جوړولو دے یعنی د سرو زرو د کالونه یې شکل د سخی جوړ کړو او دویم احتمال دا دے چه دلته دویم مفعول پټ دے یعنی اِلٰهًا یعنی د سخی نه یې معبود جوړ کړو او په دے وجے سره اتخاذ په سورة اعراف ۱۴۸ کښ دوه کرته ذکر کړے دے او دلته دویم احتمال غوره دے۔

سوال:۔ بنواسرائیل خو هوښیار خلق وو نو سره د عقل نه سخی ته څه رنګ اِلٰه وائی؟۔

جواب ۱:۔ قرآن کریم کښ مشرکانو ته بے عقله وئیلے شویدی اګرچه دوی د دنیا په کارونو کښ هوښیار وی۔

جواب ۲:۔ په یهودیانو کښ د مخکښ نه عقیده د حلول موجوده چه دا

ثُمَّ عَفَوْنَا عَنْكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ

بیا معافی اوکړه موږ تاسو ته روستو د دې (ګناه کولو) نه (د) وجه د توبه کولو د دې د پاره چه تاسو

تَشْكُرُوْنَ ﴿٥٢﴾ وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ

شکر اوکړئ - او کله چه ورکړو موږ موسٰی (علیه السلام) ته کتاب (تورات)

عقیده یې د یونان والو نه اخستلې وه - عقیده د حلول داسې وی چه وائي چه الله تعالٰی په یو مخلوق کښ د ننه حلول کړیدې لکه او به چه په پیو کښ ګډې شي نو هغه او بو ته پئ وئیلې شي نو د حلول د وجې نه مخلوق ته نوم د الله تعالٰی او د هغه صفتونه ذکر کوی - او عبادت د عجل په بنی اسرائیلو کښ د آل فرعون (قوم د قبط) نه شروع شوې وو د هغوی په معبوداتو کښ (غوا، غویئ، سخې) شامل وو او د هغوی په اصطلاح کښ هغې ته یې حاتور وئیلو - او قراء بغوی په تفسیر د سورة طٰه کښ لیکلی دی چه دوی عبادت د سخې داسې کولو چه هغې ته به یې چاپیره طواف کولو او ګډا (رقص) به یې کوله او داسې طریقې په هندوانو کښ هم شته او په رقص سرودونو سره عبادت کول د ملحدینو صوفیاؤ طریقه ده او دا مشابهت دې د یهودیت سره -

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ د ظلم لفظ تحقیق مخکښ تیر شویدې دلته مراد د ظلم نه شرک کول دی ځکه چه عبادت حق د الله تعالٰی دے او مشرکان هغه عبادت استعمالوی د یا ره د مخلوق نو دا ظلم عظیم دے -

٥٢ په دے ایت کښ ذکر د هغه نعمت دے چه د هغې تمهید په مخکښ ایت کښ ذکر کړے وُ چه هغه عفو د عبادت د عجل ده (چه شرک دے)-

سوال :- د شرک خو بغیر د توبې نه عفو نه کیږی په دلیل د (سورة نساء ٤٨ ، ١١٦) سره نو دلته ولې عفو اوشوه ؟ -

جواب :- د دوی د توبې امر او قبلیدل د توبې په روستو ایت ٥٤ کښ ذکر دی او الفاظ د توبې د هغوی په سورة اعراف ١٤٩ کښ ذکر دی -

عَفَوْنَا د اضدادو نه دے په معنی د ورانولو (محو کولو) سره هر کله چه د ګناه سره ذکر شي لکه په دے ایت کښ - او په معنی د زیاتولو سره لکه په سورة بقره ٢١٩ کښ او فرق په مینځ د عفو او مغفرت کښ په دوه طریقو سره دے

اول طریقه ذکر کړے ده قرطبي په تفسیر کښ چه عفو محول د ګناه دی که روستو د سزا نه وی او که مخکښ وی دا رنګ چا ته چه روستو د ګناه نه سزا معاف شی دے ته هم عفو وئیلے شی- او مغفرت پټنه د ګناه ده چه سزا ورسره نه وی- دویم فرق بقاعی په نظم الدرر کښ ذکر کړے دے هغه دا دے چه عفو رفع د عقوبت ده بغیر د رفع د ذکر د ګناه نه- او مغفرت ختمول دی د ذکر د ګناه سره د رفع د عقوبت نه- دریم فرق عفو محو کول د ګناه دی د کتاب الاعمال نه او مغفرت پټول د ګناه دی د خلقو نه-

مِّنۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ، ذٰلِكَ اشاره ده عبادت د عجل ته- سوال:- ثُمَّ هم د پاره د روستو والی دے او مِنۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ هم په روستو والی دلالت کوی نو د تکرار وجه څه ده؟- جواب:- دوه څیزونه دی یو عبادت د سخی او دویم توبه کول او عفو کول د دغه دواړه څیزونو نه روستو وه- دویم دا چه یو عمل د ګناه دے او بل وخت (زمانه) د هغے، نو روستو والے د دواړو ته مراد دے-

لَعَلَّكُمۡ تَشۡكُرُونَ، لَعَلَّ دلته د پاره د طلب دے لکه چه په ۲۱ کښ ذکر شویدی یعنی تذکیر د نعمت د پاره د طلب د شکر دے- ماده د شکر په قرآن کریم کښ درے اویا ځله ذکر ده- او دا په صفت د الله تعالیٰ کښ شپږ کرته ذکر دے او هغه په نسبت د الله تعالیٰ کښ په معنی د ښکاره کولو د نعمت دے او قبلول د شکر دی- او زجر په عدم د شکر د انسانانو دولس کرته ذکر دے- او ابن قیم په مدارج السالکین کښ وئیلی دی چه شکر په لغت کښ ظهور ته وئیلے شی لکه ظهور د اثر د خوراک په بدن کښ لکه په حدیث د مسلم کښ دی "إِنَّ الدَّوَابَّ لَتَشۡكَرُ مِنۡ لحومِهِمۡ" (حدیث یاجوج ماجوج) (څاروی او مارغان به ماړه شی د هغوی د غوښونه) او کړ دے په اصطلاح د شرع کښ ډیر تعبیرونه دی لکه چه قرطبي ذکر کړیدی (هلته دې اوګوري) او بقاعی په نظم الدرر کښ وئیلی دی چه شکر ښکاره کول د برکت د باطن دی په ظاهر باندے- او ابن قیم وئیلی دی چه شکر ظهور د اثر د نعمت د الله تعالیٰ دے په ژبه د بنده سره په ثنا وئیلو سره او په زړه د بنده په طریقه د محبت کولو سره او په اندامونو باندے په طاعت کولو سره او دے پنځه قواعد دی ۱ خضوع کول د شاکر مشکور ته- ۲ محبت کول د هغه سره- ۳ اقرار کول د نعمت د هغه- ۴ او ثناء وئیل په هغه باندے ۵ او نه استعمالول

وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۵۳﴾ وَإِذْ قَالَ

او فرق کوونکے معجزے (د حق و باطل) دے د پارہ چہ تاسو لار او مومئ۔ او کلہ چہ اووئیل

د نعمت پہ ځائے د خفگان د منعم کښ۔ نو معلوم شوہ چہ د شکر کولو دوہ ارکان دی اول رکن نسبت ښکارہ کول د نعمت منعم تہ (چہ اللہ تعالیٰ دے) او دا درجہ د توحید او د ترکِ شرک دہ او دویم رکن نعمت پہ رضا د منعِم کښ خرچ کول او دا درجہ د سنت دہ ځکہ چہ ځایونہ د رضا د اللہ تعالیٰ پہ سنت سرہ معلومیږی نو معلومہ شوہ چہ هر کفر او شرک او بدعت کول او نور گناهونہ داټولہ ناشکری دہ او پہ مقابلہ د شکر کښ پہ قرآن او سنت او عرف کښ کفران او ناشکری ذکر کیږی۔

۵۳ پہ دے ایت کښ ذکر د څلورم نعمتِ خاصہ دے پہ بنی اسرائیلو باندے (چہ هغہ تورات وو) او مناسبت ئے د مخکښ نعمت سرہ دا دے چہ د شرک نہ د بچ کیدلو د پارہ کتاب اللہ ضروری دے۔ مفسرینو ذکر کړیدی چہ تر دغہ وخت پورے پہ بنی اسرائیلو کښ د موسیٰ علیہ السلام صحیفے چلیدلے او اوس ئے ډیر ضرورت پیدا شو د پارہ د غټ کتاب۔ نو پہ زمانہ د عبادت د سخی کښ موسیٰ علیہ السلام تہ پہ میقات اول کښ تورات کتاب ورکړے شو۔

اَلْكِتٰبَ مراد د دے نہ پہ اجماع سرہ تورات دے او طریقہ د ورکولو د هغے ئے سرہ د بعضِ صفاتو نہ پہ سورۃ اعراف ۱۴۵ ۱۵۴ کښ ذکر کړیدہ۔

وَالْفُرْقَانَ دا صیغہ د مبالغے دہ د فرق نہ یعنی جدا کوونکے پہ ښہ جدا کولو سرہ۔ دلتہ مفسرینو دوہ توجیہ لیکلی دی اول دا چہ واو د پارہ د عطف د صفت دے پہ بل صفت باندے او موصوف یو دے یعنی الفرقان هم تورات دے۔ او دویم دا چہ اَلْكِتٰبَ نہ مراد تورات دے او الفرقان نہ مراد معجزات دی چہ سبب د فرق دی پہ مابین د حق او باطل کښ څہ مخکښ ذکر شول او څہ بہ روستو ذکر کړے شی۔

فائدہ :- اَلْفُرْقَان، پہ قرآن کښ اووہ کرتہ ذکر دے او د هغے پنځہ مصداقات دی اول پہ معنیٰ د تورات لکہ پہ سورۃ انبیاء ۴۸ کښ او دویم پہ معنیٰ د قرآن کښ لکہ سورۃ الفرقان ۱۔ او دریم پہ معنیٰ د فتحے او نصرت لکہ پہ سورۃ انفال ۲۹ ۴۱ کښ او څلورم معجزات د موسیٰ علیہ السلام

مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَنْفُسَكُمْ

موسٰی علیه السلام قوم خپل ته، اے قومه څما! یقیناً تاسو ظلم کړیدے په ځانونو خپلو باندے

بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوْبُوْٓا اِلٰى بَارِئِكُمْ

په سبب د نیولو ستاسو سخی لره (په خدایئ سره) پس توبه اوکړئ پیدا کوونکی خپل ته

فَاقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ

نو اووژنئ ځانونه خپل - دا توبه کول ستاسو غوره ده تاسو لره

عِنْدَ بَارِئِكُمْ ؕ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ؕ اِنَّهٗ

په نیز د پیدا کوونکی ستاسو - پس توبه ئے قبوله کړه ستاسو یقیناً

هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۵۴﴾ وَاِذْ قُلْتُمْ

خاص هغه ډیر توبه قبلوونکے او رحم کوونکے دے - او کله چه اووئیل تاسو

لکه په دے ایت کښ او پنځم نور کتابونه او صحف منزله لکه په سورة آل عمران ۳ کښ. لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ اشاره ده چه تورات ورکولو کښ مقصد طلب د هدایت وؤ او د تورات صفت هم هدایت وؤ لکه په سورة مائده ۴۴ او سورة اسراء ۲ کښ دی - او هر کتاب منزّل د الله تعالٰی نه د پاره د هدایت وی هغه خپله زمانه کښ نو بنی اسرائیل چه کله په تورات باندے په خپله زمانه کښ قائم وؤ نو خاوندان د هدایت وؤ -

۵۴ په دے ایت کښ ذکر د پنځم نعمتِ خاصه د الله تعالٰی دے په بنی اسرائیلو باندے چه هغه عفو د سزا وه روستو د ذکر د عفو د ګناه نه او مناسبت ئے د مخکښ ایت سره دا دے چه کتاب الله (تورات) سبب شو د پاره د توبے د دغه ګناه نه نو بیا سبب شو د پاره د تخفیف د عقوبت هم. لِقَوْمِهٖ لام د پاره د خطاب دے - قَوْم، قرطبی وئیلی دی چه دا لفظ جمع د اِمْرَءٌ ده بغیر د لفظ نه جماعت د سړو او زنانو ته وئیلے شی. د انبیاؤ په واقعاتو کښ یا قوم کښ دواړه جنسه (نارینه او زنانه) داخل دی او کله صرف نارینو ته وئیلے شی لکه سورة حجرات ۱۱ کښ - او قوم په عرف کښ هغه خلق دی چه نسبت ئے یو مشر ته کیدے شی په دنیوی

نسبت سره یا دینی نسبت سره ځکه چه قیام (انتظام) دَ هغه خلقو په سبب دَ هغه مشر سره وی برابره خبره ده که دَ یو نسب وی اوکه نه وی لکه قوم دَ لوط علیه السلام چه نسب کښ شریک نه وُو دَ خپل مشر (پیغمبر) سره۔
یٰقَوۡمِ داخطاب دے هغه چا ته چه عبادت دَ سخی ئے کړے دوُ۔
اِنَّکُمۡ ظَلَمۡتُمۡ اَنۡفُسَکُمۡ هرګناه کوؤنکے پخپله ثواب ضائع کړی اوځان مستحق دَ جهنم اوګرځوی او دا په ځان باندے ظلم کول دی۔ قرطبی وئیلی دی چه هرڅوک داسے عمل اوکړی چه ضرر ئے هغه ته رسیږی نو وئیلے شی چه دغه انسان دَ ځان سره بد اوکړل۔
بِاتِّخَاذِکُمُ الۡعِجۡلَ، باء دَ پاره دَ سببیت ده او دَ اتخاذ دَ پاره دویم مفعول پټ دے یعنی اِلٰهًا دا دلیل دے چه اِنَّکُمۡ ظَلَمۡتُمۡ خطاب صِرف عبادت کوؤنکو دَ سخی ته دے۔
فَتُوۡبُوۡۤا اِلٰی بَارِئِکُمۡ دا دلیل دے چه مرتد ته دعوت دَ توبے ورکیدلے شی او دارنګ توبه دَ مرتد قبلیږی۔ او په دے مسئله کښ دَ اهل علمو ډیر اقوال دی چه هغه کتاب الارتداد کښ فقهاؤ لیکلی دی۔ بَارِئِکُمۡ دا نوم دے دَ نومونو دَ الله تعالیٰ نه په قرآن کریم کښ درے کرته ذکر دے او دا دَ بَرءَ نه ماخوذ دے او په دے کښ دَ پاکوالی او دَ جدا والی معنی ماخوذ ده نو دَ بَارِیٔ معنیٰ هغه ذات دے چه پیدا کوی مخلوق پاک او بچ دَ علام تناسب دَ اندامونو نه او دَ یو بل نه جدا جدا په شکل او په اخلاقو او صفاتو کښ۔ نو په دے کښ دَ خالق او مصور نه زیاته معنی موجود ده او دا اسم ئے دَ طلب دَ توبے سره په طریقه دَ استدلال یا دَ ترغیب سره ذکر کړے دے یعنی هغه ذات چه تا سو ته ئے ښائسته او جدا جدا شکلونه درکړے دی نو دَ هغه دَ معصیت نه توبه کول ضروری دی او مدارک کښ وئیلی دی چه په دے کښ زورنه ده یعنی هغه ذات چه انسان ته ئے ښائسته صورت او صفات ورکړیدی او دغه انسان په دغه صورت او وصف سره غواته (چه بد شکل او دَ غباوت مشهور صفت لری) سجده کوی دا نهایت ظلم دے۔
فَاقۡتُلُوۡۤا اَنۡفُسَکُمۡ په دے کښ دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه توبه په زړه او په ژبے سره ده او قتل کول په طریقه دَ متمّم (پوره کوؤنکے) دَ توبے سره دے لکه چه په اُمت زمونږ کښ په قصاص کښ او په رجم

دحلاد زناکښ سرهٔ د توبے کولوته قتل متمم د توبے دے نو دا رنګ په شرع د بنی اسرائیلوکښ داسے توبه او سزا وه د شرک کوونکو (مرتدینو).
دویم قول دادے چه فَاقْتُلُوْا تفسیر د توبے او تُوْبُوْا په معنی د عزم کولو د توبے دے نو بناء په دے باندے قتل د نفس عین توبه وه په بنی اسرائیلو کښ. اَنْفُسَکُمْ د دے نه مراد خپل ځانونه دی لیکن د فَاقْتُلُوْا نه مراد ځان قتل ته سپارل دی لکه په دے قول د الله تعالیٰ کښ یا ایها الذین امنوا کتب علیکم القصاص الآیة بناء په هغه قول چه دا خطاب دے قتل کوونکو مؤمنانو ته یا مراد د اَنْفُسَکُمْ نه هم جنس دی یعنی هغه کسان چه عبادت د عجل ئے کړے وو د جنس د بنی اسرائیلو نو بناء په دے قول سره خطاب د فَاقْتُلُوْا خاص دے غیر مجرمانو ته یعنی چا چه عبادت د سخی نه دے کړے نو هغوی دِ قتل کړی عبادت کوونکو د عجل لره یا د فَاقْتُلُوْا خطاب مجرمانو ته دے او دوی مراد دی په اَنْفُسَکُمْ سره لیکن د فَاقْتُلُوْا نه مراد تقاتل دے یعنی دوی دِ کورنئ کښ یو بل لره قتل کړی.
ذٰلِکُمْ خَیْرٌ لَّکُمْ عِنْدَ بَارِئِکُمْ په دے جمله کښ ترغیب دے قتل ته د پاره د توبے کولو او په دے کښ اشاره ده چه مجرم له په سزا ورکولو کښ خیر او ډیرے فائدے دی او هغه فائدے اګر چه د ډیر وانسانانو نه پټے دی لیکن د الله تعالیٰ په تیز باندے هغه ښکاره فائدے دی.
فَتَابَ عَلَیْکُمْ د دے نه مخکښ عبارت پټ دے (تُبْتُمْ وَقَتَلْتُمْ اَنْفُسَکُمْ) نو تاسو توبه اُویستله او قتل د مجرمانو هم اوکړو یا ځانونه مو قتل ته اماده کړل نو په حکم د الله تعالیٰ باندے تعمیل اوشو نو په هغے باندے تفریع اوشوه چه فَتَابَ یعنی الله تعالیٰ ستاسو توبه قبوله کړله.
سوال:- هر کله چه عابدین عجل قتل کړے شول نو هغوی ته فَتَابَ عَلَیْکُمْ خطاب څه فائده ورکوی؟
جواب ۱ دا په طور د تذکیر د انعام دے په اولاد باندے په انعام د پلارانو سره لکه چه مخکښ خطابات و (انعاماتو) کښ هم داسے طریقه وه.
جواب ۲ دلته توبه په معنی د تخفیف سره ده لکه په سورة نساء ۹۲ او سورة توبه ۱۱۷ کښ دا معنی ده نو مقصد دادے چه الله تعالیٰ د دوی دغه سزا د قتل اسانه کړه په قتل د بعضو سره او په نسخ د حکم سره

يٰمُوسٰى لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً

اے موسىٰ (علیه السلام) هيڅکلہ به ایمان نه لرو پتا تر دے پورے چه او وینو الله تعالیٰ لره ښکاره

فَاَخَذَتْكُمُ الصّٰعِقَةُ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۵۵﴾

نو اونیوو تاسو لره تندر او تاسو کتل۔

د بعضو نورو نه یعنی چه لږ کسان قتل شو نو نورو کسانو نه سزا معاف شوه په سبب د دعا د موسیٰ او هارون علیهما السلام سره۔

سوال:۔ توبه په معنیٰ د عفو د ګناه سره خو په مخکښ ۵۲ کښ ذکر شویده نو بیا ذکر کول خو تکرار دے؟۔

جواب ۱ دا سوال دلالت کوی چه دلته د تاب نه مراد تخفیف دے په سزا کښ لکه چه په مخکښ جواب کښ ذکر شول د دے وجے نه دا نعمت مسمّیٰ دے په نعمت د تخفیف د عذاب سره۔

جواب ۲ مخکښ صرف عفو د ګناه ذکر شویده او په دے کښ طریقه د توبے او د معافئ ذکر شویده۔

تنبیه:۔ دلته مفسرینو روایاتِ موقوفه او آثار ذکر کړیدی چه په هغے کښ د بنی اسرائیلو د اویا زره کسانو قتل ذکر دے تفسیر مراغی کښ ذکر دی چه هر کله صحیح نص نیشته نو مونږ قطعی فیصله په باره د تعداد کښ نه شو کولے بله خبره دا ده چه دا د بنی اسرائیلو جوړ شوی روایات دی چه د خپل قوم د نسل برکا تو ته اشاره کوی چه دوی په لږه زمانه کښ دومره ترقی اوکړله او دا دوی په تورات (تحریف شوی) کښ په باب العدد کښ لیکلی دی اګرچه د یعقوب علیه السلام نه تر موسیٰ علیه السلام پورے ثلور پشته (په قول د ابن خلدون باندے) تیر شوے دی او په دغه مینځ کښ فرعون هم د دوی نه ډیر بچی قتل کړے دی نو په دومره وخت کښ دوی څه رنګ دومره ترقی اوکړله چه هر وخت د دوی نه اویا زره قتل کیږی او په طاعون وغیره هلاکیږی نو معلومه شوه چه دا د بنی اسرائیلو مبالغے دی د اظهار د خپل برکت د نسل د پاره۔

اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ، دا سے مخکښ تیر شوے دے او په تَوَّاب کښ اشاره ده چه الله تعالیٰ طریقے د توبے په خپله ښائی او روستو

دَ توبے نه رحمتونه په هغوی پاندے جاری ساتی۔
۵۵ په دے آیت کښ زورنه او عقوبت دَ دوی په بدو عمل باندے ذکر کوی پس دَ ذکر دَ شرک دَ دوی او دَ توبے دَ دوی نه۔ لیکن دا تمهید دے دَ پاره دَ ذکر دَ نعمت شپږم چه هغه بعث بعد الموت دے په دنیا کښ چه په راتلونکی آیت کښ ذکر کیږی۔
وَاِذْ دا لفظ دلالت کوی چه دا مستقله واقعه ده لیکن روستو دَ عبادت دَ عجل نه وه او دَ هغے بعض تفصیل په سورة اعراف ۱۵۵ کښ ذکر شویدے۔ او په ترتیب دَ دے واقعه کښ دَ مفسرینو دوه قولونه دی اول قول دا چه روستو دَ عبادت کولو دَ عجل لره دوی ته موسیٰ علیه السلام دَ توبے کولو ترغیب ورکړو نو دَ توبے دَ کیفیت دَ پاره هغه دَ دوی نه اویا مشران منتخب کړل او طور ته یے دَ دویم میقات دَ پاره بوتلل۔ هرکله چه الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام سره خبرے (وحی عمومی) او خصوصی په باره دَ توبے کښ اوکړے چه توبه دَ عبادت دَ عجل په قتل سره ده لکه چه مخکښ آیت کښ تیر شول او دغه وحی موسیٰ علیه السلام دوی ته ذکر کړله نو دوی مطالبه اوکړه دَ رویت دَ الله تعالیٰ او انکار یے اوکړو دَ تصدیق بالغیب نه۔ دویم قول دا دے چه هرکله میقاتِ اول کښ موسیٰ علیه السلام ته کتاب تورات ورکړے شو او موسیٰ علیه السلام روستو دَ واپس کیدلو او دَ توبے دَ عبادت دَ عجل نه دوی ته دَ هغه کتاب اوامر او نواهی بیان کړل نو دوی ته گران بنکاره شول او دوی اوئیل چه دا خو په موږ هغه وخت منو چه الله تعالیٰ موږ ته مخامخ داسے وینا اوکړی۔ بناء په اول قول چه مشهور دے دا قول دَ اویا کسانو دے او بناء په دویم باندے دا قول ټولو بنی اسرائیلو سیوا دَ مخلصینو نه دے۔ لیکن اول قول غوره دے په تائید دَ سورة اعراف سره۔
لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ دَ ایمان په صله کښ چه لام راشی دلالت کوی په وثوق او تصدیق لغوی باندے۔ نو دا نفی دَ تصدیق لغوی ده بل احتمال دا دے چه لَكَ په معنیٰ دَ لِاَجْلِ قَوْلِكَ دے او نفی دَ ایمان شرعی ده۔
تنبیه:- په دے کښ معلومه شوه چه بنی اسرائیل یا دغه اویا کسان په دے قول سره مرتد شول او دَ دے وجے نه الله تعالیٰ دوی له سزا دَ مرگ ورکړه لیکن په سبب دَ توبے دَ دوی او دعا دَ موسیٰ علیه السلام

سره دوی معاف کړے شو او هغه سزا د مرګ یې ترینه لرے کړله۔ او بعضو اهلِ علمو وئیلی دی چه د دوی مقصد انکار د ایمان نه نه وُو بلکه د مطالبې د تاکید د پاره او د جهل د وجے نه یې دا کلمه وئیلے وه نو مرتد نه دی لیکن سزا د دوی د وجے د بے ادبئ د الله تعالیٰ او د رسول نه ده۔

حَتّٰى نَرَى اللّٰهَ جَهْرَةً ، دا غایة مقصد د قول د هغوی دے۔ جَهْرَةً شکاره نه وئیلے شی دلته مراد عیاناً دے یعنی مخامخ د سترګو په لیدلو سره او دا قید د پاره د وضاحت د دے خبرے دے چه مراد د نَرَی نه رویت علمیه نه دے بلکه رویت د سترګو دے۔

فَاَخَذَتْكُمُ الصّٰعِقَةُ ، لفظ د اخذت یې او ئیلو نزلت یې نه دے وئیلے ځکه چه اخذ مستلزم د اهلاک دے او نزول مستلزم د اهلاک نه دے۔ الصّٰعِقَةُ ، مخکښ تحقیق د صعق تیر شوے دے خازن په دے کښ څلور قولونه ذکر کړے دی ۱ مرګ ۲ اُور نازل شو په دوی باندے او دوی یې اُوسیزل هغې ته تندر وئیلے شی۔ ۳ چغه د اسمان د طرف نه پشان د صیحے د ثمود یانو او د قوم شعیب علیه السلام او قوم لوط علیه السلام ۴ ډیر ملائیک چه د هغوی په کښاره او ریدلو یا د هغوی په لیدلو سره دوی بے هوشه شول نو مړهٔ شول د ویرے د وجے نه۔ او سورة اعراف ۱۵۵ کښ یې دے ته رجفه وئیلے ده چه هغې نه زلزله د زمکے یا هیبت د زړونو مراد دے۔

وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ مراد د دے نه نظر کول دی صاعقه ته (چه اُور وو) په وخت د راکوزیدلو کښ (مدارک)۔ یا مراد د دے نه د یو بل مړکیدلو ته کتل دی یعنی تاسو یو بل ته کتل (خازن)۔ یا مراد کتل د اثر د موت دی په روستو اولاد د دوی کښ۔

تنبیه :- معتزلو د دے ایت نه دلیل نیولے دے چه لیدل د الله تعالیٰ په دنیا او اخرت کښ محال دی او د دے وجے نه په دوی باندے صاعقه راغلله؟

جواب :- نزول د عذاب په دوی باندے د وجے د دے قول د دوی نه دُو چه لَنْ نُّؤْمِنَ لَكَ نو دا کلمه د ارتداد ده یا دوی طلب د رویت د وجے د محبت نه نه دے کړے بلکه د وجے د بے ادبئ نه یې کړیدے نو د هغې سره توهین د قول د پیغمبر یې هم کړے دے دلته دا کلام خازن ذکر کړیدے او قرطبی بحث کول روستو کړے دے۔

ثُمَّ بَعَثْنٰكُمْ مِّنْ بَعْدِ مَوْتِكُمْ لَعَلَّكُمْ

بیا ژوندی کړئ مونږ تاسو روستو دَ مرګ ستاسو نه دے دَ پاره چه تاسو

تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۶﴾ وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ الْغَمَامَ

شکر اوکړئ - او سورے کړے مونږ ستاسو دَ پاسه ورېځے

۵۶ په دے ایت کښ ذکر دَ انعام مقصد دے چه هغه ژوندی کیدل دَ دوی دی روستو دَ مرګ نه او بَعَثَ په اصل کښ پورته کولو ته اولیږلو ته وئیلے شی دلته اوله معنی مراد ده یعنی دوباره ئے دوی ته ارواح واپس کړل او ژوندی ئے راپورته کړل. او دَ موت دلته معنی حقیقی معروف ده څوک چه دلته دَ موت تاویل کوی په بے هوشئ سره یا په جهل سره نو هغه خلاف دے دَ تفسیر دَ سلفِ صالحینو نه او اخستل دَ مجاز دی سرهٔ دَ امکان دَ معنی حقیقی نه او دا دواړه باطل دی - او سورة اعراف کښ لفظ دَ اهلاک هم صریح دے دَ دوی په مرګ باندے -

فائده ۱ تفسیر ماوردی وئیلی دی چه دَ مرګ نه روستو چه څوک ژوندی کړے شی نو دَ هغوی په مکلف کیدلو کښ دوه قولونه دی. اول داچه دَ دوی نه تکلیف ساقط شوځکه چه دَ دوی ایمان اضطراری اوګرځیدو دویم قول داچه دَ دوی تکلیف باقی دے ځکه چه په دنیا کښ هیڅ عاقل دَ تعبّد نه خالی کیدلے نشی او دا قول اصح دے -

فائده ۲ په دے ایت کښ موت دَ عقوبت دے موتِ مؤجله نه دے او بعث دَ دے موت نه روستو خارق للعادت دے معجزه ده دَ موسیٰ علیه السلام او دا حاصل شوید ے په دعا دَ موسیٰ علیه السلام چه په سورة اعراف کښ ذکر شویده او په دے سورت کښ دا سے واقعات پنځه کرته ذکر دی اول داده دویم په ۷۳ دریم په ۲۴۳ څلورم په ۲۵۹ پنځم په ۲۶۰ کښ او دا ټول په طور دَ خارق للعادت سره دی یو حکمت په دے کښ دا دے چه الله تعالیٰ بندګانو ته ښکاره کوی لکه څه رنګه چه الله تعالیٰ په اُمورِ عادیه باندے قادر دے نو دغسے په امورو خلاف دَ عادت نه هم قدرت لری - او لکه چه ایمان راوړل په دوباره ژوندانه دَ ورځ دَ قیامت باندے فرض دی په دلیل دَ قرآنی ایاتونو سره نو دا رنګ ایمان راوړل په دے

وَاَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ الْمَنَّ وَالسَّلْوٰى ۭ كُلُوْا

او را اولیږل مونږ پہ تاسو باندے ترنجبین او مرزان - راوو ئیل مونږ) خورئ

مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ ۭ وَمَا ظَلَمُوْنَا

دَ پاک (مزیدار) هغے ته چه درکړی ی مونږ تاسو ته - او هیڅ نقصان اونکړو دوی زمونږ

وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٥٧﴾

لیکن دوی دَ خپلو ځانونو نقصان کوونکی وو -

واقعاتو خرق عادت باندے هم فرض دی په دلیل دَ دے ایاتو نوسره۔ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ لکه چه قبولیت دَ توبے دَ شرک نه لوئے نعمت دے نو دا رنګ قبولیت دَ توبے دَ ارتداد نه هم لوئے نعمت دے دَ دے وجے په ۵۲ او په دے ایت کښ شکر ذکر کړے شو- او لفظ دَ شکر شامل دے ټولو طاعتونو ته (لباب دَ دمشقی)۔

۵۷ په دے ایت کښ ذکر دَ اووم نعمت دے او هغه دوه قسمونه دی یو قسم مکان دَ اوسیدلو په ظَلَّلْنَا سره او دویم قسم مشروب او طعام بے تکلیفه- او ظاهر دا ده چه هر کله بنی اسرائیلو په اتباع دَ موسٰی علیه السلام کښ هجرت کړے وؤ او میدان تیه ته راغلل نو دوی محتاج وؤ ابادئ ته او ابادی نه وه نو دَ نمر دَ ګرمئ نه دَ بچ کولو دَ پاره په دوی باندے سورے دَ غمام (وریځو) الله تعالٰی جوړ کړو او دَ خوراک ځښکاک دَ پاره یئے ورله من او سلوٰی پیدا کول-

وَظَلَّلْنَا واو دَ پاره دَ عطف دَ یو واقعے دے په بله واقعه باندے او مناسبت ئے دَ مخکښ سره دا دے چه مخکښ نعمت دَ ژوندیئے ذکر کړو او په دے انعاماتو کښ بقاء دَ ژوندون ده او دَ دے نعمت ذکر په سورة اعراف ۱۶۰ کښ او په سورة طٰه ۸۰ کښ شته دے-

سوال:- تیر شوی نعمتونه یئے په اذ سره ذکر کړے وؤ او دلته یئے اذ نه دے ذکر کړے؟-

جواب:- هر تیر شوے نعمت فائده کوی حیاتِ بدنیه یا حیاتِ روحانیه نو هغه لوئے نعمتونه دی او دا خو صرف سورے کول یا خوراک ځښکاک دے

چه وقتي نعمت دے (والله اعلم)۔
وَظَلَّلْنَا عَلَيْكُمُ په دے کښې اشاره ده چه په دے غمام کښې فائده صِرف سورے کول وو باران وغیره مقصود نه وو۔
الْغَمَامَ سپینے وریځے ته وئیلے شي چه په هغے سره صِرف د نمر ګرمي او تیزه رنړا کمه شي نو ډیره تیاره نه پیدا کوي او ګرمي هم نه پیدا کوي۔ غمام په لغت کښې پټولو ته وئیلے شي په حدیث صحیح کښې راځي "وَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمُ الْهِلَالُ" (یعني چه د اولے شپے میاشت د څه وجے (علّت) نه په تاسو پټه پاتے شي)۔ نو په دے نعمت سره دوی د ابادۍ او د خیمے د تکلف نه بچ شول او د ګرمۍ د دفع کولو اسبابو ته هم محتاج نه وو۔
وَأَنْزَلْنَا عَلَيْكُمُ، راجح قول دا دے چه انزال په معنی د پیدا کولو په آسماني تدابیرو سره دے چه د زمکے ظاهري اسبابو لره په هغے کښې دخل نه وي لکه په سورة اعراف ۲۶ او سورة حدید ۲۵ کښې دي نو په میدان تیه کښې د مَنْ او سلوٰی ظاهري اسباب موجود نه وو لیکن د خرقِ عادت په طور سره پیدا کیدل۔ الْمَنَّ په دے کښې د مفسرینو ډیر اقوال دي اول قول ترنجبین، دویم جوله خوږه، دریم ګبین، څلورم خوږ شربت۔ او ابن کثیر وئیلي چه دا اقوال ټول یو بل ته نزدے دي ځکه چه هر هغه خوراک او څښاک چه الله تعالٰی احسان کړے وو په هغے سره په دوی باندے بغیر د عمل د انسان او د مشقت نه نو مَن (ترنجبین) چه یوائے او خوړلے شو نو طعام او حلوٰی وه (چه د شپے د واورے پشان په اُونو باندے نازلیدلو او خوږ وو) او چه خلط به شو د اُوبو سره نو شربت به ترے جوړ شو او که بل څیز سره به مرکب شو نو بله نوعه د خوراک به جوړه شوه۔ او بعض اهلِ علمو وئیلے دي چه په حدیث د بخاري سره ثابت دي چه د زمکے خرېړے هم د مَنْ نه دے یعني یو قسم د مَنْ د بني اسرائیلو نه خرېړي وو چه هغه هم بے تکلیفه او بغیر د تخم نه اسان طعام دے او د حدیث په شرح کښې نور اقوال هم شته دے
وَالسَّلْوٰى په دے کښې قول د ابن عباس رضي الله عنهما دے چه مرغۍ ده پشان د سمانۍ او قول د ابو العالیه دا دے چه دا نفس سمانۍ مرغۍ ده او قول د عکرمه دا دے چه دا مرغۍ د هند د ملک وه چه د چنچڼے نه غټه وي۔ او د دے نه په پښتو ژبه کښې تعبیر کیږي په مرز (بټیر) سره

چه د هغې غوښه لذیذه مفیده ده د صحت د پاره او په دا سې ملکو نو کښې پیدا کیږي
چه په هغې کښې د غنم وریشو فصلونه پیدا کیږي لیکن په میدان تیه کښې د دے
پیدا کیدل خلافِ عادت وُو او د دے حاصلول د بنی اسرائیلو د پاره اسان
کړے شوي وُو نو خو مره به چه ضرورت وُو نو دوی به راټیولے شول بعض
عوام وائي چه دا به وراته کړی مرغان راتلل او دلیل ئې پیسی د لفظ د سمانٰی نه
لیکن دا قول خطا دے بے دلیله دے او سمانٰی نوم د مرغئ دے جمع د سمین
(وریت کړی شوی) نه ده۔

سوال:- عادت دا دے چه په خوراک کښې غوښه مخکښې وی په خوږ
شیز باندے (لکه حلوه) نو دلته ئې مَنّ ولے مقدم ذکر کړو په سلوٰی باندے؟۔
جواب ۱:- هر کله چه پیدائیش د دغه دواړه شیزونو د عادت نه خلاف وُو
نو ترتیب ئې هم د عادت نه خلاف دے په طریقه د عادت د جنتیانو چه په
سورة واقعه ۲۰۔۲۱ کښې ذکر دے چه فاکهه (میوه) مخکښې ده په غوښو
باندے۔ جواب ۲:- د حلوه (خوږ شیز) راتلل د بره نه د عادت ډیر خلاف
دے او د مارغانو راتلل د بره طرف نه د عادت سره من وجه مناسب دی
نو ځکه ئې مَنّ مخکښې ذکر کړو۔

كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ، د كُلُوْا نه مخکښې لفظ د قُلْنَا پټ مراد دے او دا په
قرآن کښې په ډیرو ایاتونو کښې شته لکه په سورة رعد ۲۳ او سورة زمر ۷۳
او سورة آل عمران ۱۰۶ کښې دی۔ او كُلُوْا امر د پاره د اباحت دے او چه قید
د طیبات مراد وی نو امر د پاره د ایجاب دے او په دے کښې اشاره ده چه
ایښودل د طعام د میلمه مخے ته کافی نه دی د اباحت د پاره بلکه د امر او اذن
انتظار پکار دے (بحر المحیط)۔ مِنْ طَيِّبٰتِ مِنْ د پاره د تبعیض دے ابو حیان
وئیلی دی چه دا قول غوره دے که طیبات نه مراد صرف مَنّ او سلوٰی
وی او که عام طیبات وی ځکه چه ټول خویو انسان خوړلے نشي۔

طَيِّبٰتِ دا جمع د طیب یا د طَيِّبَتْ ده. ماده د دے په قرآن کښې پنځوس ځله
راغلے ده او د دے پنځه معانے دی. اول په معنی د حلال (سورة نساء ۳)۔
دویم په معنی د خوشحالئ د طبیعت (سورة نساء ۳ او سورة زمر ۷۳)۔
دریم په معنی د پاک (سورة نساء ۴۳)۔ څلورم په معنی د مزیدار او لذیذ
(سورة احقاف ۲۰)۔ پنځم په معنی د فائدے والا (سورة ابراهیم ۲۴)۔ او

طَيِّبٰتِ (پاکوالے) په قرآن کښ د دیارلس څیزونو په صفت کښ ذکر دے انسان، مال، بلد، قول، کلم او کلمه، حلال، صعیده، ذرّیت، مساکن، ریح، شجرة، حیاة تحیة (سلام)۔ او د حلال په صفت کښ په مقام د اکل کښ په شپږ ایاتونو کښ ذکر دے او د مرزوق سره صفت د طيبات شپارس کرته ذکر دے۔

تنبیه:- طیب چه په صفت د حلال کښ راځی نو په هغے کښ د مفسرینو اول قول دا دے چه طیب په معنی د حلال دے او تاکید دے د حلال د پاره او دویم قول دا دے چه د حلال او طیب په مینځ کښ فرق دے او ذکر د دے د تاسیس (تقیید) د پاره دے نو فرق ئے په څو وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه حلال عام دے اگر که عارضی پلیت وی او که پاک وی او طیب خاص دے په معنی د پاک سره چه هیڅ پلیتی پکښ نه وی دویمه وجه دا ده چه حلال هغه دے چه دلیل نه وی د هغے په حرمت باندے او طیب هغه دے چه په هغے کښ نشونماء او غذائیت هم وی نو کوم څیز چه پاک وی لیکن نشونماء د بدن او غذائیت پکښ نه وی لکه خاوره، ګټه، سکاره وغیره نو دا خوړل مکروه دی۔ دریمه وجه دا ده چه حلال نفسِ مباح ته وئیلے شی او طیب هغه دے چه هیڅ شبه نه وی په مقدار او په صفت او کیفیت د حصول د هغے کښ۔ او طیبت چه هر کله بغیر د لفظ د حلال نه ذکر وی نو هغه په معنی د حلال او پاک او لذات ورکوونکی سره مراد دی۔

مَا رَزَقْنٰكُمْ، ما موصله یا موصوفه یا مصدریه دے ټول احتمالات صحیح دی۔

وَمَا ظَلَمُوْنَا د دینه مخکښ په کلام کښ پټ لفظ ولا تطغوا فیه مراد دے په قرینه د سورة طٰهٰ ۸۱ او دا رنګ لفظ د طغوا یا ظلموا پټ دے او مفسرینو لیکلی دی چه دوی منع کړے شوی وو د ذخیره کولو نه او د ناشکرئ کولو نه لیکن دوی به د هغے نه ذخیره کوله نو هغه به زر سخا شو او چینجی به په کښ او شول او د خوړلو نه به بے کاره شول او د هغے وجے نه من او سلوٰی نازلیدل کم شول په دوی باندے۔ او هر کله چه وهم کیدلو چه دوی په دے مخالفت کولو سره الله تعالیٰ او د هغه نبی (موسیٰ علیه السلام) ته نقصان ورکولے شی نو جواب او شو په وَمَا ظَلَمُوْنَا سره دلته ظلم په معنی د نقص سره دے یعنی دوی په طغیان او ظلم کولو سره د الله تعالیٰ او د رسول هیڅ کمے نه دے کړے هغوی له ئے هیڅ ضرر نه دے رسولے۔

وَإِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا

او كله چه اووئيل موتږ ورننوځئ دے ښار ته نو خوراک کوئ

مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَّادْخُلُوا

دَ دے نه چرته چه غواړئ تاسو پسيارۀ او ورننوځئ

الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ

دروازے ته سجده کوونکی او وايئ کلمه دَ حطة (راوبخښه موتږ) نو اوبه بخښو تاسو ته

خَطٰيٰكُمْ ط وَسَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٥٨﴾

ګناهونه ستاسو - او خامخا زيات به کړو ثواب دَ ښائسته عمل کوونکو -

وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ، لٰكِنْ دَ استدراک دے يعني چه دوی دَ بل چا هيڅ نقصان نه دے کړے نو دَ ځان ئے کړيدے دَ هغے جواب اوشو. كَانُوْٓا په دے کښ دَ دوی عادت دَ ظلم ته اشاره ده- اَنْفُسَهُمْ دا تقديم دَ مفعول دَ پاره دَ تخصيص دَ ظلم دے په دوی پورے- يَظْلِمُوْنَ دا ظلم اول په دے وجے سره دے چه هر ګناهګار په خپل ځان باندے ظلم کوی چه دَ ځان ثواب کم کړی او ځان عذاب دَ الله تعالیٰ ته پيش کړی دويم په دے وجے سره چه هغه نعمت دَ دوی نه کم شو او حديث صحيح کښ اشاره ده چه "لولا بنواسرائيل لَمْ يَخْنَزِ اللحم (الحديث) معنی او مفهوم دا ده چه که نه وے ذخيره کول دَ بنی اسرائيلو من او سلوی لره او نه وے دَ هغے سخا کيدل او بے کاره کيدل نو اوس به هم چرے غوښه نه سخا کيدلے)- او دَ هغوی طعام خو سخا شوے وۀ دَ وجے دَ طغيان او ظلم نه او دَ دے امت طعام خو سخا کيږی دَ پاره دَ عبرت اغستلو-

۵۸ داهم دَ هغه اوامرو نه دے چه په ميدان تيه کښ واقع شوے وۀ په وخت دَ موسیٰ عليه السلام کښ او بنی اسرائيلو دَ دے امر منلو نه انکار کړے وۀ بيا روستو دَ څلويښتو کلو نو نه دَ يوشع عليه السلام په زمانه کښ دوی جهاد اوکړو او دغه قريه (بيت المقدس) ته ورغلل نو دا څلور اوامر دوی ته اوشول نو ابن کثير وئيلی دی چه په دے کښ مقصد زجر ورکول دی دوی ته په انکار کولو دَ جهاد او دخول دَ مقدسے زمکے ته. او بيا روستو

د دخول د دوی نه ارض مقدسه ته زجر او تخویف دنیوی دے دوی ته په سبب د تبدیل د دا امر و سره۔

تنبیه :- بعض مفسرینو ذکر کړیدی چه دا هم ذکر د انعام دے لکه (اللباب دمشقی) لیکن دا قول صحیح نه دے بلکه په دے اول ایت کښ ذکر د تمهید دے او روستو ایت کښ عذاب او سبب د هغے ذکر دے نو دا ذکر د عذاب اول دے په بنی اسرائیلو په مینځ د ذکر د انعاماتو کښ او هر کله چه دا او امر ذکر شوی وُو په وخت د موسیٰ علیه السلام کښ په میدانِ تیه کښ د دے وجے نه د دے عطف یے اوکړو په ما قبل واقعه باندے نو او فرمائیل یے وَاِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ په دے ایت کښ شلور او امر دی اول دوؤ کښ ذکر د نعمتونو دے او په روستو دوؤ کښ ذکر د هغه او امرو دے چه دوی مکلّف شوی وُو په هغے باندے په طور د عبادت کولو سره او بیا ذکر د دوه بشارتونو دے چه مرتب دی په مخکښ او امرو باندے۔

هٰذِهِ الْقَرْيَةَ، قریه د قری نه ماخوذ دے جمع ته وئیلے شی او په عرف کښ هغه ابادئ ته وئیلے شی چه په هغے کښ خلق د پاره د او سیدلو جمع وی که بانړه وی او که ښاروی اکثر اطلاق یے په بانړه باندے وی او کله کله یے اطلاق په ښار باندے هم کیږی۔ د دے قریئے په باره کښ د مفسرینو ډیر اقوال دی چه دا بیت المقدس، اریحا، رمله، شام، اردن، فلسطین، تدمُر، ایلیا، بلقاء او یا مصر وُو۔ لیکن ابن کثیر وئیلی دی چه صحیح دا ده چه دا قریه بیت المقدس دے۔ هر کله چه دوی په میدان تیه کښ اباد وُو نو الله تعالیٰ په دوی باندے جهاد د بیت المقدس فرض کړو لیکن دوی د هغے نه انکار اوکړو لکه چه په سورة مائده ۲۲ کښ ذکر دی نو څلویښت کاله په طور د عذاب سره په میدان تیه کښ بند شول او په دغه وخت کښ موسیٰ او هارون علیهما السلام وفات شول او یوشع علیه السلام پیغمبر شو نو هغه اولاد د بنی اسرائیلو ته د جهاد خطاب اوکړو او جهاد یے اوکړو نو دغه ملک فتح شو نو دوی ته په باره د هغه ملک کښ داخلو خطابات او شول او دوی تبدیل اوکړو نو عذاب ور باندے راغے۔ نو اول دوی په دے دخول د قریه سره مکلف شوی وُو په وخت د موسیٰ علیه السلام کښ او روستو د څلویښتو کالو نه مکلف شو په

داخليدلو باندے دغے کلي ته سرهٔ دادابونه په زمانه دَ يوشع عليه السلامُ کښ.
فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا دايځ په فاء سره ذکر کړو اشاره ده چه دخول مقصد اصلي نه دے بلکه مقصد اصلي خوراک دے په فراخئ سره. حَيْثُ شِئْتُمْ وسعت دَ مکانا تو ته اشاره ده او رَغَدًا کښ فراخئ دَ خوراک ته اشاره ده.
وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا دا امر تعبدي دے. حاکم په مستدرک کښ روايت راوړے دے چه دروازه وړه وه (کوزه۔ چيته) او طرف دَ قبلې ته وه، نو دوی په ولاړے سره نشو داخليدے بغير دَ سر کوز ولو نه. اَلْبَابَ، قرطبي وئيلي دي چه دا دروازه اوس معروف ده په بابِ حطه سره او بعضو وئيلي دي چه دَ دے نه باب التوبه، يا باب القبة مراد ده هغه قبّه چه موسىٰ عليه السلامُ هغې طرفته مونځ کوؤ او چا چه باب المسجد وئيلي دے نو دا صحيح نه ده ځکه چه هغه وخت مسجد نه وؤ اباد شوے او مسجد ته داخليدل مقصود نه وؤ هاں روستو مسجد جوړ شوے دے او روستو زمانه کښ باب الحطه دَ مسجد پوره باب دے کَ دے وجے نه (مجازًا) هغې ته باب المسجد وئيلي شويدے. سُجَّدًا دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه ابن کثير روايت ذکر کړے دے چه مراد دَ دينه حالت دَ رکوع، انحناء او تواضع دے او په روايت دَ حسن بصري کښ دي چه مراد دَ دے نه سجده معروفه ده دَ پاره دَ شکر روستو دَ دخول نه ليکن امام رازي په دے توجيه باندے رد کړے دے.
وَقُولُوا حِطَّةٌ دا امر هم امر تعبدي وؤ. او صاحب لباب وئيلي دي چه دا واؤ حاليه دے يعني داخل شئ سجده کوؤنکي په دا سے حال کښ چه قول دَ حِطَّةٌ به کوئ په وخت دَ دخول کښ. حِطَّةٌ په دے کښ دوه قراء تونه دي اول په رفع (پيښ) سره نو سوال دا دے چه حِطَّةٌ مفرد دے او قُولُوا دَ پاره مقوله جمله پکار ده؟ نو دَ هغې جواب دا دے چه لفظ دَ مَسْئَلَتُنَا يا اَمْرُنَا حِطَّةٌ پټ دے نو دا جمله اسميه ده په حذف دَ مبتدا سره او زمخشري وئيلي دي چه دا په اصل کښ نصب (زور) وؤ ليکن عدول اُوشو دَ جمله فعليه نه جمله اسميه ته دَ پاره دَ فائدے دَ ثبات. دويم قراءت په زور دَ حِطَّةٌ سره دے او په هغې کښ نور توجيهات دي هغه ابو حيان ذکر کړيدي او بناء په دے باندے دَ عکرمه نه نقل دے چه معنیٰ دَ دے لا اله الا الله دے.
او دويم قول دَ ابن عباس رضي الله عنهما نه نقل دے چه دا په معنیٰ دَ

استغفار سره دے۔ او قرطبی وئیلی دی چه حدیث صحیح چه امام بخاری راوړے دے دلالت کوی چه صرف په دے لفظ وئیلو سره دوی مکلّف شوی وؤ۔ او دا لفظ اگرچه عربی دہ لیکن ظاهر دادہ چه لغتِ عبرانیه کښ دا مرادف دَ عربیٔ سره وؤ او مقصود په دے کښ اقرار وؤ په خپلو گناهونو باندے دَ پاره دَ تضرع او مسکنت ښکاره کولو۔

نَّغۡفِرۡ لَكُمۡ خَطٰیٰكُمۡ دا جواب دے دَ اخری دوه امرونو (وَادۡخُلُوا۔ وَقُولُوا) په دے کښ دلیل دے چه اطاعت دَ اوامرو دَ الله تعالٰی او عبادت دَ هغه سبب دے دَ پاره دَ مغفرت دَ گناهونو او دا زمونږ دَ اُمت دَ پاره هم دے او په ډیر وایاتونو کښ ذکر دی لکه په سورۃ هود ۱۱۴ او سورۃ عنکبوت ۴۵ وغیره او احادیث هم په دے باب کښ ډیر دی۔ خَطٰیٰا، جمع تکسیر دہ دَ خَطِیۡٓئَةٌ دَ پاره او ماده دَ خطا په قرآن کښ دوه ویشت کرته ذکر دہ کله په معنی دَ ترکِ عمل (قصداً پریښودلو) راغی لکه په سورۃ نساء ۹۲ او سورۃ احزاب ۵ کښ۔ کله په معنی دَ گناهِ صغیره او خلاف اولٰی سره راغی لکه په سورۃ شعراء ۸۲ کښ او کله په معنی دَ گناهِ کبیره سره بغیر دَ کفر او شرک نه لکه په سورۃ اسراء ۳۱ سورۃ یوسف ۹۱، ۹۷ کښ۔ او کله په معنی دَ کفر او شرک او نورو گناهونو کبیرو لکه په سورۃ قصص ۸، سورۃ بقره ۸۱ سورۃ نوح ۲۵ کښ۔ دلته مراد دَ خطایا نه گناهونه صغیره دی په نیز دَ عام اهل سنت والجماعت۔

وَسَنَزِیۡدُ الۡمُحۡسِنِیۡنَ دا جمله معطوف دہ په قُوۡلُوۡا حِطَّةٌ باندے، نه دہ معطوف په نَغۡفِرۡ باندے۔

سوال:۔ په اعتبار دَ ترتیب سره خو تقاضا کوی چه دا عطف کړے شی په نغفر باندے نو په څه حکمت سره په طریقه دَ عطف ئے ذکر نه کړو؟۔

جواب:۔ دائے په طریقه دَ مستقل وعدے سره ذکر کړو اشاره دہ چه زیادت چه دَ وجے دَ وعدهٔ الٰهی نه دے نو هغه ډیر لوئے دے دَ هغه زیادت نه چه په سبب دَ عمل دَ انسان سره وی۔

الۡمُحۡسِنِیۡنَ جمع دَ محسن دہ هغه څوک چه احسن عمل کوی چه بناء وی په توحید او اخلاص او اتباع دَ سنت باندے۔ او قرطبی وئیلی دی" محسن هغه څوک دے چه عقیده دَ توحید ئے صحیح ایږده کړے دی او سیاست دَ نفس ئے

خائسته کړے وی او په اداء د فرائضو یئے توجه کړے وی او نور مسلمانان د هغه د شر نه بچ وی"۔ او په حدیث د جبرائیل کښ د احسان په معنی کښ داسے دی چه اَنْ تَعْبُدَ اللهَ كَاَنَّكَ تَرَاهُ فَاِنْ لَّمْ تَكُنْ تَرَاهُ فَاِنَّهٗ يَرَاكَ نو اشاره ده اخلاص ته۔ او په دے جمله کښ ډیر توجیهات دی اول دا چه په دے کسانو کښ چا چه مَنّ او سلوٰی کښ خیانت یا نور ګناهونه کړے وی نو هغه ته به خطایا او بښلے شی او چا چه دا خیانت یا نور ګناهونه کړے نه وی نو هغوی له به په سبب د دغه عبادا تو ثواب زیات کړے شی۔ دویم دا چه مراد د محسنین نه هغه څوک دی چه د دے نه روستو هغوی احسن اعمال کوی نو هغوی له به درجات زیاتوی۔ دریم دا چه په سبب د دغه اعمالو سره د محسنینو احسان زیاتوی۔

**فائده**:۔ دا سے ایت په سورة اعراف ۱۶۱ کښ هم دے لیکن په دواړو کښ فرق دے په څو وجوهو سره اول دا چه دلته وَاِذْ قُلْنَا دے او په سورة اعراف کښ وَاِذْ قِيْلَ لَهُمْ دے او دویم دا چه دلته اُدْخُلُوا او هلته اُسْكُنُوا دے دریم دا چه دلته فَكُلُوْا دے په فاء سره او هلته په واو سره دے۔ څلورم دلته وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا مخکښ دے په قُوْلُوْا حِطَّةٌ باندے او په سورة اعراف کښ په عکس سره دے۔ پنځم دلته خطایا لفظ دے او هلته خطیئات لفظ دے شپږم دلته لفظ د رغدًا شته او سورة اعراف کښ نیشته۔ اووم دلته وَ سَنَزِيْدُ دے په واو سره او هلته بغیر د عطف نه دے۔ د دے وجو حکمتونه بالترتیب دا دی د اول فرق اوله وجه دا ده چه سورة بقره اول سورت دے په ترتیب کتبی د قرآن کښ چه اصل ترتیب دے نو په اول کښ تصریح مناسب ده په باره د قائل کښ چه وهم رانشی چه بل څوک دے او سورة اعراف خو د دینه روستو دے نو په هغے کښ د صیغے د مجهول نه وهم نه پیدا کیږی۔ دویمه وجه دا ده چه په دے واقعه کښ مِن وجه ذکر د انعام دے نو د نورو انعاماتو پشان په اِذْ قُلْنَا سره مصدر شو او مِن وجه ذکر د عقوبت دے نو سورة اعراف کښ واذ قيل سره ذکر شو۔ د دویم فرق وجه دا ده چه دخول مقدم دے په سکون باندے نو سورة بقره چه مخکښ دے نو په هغے کښ دخول ذکر شو او سورة اعراف چه روستو دے نو په هغے کښ سکون ذکر شو د دریم فرق وجه دا ده چه هر فعل کښ چه معنی د شرط وی نو په معطوف

فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ

پس بدله کړه هغه چا چه ظلم يې کړيوو وينا واحسته يې سيوا د هغې نه

قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا

چه ويئلې شوې وه دوی ته نو را اوليږو مونږه په ظالمانو باندې

رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿٥٩﴾

سخت عذاب د آسمان (د طرف) نه په دې وجه چه نافرمانی يې کوله -



کښې فَا داخليږی نو دلته هم معنی دا ده چه په دې شرط چه تاسو داخل شئ دې کلی ته نو خوراک کوئ د هغې نه او هرچه سکنیٰ ده نو د اکل تعلق د هغې سره لازم نه دې نو د دې وجې په واو سره عطف شو. د څلورم فرق وجه دا ده چه دا سورت اول دې د سورة اعراف نه په دې ترتيب کښې او سجدة امر اهم دې نو په دې کښې يې اهم کار مخکښې ذکر کړو بله وجه د څلورم فرق دا ده چه په بنی اسرائيلو کښې دوه قسمه خلق وو يو قسم هغه کسان چه د هغوی نه ګناه نه وی صادر شوی نو د هغوی توجه اول عبادت کولو ته وی او روستو د عبادت نه توبه او استغفار کوی نو سورة بقره کښې د دې خلقو ذکر کول مقصد دې او دويم قسم هغه خلق چه هغوی ګناهونه کړې وی نو د هغوی توجه اول توبه کولو ته وی بيا روستو عبادت کولو ته نو په سورة اعراف کښې د هغوی لحاظ کړې شوېدې. د پنځم فرق وجه دا ده چه خطايا جمع کثرت ده او خطيئات جمع قلت ده او د لفظ د قلنا سره جمع کثرت ډيره مناسبه ده او په سورة اعراف کښې هر کله چه الله تعالىٰ ځان ته نسبت نه دې کړې نو جمع قلت د هغې سره مناسب ده. د شپږم فرق وجه دا ده چه مخکښې وجه دلته هم ده يعنی دلته الله تعالىٰ ځان ته نسبت کړې دې په قلنا سره نو کثرت د نعمتونو ورسره مناسب دې په لفظ د رغدًا سره او سورة اعراف کښې دا سې نسبت نيشته نو رغدًا ذکر کولو ته ضرورت نيشته. د اووم فرق وجه دا ده چه دلته مراد دا دې چه مجموع. مغفرت او زيادت يو جزاء ده د پاره د مجموعه فعلينو يعنی دخول د باب او قول د حطة او واؤ د پاره د جمع دې او سورة اعراف کښې تقسيم د دواړو جزاګانو دې

په دواړه فعلونو باندے یعنی نَغْفِرْ لَكُمْ متعلق دے د قول د حِطَّةٌ سره او سَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ متعلق دے د دخول الْبَابَ سُجَّدًا سره (والله اعلم بحکمِ کتابِه)
۵۹ په دے ایت کښ تخویف دنیوی دے په ذکر د عذاب سره په بنی اسرائیلو او سبب د عذاب او علت د هغه سبب ذکر دے عذاب رجز دے سبب ئے تبدیل دے او علت د تبدیل ظلم د هغوی دے. تبدیل بدلول دی بغیر د زائیل کولو د عینِ څیز نه یعنی وصف بدلول او ابدال تقاضا کوی د ازالے د عینِ څیز. او تغییر هم زائیل کول د ذات د څیز دی. او دا دواړه ذکر دی په سورة یونس ۱۵ کښ. او دا رنګ تبدیل او ابدال راوړل د څیز دی په ځائے د بل څیز باندے او تغییر بدلول دی بے بدله.

**سوال:-** دلته بَدَّلَ او غَيْرَ لفظ ئے دواړه جمع کړیدی د دے توجیه څهٔ ده؟

**جواب:-** هر کله چه د حطة په ځائے حبة کیښودلو نو په دواړو کښ فرق دے د طاء او د باء نو دا وصف بدلول دی او هر کله چه کلمه د حطة د حبة نه لفظًا او معنًی غیر ده نو تبدیل ذاتی پکښ لازم شو د دے وجے نه لفظ د غیر ئے ورسره راوړلو.

الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا تنبیه ده چه سبب د تبدیل ظلم د دوی وُو لیکن په دے کښ اختلاف دے چه آیا مطلق ظلم مراد دے، نو مراد دا دے چه دوی ټول ظالمان وُو په قسم قسم ظلم کولو سره یا مراد ظلم د تبدیل ئے نو اشاره ده چه ظَلَمُوْا بعض کسان وُو او هغه د دوی اشراف او مشران وُو. دا روستو قول راجح دے د وجے د سورة اعراف ۱۶۲ نه چه په هغے کښ لفظ د مِنْهُمْ شته دے.

قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ، **سوال:-** د ظاهر نه معلومیږی چه د حِطَّةٌ نه علاوه بل قول دوی بدل کړے وُو؟ **جواب ۱** دلته بَدَّلَ په معنی د استبدال دے او غَيْرَ صفت د قولًا دے. **جواب ۲** بَدَّلَ په خپله معنی دے او غَيْرَ مفعول دے د پټ فعل د پاره یعنی اَخَذُوْا غیر الذی قیل لهم او په دے معنی سره د بَدَّلَ او د غَيْرَ راوړلو جدا جدا فائده معلومیږی په هغه قول کښ ډیر اقوال دی د مفسرینو خو ابو حیان وئیلی دی چه هر کله په صحیح بخاری او مسلم کښ په صحیح حدیث سره ثابت ده چه هغه حبة فی شعیرة یا شعرة دے نو نور اقوال پریښودل واجب دی یا به حمل

شي په اختلاف تعبيري باندے لکه چه د طبري په روايت سره حنطة ثابت دے نو دا تعبيري اختلاف دے معنی ئے یوه ده۔ یا بعضو وئیلی دی چه دوی وئیلی وو "هطا سمعاثا ازبة مزبا" نو دا عبراني ژبه ده او معنی ئے په عربئ کښ "دانے د غنمو سرے سورئ کړے شوے چه په هغے کښ تور ویښته وی" نو دا د ژبو اختلاف دے خو تعبیر هغه صحیح دے چه په حدیث مرفوع صحیح کښ راغلی دے چه دوی د حطة په ځائے حبة في شعيرة وئیلو او د سجود په ځائے پخپلو کوناتو باندے خوئیدل او سرونه ئے اوچت کړے وو او دا صریح دلیل دے چه دوی مکلف وو خاص په لفظ د حطة وئیلو او په سر ښکته کولو سره په نیت د سجدے کولو۔

سوال:۔ دوی خو تبدیل د قول او عمل دواړو کړے وو نو په ایت کښ صرف تبدیل د قول ولے ذکر کړے دے او د فعل ئے نه دے ذکر کړے؟۔

جواب ۱: قرطبي وئیلی دی چه درجه د قول ښکته ده د عمل نه نو هرکله چه په تبدیل د معمولی څیز سره عذاب راځی نو په تبدیل د فعل سره (چه اوچت دے د قول نه) خو ضرور عذاب راځی۔

جواب ۲: مراد د قول نه لفظ د حطة نه دے بلکه امر د الله تعالیٰ دے په وَادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ سره نو هغه قول او فعل دواړو ته شامل دے۔ فَاَنْزَلْنَا عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا دلته اسم ظاهر (الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا) ئے راوړو په ځائے د ضمیر باندے (هم) د پاره د تاکید د ظلم د دوی او اشاره شوه چه د دوی دوه ظلمونه وو یو ظلم په قول کښ او دویم ظلم په فعل کښ۔

رِجْزًا په زیر د راء سره کنده ګئ او عذاب ته وئیلے شی او په پیښ د راء سره معبود من دون الله ته وئیلے شی۔ فراء وئیلی دی چه رجز رجس ته وئیلے شی لیکن فرق دا دے چه سین خفیف دے د زاء نه نو معلومه شوه چه په رجز کښ ګندګی ډیره وی په نسبت د رجس سره نو دا په سخت عذاب کښ استعمالیږی۔ مِنَ السَّمَاءِ، اکثر اهلِ علمو وئیلی دی چه مراد د دینه مرض د طاعون دے او په حدیث د بخاری او مسلم کښ ذکر دی چه طاعون رجز عذاب دے چه مخکنی خلق په دے سره معذب کړے شوی وو۔ مِنَ السَّمَاءِ کښ اشاره ده چه د دے اسباب په زمکه کښ نه وو بلکه آسمانی وو یا لفظ د مقدر حذف دے یعنی تقدیر ئے کړے شوے د آسمان نه۔

بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ، فسق وتل دی د حکم د الله تعالیٰ نه په کفر کولو یا په گناه کبیره کولو سره. روستو د ظلم نه یې فِسق د دے وجے نه ذکر کړو چه د وصف د ظلم کله په گناهِ صغیره باندے اطلاق کیږی او فسق خاص دے په گناهِ کبیره پورے نو معلومه شوه چه د دوی ظلم په درجه د فِسق (گناهِ کبیره) کښ وو.

فائده:- دا ایت دلیل دے چه تبدیل د قول شرعی ظلم او فِسق او سبب د عذابِ الٰهی دے. قرطبی وئیلی دی چه په دے کښ اشاره ده چه زیادت په دین کښ او بدعت جوړول په شریعت کښ ډیرلوئے خطر او سخت ضرر دے ځکه چه تغییر په یو کلمه د توبه کښ سبب د عذاب دے تو څه گمان دے په بدلولو د صفاتو د الله تعالیٰ. او قرطبی او ابو حفص دمشقی او جصاص او امام رازی وئیلی دی چه د دے ایت نه بعضِ علماؤ استدلال کړے دے چه تبدیل او تغییر د کلماتِ شرعیه جائز نه دے تفصیل یې دا دے چه تعبد واقع شوی وی په الفاظو او کلماتو خاصو سره نو د هغے تبدیل جائز نه دے او که تعبّد واقع وی د هغے په معنی او مراد سره نو تبدیل په داسے لفظ سره جائز دے چه هغه معنی اداکوی او په مقصد کښ یې تبدیلی نه راځی. مثال د اول زمونږ په شرع کښ قراءة د قرآن دے په مونځ کښ او تکبیر تحریمه او تعوذ تسمیه وئیل دی نو جائز نه دی چه څوک قراءت په فارسئ، پښتو یا بلے ژبے سره وائی یا د الله اکبر او بسم الله او اعوذ بالله په ځائے نور کلمات اداکوی د دے ایت نه ښکاره معلومیږی او دارنګ حدیث د براء بن عازب رضی الله عنه چه د نبیك په ځائے یې رسولك وئیلی وو نو نبی صلی الله علیه وسلم هغه رد کړو اګرچه لفظ د رسولك کښ ډیره مدحه وه په نسبت د نبیك سره. دارنګ په دے کښ داخل دی هغه څوک چه الفاظ د درود شرعی بدلوی په نورو الفاظو سره لکه درود لکهی، درود تاج وغیره یا په دعا د اللهم انت السلام کښ د ځان نه نور کلمات زیاتوی (لکه حَیِّنَا رَبَّنَا بِالسَّلَامِ وَاَدْخِلْنَا دَارَ السَّلَامِ) دا ټول منع او بدعاتِ سیئه دی په دلیل د دے ایت او حدیث سره.

سوال:- مذهب د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه دا دے چه قراءت په فارسئ ژبه کښ او تکبیر او تسمیه په فارسئ کښ لوستل جائز دی او په هغے سره

موږ ته صحیح کیږي؟ - **جواب ۱:** صحیح دا دہ چه امام ابوحنیفه رحمة الله علیه د دے قول نه رجوع کړیده لکه چه ملاخسرو او صاحب توضیح وتلویح وئیلی دی او د دغه قول په بِنا امام ابوحنیفه رحمة الله علیه ته نقل شوی دۍ چه قرآن مخلوق دے لیکن د امام ابویوسف رحمة الله علیه په مراجعے سره امام ابوحنیفه رحمة الله علیه د دغه قول نه رجوع اوکړه لکه امام ذهبی په کتاب مختصر العلو کښ نقل کړیدی **جواب ۲:** عبدالحئی لکھنوی په رساله اکام النفائس کښ وئیلی دی چه قول د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه صرف د جواز د موږ د پاره دے اګرچه بدعت سیئه دے بالاتفاق او د بدعت نه ځان بچ کول خو واجب دی شرعًا.

مثال د دویم (تعبّد بالمعنی) چه د حدیث د نبی صلی الله علیه وسلم روایت بالمعنی کول دی نو په دے کښ هم اختلاف دے لیکن محدثینو وئیلی دی چه اصح دا دہ چه روایت بالمعنی په شروطو د هغے سره جائز دے اګرچه روایت په عینِ لفظ د نبی صلی الله علیه وسلم سره ډیر اجر وثواب لری د دے تفصیل په تفسیر قرطبی کښ اوګورئ.

تنبیه:- دا سے ایت په سورة اعراف ۱۶۲ کښ شته لیکن د دواړو ایاتونو په مینځ کښ فرق دے په څلورو وجوهو سره نو حکمتونه د فرق دا دی اول فرق دلته مِنْهُمْ نیشته او سورة اعراف کښ مِنْهُمْ دے. دویم دلته فَاَنْزَلْنَا دے او هلته فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ دے. دریم فرق دلته عَلَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا دے او هلته عَلَيْهِمْ دے. څلورم دلته بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ دے او هلته يَظْلِمُوْنَ دے. په دے کښ حکمتونه دی، حکمت د اول فرق دا دے چه دلته ذکر د فرقو (ډلو) د پاره مخکښ هیڅ لفظ نیشته او سورة اعراف کښ په ۱۵۹ کښ ذکر د فرقوته اشاره ده نو په ۱۶۲ کښ په لفظ د مِنْهم سره یو فریق ته اشاره اوشوه. حکمت د دویم فرق دا دے چه لفظ د انزال دلالت کوی په پیدا کیدلو د یو څیز باندے د اول کرت نه او لفظ د ارسال دلالت کوی په ډیر والی او په غلبه د څیز باندے په دویم حالت کښ نو سورة بقره اول دے نو په هغے کښ انزال لفظ مناسب دے او سورة اعراف روستو دے نو په هغے کښ ئے لفظ د ارسال ذکر کړو د پاره د مناسبت د هغے. حکمت د دریم فرق دا دے دلته ئے اسم ظاهر (الذین ظلموا)

وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا

او کله چه اوبه اوغوښتلے موسٰی علیه السلام خپل قوم لره نو اووئیل مونږه

اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ؕ فَانْفَجَرَتْ

او وهه په همسا خپلے سره (دغه) ګټے لره. نو روانے شوے

مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ

دَ هغے نه دولس چینے. په تحقیق سره پیژندلو هر یو

اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا

ډلے ګودر خپل. (اووئیل مونږ چه) خوراک کوئ او څښاک کوئ

مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ

دَ رزق (ورکړیشوی) دَ الله تعالٰی نه او مه کیږئ په زمکه کښ

مُفْسِدِيْنَ ۝ وَاِذْ قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى

وراني کوونکی. او کله چه اووئیل تاسو چه اے موسٰی

ذکر کړو ځکه چه په دے سورت کښ ذکر دَ نعمتونو اُوشو په کثرت سره نو مقابل کښ ناشکری دَ بنی اسرائیلو ډیره وه نو دَ تاکید دَ پاره اسم ظاهر یے په ځائے دَ ضمیر باندے کیښودلو او سورۃ اعراف کښ دا سے نه ده. حکمت دَ څلورم فرق دا دے چه په سورۃ بقره کښ ظلم یے دوه کرته ذکر کړے وَو نو تفریع په ظلم باندے فِسق وَو او په سورۃ اعراف کښ ظلم یے اول یو کرت ذکر کړے وَو نو دوباره ذکر یے دَ تاکید دَ پاره اوشو چه اشاره اوشی دوه قسمونو دَ ظلم ته چه مخکښ دَ هغے ذکر تیر شوے دے سره دَ دے نه چه سورۃ اعراف کښ اختصار مقصد وُو نو وصف دَ فِسق یے صراحۃً ذکر نه کړو.

نکته په دے ایت کښ اتم انعام ذکر کوی او دا دنیوی او هم دینی نعمت دے دنیوی ځکه دے چه بغیر دَ اوبو نه دَ دوی ژوند تیرول په میدان تیه کښ ګران وَو او دینی انعام ځکه دے چه دا معجزه دلیل دے دَ پاره دَ

اثبات دَ توحید دَ الله تعالیٰ او دَ پاره دَ نبوت دَ موسیٰ علیه السلام او دا اعجاز په شپږو طریقو سره دے اول ښکاره کیدل دَ اوبو معجزه ده او دویم ډیرے اوبه دَ ډیرے کَنږے نه دا هم معجزه ده. دریم دَ اوبو راوتل په قدر دَ حاجت دَ هغوی معجزه ده. څلورم اوبه راوتل په وخت دَ عصا وهلو کښ. پنځم اوبه راوتل په وخت دَ خاص عصا وهلو کښ. شپږم اوبه بندیدل په وخت دَ عدم حاجت کښ دا ټول دلالت کوی په کامل قدرت او کامل علم دَ الله تعالیٰ باندے حتیٰ چه موسیٰ علیه السلام هم دَ دے کارونو کولو نه بخپله عاجز وُ دَ دے وجے نه هغه دَ الله تعالیٰ نه دعا غوښتلے وه او دعا قبوله شوه.
او عام مفسرینو وئیلی دی چه دا واقعه هم په میدان تیه کښ وه دَ من او سلوی دَ راتللو سره دوی او بو ته محتاج وُ نو قوم دَ موسیٰ علیه السلام دَ هغه نه مطالبه او کړه لکه سورة اعراف ۱۶۰ کښ ذکر دی اِذِ اسْتَسْقٰهُ قَوْمُهٗ نو موسیٰ علیه السلام دَ خپل رب نه طلب او کړو نو او فرمائیل ئے وَاِذِ اسْتَسْقٰى مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ او په دے کښ اشاره ده چه بنی اسرائیلو وسیله او نیوله دُعا دَ موسیٰ علیه السلام چه ژوندے وُ او دَ دوی سره موجود وُ په شان دَ توسل دَ عمر رضی الله عنه په دعا دَ عباس رضی الله عنه سره (لکه چه حدیث بخاری کښ دی) دارنګ په دے کښ دلیل دے چه معجزه په اختیار دَ نبی کښ نه وی او دارنګ په دے کښ تنبیه ده چه په قحط او سوکړه کښ په شرعی طریقے سره استسقاء ضروری ده.
فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ وَهل په عصا (همساء) سره په امر دَ الله تعالیٰ سره وُ او دا فعل په استطاعت دَ موسیٰ علیه السلام سره وُ. بِعَصَاكَ ظاهر دا ده چه دا هغه همساء ده چه دے کښ بله معجزه هم دَ فرعون په وړاندے پیدا کړے شوے وه یعنی اژدها او مار جوړیدل او نور څیزونه تیر ول.
الْحَجَرَ ابو حیان په البحر المحیط کښ څوارلس اقوال په الحجر کښ ذکر کړیدی بیا ئے یو قول ذکر کړیدے چه دا هم هغه حجر (کَنړه) دے چه جامے دَ موسیٰ علیه السلام ئے تښتولے وے او اخر کښ وئیلی دی چه ظاهر دَ قرآن دا دے چه دا غیر معین کَنړه وه ځکه کښ دَ وهلو نه یعنی الف لام پکښ جنسی دی. او تفسیر ماجدی کښ دَ انګریزی سیاحانو تصدیقات ئے نقل کړیدی چه یو دَ هغوی نه لیکلی دی چه دغه کَنړ اوس هم شته دَ

چه تقریبًا لس پنځلس فته دنګ دے او مخ طرف ته لږ مائیل دے او دَ
رَاسِ سَفْسَفَه نیز دے دَ اینجا په وسیع وادئ کښ موجود دے۔
فَانْفَجَرَتْ دَ دے نه مخکښ لفظ دَ ضَرَبَ الحجر (پټ) مراد دے. په سورة
اعراف ۱۶۰ کښ لفظ دَ فانبجست دے بعضو علماؤ وئیلی دی چه دَ انفجار
او انبجاس معنی یوه ده او اکثرو په دے کښ فرق کړے دے په دوو طریقو
سره اوله طریقه انبجاس دَ ے یعنی لږ لږ اوبه راوتل او انفجار ډیرے
اوبه رابهیدل دی۔ دویم فرق انبجاس دَ سخت ځائے نه اوبه راوتل او
انفجار دَ نرم ځائے نه اوبه راوتل دی۔ هرکله چه په دے سورت کښ
لوئے لوئے نعمتونه ذکر کول مقصد دے دَ دے وجے نه دلته ئے فَانْفَجَرَتْ
ذکر کړو۔ مِنْهُ اثْنَتَا عَشْرَةَ ضمیر دَ مِنْهُ حجر ته راجع دے او دَ دے مثال
په ۶۰ کښ شته دے۔ قوم دَ بنو اسرائیل هم دولس خاندانه وو لکه په
سورة اعراف ۱۶۰ کښ دی نو دَ هغوی په شمار سره دولس چینے جوړے
شوے او په دیکښ مقصد تنظیم دے دَ پاره دَ دے چه کورنئ کښ جګړے
پیدا نه شی۔ عَیْنًا دا لفظ په کلام دَ عرب کښ مشترک دے یعنی سترګه، چینه،
زنګون، نمر، سره زر، دریځ دَ قبلے دَ طرف، باران چه پنځه شپږ ورځے مسلسل
وریږی، سورے په توشه دان کښ، خلق۔ دا معانی اللباب ذکر کړی دی
او په قرآن کښ دا لفظ اتلس [۱۸] کرته راغلے دے او په پنځو معانو سره استعمال
دے ۱ سترګه دَ انسان (سورة مائده ۴۵)۔ ۲ چینه (سورة کهف ۸۶)۔
۳ صفت دَ الله تعالیٰ (سورة طٰهٰ ۳۹)۔ ۴ چینه دَ جنت (سورة دهر ۶)۔
۵ یقین خالص (سورة تکاثر ۷)۔
سوال :۔ تمیز دَ اسم عدد خو دَ پاره دَ ابهام لرے کولو وی او په لفظ مشترک
ذکر کولو سره خو ابهام نه لرے کیږی؟ جواب :۔ قرینه موجود ده چه
دلته مراد چینه دَ اوبو ده (چه هغه لفظ دَ اِسْتَسْقٰی او فانفجرت او مشربهم) دَ ے۔
قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ په دے جمله مستانفه کښ مقصد جواب
دَ سوال دے هغه دا دے چه دولس چینے خو دَ دولس خاندانونو دَ پاره
شوے لیکن کیدے شی چه دَ بے علمئ دَ وجے نه دَ بل په چینه باندے
تعدی او کړی نو بیا به جګړه پیدا شی نو جواب او شو چه قَدْ عَلِمَ ا ه۔
دلته عَلِمَ په معنی دَ عَرَفَ سره دے۔ كُلُّ اُنَاسٍ مراد دَ اُنَاسٍ نه سِبط (خاندان)

دے دا جمع یا اسم جمع دہ مفرد یئے د دے مادے نہ نیشتہ دے۔
کُلُّ اُنَاسٍ نہ ھغہ قوم مراد دے چہ اوبہ یئے طلب کڑے وے۔ مَشْرَبَهُمْ، هُمْ ضمیر یئے د جمع پہ اعتبار د معنی د کل سرہ راجع کڑیدے ځکہ چہ کُلُّ دلتہ مضاف دے نکرے تہ او پہ دا سے وخت کښں رعایت د معنی لازم دے۔ او پہ لفظ د مَشْرَبَهُمْ (پہ ځائے د عینهم) کښں اشارہ دہ مقصد د عین نہ چہ ھغہ شُرْب دے۔ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ د دینہ مخکښں لفظ د قُلْنَا پټ مراد دے او دا امر د اباحت دے او منع د ضد نہ مراد دہ یعنی تحریم د دے او طغیان او ناشکری مہ کوئ۔ رِزْقِ اللّٰهِ، دا لفظ خوراک (منّ و سلوٰی) څښکاک د اوبو دواړو تہ شامل دے۔
سوال:- رزق خو ټول د طرف د اللہ تعالیٰ نہ دے نو دلتہ ولے اضافت یئے لفظ د اللہ تعالیٰ تہ اوکړو؟
جواب:- اشارہ دہ چہ دا رزق بغیر د تکلیف نہ حاصل شویدے او اسباب ظاهری نیشتہ۔ او اشارہ دہ شرافت د دے طعام تہ او اشارہ دہ چہ د دے نسبت موسیٰ علیہ السلام تہ اونکړئ د وجے د معجزے د ھغہ نہ بلکہ نسبت د دے پہ اللہ تعالیٰ پورے خاص کړئ۔
سوال:- معتزلو د دے نہ دلیل نیولے دے چہ رزق صرف حلال تہ وئیلے شی ځکہ چہ اقلہ درجہ د امر د اباحت د پارہ وی نو معلومہ شوہ چہ مرزوق حرام نشی کیدلے؟
جواب:- د مخکښں پہ قرینے سرہ معلومہ شوہ چہ دلتہ مراد د رزق نہ عام نہ دے بلکہ صرف من او سلوٰی او اوبہ د ګټے نہ راوتلے مراد دی۔ وَلَا تَعْثَوْا فِي الْاَرْضِ، هر کلہ چہ مخکښں یئے دوی تہ وسعت ذکر کړو د خوراک او څښکاک چہ نہ دے مقید پہ یو وخت او مقدار او مکان پورے لیکن د وسعت د خوراک او څښکاک نہ پہ انسان کښں قوت شهوانیہ او غضبیہ او سبعیہ (درنده گی) پیدا کیږی او ھغہ سبب ګرځی د پارہ د فساد، د دے وجے نہ پہ دے جملہ کښں د فساد نہ منع کوی۔ وَلَا تَعْثَوْا د عثی نہ ماخوذ دے یا د عیث نہ او د دواړو معنی یو دہ یعنی سخت فساد کول او بعضو پکښں فرق کړے دے چہ عیث فساد محسوسہ تہ وئیلے شی او عثی فساد حکمی تہ وئیلے شی۔ او دلتہ مراد د عثی نہ عام دے ذخیرہ کول،

لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادْعُ لَنَا

هیچرے صبر نه کوو مونږ په یو قسم خوراک باندے نو دُعا او غواړه زمونږ دپاره

رَبَّكَ يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْۢبِتُ الْاَرْضُ

دَ خپل رب نه چه را اوباسی مونږ لره هغه څیزونه چه را زرغونوی یُے زمکه

مِنْۢ بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُوْمِهَا وَعَدَسِهَا

دَ سبزئ دَ هغے نه او دَ بادرنګو (ترو) دَهغے نه او دَ اوږے دَ هغے نه او دَ دالو دَ هغے نه

وَبَصَلِهَا ؕ قَالَ اَتَسْتَبْدِلُوْنَ الَّذِیْ

او دَ پیازو دَ هغے نه او وئیل موسیٰ علیه السلامُ ! آیا غواړئ تاسو هغه څیز

هُوَ اَدْنٰى بِالَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ ؕ اِهْبِطُوْا

چه هغه لاندے دے په بدل دَ هغه څیز چه هغه ډیر غوره دے - (نو) کوز شئ

ناشکری کول او نور ناکاره اعمال کول - فِی الْاَرْضِ مراد دَ دے نه صرف زمکه دَ دوی وه لیکن غوره دا ده چه ټول ملکونه مراد دی ځکه چه ګناهونه دَ انسانانو سبب وی دَ پاره دَ قحط او خشک سالئ او دا سبب دَ فسادِ عامه دے - مُفْسِدِیْنَ دا حال مؤکده دے یعنی معنی دَ حال په عامل دَ ذوالحال (لَا تَعْثَوْا) کښ موجود ده نو مراد دَ دے نه منع ده دَ تمادی (اوږد والی) کولو نه په فساد کښ - او بعض مفسرینو وئیلی دی چه دا په تجرید دَ معنی باندے حمل دے یعنی دَ لَا تَعْثَوْا معنی لَا تَسِیْرُوْا او لَا تَسْعَوْا دے نو مُفْسِدِیْنَ حال مقیده دے او احتمال شته چه مفسدین حال مقیده شی سره دَ معنی دَ لَا تَعْثَوْا نه یعنی افساد کله په طریقه شرعی سره وی لکه قتال کول او عمارات دَ کافرانو خرابول وغیره دے ته هم افساد په لغت کښ وئیلے شی نو مفسدین قید یُے دَ دے دَ پاره او ښکوئ چه افساد په نیت دَ فساد او ظلم سره مه کوئ او شرعی فساد خو جائز دے۔
فائده :- ابو حیان وئیلی دی چه په دے آیت کښ دلیل دے چه خوراک څښاک کښ توسع کول او لذات اخستل او ډیر انواع دَ طعام جمع کول په دے شرط چه حلال وی نو دا جائز دی۔

مِصْرًا فَإِنَّ لَكُمْ مَّا سَأَلْتُمْ ۗ وَضُرِبَتْ

یو ښار ته، پس یقیناً ستاسو د پاره (په هغه ښار کښ) هغه څه دي چه غواړئ يې تاسو۔ او واچولے شو

عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ ۖ وَبَاءُوا

په دوی باندے ذلت (رسوائي) او خواری (غریبی) او واخته شول دوی

بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ ۗ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ

په غضب د الله تعالیٰ سره۔ دا په دے وجه چه دوی

كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ

وو چه کفر يې کولو په اٰیتونو د الله تعالیٰ

وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۗ ذَٰلِكَ

او وژل يې پیغمبران بغیر د حق (جرم شرعی) نه۔ دا

بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿٦١﴾

په دے وجه چه دوی نافرمانی کوله او وو دوی د حد (شرعی) نه زیاتے کوونکی۔

سلا په دے اٰیت کښ ذکر د دویم عذاب دے په بنی اسرائیلو باندے په ذکر د یو سبب د عذاب بیا استمرار د عذاب په ذکر د نورو اسبابو د عذاب سره۔ او دا بناء ده په قول د عامو مفسرینو چه هغوی وئیلی دی چه دا سوال د دوی معصیت وو په څلورو دلیلونو سره اول دا قول د دوی چه لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ دلالت کوی چه دوی بدا وګڼلو مَنّ او سلوٰی او هغه خو نعمت خاصه د الله تعالیٰ دے او نعمت د الله تعالیٰ بد ګڼل ګناه دے۔ دویم دلیل قول د موسیٰ علیه السلام دے چه اَتَسْتَبْدِلُوْنَ او دا استفهام انکاری دے د پاره د زجر او زجر د نهی دلالت کوی په معصیت د هغه فعل باندے۔ دریم دلیل الَّذِیْ اَدْنٰی بِالَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ دا دلالت کوی چه بدلول د خیر په ادنیٰ سره ګناه دے۔ څلورم دلیل اِهْبِطُوْا مِصْرًا دے۔ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ اه دا امر د اهباط دلیل دے چه په هغوی باندے من او سلوٰی بند شول او دا اهباط سبب او ګرځیدلو د پاره د عذاب د ذلت

اومسکنت۔ او روستو چه تور اسباب ذکر کړیدی هغه کپاره د امتداد د عذاب دی ترو خت د نزول د قرآن پورے۔ او دا قول غوره دے د قول د رازی او ابو حیان او صاحب اللباب دمشقی نه چه هغوی دلیلونه پیش کړیدی چه دا سوال د دوی گناه نه دے۔ زه وایم چه د هغوی دلیلونه په مقابله د اخری دلیل د قول اول کښ هیڅ وزن نه لری۔ او مناسبت د دے ایت د مخکښ ایت سره په طریقه د تضاد سره دے یعنی هلته د دوی دُعا د خیر د پاره ذکر وه نو الله تعالیٰ هغه قبوله کړه په طریق د اظهار د معجزے سره او په دے ایت کښ د دوی دعا د خیر دیو وجے نه ذکر کوی چه په هغے کښ معنیٰ د شر ده (یعنی نفرت د نعمت نه او هغه سبب شو د ذلت د دوی۔

طَعَامٍ وَّاحِدٍ سوال:۔ من او سلویٰ خو دوه طعامونه دی نو هغے ته یے واحد ولے اوئیلو؟۔ جواب:۔ په دے کښ ابو حیان نهه توجیهات ذکر کړیدی غوره قول دا دے چه دلته د وحدت نه مراد دا دے چه اختلاف او تبدیل په کښ نه راځی یعنی په یو حال دے۔

فَادۡعُ لَنَا رَبَّكَ دا هم وسیله نیول دی په دعا د موسیٰ علیه السلام په حال د ژوندا او د حضور د هغه کښ او رَبَّكَ کښ اشاره ده اختصاص د موسیٰ علیه السلام ته په مناجات او کلام او رسالت د الله تعالیٰ سره او دا اختصاص سبب د قبولیت د دعا دے۔ يُخۡرِجۡ لَنَا دا مجزوم دے په جواب د امر سره یا په لام مقدر سره (لیخرج)۔ مِمَّا تُنۢبِتُ الۡاَرۡضُ، من بعضیه دے او مفعول موصوف پټ دے یعنی مَاکولًا بَعۡضَ مَا تُنۢبِتُ الۡاَرۡضُ۔ او نسبت د انبات زمکے ته په طریقه د اسنادِ مجازی سره دے ځکه چه عقیده د ټولو اهل کتابو دا ده چه انبات په حقیقت کښ فعل د الله تعالیٰ دے او دینه خائستنه اسلوب د کلام وئیلے شی۔ مِنۡۢ بَقۡلِهَا دا بدل دے د مخکښ مِمَّا نه په واپس راوړلو د حرف جر سره۔ بقل هغه ټول شنه بوټی چه پنړائی د هغوی نه وی او خلق یے عادةً خوری ټولے سبزئ ساګونه اسباب د چټنئ او سلاد وغیره ته شامل دے۔ وَقِثَّآئِهَا دا ذکر د خاص دے روستو د عام نه ځکه چه بقل لفظ دے روستو خیزونو ته شامل دے قِثّاء بادرنګ او ترے دواړو ته وئیلے شی۔ وَفُوۡمِهَا په دے کښ درے روایات دی (اوګه۔ غنم۔ ټولے دانے د غلے) دمشقی وئیلی دی چے غوره اول قول دے په څو وجوهو سره۔ اوله وجه دا په یو قراءت

کبش وثومها دے او قراءت په منزله د تفسیر سره دی. دویم داچه دینه ئے ادنیٰ وئیلی دی او غنم خوا شرف د خوراکونو دے. دریمه وجه داچه دا مناسب دے د بقل او عدس او بصل سره او غنم خو په سبزیانو کښ شمار نه دی.
وَعَدَسِهَا تولو قسمونو د دالو ته شامل دے. وَبَصَلِهَا دلیل دے چه اوګه او پیاز د بنی اسرائیلو د پاره حلال وو. او زمونږ اُمت کښ په دے کښ اختلاف دے د اهلِ علمو د بعضو په نیز دواړه (بغیر د پښیدلو) نه منع دی په هر حال کښ او د اکثر اهل علمو په نیز عموم منع په نبی صلی الله علیه وسلم پورے خاص ده او د امت د پاره بغیر د وخت د مونځ او مسجد اوګنړے ته د ورتللو نه استعمال ئے جائز دے.
فائده:- ابو حیان او آلوسی د دے پنځو وجو ترتیب داسے ذکر کړے دے چه بقل کښ صفت د حرارت او برودت او رطوبت او یبوست راجمع دے یعنی بعضِ د هغے نه بارد رطب دی او بعضِ حار یابس دی او بعضِ حار رطب دی. او قثاء بارد رطب دے او ثوم (اوګه) حار یابس ده او عدس بارد یابس دی او بصل حار رطب دے او هرکله چه بصل پوخ شی نو بارد رطب شی او کله چه دا ګډوډ کړیشی د بل سره نو په یو وصف کښ غلبه راشی په بل باندے او دا د انسانانو د مختلف طبائعو سره مناسبت لری ځکه چه د بعضِ انسان طبیعت کښ حرارت زیات وی او د بعضِ برودت زیات وی او د بعضِ رطوبت زیات وی او د بعضِ یبوست زیات وی نو اطباء ماهران د هر انسان مناسب طعام منتخب کوی د هغه د صحت د بدن د پاره.
قَالَ اَتَسْتَبْدِلُوْنَ الَّذِیْ هُوَ اَدْنٰی، همزه د پاره د استفهام توبیخی دے ابن کثیر وئیلی دی چه په دے کښ سخته زورنه ده د دوی په مطالبه د استبدال باندے نو دا دلیل دے چه دوی معصیت کړیدے دارنګ ابن کثیر وئیلی دی چه د دوی داطلب په طور د تکبر او د حرص سره وو د دے وجے نه موسیٰ علیه السلام د دوی د پاره د الله تعالیٰ نه د دے سوال اونکړو. او قاعده په استبدال کښ داده چه مفعول د دے مطلوب وی (چه الَّذِیْ اَدْنٰی) دے او باء داخل وی په متروک باندے چه (الَّذِیْ هُوَ خَیْرٌ) دے.
په ادنیٰ کښ درے قولونه دی اول دا ماخوذ دے د دُنُوّ نه نزدیکت ته وئیلے شی نو دغه پنځه څیزونه نزدے ملاویدل او دارنګ نزدیکت کنایه ده

دارزان قیمت ته. دویم دا ماخوذ د دنائت نه، رزالت ته وئیلے شي یعني دغه ځیزرزیل اوخسیس دے. دریم قول دا دے چه دا ماخوذ دے د دُون نه په معنی دکوزاود ښکته سره. بِالَّذِیۡ هُوَ خَیۡرٌ چه هغه من او سلوی دی او قرطبي او ابو حیان د خیریت (غوره والی) شپږ وجے ذکر کړیدی اوله وجه دا ده چه د من او سلوی قیمت ډیر زیات دے په نسبت د دغه پنځه ځیزونو. دویمه وجه من او سلوی سره الله تعالیٰ احسان کړے وو په دوی او ورته ئے د هغے د خوراک امر کړے وو نو معلومه شوه چه د هغے په خوړلو کښ شکر د الله تعالی دے او دا صفت په دغه پنځه ځیزونو کښ نیشته. دریمه وجه چه مَنّ او سلوی په لذات او خوند کښ ضرور افضل دی د دغه ځیزونو نه. څلورمه وجه من او سلوی بے تکلیفه او بغیر د مشقت نه حاصلیدل او دغه ځیزونه په زمینداریٔ او نور مشقت وغیره سره حاصلیږی. پنځمه وجه د مَنّ او سلوی په حلالوالی کښ هیڅ شک او شبه نه وه د دے وجے نه هغے ته ئے طیبات وئیلی وو او د دے ځیزونو په حاصلیدلو کښ د زمینداریٔ سامان او بیع او شراء لره دخل دے او په هغے کښ ډیر شبهات حاصلیږی. او شپږمه وجه په من او سلوی کښ طبي فوائد دومره دی چه هغه په دغه ځیزونو کښ نیشته. اِهۡبِطُوۡا قرطبي وئیلی دی چه دا امر د تعجیز او تذلیل د پاره دے نو دا د دوی د پاره سزاء ده نو دلیل شو چه دوی ګناه کړے وو.
مِصۡرًا دا نکره ده یو ښار د ښارونو نه مراد دے یعني غیر معین او په قراءت د حسن وغیره کښ مِصۡرَ بغیر د تنوین نه راغلے دے نو مراد د هغے نه مصر د فرعون دے. او د دے نه اختلاف پیدا شویدے په مینځ د مفسرینو کښ نو بعضو وئیلی دی چه دوی د میدانِ تیه نه مصر ته واپس راغلل او اکثرو وئیلی دی چه دوی مصر د فرعون ته واپس نه دی راغلی هاں د داؤد علیه السلام په وخت کښ واپس راغلل او دا غوره قول دے او مصر په لغت کښ حد ته وئیلے شي نو مصر هغه آبادی وی چه د هغے حدود معینه وی. فَإِنَّ لَكُمۡ مَّا سَأَلۡتُمۡ دا په تقدیر د شرط سره دے یعني إِنۡ تَهۡبِطُوۡا فَإِنَّ لَكُمۡ (دا که کوز شوئ یو ښار ته نو ستاسو د پاره په هغے کښ ستاسو مقصد حاصلیږی په کسب او زمینداریٔ کولو سره)
فائده:- د دے آیت نه د مصر تعریف معلوم شو چه مصر هغے ته وئیلے شي

چه دژوند ضروریات پکښ په اسانه سره حاصلیږی وجه دا ده چه کوم ځائے
سبزئ وغیره حاصلیږی نو هلته د زمیندارئ سامان موجود وی او د زمیندارئ
سره کسبونه د لوهارئ (اینګرئ) او ترکانړئ وغیره لازم دی او د ښارونو د ساتنے
اسباب هم وی او د دے ضروریاتو د پاره د بازار د خرید وفروخت ضرورت
وی نو معلومه شوه چه د مصر دا تعریف منصوص دے په نسبت د نورو
تعریفونو چه د فقهے په کتابونو کښ ذکر دی۔
وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ د دے نه مخکښ عبارت پټ مراد دے یعنی
دوی یو ښار ته لاړل او هلته یے کسبونه او زمینداری شروع کړله نو د هغے د
وجے نه د یے زمیندارئ ته توجه کمه شوه او دنیا پرستی پکښ زیاته شوه نو
دا سبب شو د ذلت او مسکنت د هغوی۔ ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ د ضرب په صله کښ
علیٰ راغلے دے نو دا په معنیٰ د الزام او احاطے او شمول سره دے یا په معنیٰ د
التصاق (جوخ کیدلو) دے یا دا ماخوذ دے د ضرب علی السکه نه یعنی په
سکه (اوسپنه تانبه سره زر او سپین) باندے چه د څه نقش ټاپه اولگے شی
نو هغه ورپورے جوخت شی نو دغسے ذلت او مکسنت په دوی پورے
جوخت او لازم او همیشه شو۔ فرق په مینځ د ذلت او مسکنت کښ په څو
وجو سره دے اوله وجه دا چه ذلت امر باطنی دے یعنی فقر د نفس او حرص
د نفس اگرچه مالدار وی لیکن نفس یے خوار ذلیل او حرصناک وی او مفسرین
وائی چه "نیشته دے هیڅ شخص زیات ذلیل او حرصناک د یهودیانو نه"۔ یعنی د دوی حرص
او ذلالت ډیر زیات دے۔ او مسکنت امر ظاهری دے یعنی عادت د دوی دا دے چه زاړه او بے کاره
کپړے او پیزار وغیره اغوندی خپله غریبی ښکاره کوی۔ دویمه وجه ذلت
نه مراد خراج او جزیه ټکول دی په دوی باندے او مسکنت عاجزی د دوی ده
په مخامخ د مؤمنانو کښ لیکن بعضو مفسرینو د دے تفسیر نه انکار کړیدے
ځکه چه په هغه وخت کښ او دا رنګ اوس خو په دوی باندے د طرف د
مؤمنانو نه خراج او جزیه نه ده مقرر کړے شوے هاں ابن حیان وئیلی دی
چه دا به په طریقه د معجزے سره اخبار وی د قرآن ته د دوی د راتلونکی
حال نه په وخت د غلبے د اسلام کښ۔
سوال:۔ اوس خو یهودیان په مالدارئ کښ په ټوله دنیا کښ مشهور دی
نو د دے ایت څه مطلب دے؟ جواب:۔ مخکښ ذکر شوه چه ذلت او مسکنت

د دوی د مال د کمی د وجې نه نه دے بلکه د کچه اخلاقو د وجې نه دے.
جواب ع۲ ماجدی په تحقیق سره ثابته کړیده چه مالداری صرف د خواصو خلقو د یهودو وه او هر چه د هغوی عوام دی نو ډیر مفلسان دی ځکه چه د هغوی نظام د سرمایه دارئ دے چه په هغے نظام کښ عام خلق مفلس او ذلیل وی.
**فائده:-** د دے نه معلومه شوه چه زمینداری سبب د ذلت دے او دا سے په حدیث د ابوامامة باهلی رضی الله عنه کښ دی چه هغه په یو ځائے کښ سامان د زمیندارئ اولیدو نو اوئیل یئے چه ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلی دی چه دا سامان د چا کور ته داخل شی نو الله تعالیٰ په هغوی کښ ذلت داخلوی (بخاری). هاں امام بخاری دلته دا مقصد ذکر کړیدے چه دا په هغه وخت کښ چه څوک مشغول شی د دین نه په دے کار یانده او پدیکښ د حد نه ورتیر شی یعنی جهاد او د دین نور کارونه پریږدی. ځکه چه الله تعالیٰ او د هغه رسول خو زراعت طرف ته ترغیب ورکړیدے- لیکن دلته مقصد دا دے چه د زمیندارئ په وجه ترے دین پاتے شی (او اکثر مشاهده کښ داسے راځی) نو بیا زمیندارئ ذلالت دے.
وَبَآءُوْ بِغَضَبٍ مِّنَ اللّٰهِ دا ترقی ده په عذاب د دوی کښ روستو د ذلت او مسکنت نه نو د ذلت مسکنت د پاره خو تیر شوے گناه سبب وؤ او د غضب او ترقئ د عذاب د پاره نور اسباب دی چه روستو ذکر کیږی.
بَآءُوْ په معنی د رجعوا دے او با د پاره د مصاحبت ده یعنی را اوګرځیدل دوی چه مرګرے وؤ د دوی سره غضب د الله تعالیٰ په راګرځیدلو کښ. اشاره ده انقلاب د حالت د دوی ته یا بَآءُوْ په معنی د استحقوا دے یعنی حقدار شو د غضب د الله تعالیٰ- او باء یبوء په خیر کښ استعمالیږی لکه وَلَقَدْ بَوَّأْنَا بَنِيٓ اِسْرَآءِيْلَ مُبَوَّاَ صِدْقٍ (سورة یونس ۹۳) او دا رنګ په (سورة عنکبوت ۵۸) کښ دی. او په شر کښ هم استعمالیږی لکه په سورة مائده ۲۹ او په دے سورت ۹۰ کښ، او په حدیث کښ دواړه استعمالات موجود دی (اَبُوْءُ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ وَاَبُوْءُ بِذَنْبِيْ). بِغَضَبٍ مراد د غضب نه هغه بلایا او عذابونه د دنیا دی چه په دوی باندے وخت په وخت نازل شویدی او دا رنګ غضب کښ اشاره ده چه دوی محروم شول په دنیا کښ د رسالت او خلافت ارضی نه او هغه نقل شو بنی اسماعیلو ته. مِنَ اللّٰهِ کښ اشاره ده غټوالی د دے غضب ته او دا دلیل دے چه اول مَغْضُوْبٌ عَلَيْهِمْ په دنیا کښ یهودیان دی.

فائدہ:- دا سے په سورة آل عمران ۱۱۲ او سورة اعراف ۱۵۲ او سورة مجادله ۲۰ کښ هم شته - په سورة آل عمران کښ ذلت او غضب او مسکنة ذکر دے. د ترتیب د تغییر حکمت به انشاء الله تعالیٰ هلته بیا بیږی او سورة اعراف کښ ذلت او غضب ذکر شویدی په سبب د عبادت د عجل او سورة مجادله کښ ئے د ذلت سبب محاده د الله تعالیٰ او د رسول ذکر کړے ده-

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ، ابن حیان په اٰیٰتِ الله کښ پنځه وجوه ذکر کړے دی. ۱ تهه معجزات د موسیٰ علیه السلام. ۲ تورات. ۳ بعض ایاتونه د تورات یعنی هغه ایاتونه چه په هغے کښ صفات وو د اخری نبی صلی الله علیه وسلم. ۴ قرآن. ۵ ټول ایاتونه د الله تعالیٰ چه نازل شویدی په رسولانو. غوره دا ده چه مراد د دے نه بعض ایات د تورات دی په قرینه د سورة بقره ۸۵ هغه ایاتونه چه په هغے کښ مسئله د توحید وه او تصدیق د اخری نبی وو- او دا انکار په دوی کښ مستمر شو د دے وجے نه لفظ د كَانُوْا ئے ذکر کړے دے - ذٰلِكَ اشاره ده استمرار د ذلت او مسکنت او غضب الٰهی نه او کفر بالآیات د بنی اسرائیلو په سورة آل عمران نه ۹۸ او سورة بقره ۹۰ سورة آل عمران ۲۱، ۱۱۲ کښ ذکر دے - وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ، اول قصور د دوی ئے په حق د الله تعالیٰ کښ ذکر کړو نو اوس قصور د دوی په باره د لویو انسانانو کښ ذکر کوی چه انبیاء علیهم السلام دی او اول ګناه سبب دے د پاره د دویم ګناه یعنی دغه ایات په بیا تول دوی ته انبیاؤ د الله تعالیٰ نو دوی به وژل - بِغَيْرِ الْحَقِّ حق نه مراد حق شرعی دے یعنی داسے جرم چه په شرع کښ د هغے سزا وژل دی لکه قتل د نفس محترمه یا ارتداد یا زنا پس د احصان (واده کولو) نه یعنی د هغه انبیاء علیهم السلام نه په دے جرمونو کښ یو جرم هم ثابت نه وو او دغه خلقو به هغوی لره وژل-

سوال:- بِغَيْرِ الْحَقِّ حال دے او حال خو قید احترازی وی نو معلومیږی چه قتل د انبیاء علیهم السلام کله کله په حق شرعی سره کیدے شی او حال دا چه انبیاء علیهم السلام خو د ټولو ګناهونو نه معصوم دی او خصوصًا د دغه درے جرمونو نه خو دوی بالاتفاق معصوم دی نو د دے بِغَيْرِ الْحَقِّ حال څه فائده ده؟-

جواب اول:- دا حال مقیده نه دے بلکه حال مؤکده دے یعنی قتل

دَ نبی به په هرحال بغیرِ دَ حق نه وی نو په دے کښ زیات تشنیع او تقبیح دَ بنی اسرائیلو مراد ده- جواب دویم:- مراد دَ حق نه الحق عِنْدَهم دے یعنی حق شرعی خو په هغوی باندے نه وُو لیکن دوی به نور خلق په څه نورو وجوهو سره وژل لیکن هغه وجے هم دَ انبیاؤ دَ قتل دَ پاره موجود نه وے.
جواب دریم:- بغیرالحق کښ بآء سببیه ده او غیر په معنی دَ امر مغایر دَ حق دے او امر مغایر دَ حق باطل وی یعنی دَ هغوی وژل باطل وُو یا داچه هغوی به دَ باطل (کفر او شرک) تردید کوؤ-
فائده: بحث په باره دَ اثبات دَ قتل دَ انبیاء علیهم السلام کښ په لاس دَ یهودیانو سره:- روستو زمانه کښ بعضِ خلق داسے پیدا شوی دی چه دَ یهودیانو دَ رضا کولو دَ پاره هغوی دَ قتل الانبیاء نه انکار کوی او داسے خلقو باندے آلوسی په خپل تفسیر کښ رد کړے دے او هغوی ته یے ملحدین وئیلی دی او دَ دوی سره هیڅ دلیل صراحةً یا اشارةً په قرآن او سنت کښ نیشته- هاں یو دلیل پیش کوی چه الله تعالیٰ په سورة مؤمن ۵۱ او سورة صافات ۱۷۲ کښ دَ دوی دَ نصرت ذکر کړیدے نو معلومه شوه چه الله تعالیٰ دوی لره دَ مقتولیت نه بچ ساتی او عقلی دلیل پیش کوی چه قتل دَ انبیاؤ خو اهانت او تذلیل دے او الله تعالیٰ انبیاؤ لره دَ اهانت نه بچ ساتی.
لیکن دا هغوی له هیڅ فائده مند استدلالات نه دی روستو به دَ هغے جواب ذکر کیږی.
دَ اثبات دَ دے مسئلے دَ پاره دَ قرآن کریم صریح ایاتونه دا دی دا ایت دے او په سورة آلعمران ۲۱ او ۱۸۱ او ۱۸۳ او ۱۱۲ او سورة بقره ۸۷ او سورة مائده ۷۰ او سورة نساء ۱۵۵ دا ایاتونه صریح دی چه انبیاء علیهم السلام شهیدان کړے شویدی په لاسونو دَ کافرانو- او احادیث په دے باب کښ ډیر دی اول حدیث دَ ابن مسعود رضی الله تعالیٰ عنه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه سخت تر دَ خلقو نه په عذاب کښ په ورځ دَ قیامت هغه سړے دے چه قتل کړی هغه لره نبی یا قتل کړی هغه نبی لره (مسند احمد ۱/۴۰۷ او ابن کثیر وغیره)- دویم حدیث خوړل دَ نبی صلی الله علیه وسلم هغه غوښه دَ بیزے چه یهودیے ښځے په هغے کښ زهر ګډ کړی وُو په ورځ دَ خیبر او دَ هغے اثر به هر کال بیا واپس کیدلو تر دے پورے چه وفات دَ نبی صلی الله علیه وسلم هم

د هغو وجې نه ثابت دے داحدیث بخاري ذکر کړيدے او ابن حجر فتح الباري کښ ذکر کړيدي چه نبي صلی الله علیه وسلم د دغه زهرو د وجې نه وفات شویدے نو دا هم قتل د نبي دے په زهرو سره اګرچه په آله د قتل سره نه دے. حدیث دریم ابن کثیر او سیوطی په تفسیر د سورة آلعمران کښ روایت کړیدے چه بنو اسرائیلو په اول د ورځ کښ درے سوه انبیاء علیهم السلامُ اووژل او په ماز یګري کښ ئے بیا خپل بازارونه کولاؤ کړي وو. حدیث موقوف دے لیکن په حکم د مرفوع کښ دے. حدیث څلورم "مِنهم من يُمشط بِامشاطِ الحديدِ دون عظمه ولحمه ما يصرفه ذلك عن دينه اه" (د بعض په مخکنو خلقو کښ د اوسپنے په منګزو سره د هغوي بدنونه منګز کړے شول او ډوکي او غوښه ئے جلا جلا شوے خو دے خبرے هغوي لره د دین نه اړولی نه دي). ابن حجر فتح الباري کښ وئیلی دي چه دا مذکور خلق انبیاء او د هغوي تابعداران وو. دارنګ حدیث د قتل د زکریا علیه السلام او د یحیی علیه السلام حاکم په مستدرک ص۵۹۱ کښ ذکر کړے دے او دارنګ په دے باندے اجماع ده د علماؤ مفسرینو مجتهدینو محدثینو د فقهاؤ او مؤرخینو د اسلام هیچا انکار د قتل د انبیاؤ نه دے ذکر کړے. دارنګ ډیر احادیث دلالت کوي چه صحابه کرام به په نبي صلی الله علیه وسلم باندے د قتل په باره کښ بیریدل. او اکثر مفسرینو د دے آیاتونو په تفسیر کښ په طور د مثال قتل د ارمیاه نبي او اشعیاء نبي او زکریا او یحیی علیهم السلام ذکر کړيدے.

**سوال:** - مراد د قتل نه اراده د قتل ده یا سخت وهل دي. دا تاویل دے د منکرینو د طرف نه؟ **جواب:** - اتفاق دے د علماءِ عقائدو او اصول فقه چه ظاهر د قرآن او سنت بغیر د حجت صریحه نه پریښودل جائز نه دي (ابانه ص۷۸ شرح عقائد نسفیه ص۱۱۹). دارنګ خو پورے چه حقیقت امکان لري نو مجاز ته تلل جائز نه دي دا هم د اصولیانو اتفاقي مسئله ده. نو په دے مقام کښ د منکرینو سره هیڅ صحیح صریح دلیل او قرینه نیشته ماسیوا د اوهامو نه یا د رضا کولو د یهودیانو نه چه په هغے سره ظاهر او حقیقت د قرآن پریښودلے شي.

**جوابات د اوهامو د هغوي:** - اول وهم قتل د نبي په لاسونو د دشمنانو اهانت دے؟ **جواب:** - قرطبي، ماوردي ثعالبي او نورو مفسرینو لیکلي دي چه

قتل دَ انبیاء علیهم السلام شهادت دے فی سبیل الله او شهادت کرامت دے
او اوچتوالے دَ درجاتو دے۔ دویم وهم:۔ الله تعالیٰ وعده دَ نصرت دَ هغوی
کړیده لکه سورة صافات ۱۷۲ اوسورة غافر ۵۱ کښ ؟ ۔دَ هغے ډیر جوابات دی
اول جواب:۔ نصرت غلبه دَ حجت ده یا دَ هغوی قصاص اخستل دی دَ هغه
قوم دَ قاتلینو نه ځکه دا اوله معنیٰ په باره دَ مؤمنانو کښ مراد ده ځکه چه په
سورة غافر ۵۱ کښ نصرت دَ مؤمنانو ذکر دے او حال دا دے چه مؤمنان خو
ډیر شهیدان شویدی نو معلومه شوه چه نصرت مستلزم دَ عدم قتل نه دے۔
دویم جواب:۔ قاسمی او آلوسی وئیلی دی چه وعده دَ نصرت دَ رسولانو سره
ده او ذکر دَ قتل دَ انبیاؤ دے نه دَ رسولانو لیکن په دے باندے اعتراض دے
چه په سورة بقره ۸۷ کښ دَ رسولانو دَ بنی اسرائیلو ذکر دے او په هغے
کښ ذکر دی وَفَرِیۡقًا تَقۡتُلُوۡنَ ،اگرچه دَ هغے جواب دا دے چه په بنی اسرائیلو
کښ دَ موسیٰ علیه السلام نه تر عیسیٰ علیه السلام پورے رسولان په
معنی مشهوره سره نه وؤ چه نوے کتاب او شریعت ورکړے شوے وی نو معلومه شوه چه
هغوی انبیاء وؤ او رسولان ورته صرف په اعتبار دَ وحی کیدلو او دَ هغے په
تبلیغ کولو سره وئیلے شویدے ۔دریم جواب:۔ او دا احسن ده چه نصرت
نه مراد حفاظت دَ هغوی دے په وخت دَ قتال کښ نه په وخت دَ دعوت
او تبلیغ کښ او یهود یا نو خو انبیاء او رسولان بغیر دَ وخت دَ قتال نه قتل کړیدی۔
تنبیه:۔ فتاوی دَ لجنة کبار العلماء السعودیه په ص ۲۵۱/۳ کښ دا مسئله په
تفصیل سره ذکر کړیده او منکرینو تاویل کوؤنکو باندے حکم دَ کفر ئے
کړیدے او دغه تاویلاتو دَ هغوی نه ئے الحاد فی اٰیات الله او تلاعب
بکتاب الله او منکر تیا کول دَ یهودو سره توام ایښودلے دے۔
ذٰلِكَ بِمَا عَصَوۡا وَّكَانُوۡا يَعۡتَدُوۡنَ ، په ذٰلِكَ کښ دوه احتمالونه دی اول دا چه
دا اشاره ده کفر او قتل ته حاصل دا چه اول په دوی کښ عصیان او اعتداء
پیدا شوه نو دَ هغے وجے نه په دوی کښ کفر او قتل الانبیاء پیدا شو نو دا مشهوره
خبره ده چه یو ګناه بل ګناه ته رابلل کوی دویم احتمال دا دے چه ذٰلِكَ
اشاره ده هغه ذلت او مسکنت او غضب ته چه مخکښ ذٰلِكَ کښ هم هغے ته
اشاره وه او دا تاکید دے نو حاصل دا شو چه دَ ذلت او غضب دَ پاره څلور
اسباب دی کفر۔ قتل۔ عصیان او اعتداء لیکن اول دواړه خاص دی او

روستو دواړه عام دی۔ بِمَا عَصَوْا مادہ دَ عصیان په قرآن کښ دوه دیرش کرته ذکر ده په اووه معانو سره، اول معنی لغوی ده مخالفت دَ امر دَ انسان لکه په سورة طٰهٰ ۹۳ او سورة کهف ۶۹ کښ۔ دویم مخالفت دَ امر دَ الله تعالیٰ په نسیان سره چه ګناه نه دے لکه سورة طٰهٰ ۱۲۱ کښ۔ دریم ترک دَ اتباع رسول لکه په سورة ابراهیم ۳۶ کښ۔ څلورم انکار دَ رسول نه لکه سورة مزمل ۱۶ کښ۔ پنځم مخالفت دَ امر دَ رسول په اجتهادی خطایئ سره لکه په سورة آلعمران ۱۵۲ کښ۔ شپږم ګناه صغیره کول لکه سورة حجرات ۷ کښ۔ اووم عام چه کفر او شرک او نورو ګناهونو ته شامل وی او دا په ډیرو آیاتونو کښ ده۔ او په دے آیت کښ دا عامه معنی مراد ده او بعض مفسرینو دلته تخصیص دَ معنی کړے دے ۱ همیشه مخالفت او قتل دَ انبیاءؤ ۲ بے لوظی کول ۳ دَ انبیاءؤ نه انکار کول او دا ټول معاصی په دوی کښ راجمع شوی وو۔ وَّكَانُوْا يَعْتَدُوْنَ۔
اعتداء په لغت کښ دَ حد مقرره نه تجاوز کول دی مطلقًا که دَ دنیا په کار کښ وی او که دَ دین وی۔ دنیوی کار کښ اعتداء په سورة بقره ۱۷۸، ۱۹۴ کښ دَه او په شریعت کښ په معنی دَ تجاوز کولو دَ حدود دَ الله تعالیٰ او دَ رسول نه نو اعتداء کفر او شرک بدعات او ګناهونو ته شامل دے دلته هم دا معنی مراد ده او یو مثال دَ اعتداء دَ یهودیانو ذکر دے په سورة بقره ۶۵ کښ او په صفت دَ عامو کافرانو مشرکانو کښ په سورة توبه ۱۰ کښ۔ او آثار چه په اعتداء بانده مرتب کیږی په قرآن کښ څلور ذکر دی لَا يُحِبُّ اللهَ سورة بقره ۱۹۰۔ ظلم سورة بقره ۲۲۹ او سورة طلاق ۱۔ دخول دَ نار لکه په سورة نساء ۱۴۔ طبع دَ قلب لکه په سورة یونس ۷۴ کښ۔ دلته فرق دَ عصیان او اعتداء دا دے چه دَ عصیان نه مراد کارونه دَ فسق او فجور دی او اعتداء نه مراد کارونه دَ بدعاتو دی۔ یا عصیان په حقوق الله کښ دے او اعتداء په حقوق دَ بندګانو کښ ده۔
فائده:- اعتداء سره یئ کان ذکر کړے دے او دا رنګ دَ کفر او قتل سره یئ سره دَ صیغے دَ مضارع نه او عصیان سره یئ صیغه دَ ماضی ذکر کړیده۔ اشاره ده چه عصیان په دوی کښ دَ مخکښ نه موجود وؤ په ګناه صغیره کولو سره په زمانه دَ موسیٰ علیه السلام کښ او کفر، قتل، اعتداء روستو دَ زمانے دَ موسیٰ علیه السلام نه شروع شول او کان دَ دے دړے واړه فعلونو سره

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا

یقینًا مؤمنان او یهودیان

وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ

او نصاریٰ او صابیان چاچه ایمان راوړو (ړدوی نه) په الله تعالیٰ

وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ

او په ورځ د اخرت او عمل ئې اوکړو نیک (په طریقه د پیغمبر) نو دوی لره

أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ

ثواب د (عمل د) دوی دے په تیز د رب د دوی او نه به وی هیڅ یره

عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾ وَإِذْ

په دوی باندے او نه به دوی غمژن کیږی۔ او کله چه

دلالت کوی چه په دے کارونو باندے دوی عادت شول او استمرار ئې په هغې باندے کوؤ یعنی دغه کارونه ئې ثواب او خائسته گڼړل او همیشه ئې کول۔

۶۲ ربط د دے د مخکښ سره دا دے چه هر کله مخکښ د دوی گناهونه او عذابونه ذکر شول نو اوس د عفو د گناهونو او د عذاب نه د نجات د پاره طریقه ذکر کوی او هغې ته ترغیب ورکوی۔ دا رنګ هر کله چه سره د گناهونو نه دوی فخر کوؤ په نسبتونو باندے نسبت موسیٰ علیه السلام او عیسیٰ علیه السلام ته او دا نسبت فقط سبب د نجات ئې گڼړلو نو د هغې وهم تردید کوی۔ نو دا آیت تتمه ده د دے خطاب اول په ذکر د ترغیب ایمان او عمل صالح ته۔ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا په دے کښ د مفسرینو دوه قولونه دی اول دا چه مراد د دے نه منافقان دی چه صرف دعوٰی د ایمان کوی او دا کافی گڼړی او د دے قرینه دا ده چه وروسته ئې هم کافران ذکر کړیدی دویم قول دا دے چه مراد د دے نه صحیح مؤمنان دی په ایمان شرعی سره چه قرآن او آخری رسول منی۔ او په روستو (وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ) کښ مؤمنان مراد دی ځکه چه مَنْ آمَنَ (په دے توجیه سره) بدل دے د الَّذِينَ هَادُوا ته۔ وَالَّذِينَ هَادُوا، د هاد دوه معانی دی یو

معنی توبه کول لکه په دے قول د الله تعالیٰ (سورة اعراف ۱۵۶) کښ په معنیٰ د توبه کولو دے نو مراد هغه یهودیان دی چه توبه یئے کړے وه د عبادت د عجل نه. دویمه معنیٰ هاد په معنیٰ د تهود دے یعنی یهودیت یئے اختیار کړیدے او په دے کښ نسبت د دوی یو نیکه ته مراد دے چه هغه یهوذا ابن یعقوب علیه السلام دے لیکن په عربیت کښ ذال بدال شو په دال سره (قرطبی).

سوال:- یهودیان خو د دولس خاندانو نسل دے نو صرف یهوذا ته ولے نسبت خاص کړے شو؟ جواب:- قاسمی وئیلی چه اسرائیلیان چه د اویا کالو نه روستو زوړ وطن ته واپس راغلل نو اکثر نسل د یهوذا پاتے شوے وو او نور نسلونه اکثر ختم شوی وو.

سوال:- دلته یئے والیهود ولے نه دے ذکر کړے؟

جواب:- یهودیانو د خپلے دینداریٔ دعوی په دے لفظ پورے خاص کړے وه چه اِنَّا هُدْنَا اِلَیْكَ او حال دا دے چه روستو په نور شرکیاتو او کفریاتو کښ اخته شوی وو د هغے پرواه یئے نه کوله او په دے ایت کښ مقصد رد دے په باطلو دعوو باندے. وَالنَّصٰرٰی دا جمع د نصرانی ده او هغه منسوب دے نصران ته یا ناصره ته چه نوم د یو کلی وو په فلسطین کښ چه د بیت المقدس نه په شمال جانب کښ تقریبًا اویا میله لرے وو. او په هغه کلی کښ عیسیٰ علیه السلام پیدا شوے وو او په هغے کښ اوسیدلو نو چا به چه د هغه تابعداری کوله نو هغه ته به نصرانی وئیلے کیدلو. او احادیثو کښ هم لفظ د نصرانی استعمال شویدے د دے وجے نه د هغوی په باره کښ د عیسائی لفظ استعمالول نه دی پکار ځکه چه هغوی خو اوس د عیسی علیه السلام تابعداری پریښودلے ده او چا چه دا وجه تسمیه ذکر کړیده چه دوی ته نصاری ځکه وئیلے شی چه دوی د عیسیٰ علیه السلام نصرت کړے وو نو دا توجیه ضعیفه ده. وَالصّٰبِـِٕیْنَ دا لفظ د صبا نه اخستلے شوے دے صبا په معنیٰ د مائیل کیدلو دے صابئ په عرف کښ هغه چا ته وئیلے شی چه یو دین نه بل دین ته مائیل شی او د قرآن په اصطلاح کښ صابئین د داسے جماعت نوم دے چه یهود او نصاری او مؤمنان نه دی نو د دوی په باره کښ ډیر مختلف اقوال دی اول قول دا دے چه دا د ابراهیم علیه السلام قوم وو چه د ستورو عبادت یئے کولو د روم صابئینو د اوو سیارات (ستورو) عبادت کوؤ او د هند صابئینو د ثوابت ستورو عبادت کوؤ او روستو دوی

دهرستوری په نوم بت جوړکړو هغې ته به یې هیکل وئیلو او د هغې عبادت به یې کوؤ روستو په دوی کښې ډلې ډلې پیدا شوې نو د مجاهد، عطاء، سعید بن جبیر او حسن بصری قول دے چه دا بے دینه قوم دے او ابو العالیه، ربیع بن یونس وغیره نه روایت دے چه دا کتابیان دی ځکه چه زبور یې لوستلو او د دے وجے نه امام ابوحنیفه او اسحاق بن راهویه رحمهم الله علیهم په دوی باندے د اهل کتاب و حکم په باره د نکاح او ذبیحه کښې جاری کړے دے. ابن جریر د حسن بصری نه نقل کړے دے چه زیاد ته خبر او رسیدلو چه صابئین پنځه مونځونه کوی او کعبے ته مخ کوی نو هغه ترینه جزیه لرے کړه بیا خبر شو چه دوی د ملائیکو عبادت هم کوی نو بیا یې ورباندے جزیه مقرر کړه او دا سے قول د ابو جعفر رازی نه هم نقل دے او ابن ابی حاتم د ابو الزناد نه روایت کړیدے چه دا دا سے قوم وؤ چه د عراق په کوثی کلی کښې او سیدل او ټول انبیاء یې منل او په کال کښې دیرش روژے یې نیولے او یمن ته به یې مخ کوؤ پنځه مونځونه به یې کول او خلیل وئیلی دی چه دے خلقو ځان د نوح علیه السلام په دین باندے ګنړلو. قرطبی وئیلی دی چه دوی به لا اله الا الله وئیلو او عقیده یې د تاثیر د ستورو لرله چه د عالم تدبیر دا ستوری کوی. او قتاده او کلبی وئیلی دی چه دوی د یهودو او نصاری په مینځ کښې قوم دے او د سرونو مینځ یې خریلو او د ځان نه به یې نسلی عضو پریکوله او د دوی قبله (مهب الجنوب) یعنې قطب ستورے وؤ. حاصل د دے اقوالو دا دے چه د دے خلقو یو خاص دین نه وؤ هاں د قرآن د نزول په وخت کښې دوی د شام او عراق په حدودو کښې اوسیدل او د توحید او رسالت عقیده پکښې وه او ځان ته به یې انصار یحیی علیه السلام وئیل او زبور یې لوستلو ځکه چه هغه صرف د فضائیلو کتاب وؤ احکام پکښې نه وؤ د دے وجے نه دوی د خاص احکامو پابند نه وؤ نو معلومه شوه چه دوی هم د یهودو او نصاری پشان د کتاب او د نبی دعوی کوله او حال دا دے چه ایمان یې هیڅ نه وؤ نو د دے وجے نه یې دلته ذکر کړو چه صرف په دے نوم او نسبت سره نجات نه شی مونده او قرآن کریم کښې د دوی ذکر په سورة مائده ٦٩ او سورة حج ١٧ کښې راغلے دے وجه د فرق د آیاتونو تر مینځ په سورة مائده او سورة حج کښې ذکر ده.

سوال:- په دے ایت او سورة مائده کښ د دے څلورو ډلو ذکر شوے دے او سورة حج کښ ئے شپږ ډلے ذکر کړے دی؟
جواب:- په دے ایت او سورة مائده کښ مقصد رد کول دی په هغه چا باندے چه دعوٰی د دین او کتاب سماوی کوی او کفر او شرک په کښ موجود وی نو د هغوی بیان کوی چه صِرف دعوٰی کافی نه ده د پاره د نجات. او سورة حج کښ د دنیا د غټو ډلو ذکر مقصود دے نو هلته ئے شپږ ډلے ځکه ذکر کړے دی۔

مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا، دا خبر دے د اِنَّ نو سوال دا دے چه الَّذِيْنَ اٰمَنُوا او مَنْ اٰمَنَ خو یو معنی لری او د اسم او خبر په مینځ کښ فرق ضروری دے؟- جواب ۱: محشی ذکر شول چه مراد د الَّذِيْنَ اٰمَنُوا نه دعویدار د ایمان دی یعنی منافقان او په خبر کښ د اٰمَنَ نه مراد ایمان شرعی دے نو حاصل دا شو چه دغه څلور ډلے صرف د ژبے د ایمان په دعوٰی سره نجات نشی موندلے څو پورے چه صحیح ایمان ئے نه وی قبول کړے او په دے خبر کښ لفظ د منهم پټ مراد دے. جواب ۲: دا خبر د اِنَّ نه دے بلکه دا بدل دے د الَّذِيْنَ هَادُوْا اه نه او خبر د اِنَّ روستو فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ اه دے او بناء دے په هغه قول چه الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا نه مراد صحیح مؤمنان دی او الَّذِيْنَ هَادُوْا اه کښ دوه قسمونه دی یو هغه چه هغوی صحیح ایمان نه لری او دویم هغه چه صحیح ایمان لری نو دلته دویمه ډله مراد ده یعنی هغه یهود و نصارٰی او صابئین چه صحیح ایمان لری نو د هغوی حکم دا دے چه فَلَهُمْ اَجْرُهُمْ اه۔

سوال:- په دے دوه (ایمان بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ) سره خو پوره ایمان نه حاصلیږی څو پورے چه رسولان، کتابونه، ملائیک او تقدیر او نه منی او دا رنګ د دغه دوؤ منل خو په یهودو او نصارٰؤ کښ وُو؟
جواب:- دلته مراد د ایمان نه ایمان شرعی قرآنی دے یعنی کوم ایمان ته چه قرآن او اخری رسول دعوت ورکوی هغه مراد دے او ذکر د دوه ایمانیاتو اشاره ده ذکر د طرفینو او مراد ترینه ټول ایمانیات دی۔ حاصل د ایت دا دے چه یهودو او نصارٰی او صابئینو ته دعوت دے د ایمان بالقرآن و الرسول ته په شرعی طریقے سره ځکه چه روستو د نزول د قرآن نه یهودیت

أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ ط

واخسته موتږه پخه وعده ستاسو او پورته کړو موږ ستاسو د پاسه طور غر.

خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ

(راوئیل موږ) اونیسئ هغه کتاب چه درکړی دے موږ تاسو ته په کوشش سره او یاد کړئ هغه احکام چه په هغې کښ دی

لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿٦٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّيْتُم مِّن بَعْدِ

د دے د پاره چه بچ شئ (د ګناهونو یا د اُور نه). بیا مخ واړوو تاسو روستو

وغیره منسوخ شوی دی. د دے وجے نه هغه قول ته حاجت نیشته چه دا ایت منسوخ شوے دے په ایت د سورة آل عمران سن۱۹ سن۸۵ بلکه ایمان بالله او بالیوم الآخر تعبیر دے د مکمل دین اسلام نه.

فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ، په روستنئ توجیه سره داخبر د اِنَّ د پاره او هر کله چه دغه اسم چه الَّذِينَ آمَنُوا اه دے متضمن دے معنیٰ د شرط لره نو خبر کښ یئے فا د دے وجے نه ذکر کړله. وَلَا خَوْفٌ اه، عدم د خوف او حزن کنایه ده د دخول د جنت نه اولاً بغیر د دخول د جهنم نه او نور تفسیر د دے مخکښ تیر شوے دے.

فائده:- ابوحیان د قشیری نه نقل کړیدی چه د دے نه معلومه شوه چه هر کله اصل یو وی او لا رے کښ اختلاف وی نو دا مانع د قبولیت نه نه دے نو چاچه رشتینے ایمان په الله تعالیٰ اولرلو او د هغه حقوق او صفات ئے او منل نو که په نوموتو (د جماعتونو) کښ اختلاف وی نو دا نقصان نه ورکوی په حصول د رضا د الله تعالیٰ کښ.

سن۶۳ د دے ایت نه دویم خطاب شروع دے تر سن۸۲ پورے او په دیکښ دوه حصے دی په اوله حصه کښ درے خباثات د بنی اسرائیلو د مشرانو ذکر کوی ۱. لوظ ماتول په باره د کتاب الله کښ. ۲. حیلے کول په احکامو د الله تعالیٰ کښ ۳. قتل کول د پاره د دنیا او په پاکو خلقو باندے بهتان تړل. او پنځه خباثات د دوی د کشرانو ذکر کوی او هغه پنځه قسمونه وئ په دوی کښ (۱) تحریف معنوی کوؤنکی (۲) منافقت کوؤنکی (۳) تقلید کوؤنکی امیان (۴) تحریف لفظی کوؤنکی (۵) د جنت دعوے کوؤنکی سره د نا کاره

عملونونه۔ او په آخرکښ تتمه ده د دے خطاب په تخویف اخروی او بشارت اخرویه سره۔

تنبیه:۔ د دے ایت نه تر ۹۶ پورے تقریباً پنځوس خباثات د بنی اسرائیلو ذکرکوی او دغه اسباب د انتقال د نعمت د رسالت اوخلافت دی د دوی نه بنی اسماعیلوته۔

ربط د دے د مخکښ ایت سره دا دے چه هرکله د دوی ځلورغټ معاصی (ګناهونه) ذکرشول۔ کفر۔ قتل۔ عصیان او اعتداء، نو دوی د هغے نه انکار کوؤ نو اوس د هغے تفصیل ذکرکوی چه مختلف واقعات دی او دوی د هغے نه انکارنشی کولے او مینځ کښ اِنَّ الَّذِیۡنَ اٰمَنُوۡا په طریقه د جملے معترضے سره دے دویم ربط دا دے چه تیرشوی ایت کښ ذکر د ایمان بالله والیوم الاخر او عمل صالح اوشو د پاره د نجات نو یهود او نصارا ؤ دعوٰی کوله چه مونږ هم دا صفات لرو نو مونږ نجات والا یو نو اوس جواب کوی چه ستاسو دا سے خبائث دی چه هغے ته عملِ صالح نشی وئیلے کیدے بلکه په هغے سره ایمان زائیل کیږی۔

وَاِذۡ اَخَذۡنَا مِیۡثَاقَکُمۡ هرکله چه دوی په زمانه د موسیٰ علیه السلام کښ په تورات باندے عمل کولوکښ سستی شروع کړله او د هغے د احکامونه یئے مخالفت کولو نو الله تعالیٰ په دوی باندے طورغر اوچت کړو په واسطه د جبریل علیه السلام او دوی ته یئے په واسطه د موسیٰ علیه السلام اوئیل چه په تورات باندے پوره عمل شروع کړئ او مخالفت مه کوئ ګنی دا غردرباندے درغورځوم او ټول به هلاک شئ نو دوی اقرار اوکړو د پوره عمل کولو او د دے میثاق تفصیل یئے په لفظ د خُذُوۡا مَاۤ اٰتَیۡنٰکُمۡ الخ سره ذکرکړیدے۔ او د دے میثاق تفسیر په نورو طریقو سره چه (عهد د توحید یا ایجاد د عقل دے په هر انسان کښ یا عهد د الست بربکم دا رنګ نور اقوال دی) دا مناسب نه دے هاں په تورات کښ دغه عهود ذکر دی۔

سوال:۔ میثاق مفرد دے نو جمع ته ولے مضاف کړے شو؟

جواب ۱ کُمۡ په تاویل د کلّ واحد سره مراد دے لکه یخرجکم طفلا (سورة غافر ۶۷)۔ جواب ۲ میثاق په حقیقت کښ یو دے نو که جمع یئے

ذکر کړے دے نو احتمال را تلو دَ تغائیر دَ میثاق پیدا کیدلو۔
وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ دا سے په سورة اعراف ۱۷۱ کښ هم ذکر دے۔ طور په لغت دَ عرب کښ هر شین غر ته وئیلے شی مؤرخینو لیکلی دی چه په جزیرۂ غا سینا کښ ډیر غرونه دی هر یو ته طور وئیلے شی لیکن کوم طور کښ چه میقات دَ موسیٰ علیه السلام شوے وُو هغه ته اوس جبل سینا وئیلے شی او دا طور هغه دے کوم چه میقات والا دے یا بل دے چه دَ هغے په خوا کښ بنی اسرائیل اوسیدل۔ رفع په قرآن کریم کښ یوکم دیرش کرته ذکر ده دَ هغے نه په دولس ځایونو کښ رفع په معنیٰ دَ رفع دَ درجاتو او عزت ورکولو ده (هغه به په خپل خپل مقام کښ راځی) او اولس ځایونو کښ رفع په معنیٰ حقیقی سره کړې دلته هم رفع په معنیٰ حقیقی ده اوچتول دَ خپل ځائے نه۔ فَوْقَكُمْ لفظ دَ فوق په قرآن کښ یوشلو یښت کرته راغلے دے په نهه معانیو سره او له معنیٰ زیادت په صفت یا جسم کښ لکه فما فوقها سورة بقره ۲۶، دویمه معنی غلبه په حجت کښ سورة آل عمران ۵۵، دریمه زائد دَ پاره دَ تاکید (سورة نساء ۱۱)، څلورمه اسمانی نعمتونه (سورة مائده ۶۶)۔ پنځمه صفت دَ الله تعالیٰ هغه هم معنیٰ حقیقی ده اوچتوالے لیکن بغیر دَ تکییف او بغیر دَ تشبیه نه (سورة انعام ۱۸)۔ شپږمه زیادت دَ عقل او دَ مال (سورة انعام ۱۶۵)۔ اوومه په معنی دَ علی سره (سورة انفال ۱۲)۔ اتمه اوچتوالے دَ زمکے دَ پاسه (سورة ابراهیم ۲۶)۔ نهمه معنی ترقی دَ کړو په عذاب کښ (سورة نحل ۸۸)۔ نو دلته تورے معانی نشی کیدلے یعنی اصل معنی مراد ده چه اوچتوالے دے۔ په قرینه دَ رفع سره دَ دے ایت او دَ سورة اعراف دَ ایت الفاظ (رفع - فوق - نتق - ظلة - واقع بهم) ښکاره دلالت کوی چه مراد دَ دے نه حقیقی اوچتوالے دے یعنی غرئے دَ دوی دَ پاسه اوچت کړو لکه دَ وریځ یا چهترئ پشان او غالب ګمان وُو چه دَ دوی دَ پاسه به راپریوځی۔ او دَ دے تائید پخپله یهودیانو کړے دے تالمود چه شرح دَ تورات ده په هغے کښ دَ دے رفع حقیقی ذکر کړے ده او بل کتاب جیوش انسائیکلو پیډیا ص ۳۲/۱۲ کښ هم دا تصریح کړے ده (ماجدی)۔ دلته چه ځے کوم مفسرینو دَ دے رفع حقیقی نه انکار کړے دے او قسما قسم تاویلونه کړیدی هغه بے ضرورته او حقیقت پریښودل او مجاز ته تلل دی او چه

درسره یې داعقیده وی چه معجزه نه منی نو هغه خو د منکرین حدیث پشان د معجزاتو منکر او د عقیدے نه بدعتی دے مواهب الرحمان کښ وئیلی دی چه دا قول د منکرین حدیث دے۔

سوال :- غرپورته کول خو مجبور کول دی ایمان ته او جبری ایمان خو قبول نه وی او دارنګ د لا اکراه فی الدین نه هم خلاف راځی؟

جواب :- تفسیر فتح البیان د نواب صدیق حسن خان کښ لیکلی دی چه قفال وئیلی دی چه دا اجبار او الجاء نه ده بلکه اکراه ده فرق دادے چه د اجبار سره اختیار د انسان باقی نه پاتے کیږی لکه ایمان په وخت د غرغره (زنکدن) کښ دا قبول نه دے او اکراه سره خو اختیار باقی پاتے وی یعنی د اکراه په وخت کښ انسان سوچ اوکړی نو چه کوم طرف ته ورته اسان او غوره ښکاره شی نو هغه اختیار کړی۔ او په داسے وخت کښ ایمان زمونږ په دین کښ هم قبول دے لکه چه د یو انسان په سر باندے توره کیښودلے شی او ورته اُوئیلے شی چه ایمان راوړه کنی وژلے کیږے نو که هغه کلمه د ایمان اووائی نو هغه قبول ده صحیح حدیث په دے باندے دلیل دے او په سورة نساء ۹۴ کښ هم داسے ثابت ده۔ دارنګ زمونږ په دین کښ د سزاګانو او حدودو د یرے د وجے نه یو انسان طاعت کوی او د ګناهونو نه ځان ساتی نو دا هم سبب د ثواب دے۔ او هرچه لا اکراه فی الدین دے نو د هغے د دے سره هیڅ منافات نیشته د هغے تفسیر به انشاءالله په خپل ځائے کښ راشی۔

خُذُوا مَا آتَیْنٰکُمْ بِقُوَّةٍ، دلته قُلْنَا پټ مراد دے او دا تفصیل د میثاق دے قوت په معنیٰ د کوشش سره دے یا په معنی د عمل کولو یا په معنیٰ د نیت او اخلاص سره یا په معنی د استطاعت سره او اخذ نه مراد عمل کول دی یا مراد د دے نه راتیول دی په نبی لاس سره او دا د کتاب ادب دے چه هغه په نبی لاس کښ کلک رانیسئ۔ او مَا آتَیْنٰکُمْ نه مراد تورات دے۔

وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ ذکر عام دے په ژبے سره تلاوت او درس کول او په زړه سره سوچ او فکر د هغے په معانی او مقاصدو کښ او په ژبه او زړه دواړو سره یعنی درس و تدریس د الفاظو او د معانی۔ او هرکله چه درجه د عمل اهم ده نو هغه یې مخکښ ذکر کړه او لوستل او فکر کول اګرچه مقدم دی

ذٰلِكَ فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ

دَ دے لوظ نه. نو كه نه وے فضل دَ الله تعالىٰ په تاسو باندے او رحمت دَ هغه

لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۶۴﴾ وَلَقَدْ

خامخا وئے به تاسو دَ هلاک شوو نه. او په تحقيق سره

ليكن هغه يے روستو راؤړلو. لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ مراد دَ عذاب نه بچ كيدل او متقي جوړيدل او دَ منهياتو نه ځان ساتل دي. اشاره ده چه درس او تدريس دَ كتاب الله او په هغے عمل كول سبب دَ حصول دَ تقوىٰ دے په دغه ټولو معانو سره. او قرطبي دَ دے ايت په ذيل كښ ليكلي دي چه مقصود دَ الله تعالىٰ دَ كتابونو نه په هغے باندے عمل كول دي صِرف تلاوت او ترتيل دَ هغے مقصد نه دے بلكه صرف عمل دَ تلاوت خوشاته غورزول دي دَ كتاب نوبيا وائي چه دا عهد په مونږ باندے په باره دَ قرآن كښ لازم او واجب دے نو مونږ ته امر كړے شوے دے دَ اتباع دَ قرآن او عمل كول په هغے باندے ليكن مونږ پريښودلے دے پشان دَ يهودو او نصاراؤ او حديث دَ موطا يے ذكر كړے دے چه ابن مسعود رضي الله عنه يو شخص ته اوئيل چه ته خو تن په داسے زمانه كښ يے چه فقهاء يے ډير دي او قاريان كم دي دَ حدودو دَ قرآن حفاظت كيدے شي او حروف يے ضائع كولے شي (مراد دَ دے نه ضياع نه ده بلكه دَ اهتمام كموالے دے) او سوال كوؤنكي لږ دي او وركوؤنكي ډير دي. مونځونه اُوږده كوي او خطبے لنډے وائي عملونه شروع كوي مخكښ دَ خواهشاتو نه. او روستو به بله زمانه راشي چه فقاهت والا (پوهه لرونكے په مقاصدو دَ قرآن) به لږ وي او قاريان به ډير وي دَ حروف دَ قرآن حفظ به ډير وي او حدود دَ هغے به برباديږي سوال كوؤنكي به ډير وي او وركوؤنكي به لږ وي خطبے به اُوږدے وائي او مونځونه به لنډ كوي په خواهشاتو باندے به شروع كوي مخكښ دَ عملونو نه يعني فرض اعمال به نه كوي دَ هوىٰ تابعداري به كوي. زه وايم چه زمونږ زمانه هم دغسے ده مونږ وينو چه دَ حفظ دَ قرآن مدارس او اهتمام ډير زيات دے او دَ فهم دَ قرآن اهتمام ډير كم خلق كوي او خطبے اُوږدے وائي او مونځونه په تادئ سره كوي (وَاِلَى اللّٰهِ الْمُشْتَكیٰ).

۱۳ په دے ایت کښ ذکر د خباثت د هغوی دے په لفظ د تولی سره او هغه متضمن دے ډیرو قباحتونو لره او هغه قاسمی نقل کړیدی د قفال نه او ابوحیان هم ذکر کړیدی او هغه د دوی په تورات کښ ذکر دی لکه تحریف د کلماتو، ترک د عمل په کتاب باندے، قتل د انبیاؤ، کفر بالآیات، اذیتونه ورکول موسیٰ علیه السلام ته، او نورے ډیرے بد عملئ چه د دوی په مخکنو او روستنو کښ موجود وے۔

سوال:- تولی خو مخکښ قبولیت غواړی دلته خو قبولیت د میثاق ذکر نه دے؟ جواب:- د دے سورت په ۹۳ کښ قبولیت ذکر دے د قالوا سمعنا سره او تولی ئے ذکر ده په عصینا سره او سبب د تولی ئے هم ذکر کړے دے په اشربوا اه سره۔

سوال:- ثُمَّ او مِنْۢ بَعْدِ خو دواړه په روستووالی باندے دلالت کوی نو دا خو تکرار دے؟ جواب:- ثُمَّ کښ ذکر دے روستووالے د تولی د قبولیت نه او مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ کښ اشاره ده روستووالی د زمانے ته چه د تولی زمانه د قبولیت نه لرې روستو وه یا مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ سره اشاره ده اخذ د میثاق او رفع د طور ته۔

فَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ په دے کښ ډیر اقوال دی د مفسرینو۔ (۱) فضل اسلام دے او رحمت قرآن دے (۲) فضل قبول د توبے او رحمت عفو د گناه (۳) فضل توفیق د توبے او رحمت قبولیت د توبے۔ (۴) فضل بعثت د رسول الله صلی الله علیه وسلم او رحمت د هغه زمانه موندل۔ بناء په قول اول او څلورم سره مقصود په خطاب کښ موجوده بنی اسرائیل دی په وخت د نزول قرآن کښ۔ یعنی د الله تعالیٰ اراده وه چه دوی ته په آخری رسول او قرآن رالیږی د دے وجے نه ئے په دوی باندے عذاب د دنیا رانه وستلو او بناء په دویم او دریم قول مخکنی بنی اسرائیل مراد دی چه الله تعالیٰ هغه وخت هغوی له توفیق ورکړو او توبه ئے قبوله شوه اگرچه ډیرکرته گناه او بیا توبے د دوی وے نو د دے وجے نه ئے دوی د مهلك عذاب نه بچ کړل۔

لَكُنْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ دلته خسران په معنیٰ د استیصالی عذاب د دنیا دے یا خلود دے په جهنم کښ په آخرت کښ په باره د هغه کسانو کښ چه

عَلِمْتُمُ الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِي السَّبْتِ

پوهه يئ تاسو په (حال) دَ هغه چاچه زياتے يئ کړے وو ستاسو نه وو په ورځ دَ خالي کښ

فَقُلْنَا لَهُمْ كُوْنُوْا قِرَدَةً خٰسِئِيْنَ ﴿٦٥﴾ ج

نو او وئيل مونږ هغوی ته شئ شادوګان ذليلان .

صريح کفر او شرک يئ نه وؤ کړے۔

۶۵ ربط دَ مخکښ ايت سره دا دے چه اول يئ صريحي ګناه دَ دوی په نقض دَ ميثاق سره ذکر کړو نو اوس نقض دَ ميثاق په طريقه دَ حيلے کولو سره ذکر کوی او دا اشاره ده پټه ګناه کولو ته ۔ ځکه حيله ګر اراده دَ ګناه کوی ليکن ځان دَ خلقو نه په طريقه دَ حيلے سره پټوی نو دا دَ نقض ميثاق دويم قسم دے چه دَ دوی دَ مشرانو نه روستو دويمه زمانه کښ وؤ۔ دويم ربط دا دے چه مخکښ فضل او رحمت ذکر شو په دوی باندے نو سوال پيدا شو چه کَ دے واقعے نه روستو په دوی باندے هيڅ عذاب نه دے راغلے؟ نو په دے ايت کښ دَ هغے جواب کوی۔ دريم ربط دا دے چه مخکښ ذکر دَ اول دَ خباثت دَ مشرانو دَ هغوی دے او په دے کښ دَ دوی يو قسم حيله ذکر ده چه حرام څيز حلالول دی په حيلے سره او روستو به دويم قسم حيله ذکر کوی: دَ دے واقعے تفصيلی ذکر په سورة اعراف ۱۶۳ کښ دے دا واقعه دَ زمانے دَ داؤد عليه السلام ده او هغه قريے والا چه دا کار يئ کړے وؤ هغے ته ايله وئيلے کيدله او س زمانه کښ هغے ته عقبۀ داؤد وئيلے کيږی۔ او ابتداء دَ دے قصے دا ده چه الله تعالیٰ بنو اسرائيلو ته په واسطه دَ موسیٰ عليه السلام او فرمائيل چه په هفته کښ يو ورځ دَ عبادت دَ خپل رب دَ پاره خاص کړئ او غوره ورځ دَ جمعے ده نو اول دوی په انتخاب دَ ورځ کښ اختلاف او کړو خو اکثريت ورځ دَ خالي غوره کړله او دَ الله تعالیٰ دَ غوره والی هيڅ لحاظ يئ او نه کړلو دا سے په تفسير دَ سورة نحل ۱۲۴ کښ راځی نو دَ خالي په ورځ په دوی باندے دَ دنيا هر کار حرام کړے شو که ښکار کول وؤ يا نور څه تجارت وغيره ۔ دا عمل چليدلو تر دے واقعے پورے ليکن په دوی کښ نور فسق وفجور زيات شول لکه په سورة اعراف ۱۶۳ کښ (يَفْسُقُوْنَ) ذکر دے دَ دے وجے نه الله تعالیٰ په هغوی باندے دَ خاص ابتلاء اراده او کړه

چه تفصيل يې سورة اعراف کښ ذکر دے. حاصل يې دا دے چه په دوی کښ يو ډله داسے پيدا شوه چه د مهيانو نيولو د پاره يې په ورځ د خالی کښ حيله جوړه کړله چه روستو د هغے ذکر رائی.
وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ، په علم او معرفت کښ فرق دا دے چه معرفت د ذات کے معلوم سره تعلق لري او علم د هغه د حالاتو سره تعلق لري نو دلته دوه احتماله دی اول دا چه علم په معنی د معرفت سره دے او الَّذِيْنَ د هغے مفعول دے او علم په معنیٰ د معرفت په قرآن کښ ډير راغلے دے. دويم احتمال دا دے چه علم په خپله معنی سره دے او مضاف پټ دے يعنی احوال الذين اه.
سوال:- د دے قصے په ابتداء کښ يې لفظ د اذ نه دے ذکر کړے په شان د نورو واقعاتو بلکه دلته عَلِمْتُمْ او په سورة اعراف کښ وَاسْئَلْهُمْ عَنِ القرية اه ذکر دے؟ جواب:- دا قصه بنو اسرائيلو پټوله ځکه چه په دے کښ د دوی ډيره بدنامه وه چه د ځينې د پاره د الله تعالیٰ د حکم نه خلاف کول وُو په دے وجے سره د تاکيد د پاره يې اوئيل وَلَقَدْ عَلِمْتُمْ او دَوَاسْئَلْهُمْ عَنِ القَرْيَة اه کښ مقصد د هغے نه تپوس کول نه وُو بلکه الزامی تپوس کول مقصد دے نو د لَقَدْ عَلِمْتُمْ سره د هغے څه منافات نيشته.
الَّذِيْنَ اعْتَدَوْا مِنْكُمْ فِى السَّبْتِ، اعتداء نه مراد حيله کول دی د پاره د ښکار د مهيانو اکثر مفسرينو ليکلی دی چه دوی د جمعے په ورځ د سمندر په غاړه واړه واړه لختی او کندے او کنستلے د پاره د دے چه د خالی په ورځ مهيان په دے لختو او کندو کښ داخل شی نو واپس به تريته نشی تللے ځکه چه د خالی په ورځ به دوی ورخوته بند کړل. بله طريقه دا وه چه د جمعے په ورځ به يې کندے په نارونو کښ اُوبو ته اويزاندے کړلے د پاره د دے چه د خالی په ورځ په دے کښ مهيان اونخلی نو بيا به يې د اتوار په ورځ د اُوبو نه رااُويستلے. اګرچه د جمعے په ورځ کندے او لختی کنستل او کندے اچول منع نه وُو ليکن په دے نيت سره چه د خالی په ورځ مهيان راګيرشی نو حرام وُو. دا رنګ د خالی په ورځ مهيان په کندو او کندوکښ راګيرول دا د خالی د ورځے بے احترامی او بے عزتی وه نو حرام وه نو دے مجموعه نه يې دلته اعتداء او په سورة اعراف کښ عدوان اوئيلو. فِى السَّبْتِ په دے کښ دوه احتماله دی اول دا چه ورځ د خالی کښ يې اعتداء کوله دويم دا چه

(فی حکم السبت) په باره د تعظیم د خالی کښې اعتداء کوله - او دا دواړه احتمالونه صحیح دی - نو که دوی باندې چا اعتراض کوو چه تاسو د خالی د ورځې بے احترامی او کړله نو دوی به تاویل کوو چه موږ خو د خالی په ورځ د داسې عمل نه منع کړے شوی وو چه د عبادت نه مو مشغولوی او دا طریقه خو موږ لره د عبادت نه نه مشغولوی دا رنګ دوی به وئیل چه د خالی په ورځ مهیا د اوبو نه راویستل حرام دی نو موږ خو د خالی په ورځ په اوبو کښې ساتلی دی نو دا کار خو حرام نه دے او د دے نه دا متل پښتنو کښې مشهور دے (چه ملا صاحب ورله خپے اوبو ته کړلے) نو دا تاویل باطل وو او د هغې سره حیله جوړول سبب د عذاب د دوی او ګرځیدلو.

فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خٰسِئِينَ، فَقُلْنَا کښې اشاره ده چه دا عذاب د الله تعالیٰ د طرف نه وو هیڅ د هغې د مقابلې کولو طاقت نه لرلو - كُونُوا دا امر د پاره د تسخیر او تعجیز دے په دے کښې د مامور اختیار او قدرت نه وی لیکن اشاره وی سمدستی نزول د عذاب ته - قِرَدَةً ابن کثیر وئیلی دی چه شادو (بیزو) په حیواناتو کښې ډیر مشابهت په شکل کښې لری د انسان سره لیکن په حقیقت کښې انسان نه دے نو دا رنګ عمل د حیلې په ظاهر کښې مشابه دے د حق سره او په حقیقت کښې مخالف دے د حق نه او جزا خو د جنس د عمل نه وی د دے وجے نه د دے کسانو مسخ او کړے شوه په شکل د شادوګانو سره - او دا رنګ شادو په حیواناتو کښې په حیلو کولو سره ډیره مشهوره ده نو د حیله ګرو سره ئے مناسبت دے - خٰسِئِينَ خبر دے روستو د بل خبر نه د پاره د كُونُوا یا حال دے د اسم د كُونُوا نه او صفت د قِرَدَةً هم کیدے شی - خسأ لرے والی او د شړلو د پاره استعمالیږی د پاره د سپو یا شادوګانو نو دا رنګ انسانان چه هغوی سره مشابه وی نو هغوی د پاره هم استعمالیږی لکه په سورة مؤمنون ۱۰۸ کښې - نو په دے وصف کښې اشاره ده چه روستو د مسخ نه خلقو د دوی نه نفرت کوو او د ځان نه ئے شړل یا دا چه د الله تعالیٰ د رحمت نه لرے شول. او ټولو راویانو د تفسیر اتفاق کړے دے چه دا مسخ د شکلونو صوری حقیقی وه او قول د مجاهد نه چه نقل دے چه دا مسخ صوری نه وه صرف معنوی وه یعنی مسخ د زړونو وه نو ابن کثیر وئیلی دی اګرچه سند

فَجَعَلْنٰهَا نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا

نو اوګرځوله موږ دا قصه . عبرت هغه چا لره چه حاضر وو هغه وخت

وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۶۶﴾

او هغه چا لره چه روستو وو او وعظ (زجر) د پاره د پرهیزګارانو (د دے امت).

د مجاهد د قول جيد دے ليكن دا قول غريب خلاف دے د ظاهر نه او بيا يئے د ډيرو امامانو د تفسير نه نقل كړے دے چه دا مسخ صورى حقيقى وه او په آخر كښ وئيلى دى چه دا ما د دے وجے نه نقل كړو چه قول د مجاهد د دے ټولو نه مخالف دے نو هغه صحيح قول نه دے. او صاحب د مواهب الرحمان وئيلى دى چه دا وهم دے د يو راوى نه. او په دے امت (روستنى كښ دا ثبات د مسخ د پاره ډير احاديث وارد دى چه هغه ابن قيم الجوزيه په اغاثة اللهفان ص ۳۵۹/۱ كښ د كتاب ذم الملاهى د ابن ابى الدنيا نه نقل كړيدى او بيا يئے وئيلى دى چه دا مسخ به په دے اُمت كښ په دوه ډلو كښ كيږى اوله ډله هغه ناكاره عالمان چه په الله تعالىٰ او په رسول كريم صلى الله عليه وسلم باندے دروغ وائى او دين د الله تعالىٰ يئے بدل كړے وى دويم ښكاره فسق او د محرماتو اظهار كوؤنكى خلق. او ممسوخ نسل باقى پاتے كيدل يا نه پاتے كيدلو كښ تفصيل قرطبى ذكر كړے دے او حديث د بخارى چه په هغے كښ ذكر د زنا د شادو ګانو او د هغوى رجم كول ذكر دى د هغے جواب يئے هم كړے دے هغه اوګورئ.

سوال :- دا خلق چه مسخ شول نو د هغوى عقل فهم خو پاتے نه شو نو دوى خو بخپل عذاب نه پوهيدل ؟ - جواب :- په مسخ سره صِرف د دوى شكل بدل شو نو په خبرو او انسانى كارونو باندے قادر نه وؤ ليكن په دے پوهيدل چه الله تعالىٰ موږ له د ګناه د وجے نه دا سے عذاب راكړے دے (اللباب د ابو حفص دمشقى).

۶۶ په دے ايت كښ فائده او حكمت د دغه عذاب ذكر كوى.

فَجَعَلْنٰهَا، ضمير راجع دے دغه عقوبت يا امت ته چه مسخ كړے شوے وؤ يا قصے د هغوى ته. نَكَالًا، نكل په اصل كښ منع ته وئيلے شى نو نكال هغه عذاب ته وئيلے شى چه منع كوى فاعل د ګناه لره يا نورو خلقو لره د ارتكاب

(كولو) ځ دغه عمل نه او هغې ته عبرت ناکه سزا وئيلے شي لکه سزا ځ غلا کولو په لاس پريکولو سره نوم ځ هغې نکال دے په سورة مائده ۳۸ کښ.
لِمَا بَيْنَ يَدَيْهَا ابن عطيه وئيلي دي چه غوره دا ده چه ضمير راجع ځ عقوبت ته يعنې دا نکال او سزا ده ځ تير شوي ګناهونو. وَمَا خَلْفَهَا هغه ګناهونه چه ځ دے نه روستو وي. دويم قول دا دے چه ها ضمير هغه کلي ته راجع دے يعني څوک چه موجود وو په هغه کلي کښ او هغه څوک چه ځ هغوي نه روستو پيدا کيږي يا هغه کلي چه نزدے وو هغې کلي ځ دغه خلقو ته او هغه کلي چه لرې وو او دوا ړه دي ځ بني اسرائيلو ته يعنې بني اسرائيلو کښ چه په ورځ ځ خالي داسے عمل چا اوکړو نو دا سزا به ځ هغوي وي.
وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ موعظة مصدر ميمي دے ځ وعظ نه، وعظ په اصل کښ زجر او منع کولو او تخويف ته وئيلے شي. اګرچه کله په عامه معنى سره تذکير ته وئيلے شي. دلته اوله معنى مراد ده. لِلْمُتَّقِيْنَ لام ځ پاره ځ انتفاع دے او مراد ځ متقين نه زمونږ اُمت دے ځکه په اصطلاح ځ کتب الٰهيه کښ دا صفت په دے اُمت پورے خاص دے مخکنو اُمتونو کښ صفت ځ رہبانيون او رهبان مشهور وو او ابن کثير او قرطبي ځ زجاج نه روايت کړے دے چه دلته آخري اُمت مراد دے يعني دا قصه منع کوي او زجر ورکوي دے اُمت ته ځ ارتکاب ځ مثل ځ دغه عمل نه يعنې نورے حيلے کول لکه چه ابن کثير په سند سره حديث نقل کړے دے چه (لَاتَرْتَكِبُوْا مَا ارْتَكَبَتِ الْيَهُوْدُ فَتَسْتَحِلُّوْا مَحَارِمَ اللهِ بِاَدْنَى الْحِيَلِ) " مه کوئ هغه کارونه (حيلے) کوم چه يهوديانو کړے وو ځ دے ځ پاره چه حلال کړئ حرام ځ الله تعالى لره په معمولي حيلو سره "
سوال:- ځ بني اسرائيلو ځ پاره يې نکال ذکر کړو او ځ دے اُمت ځ پاره موعظه؟
جواب:- نکال په هغه ځائے کښ استعماليږي چه ځ نفسِ هغه عمل نه منع کول مقصد وي او موعظه په هغه ځائے کښ استعماليږي چه ځ مثل ځ هغه عمل نه منع ذکر کيږي. نو بني اسرائيل خو ځ خالي ځ ورځے ځ بے احترامئ نه منع وو نو ځ هغوي ځ پاره دغه واقعه نکال دے او دا اُمت خو ځ خالي ځ ورځے ځ کار نه منع نه دي بلکه ځ دغسے حيلو کولو نه منع شوي دي يعني داسے حيلے مه کوئ چه ځ الله تعالى حرام ځ ځان ځ پاره حلال وئ نو ځ دوي

دَ پاره لفظ دَ موعظة مناسب دے۔

**بحث دَ حیلوکولو په احکامو شرعیو کښ:-** هر کله چه دَ دے آیت نه معلومه شوه چه دغه حیله دَ دوی اعتداء او عدوان دے او سبب دَ عذاب دے نو معلومه شوه چه دا حیله حرامه ده او آلوسی په تفسیر کښ لیکلی دی چه دَ دے آیت نه بعضِ اهل علمو دلیل نیولے په حرمت دَ حیلوکولو باندے په دین کښ نو دَ دے مناسبت دَ وجے دَ دے مسئلے تفصیلی او مناسب بیان لیکل ضروری دی۔ په دے کښ شپږ مباحث دی۔

**بحث اول په معنٰی دَ حیله کښ دے:-** اکثر اهل لغت لیکلی دی چه لفظ حیله واوی دے یعنی دَ حول نه اخستے شویدے واو په یاء سره بدل شویدے بدلیدلو او انتقال ته وئیلے شی او په عرف کښ مَا یُتَوَصَّلُ بِهٖ اِلٰی حَالَةٍ خَفِیَّةٍ (راغب ص۱۳۷)۔ یا مَا یُتَوَصَّلُ بِهٖ اِلَی الْمَقْصُوْدِ بِطَرِیْقٍ خَفِیٍّ (عمدة القاری ص۱۰۸/۱۲)۔ دویم تعریف غوره دے او راغب ذکر کړیدی چه اکثر استعمال دَ دے لفظ په هغه کار کښ کیږی چه دَ هغے په کولو کښ خباثت وی (دهوکه ورکول) او کله کله استعمالیږی په هغه کار کښ چه په هغے کښ حکمت وی (لکه په سورة نساء ۹۸ کښ) اول ته خداع او مخادعه هم وئیلے شی دَ دے وجے نه امام بخاری کتاب الحیل کښ شپږم باب (باب مَا ینهٰی من الخداع) اینښودلے دے او دویم ته مخرج وئیلے شی یعنی طریقه دَ وتلو دَ تکلیف او مصیبت نه۔

**بحث ثانی په تقسیم دَ حیلو کښ:-** عینی او ابن حجر دواړو په شرح دَ صحیح بخاری باب فی ترک الحیل کښ وئیلی دی چه امام بخاری اول مطلق ذکر کړے وو او روستو ئے باب فی ترک الحیل ذکر کړو نو اشاره ده چه په حیل کښ بعضِ داسے دی چه هغه نشی ترک کیدلے نو معلومه شوه چه بعضِ حیل جائز او بعضِ ناجائز دی. عینی په دغه صفحه کښ ذکر کړی دی چه احتیال (حیله کول) دَ پاره دَ تیښتے کولو دَ حرامو نه او لرے کیدل دَ گناهونو نه څه پرواه پرے نیشته بلکه دا مستحب ده او احتیال دَ پاره دَ ابطال دَ حق دَ مسلمان گناه او عدوان دے او نسفی په کافی کښ دَ امام محمد بن حسن نه نقل کړے دے چه لَیْسَ مِنْ اَخْلَاقِ الْمُؤْمِنِیْنَ الْفِرَارُ مِنْ اَحْکَامِ اللّٰهِ تَعَالٰی بِالْحِیَلِ الْمُوصِلَةِ اِلٰی اِبْطَالِ الْحَقِّ (دَ مؤمنانو دَ اخلاقو نه

دا نه ده چه دَالله تعالیٰ دَاحکاموته تیښته کوی په دا سے حیلو سره چه رسوئونکی وی باطلولو دَحق ته) او سرخسی په المبسوط کتاب الحیل ص ۲۱۰/۳۰ کښ وئیلی دی حاصل ئے دا دے چه "هغه کار چه په هغے سره انسان دَ حراموته خلاصیږی یا حلال ته رسیدل کولے شی نو دغه حسن دے او کله چه حیله کوی دَپاره دَابطال دَحق دَ یو شخص یا حیله کوی په خائسته کولو دَ باطل کښ یا حیله کوی په یو حق کښ چه په هغے کښ شبهه داخلوی نو دا حیلے مکروه دی"- او فتاوٰی هندیه ص ۳۹۰/۶ کښ کتاب الحیل کښ وئیلی دی "چه مذهب زمونږ دَ علماؤ (احنافو) دا دے چه هره حیله چه استعمالیږی دَپاره دَابطال دَ حق دَ غیر یا دَپاره دَشبهے داخلولو په حق کښ یا دَپاره دَ خائسته کولو دَ باطل نو هغه مکروهه ده او هره حیله چه کیږی دَپاره دَ خلاصیدلو دَ حراموته یا دَپاره دَ رسیدلو حلال ته نو هغه جائز ده"- او ابن حجر وئیلی دی په فتح الباری ص ۳۴۲/۱۲ کښ چه "حیله په نیز دَ علماؤ په ډیر قسمه ده په اعتبار دَ باعث او سبب دَ حیلے کولو نو که رسیدل کوی دَحق ابطال ته یا دَ باطل اثبات ته په مباح طریقے سره نو دا حرام ده او که رسیدل کوی اثبات دَحق یا دفع کولو دَ باطل ته په مباح طریقے سره نو دا واجب یا مستحب ده او که رسیدل کوی دَپاره دَ بچ کیدلو دَ وقوع دَ مکروه نه په مباح طریقے سره نو دا مستحب یا مباح ده او که ترک دَ مستحب ته رسیدل کوی نو دا مکروهه ده"- او ابن قیم الجوزیہؒ په اغاثة اللهفان کښ ح ص ۷۶/۲ ته تفصیل دَ اقسامو لیکلے دے حاصل ئے دا دے چه دَ حیلو ډیر اقسام دی اول قسم هغه پټے لارے دی چه په هغے سره حرام فی نفسه ته رسیدل کیدے شی نو هغه حرام ده په اتفاق دَ مسلمانانو سره لکه حیلے جوړول دَپاره دَ مالونو دَ خلقو (په حیله دَ اسقاط مروجه کښ چه مال دَ خلق دغه فدیه اخلی دا ئے پوره مثال دے) په دے کښ یو قسم هغه دے چه دا ښکاره وی چه مقصد دَ دے شخص شر او ظلم دے او دویم قسم دا دے چه هغه شخص ښکاره کوی چه زما مقصد خیر دے او مقصد ئے پټ ظلم او بغی وی نو دا خو بے شکه گناه کبیره ده- او دریم قسم هغه څیز چه فی نفسه مباح وی لیکن په قصد دَ حرام سره حرام او گرځی لکه سفر دَپاره دَ قطع طریق (لارے شوکولو) یا غلا کولو- څلورم قسم، قصد اوکړی په حیلے سره رسیدلو دَ حق ته یا دفع کولو دَ باطل ته لیکن

هغه طریقه یې حرامه وی لکه دروغ قسم او دروغ شهادت کوی د پاره د حق ثابتولو یا د باطل د دفع کولو د پاره نو دا هم حرام دے۔ پنځم قسم چه یو سبب شرعی مباح ذریعه او ګرځوی د تحلیل د حرامو د پاره یا د ساقط کولو د واجب شرعی د پاره نو دا هم حرامه ده بالاتفاق (او حیله د اسقاط مروجه هم په دے کښ داخل ده) او دا رنګ حیله د اسقاط د زکوٰة یا د شفعے د پاره یې هم د دے مثال ذکر کړے دے۔ او شیخ رشید احمد ګنګوهی په لامع الدراری ص ۲۱۸ ج ۱۰ کښ وئیلی دی چه حیله کله د پاره د تحصیل د حق وی یا د احیاء د حق د مسلمان وی یا د دفعے د ظلم وی د مسلمان نه نو دا حیله جائز ده او د پاره د ابطال د حق د مسلمان یا د پاره د غورزولو د هغه په هلاکت کښ نو دا ناجائز ده۔

**بحث دریم په اختلاف د علماؤ کښ:۔** ابن حجر فتح الباری کښ وئیلی دی چه قول په جواز د حیلو کولو کښ د احنافو نه مشهور دے او نسبت د یو کتاب دے په دے باب کښ امام ابو یوسف ته لیکن معروف د هغه او د ډیر اماما نو ته دا ده چه حیله کول د پاره د قصد د حق مراد دی عام حیل مراد نه دی مشهور دا ده چه په نیز د امام مالک او امام احمد او امام بخاری رحمهم الله ټول حیل حرام دی او جائز دی په نیز د امام ابو حنیفه او امام شافعی رحمهم الله۔ لیکن صحیح دا ده چه قول د حرمت مطلقًا او قول د جواز مطلقًا صحیح نه دے بلکه تقسیم د ټولو په نیز ثابت دے۔ امام بخاری د کتاب الحیل په بابونو کښ په اهلِ کوفه یعنی احنافو باندے رد کوی معلومیږی چه هغوی په دغه مواضعو کښ د احتیال قائل دی اګرچه هغوی د هغے جواب نه کوی او هغے ته مخارج وائي دا رنګ قول د سرخسی دے چه الحیل فی الاحکام المخرجة لمن الامام جائزة عند جمهور العلماء ص ۲۰۹ ج ۳۰ (حیلے کول په هغه حکمونو کښ چه د هغے تخریج کړے شوے دے د (اقوالو) د امام ابو حنیفه رح نه جائز دی په نیز د ډیرو علماؤ) اګرچه په باره د کتاب الحیل د امام محمد کښ د ابو سلیمان جوزجانی قول یې ذکر کړے دے چه هغه د دغه کتاب نسبت امام محمد ته بد ګڼړلے دے لیکن د ابو حفص قول ته ترجیح ورکړے شوے ده چه دغه د امام محمد تصنیف دے او صاحب د جواهر المضیئة په ص ۲۰۸ ج ۲

کښ ترجیح ورکړے ده قول د ابو سلیمان جوزجانی ته۔ هاں د امام محمد او د امام
ابو یوسف اختلاف په حیله د اسقاط د زکوٰة او د شفعه وغیره کښ فتاوی
هندیه ص ۳۹۱ ج ۶ کښ ذکر دے چه امام محمد دا حیله مکروه گنړلے ده او امام
ابو یوسف په دے کښ رخصت ورکړے دے لیکن مشائخو احناف عمل
کړیدے په قول د امام محمد باندے۔ او د امام ابو حنیفه نه په دے باب
کښ هیڅ تصریح نقل نیشته۔

**بحث څلورم په دلیلونو د اثبات د حیلو کښ سره د جوابونو نه۔**

اول دلیل ایت د سورة نساء ۹۸۔ طریقه د استدلال داده چه الله تعالی
د مستضعفینو عذر دا ذکر کړے دے چه هغوی د ځان د خلاصولو د پاره
حیله نشی کولے نو معلومه شوه چه د کافرانو سره د اوسیدلو نه د بچ
کیدلو د پاره حیله ښه کار دے او دا حیله ده د حرام نه د بچ کیدلو د پاره۔
جواب دا دے چه د دے نه هغه قسم حیله ثابت شوه چه په هغے کښ اتفاق
دے نو د یو قسم حیلے د اثبات نه د ټولو قسمونو اثبات نه لازمیږی۔
دویم دلیل واقعه د ایوب علیه السلام ایت د سورة ص ۴۴ د هغے تفصیل
او محمل په تفسیر د سورة ص کښ ذکر دے چه هغه خاص وه په ایوب
علیه السلام پورے بل دا چه هغه د مظلوم نه د ظلم د دفع د پاره حیله
ده نورے حیلے په هغے باندے نشی قیاس کیدلے دا رنګ د هغه په
ملت کښ د حنث د پاره کفاره مشروع نه وه او زمونږ په ملت کښ چه
کله داسے قسم وارد شی نو په کفارے سره خلاصیږی نو حیلے ته حاجت
نیشته او قیاس د حیله اسقاط مروجه په دے باندے ډیر غلط دے
ځکه چه په دے کښ ډیر څیز کم کړے شویدے او په حیله د اسقاط کښ
لږ څیز زیاتوی۔ دریم دلیل د ربوٰنه د بچ کیدلو د پاره چه نبی صلی الله
علیه وسلم اوفرمائیل "بِعِ الجمع بالدَّراهِم ثم اشترِ بالدَّراهِم جَنِيبًا"
(خرڅ کړه ردی کهجورے په روپو سره بیا واخله په روپو سره جنیب کهجورے)
لیکن په دے باندے د حیلے تعریف صادق نه دے دا خو ښکاره دوه عقود
جدا جدا دی او یو جائز عقد د بل جائز عقد د پاره ذریعه ده دا خو اتفاقی
صورت دے۔ څلورم دلیل سنت دلالت کوی چه انسان لره جائز دی
چه قول د کذب نه ځان بچ کړی په معاریض سره او دیته حیله فی الاقوال

وئیلي شي او دا دے د پاره ابن قیم رحمہ ډیر احادیث او آثار ذکر کړیدی. لیکن د دے معاریضو او د حیلو د افعالو غیر شرعیه په مینځ کښې ډیر فرق دے. پنځم دلیل په واقعه د یوسف علیه السلام کښې كَذٰلِكَ كِدْنَا لِيُوسُفَ یعني یوسف علیه السلام د رور د حصارولو د پاره د رور په سامان کښې لوښے کیښودلو او بیا یې د هغه د سامان نه راأويستلو او د هغوی د قانون مطابق یې یو کال د پاره د ځان سره قید کړو او دیته الله تعالیٰ کید وئیلی دی یعنی پټ تدبیر او د هغے بل نوم حیله ده. ابن قیم په اغاثة اللهفان ص۱۰۲/۲ کښې د دے تفصیلي جواب کړے دے حاصل یې دا دے چه په دے واقعه باندے استدلال هغه وخت صحیح کیږی چه نفس دا سے عمل زمونږ په شرع کښې جائز شي لیکن په شرع کښې داسے کار چه په هغې پلار خفه کوی او په رور باندے بدنامه لګوی او د بل ملک په قانون باندے فیصله کوی دا نه دی جائز نو هر کله په مقیس علیه عمل جائز نه وی نو په هغې باندے نورے حیلے څه رنګ قیاس کیدے شي بلکه دا خاص ده په یوسف علیه السلام پورے په دوؤ وجوسره اول وجه كِدْنَا، نسبت د دے تعلیم الله تعالیٰ ته دے نو په دے کښې وحي موجود ده او په نورو حیلو باندے خو وحي نیشته - دویمه وجه لِيُوسُفَ لام د پاره د تخصیص دے یعنی دا تدبیر خاص وؤ په یوسف علیه السلام پورے.

**بحث پنځم دلیلونه د منع د حیلو او قباحات د حیلو:-** او مراد د حیلو نه هغه حیلے دی چه د اسقاط د واجباتو، او تحلیل د حرامو، او مظلوم نه ظالم او د ظالم نه مظلوم جوړول، او د حق نه باطل او د باطل نه حق جوړولو د پاره وی. دلیل اول سورة بقره ۹ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا - مخادعه هم حیله جوړول دی په اظهار د خیر کښې خلاف د باطن نه د پاره د حاصلولو د غلط مقصد او دا وصف د منافقینو دے. په روایت د سعید بن منصور د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه دهٔ ته یو سړے راغے وئیل یې چه زما تره خپله ښځه په درے طلاقو سره طلاقه کړیده آیا بل سړے د هغے تحلیل د دهٔ د پاره کولے شي (یعنی دویم نکاح په شرط د تحلیل سره) نو هغه جواب او کړو څوک چه خداع د الله تعالیٰ سره کوی نو الله تعالیٰ به هغه سره خداع او کړی. (اغاثة ص۳۵۶/۱) د شریک بن عبد الله نه نقل دی چه کتاب الحیل کتاب المخادعه دے. دویم دلیل، حیله کول استهزاء او لعب دے

په احکام شرعیه پورے او د اصفت د اهلِ نفاق دے (سورة بقره ۱۴ سورة توبه ۶۵) کړدے وجه دا ده چه اقوال شرعیه او احکام شرعیه د پاره د حقائقو او شرعي مقاصدو دی او یو انسان هغې لره د هغه مقصد نه اړوی بل مقصد ته نو دا استهزاء او تلاعب دے (لوبے کول دی) او د دے مثال روایت د نسائي دے د محمود بن لبید نه چه یو سړی خپله ښځه په دریو طلاقو سره طلاقه کړے وه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ نو هغه او فرمائیل آیا لوبے کیدی یشی په کتاب د الله تعالی پورے او حال دا دے چه زه ستاسو په مینځ کښ یم۔ دریم دلیل واقعه د باغ والا چه په سورة قلم کښ ده چه هغوی د مسکینانو د حصے ساقط کولو د پاره حیله جوړه کړله چه صبا وختی به د باغ پریکولو (لرے کولو) د پاره ځو او شور به نه کوؤ هسے نه چه مسکینان خبر شی دا په سورة قلم کښ د ۱۷ نه تر ۳۳ پورے ده او د غه حیله سبب د عذاب او د ملامته کولو د یو بل او د افسوس ځ دوی او ګرځیده. دا رنګ حیله اسقاط مروجه هم په اصل کښ د مسکینانو په باره کښ ده او مالدار ملا یانو ته ورکول مقصد نه دے۔ څلورم دلیل قصه د اصحاب السبت ده چه په سورة بقره ۶۵ او سورة اعراف ۱۶۳ کښ ذکر ده هغوی هم د ښکار د مهیانو د پاره (چه حرام وؤ په ورځ د خالی) حیله جوړه کړله چه ګنډاے یے په ورځ د جمعے اوبوته واچولے د پاره د دے چه د خالی په ورځ پکښ مهیان او نخلی او بیا به یے د اتوار په ورځ ګنډاے راویستلے نو دا حیله ده د پاره د حاصلولو د حرامو نو په دوی باندے عذاب د شکلونو د مسخ کیدو راغے چه د حیله کرو سره مناسب دے۔ پنځم دلیل امام بخاریؒ د رد د حیلو د پاره کړدے حدیث نه دلیل نیولے دے "اِنَّمَا الْاَعْمَالُ بِالنِّيَّاتِ" یعنی حیله کر اګرچه په ظاهر کښ جائز کار کوی لکه ګنډاے اچول په ورځ د جمعے۔ یا یو مسکین ته د ډیرے فدیے ورښل لیکن نیت د هغه حرام څیز حلالول او اسقاط د واجباتِ شرعیه دے نو نیت یے خراب دے نو دغه عمل یے برباد دے۔ شپږم دلیل امام احمد بن حنبل رحمة الله علیه دلیل نیولے دے د پاره د ابطال د حیلو په حدیث د خیار مجلس یا خیار قبول سره په باب د بیع کښ چه اَلْبَيِّعَانِ بِالْخِيَارِ حَتّٰى يَتَفَرَّقَا اِلَّا اَنْ يَكُوْنَ صَفْقَةَ خِيَارٍ وَلَا يَحِلُّ لَهٗ اَنْ يُّفَارِقَهٗ خَشْيَةَ اَنْ يَّسْتَقِيْلَهٗ (رواه احمد وابوداؤد ونسائي والترمذي) او ترمذی دے ته حسن وئیلی دی۔ ترجمه: خرڅوونکی او

اغستونکی لره اختیار دے د قبلولو او د ردکولو تر هغې پورے چه جدا شی مګر که چرے عقد د خیار شرط وی. او نه دی حلال چه جدا شی د وجے د ویرے د اقالے (واپس کول د عقد) کولو نه". نو جدا کیدل خو جائز عمل دے لیکن یو د عاقدینو چه په دے نیت سره جدا کیږی چه د هغه بل ملګری حق د اقالے باطل کړی نو دا حرام دے. او دوم دلیل حدیث دے د ابو هریره رض چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه لَا تَرْتَكِبُوْا مَا ارْتَكَبَتِ الْيَهُوْدُ وَتَسْتَحِلُّوْا مَحَارِمَ اللهِ بِاَدْنَى الْحِيَلِ (مه کوئ هغه کار ونه چه یهودیانو کړیدی چه حلالوئ حرامو د الله تعالی لره په معمولی حیلو سره) مخکښ دا حدیث تیر شویدے.
په دے کښ مونږ منع کړے شوی یو د مشابهت د یهودیانو نه چه هغوی قِسم قِسم حیلے کړے وے د پاره د حلالولو د محرّماتِ اِلٰهیه لره. اتم دلیل حدیث دے د بخاری او مسلم چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی قَاتَلَ اللهُ الْيَهُوْدَ حُرِّمَتْ عَلَيْهِمُ الشُّحُوْمُ فَجَمَلُوْهَا فَبَاعُوْهَا. (هلاک دِ کړی الله تعالی یهودیانو لره چه حرام کړے شوے وے په دوی باندے وازدے نو دوی وِیلے کړے په اُور باندے نو (هغه دل) به یئے خرڅول). او نور دلیلونه هم شته دے د اختصار د پاره مونږ پریښودل.
بعض قباحات د حیلو:- (۱) ابوداؤد وئیلی دی چه ما د امام احمد رحمة الله علیه نه اوریدلی دی چه حیله ګر حیلے کوی د پاره د نقض (مقابله کولو) د سنتو د رسول الله صلی الله علیه وسلم (اغاثه ص ۳۶۹/۱) (۲) امام احمد رحمة الله علیه نه چا ذکر کړه چه یو ښځه د خپل خاوند نه ځان جدا کوی نو حیله ګر ملا ورته وائی چه کفر اوکړه نو جدا به شے نو هغے دا سے اوکړل. نو امام احمد ډیر په غضب شو او وئیل یئے چه څوک په دے باندے فتوٰی ورکوی یا بل چاته د دے تعلیم ورکوی یا په دے څوک رضا وی نو هغه کافر شو.
(۳) د نضر بن شمیل نه روایت دے چه په کتاب الحیل کښ درے سوه ۳۲۰ شل مسئلے دی او هغه ټول کفر دے. (۴) رسول الله صلی الله علیه وسلم اُمت نه دا سے حیلے نه دی ښودلے او نه یئے په هغې باندے تیزی ورکړیده بلکه د مکر، خداع، نفاق او مشابهت د یهودیانو نه یئے په حیلو کښ منع کړیده (۵) شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة الله علیه فرمائیلی دی چه حیلے جائز کول خو د شارع سره مقابله کول دی ځکه چه شارع حرامو ته د رسیدلو لارے منع

کوی او حیله گر خو حرام وته د رسیدلو لارے لټوی او جوړوی۔

**بحث شپږم خاص په حکم د حیله اسقاط مروجه کښې:** هر کله چه یو شخص مړشی او د هغه په ذمه باندے فرائض او واجبات شرعیه پاتے وی او د هغه مال د هغے د فدایا (شرعیه) د پاره کافی نه وی نو موجود لږ مال د هغه (او بعضو وئیلی دی) چه وارث دے قرض راواخلی (جامع الرموز) او بعضو وئیلی دی چه کامل قرآن دے راواخلی که د مړی ملکیت وی یا بل چا ورته بښلے وی هغه دِ هم په فدیه کښی قیمت کړی (نور الهدیٰ) او مسکین ته دِ ے ورکړی او ورته دِ ے اووائی چه دا په فدیه کښی قبول کړه که په یو کرت سره فرائضو او واجباتو ته دغه فدیه پوره نشی نو بیا دِ ے دغه مسکین دا مال واپس ورکړی مالک ته او هغوی دِ ے بیا دغه مسکین یا بل مسکین ته په دغه طریقه ورکړی یا دِ ے مالک دغه مسکین لره وکیل کړی د پاره د بښلو بل مسکین ته او اسقاط مروجه کښی داسے هم شته چه بیا دِ ے مالک د آخری مسکین ته واپس واخلی او په عامو خلقو که مسکینان وی او که مالداروی باندے دِ ے تقسیم کړی په تفاوت د درجاتو سره او دے د پاره یے کسان گیر چاپیره په دائره شکل کښی کینولے وی۔ دا تصویر د حیلے د اسقاط دے چه د فقهے حنفی روستنو کتابونو لیکلے دے او په دے باندے د هر مړی په جنازے پسے بدعتیان دا عمل کوی او داسے لازم یے گڼړی چه د هغے نه کوئنکی باندے ملامتیا کوی او هغه ته وهابی وائی۔ د دے حیلے د عدم جواز او بدعت کیدلو د پاره ډیرے وجے دی۔ اوله وجه دا چه د دے هیڅ ثبوت په قرآن او حدیث او قرونِ ثلٰثه مشهود لها بالخیر کښی نیشته او د هیڅ مجتهد قول هم پکښی نقل نیشته نو دا یقینا بدعتِ قبیحه دے۔ دویمه وجه مخکښی چه کوم دلیلونه د قباحت د حیلو بیان شول د هغه ټولو دلیلونو د لاندے دا حیله داخل ده کله چه پوره غور او انصاف اوکړیشی۔ دریمه وجه کوم دلیلونه چه د جواز د بعضِ اقسامو د حیلو د پاره تیر شویدی په هغه اقسامو کښی دا حیله د اسقاط هرگز داخل نه ده لکه مخکښی مونږ واضح کړیدی۔ نو هغه د جواز دلیلونه دے حیلے ته بالکل شامل نه دی۔ څلورمه وجه د فقهے کومو کتابونو چه دا حیله لیکلے ده نو هیڅ کتاب یے د دے د پاره ماخذ او دلیل شرعی نه دے ذکر کړے او صرف ذکر کول د دغه کتابونو یو مسئلے لره

(چه دلیل شرعی ورباندے نه دی) دلیل دَ پاره دَ جواز نشی کیدلے او شامی لیکلی دی چه استحباب دَ یو شیز حکم شرعی دے نو دَ هغے دَ پاره دلیل شرعی ضروری دے (شامی ص ۵۶۸/۱)۔ پنځمه وجه کوم کتابونو چه دا حیله لیکلے ده اکثر معتبر دَ پاره دَ فتوی نه دی په نیز دَ احنافو باندے۔ مثلاً صاحب قنیه هغه معتزلی وُو (فیض الباری ص ۳۹۴/۲۔ مجموعة الرسائیل ص ۱۸۰)۔ مؤلف دَ جامع الرموز قهستانی دلال وُو دَ کتابونو فقیه نه وُو (سعایه ص ۲۵۳/۲)۔ او دُر مختار متن دَ شامی نو شامی رسم المفتی کښ لیکلی دی چه په دُر مختار باندے فتوی نشی ورکیدلے۔ او نور الهدیٰ دَ هغے دَ مؤلف خوځه ثبوت نیشته چه سنی دَے او که شیعه وُو او هغه غیر متداول کتاب دے۔ شپږمه وجه روستو ډیر واهلِ علمو دَ دے حیلے قباحت ذکر کړے دے۔ رشید احمد گنگوهیؒ په فتاوی رشیدیه ص ۱۲۶/۱ کښ وئیلی دی" باقی رہا یہ اسقاطِ مروجہ محض لغو اور بے ہودہ حیلہ ہے اور اس کا خیر القرون میں کچھ اثر نہیں ہے"۔ او په ص ۱۰۳ کښ لیکلی دی، "حیلہ اسقاط کا مفلس کیواسطے علماء نے وضع کیا تھا اب یہ حیلہ تحصیل چند فلوس کا (چند پیسوں ٹکٹوں کے حصول کیلئے ملاؤوں کے واسطے مقرر کیا گیاہے حق تعالیٰ نیت سے واقف ہے وہاں حیلہ کارگر نہیں۔ مفلس کے واسطے بشرط صحتِ نیتِ ورثہ کے کیا عجب ہے کہ مفید ہو ورنہ لغو اور حیلہ تحصیل دنیا دنیّہ کا ہے" او فتاوی دَ دار العلوم دیوبند دَ دے حیلے رد لیکلے دے په ص ۱۸۳/۷ ص ۸۲/۷۔ او مفتی کفایت الله په دلیل الخیرات ص ۳۰ کښ دَ دے رد کړیدے او عبد الحیؒ لکهنوی په نفع المفتی والسائل ص ۹۷ کښ وئیلی دی چه دا حیله دیانةً ثابت نه ده۔ او مدخل کښ ابن امیر الحاج هم رد کړے دے وئیلی ئے دی "وهٰؤلاءِ يَتْرُكُوْنَهُ بَعْدَ تَجْهِيْزِهِ لِغَيْرِ ضَرُوْرَةٍ شَرْعِيَّةٍ بَلْ لِلْبِدْعَةِ وَالرَّغْبَةِ فِيْ حُطَامِ الدُّنْيَا" ص ۲۵۹/۳ (او دا کسان پریږدی (حصاروی) مړی لره روستو دَ تیارئیدلو دَ هغه نه بغیر دَ ضرورت شرعیه نه بلکه دَ پاره دَ بدعت او رغبت په ذلیل مال دَ دنیا کښ)۔ اوومه وجه په دے کښ وئیلی دی چه وارث دے قرض راوړی نو دا قرضه په مړی باندے ثابتوی او دَ نورو ورثو نه ئے غواړی او حال دا چه په حدیث صحیح سره ثابت ده چه نبی صلی الله علیه وسلم جنازه دَ هغه مړی نه کوله چه په هغه باندے قرضه وه او مال ئے کافی دَ پاره دَ اداء دَ قرض او کفیل ئے نه وُو۔ اتمه وجه په دے کښ دَ قرآن کریم بے احترامی او بے عزتی ده او خصوصاً دا سے دهوکه هم ده چه په بازار کښ دَ قرآن قیمت

سلّ روپئ وی او دوی یٔ قیمت په زرګوتو روپو سره لګوی - نهمه وجه، کومه حیله د اسقاط چه اوس مروجه ده داخو د هغه حیلې ته چه په کتابونو کښ لیکلے ده په ډیرو وجوهو سره خلاف ده - بعض دا دی چه شامی په مجموعة الرسائل ص۲۲۵ کښ په شرطونو کښ دا شرط لیکلے دے چه دا عمل به په نیت د حیلې سره نه وی بلکه قصد د تملیک د مسکین به وی او اوس خو دوی ورله نوم حیله ایښودلے ده - دارنګ اوس التزام دے چه په جنازے پسے متصل کوی او د مړی د قن وریاند ے حصار وی - او په هیئت د حلقے سره مسکینان یا د علاقے مُلیان کینی او دغه فدیئے جنازګاه او مقبرے ته نقل کوی - او په ورثو کښ د یتیمانو او مسکینانو فرق نه کوی او دا ټول وجوه د ادلّه شرعیه نه خلاف او بے دلیله کارونه دی -

**تنبیه** :- د دور د قرآن د پاره دلیل نیسی چه عمر رضی الله عنه د دے عمل کړے دے او حواله ورکیند ے شی په کتاب د ابو اللیث سمرقندی باندے او هغه حواله ورکړیده په کتاب الفتوح د واقدی باندے - د دے جواب دا دے چه اول خو د دے فتاوٰی وجود نیشته - دویم ابو اللیث خو ډیر کسان تیر شویدی فوائد بهیّه کښ مولوی عبد الحئ لکهنوی لیکلی دی نو دا په هغوی کښ کوم یو دے - دریم دا حدیث یٔ د سند په لحاظ سره قابل د استدلال نه دے ځکه چه په دے کښ عباس بن سفیان مجهول دے او د ابن علیه او د سمرقندی ملاقات ثابت نه دے او د واقدی کتابونه ټول دروغ دی او په هغه باندے امام بخاری، ابن مبارک، ابن نمیر، ابن معین، امام احمد، امام نسائی او امام شافعی ټولو کلام کړے دے (تهذیب التهذیب ص۳۶۴/۹) وغیره څلورم دا چه دا کتاب په کتب حدیث کښ چرته نیشته مقدمه د ابن صلاح صلا کښ وئیلی دی "چا چه نن یو حدیث دا سے راوړو چه د محدثینو په کتابونو کښ نه وی نو هغه به قبول نه وی" نور هم د دے روایت د دروغژن کیدلو ډیر علامات دی زمونږ دین حنیفه سهله سمحه په دا سے بے ثبوته او بے اصله دلیلو نو باندے نشی بنا کیدلے - الله تعالیٰ نه دُعاء ده چه مونږ په دین حنیف باندے مضبوط او قائم اولری او د ټولو خرافاتو بدعاتو بے دلیله اعمالو نه مونږ بچ اُوساتی آمین -

---

وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦٓ إِنَّ ٱللَّهَ

او کله چه او وئیل موسٰی علیه السلام خپل قوم ته یقینًا الله تعالیٰ

يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً ۖ قَالُوٓا۟

حکم کوی تاسو ته، چه حلاله (ذبح) کړئ یو غوا - دوی او وئیل

أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ۖ قَالَ أَعُوذُ بِٱللَّهِ

ایا ته موږ سره ټوقې کوې - هغه او وئیل پناه غواړم په الله تعالیٰ سره

أَنْ أَكُونَ مِنَ ٱلْجَٰهِلِينَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا۟ ٱدْعُ لَنَا

چه شم دے ځه د جاهلانو (ناپوهو) نه - دوی او وئیل دُعا او غواړه موږ لره

ت۶۷ په دے ایت او قصه کښ ذکر د بل خباثت د مشرانو د بنی اسرائیلو دے چه هغه حیلے لټول دی د پاره د ساقط کولو د حکم د الله تعالیٰ د خپلو ځانو نه یعنی حیله ده د پاره د اسقاط د واجب روستو د ذکر د حیلے نه د پاره د حصول د حرامو، نو دا دویم قسم حیله ده لکه چه مخکښ په اقسامو د حیله کښ ذکر شول حیله حرامو ته د رسیدلو د پاره ډیره قبیحه ده په نسبت د حیلے کولو د پاره د واجب پریخودلو، د دے وجے نه هغه ئے مخکښ کړے وه - دا رنګ دا عطف دے واذ اخذنا میثاقکم ۱۱ه باندے او په مینځ کښ جمله معترضه ده نو دا د دوی د عصیان او اعتداء بل قِسم دے روستو د نقضِ عهد نه په باره د کتاب الله کښ په دے کښ د دوی تعنت په سوالاتو کښ او نبی ته نسبت د استهزاء چه جهل دے او ټال مټول کول په پوره کولو د حکم د الله تعالیٰ کښ ذکر دے او دا اقسام د عصیان او اعتداء دی-
وَإِذْ قَالَ مُوسَىٰ لِقَوْمِهِۦٓ، په ت۵۴ کښ یٰقَوْمِ ورسره وئیلی وُو دلته ئے نه دے وئیلے وجه دا ده چه هلته سخت زجر وُو دوی ته په شرک کولو سره او توبے کولو ته دعوت وُو نو لفظ د یٰقَوْمِ سره ئے تصریح اوکړه او دلته صِرف یو امر کول دی د پاره د پخولو د عقیدے د دوی په توحید باندے په دیکښ زجر نیشته - إِنَّ ٱللَّهَ يَأْمُرُكُمْ أَن تَذْبَحُوا۟ بَقَرَةً، په لفظ د اِن او تصریح په اسم د الله تعالیٰ او د امر په نسبت کولو کښ الله تعالیٰ ته ډیر تاکیدات دی په فرض کولو د ذبح د بقرے باندے - أَن تَذْبَحُوا۟ معلومه شوه چه په بقره او د دے مثل ښکار وُو کښ سنت طریقه ذبح کول دی او په اوښانو کښ سنت نحر دے-

بَقَرَةً، دے ته بقره ځکه وئیلے شی چه دا شلوی زمکے لره د پاره د کرونده کولو.
اکثر مفسرینو وئیلی دی چه بقره نوم د پاره د مؤنث دے (غوا) او ثور نوم د
مذکر دے (غویے) او بعض مفسرینو بقره اسم جنس ګرځولے دے چه مذکر
او مؤنث دواړو ته شامل دے او دلته ئے مراد غویئے اخستلے دے په قرینه
د لفظ د فَارِضٌ، بِكْرٌ، عَوَانٌ سره - او لفظ بقر چه روستو ئے مذکر ذکر کړیدے
او اول قول والا جواب کوی چه فَارِضٌ، بِكْرٌ، عَوَانٌ صفاتِ مؤنثه دی په
صیغه د مذکر سره لکه حامل او حائض او لفظ بقر د پاره د جنس دے. غوره
زما په نیز دویمه توجیه ده د وجے د مناسبت نه د عجل سره چه دوی د هغه
عبادت کړے وو او هغه مذکر بچے وو.

سوال:- د مینځ د نورو حیواناتو نه د غوا د تخصیص څه حکمت وو او دا رنګ
د دے امرِ الٰهی د پاره څه باعث وو؟

جواب:- قرطبی د ماوردی نه نقل کړیدی او د دے وجه ئے ذکر کړے ده
چه بقره د جنس د عجل نه ده چه دوی مخکښ د هغے عبادت کړے وو او په مصر
کښ هم د دے په عبادت کولو باندے د مصریانو د تقلید د وجے نه عادت د
عبادت جوړ شوے وو او هغه ئے مقدس ګڼنا و (ګڼړلو) نو د دوی د عقیدے
د توحید د بچولو د پاره الله تعالیٰ د بقرے د ذبح حکم او کړو د دے د پاره چه
سپک کړی الله تعالیٰ د دوی په نیز هغه څیز چه دوی د هغے تعظیم او عبادت کوو. او
دا رنګ نسفی مدارک کښ راوړی دی او ابن قیم الجوزیه په تفسیر بدائع
التفسیر ص۳۲ ج۱ کښ لیکلی دی چه په ذبح د بقره کښ تنبیه وه چه دا قسم
حیوان د ذبح او د حرث او سقی (یوے، او به خور) د تذلیل نه ځان بچ نشی
ساتلے نو دے د الوهیت د پاره صالح نشی کیدلے. او د دے نه معلومه شوه
چه باعث په دے امر د ذبح باندے لِيُهَوِّنَ عِنْدَهُمْ دے (قرطبی) یعنی تصحیح
د عقیدے د توحید ده واقعه د قتل د دے د پاره اصل سبب او باعث نه دے
او د دے دلیلونه دا دی، اول دلیل دا واقعه ئے شروع کړے ده په إِذْ سره
او دا حرف دلالت کوی چه دا مستقله واقعه ده - دویم دلیل، دا واقعه ئے
مقدم کړے ده په واقعه د قتل باندے نو ظاهر د تقدیم نه دا ده چه
هغه واقعه د دے نه روستو ده - دریم دلیل، چه قتل که سبب دے نو بکار وه
چه دوی سمدستی غوا حلاله کړے وے او تپوس د مقتول نه حاجت نه وو ځکه چه قاتل زر معلوم شو وے

څلورم دلیل، ابن کثیر په سند سره د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت راوړے دے چه بنی اسرائیلو څلویښت کاله د بقرے طلب کوؤ اخر یئے اوموندله نو هغه مړے دوی څلویښت کاله په څه طریقے سره روغ ساتلے وؤ. پنځم دلیل چه په ټکړے د بقره سره مړے ژوندے شی نو په دے سره خو د غوا عظمت په زړونو د خلقوکښ ډیریږی هسے نه چه بیا د هغے عبادت شروع کړی.

سوال :- د دے قصے نقل (چه د غوا ذبح کولو د پاره سبب قتل وو) د عبیدهٔ او ابو العالیه اوسدیؒ وغیرهٔ د روایاتو د تفسیر نه موجود دے ؟ **جواب** :- ابن کثیر د دے ټولو روایاتو نه روستو وئیلی دی چه ظاهر دا ده چه دا راخستلے شویدی د کتابونو د بنی اسرائیلو نه (او دلیل یئے د قرآن او حدیث صحیح مرفوع نه نیشته) او د دے اسرائیلیاتو نقل جائز دے لیکن تصدیق او تکذیب ئے نه کوؤ صرف اعتماد به په هغه نقل باندے وی چه د حق (شرعے) سره موافق وی.

سوال :- روستو فاضربوه ببعضها صریح دلیل دے په دے قصه باندے ؟

جواب :- روستو به انشاء الله د هغے توجیه راشی چه په هغےکښ دا تصریح نیشته چه ضمیرونه دے بقره ته راجع شی دا رنګ قرطبی بلے توجیه ته اشاره کړے ده چه امر د ذبح د بقرے مخکښ دے او کله چه بقره حاصله شوه او ذبح اوشوه نو واقعه د قتیل واقع شوه نو او وئیلے شو چه فاضربوه ببعضها. په دغه توجیه باندے یو اعتراض دے چه د هغے جواب به روستو ذکر کړے شی.

قَالُوٓا اَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا دا په معنیٰ د مفعول دے یعنی مَهْزُوًّا بنا یا حمل مبالغة دے. او وجه د دے تعجب دا ده چه د غوا تقدس د دوی په زړونوکښ پټ پروت وؤ لکه چه روستو راځی وَاُشْرِبُوا فِی قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ نو د دوی په ګمان کښ دا نه راتلل چه موسیٰ علیه السلام به موږ نه د ذبح د بقرے حکم راکوی نو خیال یئے اوکړو چه موسیٰ علیه السلام زمونږ سره ټوقے کوی.

فائده :- په دے کلمے سره دوی کافر شول یا نه په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه دا دلیل دے چه دوی د موسیٰ علیه السلام په باره کښ صحیح عقیده نه لرله بلکه دوی اشاره کوله دے خبرے ته چه موسیٰ علیه السلام نسبت د امر د ذبح الله تعالیٰ ته په رشتیا سره نه کوی نو دا نسبت د خیانت دے

نبی ته په وحی الٰهی کښ او داکفر دے۔ قرطبی وئیلی دی که دا خبره تن زمانه کښ څوک د یو قول د نبی صلی الله علیه وسلم په باره کښ اوکړی نو د هغه کفر لازمیږی۔ او دویم قول دا دے چه داکفر نه دے د دوو وجونه اول دا دوی د ډیر جهل او د طبیعت د سختوالی د وجے نه دا قول کړے دے تکذیب ئے مقصد نه وَو۔ دویم دا په طریقه د استفهام ارشاد سره دے په طریقه د تحقیق سره نه دے نو کفر نه دے۔ قَالَ اَعُوْذُ بِاللّٰهِ اَنْ اَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ په دے جواب د موسیٰ علیه السلام کښ ډیر تاکیدات دی یعنی د استهزاء نه تعوذ بالله ضروری دے او دا رنګ استهزاء خو د جاهلانو کار دے نو دلته اطلاق د اسم د سبب دے چه جهل دے په مسبب باندے چه استهزاء ده نو تعوذ د سبب د څیز نه مستلزم وی تعوذ لره د مسبب نه۔ د جهل معنی امام راغب په مفردات کښ وئیلی دی چه کول د څه کار په خلاف د لایق طریقے د کولو۔ یعنی الله تعالیٰ ته د داسے امر نسبت کول چه هغه ئے امر نه وی کړے دا خو جهل دے یعنی داسے انسانان د الله تعالیٰ د شان نه غافل او جاهل وی۔ یا مراد د جهل نه دا دے چه استهزاء بالدین سبب د عذاب نه ګرځی۔ او تعوذ بالله دلالت کوی چه جهل او استهزاء فی الدین لویه ګناه او شر دے د هغے نه بچ کیدلو کښ انسان د الله تعالیٰ پناهئی غوښتلو ته محتاج دے۔ ابوحیان وئیلی دی چه جهل دوه قسمه دے بسیط او مرکب۔ بسیط بیا دوه قسمه دے یو عام چه په هیڅ څیز علم نه لری او بل خاص چه په بعض خبرو باندے علم نه لری۔ او مرکب خو جهل الجهل دے نو جهل عام او مرکب باندے د نبی صفت نشی کیدے بلکه هر هغه چا باندے هم نشی کیدے چه په بعضو خبرو پوهه لری۔ نو پناهی غوختل د موسیٰ علیه السلام د دے قسمونو نه محال ده لیکن په طریقه د ادب سره صحیح ده بلکه پناهی غوختل د موسیٰ علیه السّلام د جهل خاص نه ده چه مخکښ د هغے معنی ذکر شوه۔

فائده:- ماده د جهل په قرآن کریم کښ څلیر ۲۴ بیشت کرته ذکر ده او د جهل د پاره اسباب نهه ذکر دی اول سبب استهزاء فی احکام الله لکه په دے ایت کښ۔ دویم نفس بے خبری د حقیقت نه (سورة بقره ۲۷۳)۔ دریم هر قسم ګناه کول جهل دے (سورة نساء ۱۷)۔ څلورم طلب د تشبیه د مشرکانو (سورة اعراف ۱۳۸)۔ پنځم فقراؤ پورے مسخرے کول (سورة هود ۲۹)۔ شپږم پردو

رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ۚ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ

دَ رب خپل نه چه بیان کړی مونږ ته څه عمر یې دَ دې غوا۔ او وئیل موسٰی علیه السّلام یقینًا الله تعالٰی فرمائي

إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَلَا بِكْرٌ ۖ

چه یقینًا دا غوا ده نه زړهٔ (بوډئ) ده او نه نوے (ځوانه)۔

عَوَانٌ بَيْنَ ذَٰلِكَ ۖ فَافْعَلُوا

میانه حاله ده په مینځ دَ دے کښ۔ نو اوکړئ

مَا تُؤْمَرُونَ ﴿٦٨﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ

هغه کار چه تاسو ته یې حکم کیدیشی۔ او وئیل دوی او غواړه مونږ لره دَ رب خپل نه

زنا نو ته میلان کول (سورة یوسف ٣٣)۔ او وم ید فعلی دَ نارینو سره (سورة نمل ٥٥)۔ اتم خیانت کول په امانت دَ الله تعالٰی کښ (سورة احزاب ٧٢)۔ نهم امر کول په عبادت دَ غیر الله سره (سورة زمر ٦٤)۔

٦٨ هر کله چه دوی پوهه شول چه دا حکم قطعی دے نو دَ وجے دَ تعنت نه یې سوالات شروع کړل دَ پاره دَ دے چه دا حکم ساقط شی او منسوخ شی نو دا حیله کول دَ پاره دَ اسقاط واجب وه۔ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ دلیل دے دَ پاره دَ توسل په دعا غوښتلو دَ ژوندی حاضر سره۔ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ابن جریر په صحیح سند سره دَ ابن عباس نه موقوفًا او دَ ابن جریج نه مرفوعًا نقل کړیدی چه دوی ته امر شوے وؤ دَ مطلق بقرے نو که دوی یو ادنٰی بقره ذبح کړے وے نو کافی به وه لیکن دوی په ځان باندے سختنه کړله نو الله تعالٰی هم په دوی باندے سختنه کړله۔ مَا هِيَ په دے سره تپوس کیږی دَ جنس دَ څیز نه (حقیقت او ماهیت) لیکن مراد په دے سره حال دَ عمر دَ هغے دے دَ دوو وجونه اول خو دا چه دَ بقرے حقیقت خو دوی پیژندلو لیکن اصل تفاوت په اعتبار دَ عمر سره وی ځکه چه په سبب دَ اختلاف دَ عمر سره احکام ید لیږی دویمه وجه دا چه دَ وجے دَ تعجب دَ دوی دَ دے حکم نه دوی داسے شول لکه چه حقیقت نه پیژنی دَ دے وجے دَ کیف او اَی په ځائے یې مَا هِيَ ذکر کړو۔ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ، نسبت الله تعالٰی ته صراحتًا کوی دَ پاره دَ تاکید کولو په هغوی باندے په دے حکم کښ۔

لَّا فَارِضٌ وَّلَا بِكْرٌ صفت چه هر کله منفي کيږي نو تکرار د حرف لا غواړي. فَارِضٌ د فرض نه دے قطع ته وئيلے شي نو دا هم د همز ولو ته قطع شوے وي يا ډير کلونه يې قطع کړے وي يعني چه ډير عمر يې تير کړيوي يا فرض وسعت ته وئيلے شي او فارض هم ډيره يې راوړے وي نو د هغې خيټه فراخه شوے وي نو دلته فَارِضٌ په معنی د بوډئ دے (ډير عمر والا)- وَلَا بِكْرٌ په انسانانو او څاروو کښ هغې ته وئيلے شي چه نوے ځوانه شوي وي ليکن حمل يې نه وي شوے لکه چه په حديث کښ راځي اَلْبِكْرُ بِالْبِكْرِ جَلْدُ مِائَةٍ وَتَغْرِيْبُ عَامٍ (نوے ځوان (بے واده) چه زنا اوکړي د دا سے نوے ځوانے سره نو سزا يې سل دُرے او يو کال د پاره شړل دي)- او فراء بغوي هم د دے معنی په ځوانے سره کړيده چه ولد يې نه وي راوړے (معالم) نو د دے معنی په صغيره سره په معنی د وړے بچئ صحيح نه ده-

عَوَانٌ، قرطبي وئيلي دي چه عوان هغه غوا ده چه يو دوه بچي يې پيدا شوي وي يعني درميانه عمر والا وي-

بَيْنَ ذٰلِكَ، سوال:- بَيْنَ خو هغه څيز ته مضاف کيږي چه تثنيه وي او ذٰلِكَ خو مفرد دے ؟-

جواب ۱:- ذٰلِكَ اشاره ده فَارِضٌ او بِكْرٌ ته په تاويل د ما ذکر سره-

جواب ۲:- دلته د ذٰلِكَ سره معطوف پټ دے يعني ذٰلِكَ وَهٰذَا (ابوحيان)-

سوال:- د عَوَانٌ او بَيْنَ خو مقصد يو دے نو دلته تکرار راځي ؟-

جواب:- عَوَانٌ يې خو د دے وهم د دفع کولو د پاره راوړو چه هر کله فَارِضٌ او بِكْرٌ نه وي نو کيدے شي چه وړه نا بالغه وي نو جواب اوشو په عَوَانٌ سره او هر کله چه عَوَانٌ درميانه ده په مينځ د فَارِضٌ او بِكْرٌ کښ نو بيا هم وهم کيدے شي چه فَارِضٌ ته به نزدے يا به بِكْرٌ ته نزدے وي نو دا وهم يې دفع کړو په بين ذٰلِكَ سره يعني خالص په مينځ کښ ده يو طرفته نزدے نه ده فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ مراد د مَا تُؤْمَرُوْنَ نه ذبح د بقرے ده او فَافْعَلُوْا تجديد د امر د پاره د تاکيد دے نو اشاره ده چه دغه امر ضرور واجب دے په سوالاتو نه منسوخ کيږي نو سوالات پريږدئ-

مَا تُؤْمَرُوْنَ، مَا موصله دے يا مَا مصدريه دے يعني فَافْعَلُوا امرکم. او امر په معنی د مفعول دے-

يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا ۚ قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ

چه بیان کړي موږ ته چه څه دے رنګ د دغې غوا - او وئیل هغه یقیناً الله تعالیٰ فرمائي چه یقیناً داغوا ده

صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النَّاظِرِينَ ﴿۶۹﴾

زیړه تیز دے رنګ د دے خوشحاله کوي کتونکو لره

۶۹ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا، دا هم تعنت او اُوږد والے دے په سوالونو کښ د اسقاط او د نسخ د پاره ځکه چه رنګ لره په ذبح د څاروي کښ هیڅ دخل نیشته نو دا د مخکښ په نسبت ډیر بے ضرورته سوال دے لیکن د دے تپوس وجه داده چه مصر والو اګر چه د غوا او غوئي تقدس منلو لیکن په قربانئ کښ به یې هغه پیش کوۀ چه رنګ یې بالکل سپین وي او تور ویښته په کښ نه وي نو دوي هم د دے وجے نه تپوس اوکړو (ماجدي)۔

قَالَ إِنَّهُ يَقُولُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ، د صَفْرَاءُ معنی مشهوره مراد ده (زیړه) په نیز د اکثر مفسرینو بلکه د حسن بصري او سعید بن جبیر نه نقل دے چه ښکرے او سوے هم زیړے وے۔ او د حسن نه بل روایت دے چه صَفْرَاءُ په معنی د تورے ده۔ لیکن قرطبي او بغوي په دے رد کړے دے چه اول اصح دے د څو وجونه اوله وجه داده چه صفراء په معنی د تور مجاز او شاذ دے ما سیوا د اوښانو نه۔ دویمه وجه داده چه لفظ د فَاقِعٌ صفت د زیړ د پاره راځي او د تور د پاره فَاقِعٌ نه راځي بلکه حالك راځي۔ فَاقِعٌ ډیر او تیز زیړ دے۔ لَوْنُهَا په دے کښ درے احتمالات دي اول داچه فَاقِعٌ اسم فاعل دے او لَوْنُهَا د هغے فاعل دے مجموعه صفت دے د پاره د صَفْرَاءُ یا د بَقَرَةٌ۔ دویم فَاقِعٌ خبر مقدم دے او لَوْنُهَا مبتداء مؤخر ده دا د بصریانو په نیز صحیح دے۔ دریم داچه لَوْنُهَا مبتداء ده او تَسُرُّ النَّاظِرِينَ یې خبر دے او د لون نه مراد صفرة دے نو مؤنث دے نو ضمیر د تَسُرُّ یې ځکه مؤنث راوړو په دے درے واړو کښ اول احتمال غوره دے۔

سوال:۔ فَاقِعٌ چه صفت دے د صفراء نو مؤنث پکار وو؟۔

جواب:۔ هر کله چه دے رفع ورکوونکے دے فاعل مذکر ته نو د فاعل د وجے نه یې مذکر راوړے دے لکه عرب وائي "جَاءَتْنِي امْرَءَةٌ حَسَنٌ اَبُوْهَا"۔

سوال:۔ فَاقِعٌ صفت د صَفْرَاءُ دے دا کافي وو نو لَوْنُهَا یې ولے ذکر کړو؟۔

قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ

او وئیل دوی اوغواړه موږ لره د رب خپل نه چه بیان کړی موږ ته چه څه دے صفت (د عمل) د دې غوا

اِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا ؕ وَاِنَّآ

یقینًا دا غوا ګډه وډه شوه په موږ باندے۔ او یقینًا موږه

اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ۝۷۰ قَالَ اِنَّهٗ

که الله تعالیٰ اوغواړی خامخا رسیدونکي یو مقصد خپل ته۔ او وئیل هغه یقینًا الله تعالیٰ

جواب:- په دے کښې ډیر تاکید دے یعنی اول یې وصف د بقرے په صفرة سره ذکر کړو نو بیا یې دا وصف د پاره د کوڼ ذکر کړو او د کوڼ نه مراد زیړ رنګ دے۔ تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ دا صفت د بَقَرَةٌ دے چه موصوف دے په صفت د صفرة سره۔ سرور لذات دے په زړه کښې په وخت د اُمید د نفع یا د حصول د نفع کښې او سبب د دے حصول حواس ظاهره دی او دلته یې سبب نظر کړځولے دے؟ فائده ۱ فَاقِعٌ یې اسم ذکر کړو او تَسُرُّ یې فعل راوړو اشاره ده چه دغه رنګ خو په دے کښې ثابت او مستمر دے او سرور ورسره نوے نوے پیدا کیږی او دغه فرق دے په دلالت د اسم فاعل او صیغه د فعل کښې۔ فائده ۲ النّٰظِرِيْنَ جمع په الف لام سره اشاره ده چه نظر کوونکے که یو ځے وی او که په ګڼړه کښې وی لیکن سترګے به یې متوجه وی هغے غوا ته او احتمال شته چه د نظر نه مراد نظر د زړه وی یعنی فکر او سوچ کول په ناآشنا قدرت د الله تعالیٰ کښې چه هغه هم سبب دے د پاره د سرور د زړه۔ فائده ۳ مفسرینو د علی او ابن عباس رضی الله عنهم نه نقل راوړے دے چه هغوی به ترغیب ورکوؤ په زیړ پیزار کښې او وئیل یې چه زیړ رنګ په زړه کښې خوشحالی پیدا کوی او غم لرے کوی او ابن زبیر او یحیٰی بن ابی کثیر د تور پیزار نه منع کوله چه دا انسان له غم جوړوی۔

نک په دے ایت کښې د دوی دریم سوال ذکر کوی او دا د مخکښې نه هم ډیر بے ضرورته دے ځکه چه په باره د ذبح او قربانئ کښې دا قید هیڅ کله شرط نه دے چه د هغے د کار کولو یا نه کولو معلومات دِ دے کوی۔

يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ، دلته سوال په ما هي سره د صفت د عمل د هغې نه دے په قرينې د جواب سره - إِنَّ الْبَقَرَ تَشَابَهَ عَلَيْنَا دا جمله د پاره د بيان د عذر رده د دوی د طرف نه د پاره د دريم سوال كولو يعنی دا سے بقره چه عَوَانٌ او او صَفْرَآءُ وی دا خو ډيرے دی تو مونږ د پاره په دے كښې تعيين د يو خاص قسم پكار دے په اعتبار د كار كولو سره - اَلْبَقَرَ دا اسم جنس دے يا جمع ده د بَقَرة - د تشابه په مقام كښې جنس ځكه ذكر كړو چه تشابه د ډيرو افرادو په مينځ كښې واقع كيږی - او بعض مفسرينو د دے لفظ نه استدلال كړيدے چه دا مذكر وو او هر چه بَقَرَةٌ او مؤنث ضميرونه ذكر دی - نو هغه ة د پاره د وحدات ده او ضميرونه په اعتبار د ظاهر لفظ سره دی (مخكښې دا اختلاف ذكر شوے دے) او قرطبی وئيلی دی چه وجه د تشابه دا وه چه مخوته د غوايانو يو بل سره ډير مشابهت لری په حديث د حذيفه رضی الله عنه كښې د فتنو مثال يې د وجوهِ بقر سره د دے وجے نه ذكر كړے دے.

تَشَابَهَ عَلَيْنَا فعل يې مذكر ذكر كړو بقاعی وئيلی دی هر جمع چه حرفونه د هغې د مفرد د هغې نه كم وی نو عرب هغه مذكر ګرځوی.

وَإِنَّا إِنْ شَاءَ اللهُ لَمُهْتَدُونَ، په ذكر د انشاء الله سره په دے جمله كښې اشاره او شوه چه د دے خلقو تعنت او عناد كم شو او انابت پكښې پيدا شو او حديث د ابن كثير كښې وارد دی چه كه چرے بنی اسرائيلو انشاء الله نه وے وئيلی نو تر قيامته پورے به دوی ته پوره بيان (سبب د تسلئ د دوی) نه وے شوے او نه به دوی ته دا سے بقره ملاؤ شوے وے. د انشاء الله وئيلو ډير بركات دی او دا تعليق د مُهْتَدُونَ سره متعلق دے ليكن په هغې باندے مقدم كړے دے د پاره د تاكيد. او مراد د اهتداء نه رسيدل دی مونږ لو د هغه غوا ته چه امر كړے شويدے د ذبحے د هغې يا رسيدل دی حكمت د دے ذبح كولو ته. او په دواړه معنو سره انشاء الله د پاره د تعليق دے په مستقبل زمانه پورے - او قفال نه بل قول نقل دے چه اهتداء نه مراد په هدايت باندے كيدل دی په طلب د دے صفاتو سره او انشاء الله د نفسِ تبرك د پاره دے يعنی د دے سوالونو په وجه سره مونږ په ګمراهئ كښې نه يو پريوتلی-

يَقُوْلُ اِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ تُثِيْرُ

فرمائي چه يقيناً دا غوا نه ده غاړه وتلے جوتي چه اړوي

الْاَرْضَ وَلَا تَسْقِى الْحَرْثَ ۚ مُسَلَّمَةٌ

زمکے لره او نه ده ارتي چه اوبه کوي فصل لره، روغه رمته ده

لَّا شِيَةَ فِيْهَا ۗ قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ۚ

نيشته هيڅ داغ په دے کښ - اووئيل دوي اوس دے راوړو بيان پوره

فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿۷۱﴾

نو حلاله ئے کړه او نه وو دوي نيزدے چه دا کار ئے کړے وے (مخکښ د دے بيان نه)

ف په دے ايت کښ د اخري مطالبے جواب دے. لَا ذَلُوْلٌ لا په معنى د غير دے او صفت د بَقَرَةٌ دے يعني بَقَرَةٌ غَيْرُ مُذَلَّلَةٍ يعني دا غوا سخته ده لکه د وحشي غوا پشان، د دے نه هيڅ کار نه دے اغستلے شوے.
تُثِيْرُ الْاَرْضَ دا صفت دے د ذَلُوْلٌ نو منتفي دے په لا سره يعني زمکه نه اړوي د پاړه د کروندے نو جوتي نه ده - وَلَا تَسْقِى الْحَرْثَ دا هم صفت د ذلول دے او لا د پاړه د تاکيد د نفي مخکنئ دے يعني ارتي نه ده نو فصلونه نه اوبه کوي نو معنى دا شوه چه دا غوا په عزت سره ساتلے شوے ده هيڅ کار د دے مناسب ورباندے نه دے کړے شوے - دا دليل دے چه د غوانو دوه کارونه دي يو زمکے اړول، دويم د کوهيا نو نه اوبه راويستل د پاړه د سيراب کولو د فصلونو د دے نه علاوه بل کار د دينه اخستل لکه سورلي او بارونه اوړل په دے باندے زياتے کول دي حديث صحيح کښ دي چه مخکښ يو انسان په غوا باندے سورلي کوله نو هغے ورته مخ راواړولو چه مونږ خود سورلئ د پاړه نه يو پيدا شوي - ماجدي ليکلي دي اگر چه زمونږ په ملک کښ (هندوستان پاکستان کښ) د زميندارئ کار د غوئي مذکر نه اخستلے کيږي ليکن په نورو ملکونو کښ د غواگانو نه هم دا کار اخستلے کيږي او دا جائز دے.
تُثِيْرُ الْاَرْضَ کښ قرطبي او ابوحيان بل احتمال دا سے ليکلے دے چه مراد د دينه زمکه کنستل دي په ښکرو سره او دا بيان د لَا ذَلُوْلٌ دے يعني چه غير مذلله ده نو د دے وجے نه (مسته ده) نو زمکه په ښکرو باندے کني

او داعادت دَ غوانو دے چه دَ مستئ په وخت کښ زمکه په ښکرو باندے کنی۔ اولا تَسۡقِی الۡحَرۡثَ عطف دے په لَا ذَلُولٌ باندے۔ مُسَلَّمَةٌ دا بل صفت دَ بقرة دے یعنی دَ عیبونو او نقصانانو نه پاکه او روغه جوړه ده رنده، گوډه وغیره نه ده۔ یا دا تاکید دے دَ لَا ذَلُولٌ یعنی دَ کارونو نه پچ سا تلے شوے ده۔ لَا شِیَةَ فِیۡهَا دا هم صفت دَ بقرة دے تاکید دے دَ لَا ذَلُولٌ او مُسَلَّمَةٌ یعنی دَ کارونو دَ وجے نه په هغے کښ هیڅ مخالف داغ نیشته ځکه چه هیڅ کار یئے نه دے کړے نو داغ پکښ نه دے جوړ شوے۔ یا مستقل صفت سببیه دے او تاکید دے دَ صفراءِ فاقع دَ پاره یعنی دَ زیړ والی نه خلاف بل خال (دَ بل رنګ) پکښ نیشته۔ شِیَةَ په اصل کښ وَشۡیٌ دے هغه بدل رنګ او داغ چه مخالف وی دَ عام رنګ نه په کپړے او څرمنے وغیره کښ۔ قَالُوا الۡئٰنَ جِئۡتَ بِالۡحَقِّ، حق مقابل دَ باطل نه دے ځکه چه دا مخکښ بیانونه هم دَ طرف دَ الله تعالیٰ نه ؤ او حق ؤ لیکن دلته معنی (پوره ښکاره بیان) دے یعنی دَ دے بیان نه روستو زمونږ دَ طرف نه نورو سوالاتو ته حاجت پاتے نه شو۔ دا قول هم دَ انشاءالله وئیلو دَ برکت نتیجه ده۔ دَ قتاده قول دے چه دلته حق مقابل دَ باطل دے او مخکښ بیانونه باطل دی نو په دے سره دوی کافر شول لیکن دا قول ضعیف دے۔ فَذَبَحُوۡهَا، په دے کښ اِدِّماج دے (عبارت پټ دے) یعنی طلب یئے کړله او حاصله یئے کړله نو ذبح یئے کړله۔

وَمَا كَادُوۡا يَفۡعَلُوۡنَ، دَ فعل نه مراد عمل دَ ذبح دے کَادَ په مقام دَ اثبات کښ دَ مقاربت دَ پاره راځی یعنی کار ته نزدے شی خو کړے نه وی نو معنی دَ نفی پکښ لازمه وی او په مقام دَ نفی کښ دَ پاره دَ نفی دَ مقاربت دے او نفی دَ مقاربت مستلزم نه ده ثبوت لره بلکه نفی دَ فعل لره مستلزم ده۔ نو کَادَ پشان دَ نورو فعلونو دے په اثبات او نفی کښ او دا صحیح قول دے او بعض اهلِ عربیت وئیلی دی چه کَادَ په اثبات کښ په نفی باندے دلالت کوی او په نفی کښ په اثبات باندے دلالت کوی او په دے ایت سره دلیل پیش کوی چه دلته وَمَا كَادُوۡا په معنی دَ اثبات دَ فعل دَ ذبح کښ دے په قرینه دَ فَذَبَحُوۡهَا سره او که دا سے نشی نو تعارض به په کلام کښ راشی چه فَذَبَحُوۡهَا دلالت کوی په اثبات دَ ذبح باندے او وَمَا كَادُوۡا يَفۡعَلُوۡنَ دلالت کوی په نفی دَ هغے باندے لیکن دا قول دَ دوی ضعیف دے او په

دے ایت سره دلیل نیول صحیح نه دی ځکه چه دلته د فعل د ذبح وخت روسنو د بیان کامل نه دے او د وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ وخت مخکښ د بیان کامل نه دے نو زمانه د هر یو جدا جدا ده تعارض نه راځی۔

وَمَا كَادُوا يَفْعَلُونَ، د نه کولو وجه د دوی ډیر سوالونه او تعنت او عناد کول وو او د هغې وجه داوه چه د دوی په زړونو کښ تقدس د غوا پروت وو۔ او چا وئیلی دی چه وجه د دے گرانوالے د قیمت د غوا دے لیکن ابن کثیر په دے باندے اعتراض کړے دے چه ډیر والے د قیمت روایاتِ اسرائیلیه دی۔ او چا وئیلی دی چه د وجے د شرمندگئ نه دوی داکار نه کوؤ هسے نه چه قاتل معلوم شی تو ابن کثیر وئیلی دی چه د دے قول سند نیشته نو اول قول حق دے

په قصه د ذبح د بقرے کښ فوائد او مسائیل:- فائده علـ: د دے قصے نه معلومه شوه چه کوم شخص نوے نوے توحید قبول کړے وی یا کوم چه عوام مسلمانان وی نو د هغوی د توحید د پوخوالی د پاره په هغوی باندے داسے ابتلاء پکار ده چه په هغې سره د هغوی د زړونو نه محبت د معبود باطل بالکل بهر اُوځی او د معبود باطل نه هیڅ یره یا اُمید اُونه لری لکه چه د خمر (شرابو) د حرمت سره تر یو وخت پورے د استعمال د لوښو د هغې نه منع شوے وه۔ دارنگ نبی صلی الله علیه وسلم نوی نوی مؤحدین په ابتداء کښ د زیارة القبور نه منع کړی وو كُنْتُ نَهَيْتُكُمْ عَنْ زِيَارَةِ الْقُبُوْرِ اَلَا فَزُوْرُوْهَا (ما تاسو د زیارت د قبرونو نه اول منع کړی وئ خیر شئ اوس د هغې زیارت کوئ)۔

فائده علـ بقره په دنیا کښ داسے معبود باطل دے چه ډیر مخلوق ئے په هره زمانه کښ عبادت او تعظیم کړیدے۔ او کوی ئې لکه زردشتیانو، مصریانو، بنی اسرائیلو، بده مذهب والو، هندوانو نو په دے سورة بقرة کښ د دے معبود د تعظیم او تقدس ختمولو د پاره حکم د ذبحے اُوشو خصوصًا د پاره د ردکولو په یهودیانو باندے چه د مدینے په گرد و نواح کښ اوسیدل او د دوی مشرانو د سخی عبادت کړے وو۔

فائده علـ۳ د دے غوا تول دولس اوصاف ذکر شویدی چه په هغې کښ شپږ سلبی دی او شپږ ثبوتی دی او دا صفتونه په هغه عجل (سخی) کښ موجود وو چه سامری د سرو زرو نه جوړ کړے وو هغه

هم درمیانه عمر والا یے داغه دَ سرو زرونه جوړ کړے وو او سره زر په ظاهر کښ تیز زیړ رنګ او تعجب کښ اچوونکی وی۔ نو په دے کښ بالخصوص اشاره شوه رد کولو ته په یهودیانو باندے چه دَ هغوی مشرانو دَ غوسے معبود عبادت کړے دے نو هغه محبت په ذبح دَ بقرے سره دَ دوی دَ زړونو نه ویستل پکار دی نو امر او شو په ذبح دَ بقرے دَ دغه قسم او قرآن دَ دوی دَ دے محبت شرکیه نه هم خبر ورکړیدے چه (واشربوا فی قلوبهم العجل بکفرهم)۔

فائده ۴ : په ۶۷ کښ دلیل دے چه استهزاء کول په دین دَ الله تعالیٰ او په دین دَ مسلمانانو پورے منع دہ او دا جهل دے سبب دے دَ پاره دَ عذاب اګرچه فرق دے په مینځ دَ مزاح او دَ استهزاء کښ۔

فائده ۵ : په دغه واقعه کښ دلیل دے چه جهل (استهزاء) ګناه ده او انبیاء علیهم السلام دَ ګناه نه پاک دی دَ دے وجے نه موسیٰ علیه السلام دَ هغے نه تعوذ بالله اوغوښتلو۔

فائده ۶ : اعوذ بالله وئیل دَ موسیٰ علیه السلام دلیل دے چه دا زړه کلمه ده دَ پاره دَ توحید فی الاستعاذه دا رنګ دا په باره دَ نوح علیه السلام (سورة هود ۴۷) کښ هم ذکر ده۔

فائده ۷ : دَ ۶۸ نه معلومه شوه چه امر شرعی په اصل کښ دَ پاره دَ ایجاب دے بغیر دَ ایجاب نه کله کله په طور دَ مجاز سره استعمالیږی برابره خبره ده که دا امر شرعی په صیغه دَ امر سره وی لکه فافعلوا یا په تعبیر دَ اَمَرَ یأمر سره وی۔

فائده ۸ : صاحب دَ اللباب وئیلی دی چه په دے قصه کښ دلیل دے چه اسان حُکم منسوخ کیدے شی په ګران سره اګرچه په دے کښ اختلاف دے اکثر علماؤ وئیلی دی چه دا عقلاً جائز دے او شرعاً واقع دے او امام شافعی رحمة الله علیه دَ دے نه انکار کوی۔ او دا رنګ په جواز دَ نسخ باندے مخکښ دَ عمل کولو نه۔ او اختلاف دے په نسخ کولو کښ مخکښ دَ قادر کیدلو نه په عمل باندے نو دا جائز دے په نیز دَ اکثر اهل علمو، فقهاؤ او اصحاب الحدیث او نه دے جائز په نیز دَ معتزلو او دَ بعضِ اهلِ سنت۔ او دا رنګ دلیل دے په وقوع دَ نسخ باندے په دین دَ موسیٰ علیه السلام کښ دَ پاره دَ رد په یهودیانو باندے چه هغوی دَ نسخ نه انکار کړیدے۔

فائده ۹ : ابن کثیر، قرطبی او صاحب اللباب وئیلی دی چه دا قصه دلیل

وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيْهَا ط

او کله چه او وژلو تاسو یو کس نو په اختلاف کښې پریوتلئ دَ هغه په باره کښې۔

وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿۷۲﴾

او الله تعالیٰ ښکاره کوی هغه چه تاسو یئ پټوئ۔

دے چه دَ حیوان ضبط په ذکر دَ صفاتو سره کیږی نو سَلم په هغے کښې جائز دے او دا قول دَ امام مالک، اوزاعی، لیث، شافعی او امام بخاری دے او هغوی نور دلیلونه دَ احادیثونه ذکر کړیدی او دَ امام ابوحنیفہؒ او ثوری په نیز سَلم په حیوان کښې جائز نه دے او په هغے کښې اختلاف دَ صحابه کرامو دے۔

فائده ۱۵ بحث دَ اراده کونیه دَ الله تعالیٰ :- اهل سنت دلیل نیولے دے په دے قول سره وَاِنَّآ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ چه حوادث ټول په اراده دَ الله تعالیٰ سره دی او امر دَ الله تعالیٰ کله جدا وی دَ اراده دَ هغه نه او معتزله او کرامیه وائی چه اراده دَ الله تعالیٰ حادث ده ځکه دا په طریقه دَ شرط سره ذکر ده او شرط خو هغه فعل وی چه په زمانه مستقبل کښې واقع کیږی جواب دا دے چه تعلیق دَ اهتداء په مشیئت پورے په اِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ کښې په اعتبار دَ تعلق دَ اراده دَ الله تعالیٰ دے په اهتداء پورے او تعلق حادث او امر اعتباری دے او حدوث دَ تعلق مستلزم نه دے حدوث دَ صفاتو دَ الله تعالیٰ لره او نه لازمیږی قیام دَ حوادثو په الله تعالیٰ پورے۔ او دَ دے نه علاوه نورے ډیرے مسئلے او فوائد دَ دے قصے نه مستنبط کیدے شی په فکر او تدبر سره۔

تنبیه:- هر کله چه قصه دَ بقرے په دا سے فوائد و بائندے مشتمل ده او اهم په کښې مسئله دَ عقیدے دَ توحید ده او اهتمام دَ تصدیق دَ رسول دَ دے وجے نه ټول سورت مسمّٰی کړے شو په سورة البقره سره یعنی تسمیه دَ کل شوه په نوم دَ جزء اشرف او اهم سره۔

۷۲ په دے ایت کښې ذکر دَ دریم خباثت دَ مشرانو دَ بنی اسرائیلو دے چه قتل دَ یو نفس دے بغیر دَ حق نه او بد نامی لګول دی په نورو پاکو خلقو بانדے۔ او مخکښې ایت سره ربط دا دے چه دا هم یو قسم دَ حیلے دے یعنی په حرام فعل سره چه قتل دے ځان مقصد د نیوی ته رسول

چه هغه میراث وڅي یا د هغه قتیل لور یا ښځه حاصلول وي دا رنګ په حیله د
تدارک د ځان نه دفع کول) سره ځان د حکم د قتل نه بچ کول نو دا حیله ده
په حرامو سره د پاره د حاصلولو د دنیوي مقصد او دا سې حیله کول هم حرام
او خیانت دے - وَاِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا ، لفظ د اِذْ دلالت کوي چه دا یو مستقله
قصه ده د اکثر مفسرینو رائے دا ده چه دا واقعه په حقیقت کښ مخکښ ده
په ذبح د بقره باندے او دا د پاره د ترتیب نه دے او تقدیم تاخیر ئے د
دے د پاره کړے دے چه په هره قصه باندے جدا جدا فائدے مرتب شي
او دغه قتیل د غوا په یو ټکړه وهلو سره ژوندے شوے وو د لیږ وخت د پاره
لیکن دا مخکښ موټر ذکر کړے وو چه دغه ټول اسرائیلي روایات دي په
هغې کښ هیڅ روایت په سند صحیح سره نبي صلی الله علیه وسلم ته رسیدلے
نه دے نو د دغه روایاتو په بِناء باندے دا یقین نشي کیدلے چه دا قصه د قتل
مخکښ ده او واقعه د ذبح بقره روستو ده - او ابوحیان هم وئیلي دي چه په
دے قول باندے ماسیوا د قِصو اسرائیلو نه هیڅ دلیل د کتاب او سنت نه
نیشته دے (بحر) - دویم قول د قرطبي او د شاه عبدالعزیز دهلوي په
تفسیر فتح العزیز کښ دا دے چه واقعه د ذبح بقره مخکښ وه د ځینو مقاصدو
د پاره لیکن هر کله چه بقره ذبح شوه نو په دغه وخت کښ واقعه د قتل
موجود شوه نو هغه قتیل د غوا په یو حصه اُوهلے شو نو په دے توجیه
سره ډیر اعتراضات دفع کیږي ماسیوا د دے نه چه په حصه د غوا سره
په وهلو کښ اکرام د غوا دے او هغه د غلط عقیدو والا سره مناسب
نه دے لیکن د هغې جواب به د وړیسې ایت په تفسیر کښ انشاء الله راشي.
وَاِذْ قَتَلْتُمْ د دے قتل په باره کښ دوه اقوال معروف دي اول دا چه د یو
سړي لور وه خائسته هغه تره خپل وراره غوښته لیکن هغه لور ئے دے وراره له
نه ورکوله نو وراره خپل تره لره قتل کړو - او دویم قول دا دے چه دغه
شخص مالدار وو او نور وارثان ئے نه وو او وراره ئے فقیر وو نو ده هغه تره
قتل کړو د پاره د دے چه میراث ئے ماته پاتے شي او دا مړے ئے د بل چا
دروازے ته نزدے او غورځوو (قرطبي) - او د بعضِ مفسرینو په نیز چه د
تره ښځه ئے وه نو وراره د هغې د حصول د پاره تره قتل کړو - د لور یا د ښځې
د حصول د پاره د قتل تائید په یو حدیث سره دے چه اَوَّلُ فِتْنَةِ بَنِي اِسْرَائِيْل

فَقُلْنَا اضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا ؕ كَذٰلِكَ

نو او ویئیل مونږ او وهئ دَ مړي لره په څه حصه (دَ وجود) دَ دَهٔ باندے - دغسے

يُحْيِ اللّٰهُ الْمَوْتٰى ۙ وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ

ژوندی کوی الله تعالیٰ مړی او ښائیی تاسو ته دلیلونه خپل

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۷۳﴾ ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ

دے دَ پاره چه دَعقل نه کار واخلئ - بیا سخت شول زړونه ستاسو

كَانَتْ فِي النِّسَاءِ (مشکوٰة) اوملا علی قاری په مرقات کښ لیکلی دی چه په دے کښ اشاره ده دے واقعے ته اگرچه دا هم صریح نه دے صِرف احتمال دے. نَفْسًا نفس مفرد دے او جمع ئے انفس او نفوس په قرآن کښ دوه سوه دیارلس کرته راغلے ده او دَ دے اته معانے دی اول نفس په معنی دَ شخص لکه په دے اٰیت کښ. دویم صفت دَ الله تعالیٰ (سورة آل عمران ۲۸) بغیر دَ تاویل او تحریف او تشبیه او تمثیل نه معنی حقیقی مراد ده. دریم په معنی دَ جنس باندے (سورة نحل ۷۲ او سورة اعراف ۱۸۹). څلورم نفسِ امّاره بالسوء (سورة یوسف ۵۳). پنځم نفسِ لوّامه (سورة قیامه ۲). شپږم نفس مطمئنه (سورة فجر ۲۷). اووم په معنی دَ زړه (سورة یوسف ۶۸). اتم په معنی دَ روح (سورة تکویر ۷ سورة آل عمران ۱۸۵). فَادّٰرَءْتُمْ فِيْهَا دَ درء نه ماخوذ دے په معنیٰ دَ دفع کولو دے په دے معنی سره په سورة آل عمران ۱۶۸ او سورة نور ۸ او سورة رعد ۲۲ کښ ذکر دے. او باب تفاعل کښ په معنی دَ جګړے سره دے یعنی یو شخص دَ ځان نه دفع کوی او په بل باندے دعوٰی کوی او هغه بل هم دَ ځان نه دے اول لره دفع کوی او په دهٔ باندے دعوٰی کوی نو دَ دے نه جګړه جوړه شي. فِيْهَا ضمیر نفس ته یا قتلة (مصدر) ته راجع دے. وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ، اخراج په معنی دَ اظهار دے او په لفظ دَ مخرج کښ اشاره ده چه دا ستے بنکاره کوی چه نور خلق ئے اوینی او لفظ مظهر کښ دا فائده نه وه او مخرج اسم فاعل کښ دلته معنی استقبالی ده په نسبت دَ قتل او اسم ئے راوړو چه دلالت کوی په ثبوت یا په استمرار باندے که مراد دَ مَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ نه صِرف واقعه دَ قتیل شي نو اسم فاعل صِرف دَ ثبوت دَ پاره دے تجدد په کښ

نیشته نو فعل یٔ ځکه ذکر نه کړو. او که مراد ک دے نه عموم شی اګر چه دا به په قیامت کښ وی لکه په (سورة طارق ۹) کښ نو دا اسم فاعل د پاره د استمرار دے او په مَا تَکْتُمُوْنَ کښ دغه قتیل هم داخل دے۔

۷۳ په دے کښ اظهار د معجزے د موسٰی علیه السلام دے چه الله تعالیٰ د هغه په ذریعه سره قوم د هغه ته داخبر ورکړو. فَقُلْنَا هر کله چه دے روستو امر کولو کښ د موسٰی علیه السلام هیڅ اختیار نه وؤ د دے وجے نه الله تعالیٰ صراحتاً ځان ته نسبت د دے قول اوکړو. اِضْرِبُوْهُ بِبَعْضِهَا اول هو ضمیر خو بالاتفاق نَفْسًا ته راجع دے زمخشری وئیلی دی چه دا په تاویل د شخص او انسان سره دے یا لفظ مَا ته راجع دے په مَا تَکْتُمُوْنَ کښ چه د هغے مدلول هم قتیل وؤ. بِبَعْضِهَا دا ضمیر بناء په مشهور قول باندے بقرے ته راجع دے دهلته په دواړو قصو کښ تقدیم او تاخیر وی لکه چه دا ډیره مشهوره ده. یا تقدیم او تاخیر نیشته بناء په دویم قول د قرطبی او شاه عبد العزیز سره۔

**سوال:-** په دے توجیه باندے بیا هم دا اعتراض دے چه د غوا په یو ټکړه نفس راژوندے شی نو کرامت د غوا ترینه معلومیږی نو د هغوی په باطله عقیده کښ پوخوالے پیدا کیږی؟ **جواب:-** د مشهورو روایاتو په بناء چه ذبح د بقرے نه وی شوے او حکم اُوشی په وهلو د نفس په ټکړے د بقرے سره نو واقعی پوخوالے د دغه عقیدے راځی. دا رنګ بدعتیان ترینه هم استدلال کوی چه د مړی په خیرات کښ غوا حلالول ثابت دی لیکن په دویم قول دا نه لازمیږی ځکه چه اول د بقرے ذبح اوشوه نو د دوی د زړونو نه شبهات او محبت د بقرے او وتلو د هغے نه روستو چه دا سے اوشی چه د هغه بقرے په ټکړے مړے راژوندے شی نو په باره د رسالت د موسٰی علیه السلام کښ به د دوی عقیده کلکه شی لکه چه کلک مؤحدانه معجزه یا کرامت ښکاره شی نو په شک کښ نه پریوځی چه دا قدرت د نبی یا ولی دے۔

**سوال:-** الله تعالیٰ خو دا مړے په خپل قدرت سره بغیر د ضرب نه هم ژوندے کولے شو نو په ضرب کښ څه حکمت دے؟ **جواب:-** په دے طریقه کښ په رسالت د موسٰی علیه السلام باندے پوره حجت دے که دا سے نه وے نو بعضِ ملحدانو به شک کړے وے چه موسٰی علیه السلام

داپه سحر سره ژوندے کړو ځکه چه هغه وخت (مصر) کښ خو د سحر چرچه زیات وه.
په ضمیر د بعضها کښ دا سے احتمال هم شته چه نفس ته راجع شی ځکه چه
نفس په اصل کښ مؤنث دے لکه چه فَادّٰرَءۡتُمۡ فِیۡهَا کښ هم ضمیر نفس ته
راجع وۀ. یعنی اووهئ دِے نفس لره په بعض نکړه د دے نفس سره لکه
لاس د هغه شو. ځکه څه رنګ چه الله تعالیٰ قادر دے چه بِناء په مشهور قول
باندے د غوا په ټکړے سره مړے ژوندے کولے شی نو په دا سے طریقے
سره هم ژوندے کولے شی چه د مړی په لاس سره د هغه بدن اووهلے
شی. هر کله چه په مقابل کښ صحیح یقینی روایات نیشته بلکه اسرائیلیات
دی نو په دے احتمال باندے قول او عمل کولو کښ هیڅ وبال نیشته ځکه داد
قانون د عربیت نه خلاف نه دے او دا رنګ د دواړه قصو استقلال هم
پوره معلومیږی او دا رنګ د کرامت د غوا په باره کښ هیڅ وهم نه راځی. د
دے وجے نه زمونږ مشا ئخو د تفسیر دا توجیه غوره کړیده او زۀ هم داغوره کوم.
بِبَعۡضِهَا په دے ټکړه د غوا کښ ډیر اقوال دی لیکن هر کله چه په قرآن
او حدیث کښ د هغے د تعیین د باره دلیل نیشته او په تعیین د هغے کښ څه
فائده هم نیشته نو مونږ یقیناً فیصله په یو قول باندے نه شو کولے.
كَذٰلِكَ يُحۡيِ اللّٰهُ الۡمَوۡتٰى، د دے نه مخکښ عبارت پټ دے چه (ضَرَبُوهُ
بِبَعۡضِهَا فَحَيِيَ) (دوی اووهلو په یو ټکړه نو هغه ژوندے شو) او خپل
قاتل ئے اوښودلو چه وراره دے د هغه مړی او د قانون د تورات په بِناء
سره هغه د میراث نه محروم کړے شو او دا سے زمونږ په شریعت کښ هم
دی چه قاتل که عمداً اوی او که خطاءً وی نو په نیز د امام ابو حنیفهؒ او
شعبی، شریح وغیره قاتل به د میراث د مال او د دیت دواړو نه محروم
وی او د امام مالکؒ، شافعیؒ په نیز په قتل عمدای سره به محروم وی د
دواړو څیزونو نه او په قتل خطائی به محروم وی صِرف د وارث د دیت نه
او نه دے محروم د ارث د مال نه. كَذٰلِكَ په دے کښ کاف د پاره د تشبیه
دے او ذٰلِكَ اشاره ده ژوندی کولو د دغه قتیل ته او روستو يُحۡيِ اه سره
مشبه ذکر کوی نو دا دلیل دے په اثبات د بعث بعد الموت په ورځ د قیامت
کښ چه قدرت په یو جزئی باندے مستلزم دے قدرت لره په جنس د
هغے باندے. نو په دے کښ رد دے په بنی اسرائیلو روستنو باندے چه

هغوی شک کوؤ په بعث بعد الموت کښ او اختلاف یې کوؤ بعضو وئیل چه روح به دوباره په بل شکل کښ ژوندے کیږی او بعضو وئیل چه ټول اجزاء د بدن سره نشی ژوندے کیدے نو په دے واقعے سره معلوم شوه چه په کوم حال انسان مړشی نو په هغه حال به ژوندے کیږی۔ او دلته د یُحۡیِ اللّٰهُ ۔ نه مراد بالاتفاق احیاء ده په قیامت کښ۔ اَلۡمَوۡتٰی جمع د میّت ده که په شد د یا سره وی او که په تخفیف سره وی عام دے هغه ته چه مړه شویدی یا په روستو د دے نه مړه کیږی۔

تنبیه:- دا په دے سورت کښ دویمه واقعه ده چه ناآشناده د عادت نه په دنیا کښ چه د مرګ نه روستو ژوندرا ولی لیکن په اوله واقعه چه په ۵۶ کښ تیره شویده ژوند اصلی وؤ او مرګ عارضی (غیر مؤجل) وؤ او په دے واقعه کښ مرګ حقیقی دے او ژوند عارضی دے د لږ ساعت د پاره۔

وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ دا تاکید دے د پاره د اثبات د بعث بعد الموت چه د هغے د پاره دا یو دلیل نه دے بلکه نور دلیلونه هم شته چه هغه محسوسی او معقولی دی او لفظ د يُرِيْكُمْ په سترګو لیدلو او بصیرت د زړه دواړو ته شامل دے۔

اٰيٰتِهٖ، جمع یې د دے وجے نه ذکر کړله چه دلیلونه د اثبات د قیامت د پاره ډیر دی او هغه مونږ په اصول تفسیر کښ لیکلی دی۔ او بعض مفسرینو وئیلی دی چه مراد د اٰيٰتِهٖ نه دا یو واقعه ده چه الله تعالی دوی ته په سترګو سره اُوښودله لیکن جمع یې ځکه ذکر کړله چه دا مشتمل ده په ډیر و ایاتونو (فائدو، دلیلونو) باندے۔

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ دا فائده ده د ارائة (لیدلو) د ایاتونو چه مقصد د ایاتونو (دلیلونو) تعقّل دے۔ دلته عقل په معنی لغوی سره دے یعنی د دے د پاره چه منع شئ د مخالفت او د عصیان د الله تعالی نه. یا په معنی د علم سره دے یعنی پوهه شئ په قدرت د الله تعالی په بعث بعد الموت باندے۔ یا په معنی د تدبر او فکر کولو دے په ذریعه د عقل سره په ایاتونو کښ یعنی د عقل نه کار واخلئ په فکر کولو سره په دلیلونو د الله تعالی کښ۔

---

مِّنۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالۡحِجَارَةِ

روستو د دے رواقعاتو) نه پس دا زړونه (ستاسو) پشان د کاڼو سخت دی

اَوۡ اَشَدُّ قَسۡوَةًؕ وَاِنَّ مِنَ الۡحِجَارَةِ

یا (بلکه) زیات دی په سختوالی کښې (ځکه چه) یقیناً بعضے د کاڼو نه

لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنۡهُ الۡاَنۡهٰرُؕ وَاِنَّ مِنۡهَا لَمَا

خامخا هغه دی چه رابهیږی د هغے نه ویالے - او یقیناً بعضے د هغے نه خامخا هغه دی

يَشَّقَّقُ فَيَخۡرُجُ مِنۡهُ الۡمَآءُؕ وَاِنَّ مِنۡهَا

چه اوچوی نو راوزی د هغے نه اوبه - او یقیناً بعضے د هغے نه

لَمَا يَهۡبِطُ مِنۡ خَشۡيَةِ اللّٰهِؕ وَمَا اللّٰهُ

خامخا هغه دی چه رارغړی د وجے د ویرے د الله تعالیٰ نه - او نه دے الله تعالیٰ

بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ ۝٧٤ اَفَتَطۡمَعُوۡنَ

بے خبره د هغه عملونو نه چه تاسو یئے کوئ - ایا نو طمع کوئ تاسو (اے ایمان والو)

۷۴ په دے کښې زجر دے او ذکر د سبب دے د انتقال د خبائثو د مشرانو نه کشرانو ته او سبب د زیاتوالی د خباثتونو دے چه هغه قسوة د قلب دے۔ ثُمَّ د پاره د استبعاد دے او مِنۡ بَعۡدِ ذٰلِكَ د پاره د روستو والی د زمانے دے نو تکرار نه راځی۔ قَسَتۡ قُلُوۡبُكُمۡ، قسوة سختوالی او اوچوالی ته وئیلے شی او دلته مراد عدم انابت دے او خالی کیدل دی د یقین کولو نه په آیت الله باندے (قرطبی) او لرے والے د زړه دے د عبرت اخستلو او د وعظ اخستلو نه (ابوحیان) او لرے کیدل د رحمت او خشوع او خضوع نه (زجاج) او دا په قرآن کریم کښې د دے نه علاوه پنځه کرته ذکر دے سورة انعام ۴۳ سورة الحدید ۱۶ سورة مائده ۱۳ سورة حج ۵۳ او سورة زمر ۲۲۔ قُلُوۡبُكُمۡ دا خطاب هغه بنی اسرائیلو ته دے چه موجود وو په وخت د نزول د قرآن کښې او احتمال شته چه خطاب وی هغه وارثانو د مقتول ته چه روستو د احیاء او د مرګ د هغه نه بیا هم په انکار باندے کلک وو چه مونږ

قتل نه دے کړے لیکن اول قول غوره دے۔ مِنۢ بَعۡدِ ذٰلِكَ، بعد خو دلالت
کوی په مهلت (روستو والی) باندے لیکن حرف دِمِن ورسره (چه دَ ابتداء
دَغایه دَپاره دے) دلالت کوی په اتصال باندے نو روستو والے شته خو
مهلت نیشته۔ ذٰلِكَ اشاره ده ماقبل ته په تاویل دَمذکور سره یعنی انعاماتِ
خاصه دَ الله تعالیٰ او عذابونه او معجزات دَ موسیٰ علیه السلام او مواعظ
دَ نورو انبیاؤ دَ بنی اسرائیلو نه دَ زمانے دَ آخری نبی پورے۔ فَهِيَ كَالۡحِجَارَةِ
اول ئے تشبیه ورکړه دَ کټے سره ځکه چه کټه کښ ښکاره نرم والے نه راځی
او اوسپنه خو په اُور سره نرمیږی۔ اَوۡ اَشَدُّ قَسۡوَةً، اَشَدُّ په پیښ سره
دے نو معطوف دے په محل دَکاف باندے په كَالۡحِجَارَةِ کښ یعنی اَوۡهِيَ اَشَدُّ
قَسۡوَةً یعنی دا زړونه ډیر سخت دی دَ کټے نه۔ په حرف اَوۡ کښ اُوه اقوال دی
(۱) په معنیٰ دَ واو (۲) په معنیٰ دَ بل (۳) دَ پاره دَ ابهام (۴) دَ پاره دَ اباحت (۵) دَ پاره
دَ شک (۶) دَ پاره دَ تخییر (۷) دَ پاره دَ تنویع۔ ابو حیان وئیلی دی چه آخری احتمال
غوره دے یعنی دَ دوی زړونه دوه قسمه دی لږ سخت او ډیر سخت۔
دارنګ په معنیٰ دَ بل سره هم غوره دے په قرینه دَ مابعد سره چه حجاره
کښ دَ نرم والی اقسام شته او دَ دوی په زړونو کښ نیشته۔
سوال:۔ دَ اَشَدُّ قَسۡوَةً په ځائے ئے اقسیٰ ولے نه دے وئیلے؟۔
جواب۱:۔ بِناء دَ فعل تعجب او اسم تفضیل دَ امورِ خلقیه او دَ عیوبو نه کیږی
نو دَ دینه اقسیٰ نه جوړیږی (اللباب)۔ جواب۲:۔ لفظ دَ اَشَدُّ په زیاتوالی
دَ قَسۡوَةً کښ ښکاره دلالت کوؤنکے دے۔ او وجوه دَ ډیر سختوالی درے
دی اوله وجه دا چه حجاره کښ عقل پیدا شی (بالفرض) نو قبلول کوی
لکه په سورة حشر ۲۱ کښ دی دویمه وجه دا چه حجاره کښ څه امتناع
نیشته دَ هغه حوادثو چه الله تعالیٰ په هغے کښ پیدا کوی او دَ دوی په زړونو
کښ امتناع ده دَ اثر قبلولو نه۔ دریمه وجه دَ کټو نه بعضِ فائدے اخستلے
کیدیشی او دَ دوی زړونه بالکل بے فائدے دی۔
وَاِنَّ مِنَ الۡحِجَارَةِ په دے کښ بیان دَ فضیلت دَ کټو دے په زړونو دَ دوی
باندے۔ واو په معنیٰ دَ اِذۡ دے علت دے دَ پاره دَ اَشَدُّ قَسۡوَةً۔ لَمَا يَتَفَجَّرُ
مِنۡهُ الۡاَنۡهٰرُ تفجر او انهار دواړه دلالت کوی په ډیر والی باندے او دَ دے
مثال بنی اسرائیلو ته ښکاره وؤ په هغه کټه کښ چه موسیٰ علیه السلام

په عصاء باندے وهلے وه او د ولس چینے تر ینه پیدا شوے وے او په غرونو
کښی هم د دے نمونے ډیرے دی. وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاءُ په دیکښی
چودل او اُوبه راوتل دواړه ذکر دی او يَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاءُ کښی اشاره ده لږو
اُوبوته او د دے مثال په سورة حشر ۲۱ کښی ذکر دے. او د دے نمونے هم
په غرونو کښی موجود دی چه کله زلزله کښی یو کټ اُوچوی نو د مینځ نه یے
اوبه را اُوځی. وَاِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ دا هبوط حقیقی مراد دے، غرونو کښی دا
خبره هم واقعیت لری او نمونه د دے په بنی اسرائیلو کښی واقعه د جبل
(غر) وه کله چه موسی علیه السلام د الله تعالی د رؤیت سوال کړے وُو نو
د الله تعالی په تجلّی سره غر او نړیدلو او د زمکے سره هموار شو. مِنْ خَشْيَةِ
دا متعلق دے د درے واړو حالاتو سره یعنی تفجر او انشقاق او هبوط په
کڼو کښی دا ټول د وجے د هغه خشیت نه دے چه الله تعالی په دے کڼو کښی
کیښودلے دے او دا قول د مجاهد نه مفسرینو نقل کړے دے او دا ښکاره
دلیل دے چه الله تعالی په جماداتو کښی څه شعور او معرفت کیښودلے دے
لکه چه په صحیح حدیث کښی ثابت دی ژړا کول د ستنے په مسجد نبوی کښی
(بخاری). دارنګ سلام کول د کتې په نبی صلی الله علیه وسلم باندے روایت
د مسلم دے او دارنګ حرکت د اُحد او د ثبیر غر (قرطبی). او دارنګ په
سورة اسراء ۴۴ کښی تسبیح د ټولو څیزونو او په سورة حج ۱۸ کښی سجده
د غرونو او په سورة احزاب ۷۲ کښی امانت د غرونو، نو دا ټول په حقیقت
باندے حمل دی په تیز د سلف صالحینو، تاویلاتو کولو ته یے هیڅ حاجت
نیشته. بعض روستنو علماؤ (ابن حزم وغیره) او معتزلو د دے حقائقو نه
انکار کړیدے لیکن دمشقی په اللباب کښی ذکر کړی دی چه د معتزلو سره په دے انکار
باندے هیڅ دلیل نیشته سیوا د استبعاد عقلی نه. او راغب په دواړو قولونو
کښی یو محاکمه ذکر کړیده حاصل یے دا دے چه د معارف ډیر اقسام دی
اول معرفت تامه دے دا خو د الله تعالی صفت دے. دویم معرفت متزائده
دے دا د انسانانو صفت دے. دریم معرفت د حیواناتو دے چه هغوی په
سبب د هغے خپلے فائدے او نقصانات په اکثری توګه پیژنی. څلورم معرفت
د نباتاتو دے چه هغه د حیواناتو د معرفت نه کم دے. پنځم معرفت د
عناصرو (اُور- خاوره- اُوبه- هوا وغیره) دے چه الله تعالی مسخر کړیدے

أَنْ يُؤْمِنُوا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ

چه دوی به او منی خبرے ستاسو او حال دا چه وه يوه ډله د دوی نه

يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ

اوریدو به ئے کلام د الله تعالیٰ بیا به ئے بدلولے معنے د هغے

مِنْ بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾

روستو د هغے نه چه پوهه به شو د هغے په مراد بانده او دوی پوهیدل رچه دا گناه ده).

هر یو په یو حالت بانده لکه کته ښکته والے غواړی او اُورا وچت والے غواړی دا ټول تسخیر الٰهی دے بغیر د اختیار د دوی. نو بناء په دے بانده وئیلے کیږی چه په دے اشیاؤ کښ معرفت شته لیکن معرفت د جمادا تو مثلاً د معرفت د انسان پشان نه دے او په دغه معرفت سره په دوی کښ تسبیح خشیت او نور آثار پیدا کیږی.

فائده:- هر کله چه د حجارت دا درے حالات ذکر شول نو کوم زړونه چه د حجاره پشان دی ډیر سخت نه دی نو په هغوی کښ د قرآن او مواعظ دینی اوریدلو سره په تفاوت سره درے درجات پیدا کیږی په دے شرط چه اول په کښ خشیت پیدا شی نو اوله درجه ژړا ده په اُوښکو بهیدلو سره دویم درجه صرف سترگے لوندے شی په لړ و اُوښکو سره اگرچه کوزے بهیدلے نه وی. دریمه درجه په زړه سره ژړا وی او صورت د ژړا وی اگرچه په سترگو کښ لوند والے رانشی. او په چا کښ چه په وخت د قرآن اوریدلو کښ د دے نه هیڅ حال پیدا نشی نو هغه خلق اَشَدُّ قَسْوَةً دی او ابن کثیر حدیث د ابن عمر رضی الله عنه راوړے دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی ډیرے خبرے مه کوئ بغیر د ذکر د الله نه ځکه چه ډیرے خبرے بغیر د ذکر د الله نه قسوة د زړه دے او ډیر لرے د الله تعالیٰ نه سخت زړه والا وی (ترمذی) دا رنگ بل روایت د انس رضی الله عنه نه دے مرفوعاً چه څلور څیزونه د بد بختئ نښه ده اوچیدل د سترگو، سخت والے د زړه، اُوږد اُمید او حرص د دنیا.

وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ په دا سے جمله کښ تهدید او توبیخ مراد وی

هرکله چه مخالفت کوؤنکی دَ بیان نه روستو ذکرشی نوعدم غفلت کنایه وی دَعذاب ورکولونه اوکله داسې جمله دَ بشارت او تسلئ دَپاره وی کله چه دَ مؤمنانو دَ بحث نه روستو ذکرشی.

۷۵ (ربط) مخکښ قسوتِ قلب ذکرشوتواوس دَهغې آثار ذکرکوی چه هغه پنځه خبائث دی دَ دې آیت نه شروع کیږی خبائثات دَکشرانو دَ بنو اسرائیلو چه موجود وؤ په وخت دَ نزول دَقرآن کښ او دا پنځه ډلے دی (۱) علماء چه تحریف معنوی کوی (۲) منافقان (۳) امیان مقلدین (۴) علماء تحریف لفظی کوؤنکی (۵) دَجنت دَ تخصیص دعوٰی کوؤنکی سرهٔ دَ عقیدے باطلے نه . نو په دے آیت کښ داول فریق ذکر دے ـ اَفَتَطۡمَعُوۡنَ دا خطاب دے مؤمنانو ته او همزه دَ استفهام انکاری دے یعنی دا طمع مه کوئ . طمع ، دا تعلق دَ نفس دے په حاصلولو دَ مقصد پورے په کلک تعلق سره . نو دا زیات دے دَ رجائه . او ماده دَ طمع په قرآن کښ دولس کرته ده . اکثر استعمال ئې په هغې ځائے کښ دے چه اسباب دَکار وی لیکن په اسبابو باندے وثوق او اعتماد نه کوی سرهٔ دَ شدات رغبت نه په مقصد کښ . او رجا استعمالیږی په هغه ځائے کښ چه اسباب وی او په هغې باندے نظر ساتی او رغبت کوی دَ حصول دَ مقصد . او تمنّا هغه ځائے استعمالیږی چه مناسب اسباب ورسره نه وی او حصول دَ مقصد غواړی . او فا په فَتَطۡمَعُوۡنَ کښ دَپاره دَ عطف او تفریع ده په مقدر باندے یعنی اتدعونهم الی الحق فتطمعون یعنی روستو دَ قسوة دَ زړونو دَ دوی نه په دوی کښ داسے خبائثات پیدا شول تو دَ دوی نه دَ ایمان طمع کول بعیده خبره ده ـ اَنۡ یُّؤۡمِنُوۡا لَکُمۡ مراد دَ دینه ایمان شرعی دے او لام اجلیه دے یعنی لِاَجۡلِ دعوتکم یا مراد ایمان لغوی دے او لام په خپله معنی دے یعنی دوی به ستا سو خبره او منی او په تا سو باندے به اعتماد اوکړی . وَقَدۡ کَانَ فَرِیۡقٌ مِّنۡهُمۡ یَسۡمَعُوۡنَ کَلٰمَ اللّٰهِ دَ فریق نه مراد دَ دوی علماء دی او په دے جمله کښ درے قولونه دی اول دا دے چه کلام الله نه مراد کلام دے په طور کښ دَ موسٰی علیه السلام سره او کان دَپاره دَ تیر شوے زمانے دے نو مراد دَ دینه هغه او یا کسان او دَ هغوی اولاددی چه کلام الله ئې دَ موسٰی علیه السلام نه واوریدلو نو روستو ئې په هغې کښ تحریف اوکړو هاں دا صحیح نه ده چه دوی په خپله کلام الله اوریدلے وؤ قرطبی دغه قول ضعیف کړے دے او کوم

حدیث چه په دے کښ د ابن عباس رضی الله عنهما نقل دے نو هغے ته ئے حدیث باطل وئیلی دی. بلکه دوی کلام الله د موسیٰ علیه السلام نه اوریدلے وؤ.
دویم قول دا دے چه کلام الله نه مراد تورات دے او گان د پار ه د نفس وجود او ارتباط د کلام دے او مراد د فریق نه هغه علماءِ یهود دی چه د نبی صلی الله علیه وسلم په وخت کښ موجود وؤ او یسمعون نه مراد دا دے چه یوتپوس کوؤنکی به د آخری نبی په باره کښ د تورات عبارت کله دوی ته پیش کړو دوی به دا وربدلو نو د هغے تحریف به ئے اوکړو او غلط تاویل به ئے اوکړو.
دریم دا دے چه مراد د کلام الله نه قرآن دے نو چا به چه دغه علماؤ ته د قرآن څه آیت اولوستلو نو دوی به د هغے تحریف اوکړو لیکن دا قول ضعیف دے. فائده:- سمع وصف د کلام الله دلیل دے چه حروف او الفاظ هم کلام الله دے غیر مخلوق دے او دغه کلام لفظی دے څوک چه دا سے وائی چه مسموع هغه لفظ دے چه دلالت کوی په کلام الله باندے دا باطل قول دے دا سے وصف په سورة التوبه ۶ کښ ذکر دے هلته لوستل او ربدل لیکل دا صفات د مخلوق دی او مقروء مسموع مکتوب کلام الله دے.
ثُمَّ يُحَرِّفُونَهٗ تحریف اړول او بدلولو ته وئیلے شی او هغه دوه قسمه دے یو قسم تحریف لفظی دے یعنی د کلام الله د الفاظو او کلماتو په ځائے نور کلمات کیښودل او دا مستلزم دے تحریف معنوی لره او دا معنیٰ مراد ده په سورة مائده ۴۱ کښ چه لفظ د "من بعد مواضعه" په دے باندے دلالت کوی. دویم قسم تحریف معنوی دے او دا عبارت دے د بدلولو د معانی او احکامو ته په تاویل بالرائ او بے علمئ سره او دغه مراد دے په سورة نساء ۴۶ او سورة مائده ۱۳ کښ. د اهلِ علمو اختلاف دے چه په یهودو کښ تحریف لفظی موجود وؤ او که نه وؤ روستو د اتفاق نه په دے چه تحریف معنوی خو د هغوی عادتِ مستمره وؤ، نو بعضِ اهلِ علمو وئیلی دی چه په هغوی کښ تحریف لفظی نه وؤ د دے وجے نه په وخت د زنا کښ صرف د رجم کولو حکم دوی پټ کړے وؤ. دا رنګ دوی به په عربئ ژبه کښ د اصل تورات معنیٰ بدلوله. او دا رنګ الله تعالیٰ دوی ته وئیلی وؤ چه فَأْتُوا بِالتَّوْرَاةِ فَاتْلُوهَا إِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ آل عمران ۹۳

نوکه چرے اصل کتاب دَ تورات دَ دوی سره موجود نه وے نو الله تعالیٰ دَ دوی نه ولے مطالبه دَ اصل تورات کوی۔ او دَ اکثر اهلِ علمو قول دا دے چه یهودو تحریف لفظی او معنوی دواړه کول لکه مخکښ ذکر شوی آیاتونه په اعتبار دَ عموم سره دواړو قسمونو ته شامل دی دا رنګ روستو ئے هم دلالت کوی۔ دا رنګ دَ دوی موجوده کتابونو کښ هم دا اقرار دَ هغوی موجود دے یرمیاه نبی خپل قوم ته خطاب کړیدے رچه تاسو دَ ژوندی خدائے چه رب دَ فوجونو دے خبرے بربادے کړیدی (یرمیاه ص۲۳ ص۳۶) او ماجدی دَ دوی دَ مشرانو اقرار نقل کړیدے په تحریف لفظی باندے بلکه هغوی دَ تنزیل لفظی قائیل نه دی۔ محاکمه دَ دواړو قولونو دا ده چه تحریف لفظی په دوی کښ لږ وُو بعضِ اصل نسخے دَ تورات دَ دوی سره په هغه وخت (وخت دَ نزول قرآن) کښ موجود وے او تحریف معنوی په دوی کښ ډیر وُو او په دے آیت کښ دَ تحریف نه تحریف معنوی مراد دے ابن کثیر وئیلی دی یَتَأَوَّلُوْنَهٗ عَلٰی غَیْرِ تَاوِیْلِهٖ (بدل تاویل ئے کوؤ) فراء په معالم التنزیل کښ وئیلی دی چه تغییر دَ احکامو ئے کولو۔ او قرطبی وئیلی دی چه دَ حلال نه ئے حرام او دَ حرام نه یه ئے حلال جوړول بخپلو خواهشاتو سره۔

فائده:- بحث دَ تاویل و تحریف په تنشیط الاذهان کښ ما لیکلے دَ حاصل ئے دا دے چه حدیث دَ ترمذی کښ راغلی دی چه چا په قرآن کښ قول اوکړو په خپلے رائے سره (او په بل روایت کښ دی) بغیر دَ علم نه نو ځان له ئے ځائے تیار کړو په اُور دَ جهنم کښ ترمذی وئیلی دی چه دا حسن حدیث دے او په بل روایت کښ دی چه چا قول اوکړو په کتاب دَ الله تعالیٰ کښ په خپله رائے سره نوکه صحیح ئے اوئیل نو هم خطا کار دے خو دا حدیث ضعیف دے۔ خازن په مقدمه دَ خپل تفسیر ص۵ کښ وئیلی دی چه دَ قول بالرائے دوه مصداقات دی، اول دا چه تاویل دَ قرآن په مراد دَ خپل نفس او په اتباع دَ خواهش سره کوی سرهٔ دَ علم نه لکه هغه باطنیه، خوارج، شیعه ګان او نور بدعتیان چه حجت نیسی په بعضِ آیاتونو دَ قرآن سره دَ پاره دَ اثبات دَ بدعاتو خپلو او حال دا چه پوهیږی چه دا مطلب دَ آیت نه دے لیکن عوام خلق دهوکه کوی دَ خپل څه خاص مقصد

وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا ج وَإِذَا

او کله چه دوی مخامخ شی د مؤمنانو سره وائي دوی ایمان راوړی دے موږ، او کله چه

خَلَا بَعْضُهُمْ إِلَىٰ بَعْضٍ قَالُوا أَتُحَدِّثُونَهُم

لاړ شی بعضے د دوی بعضو ته نو وائي ورته هغوی ایا خبر ورکوئ تاسو دوی ته

بِمَا فَتَحَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَاجُّوكُم بِهِ

په هغے چه خودلے دے الله تعالیٰ تاسو ته دِ دے د پاره چه دلیل به او نیسی په تاسو باندے په هغے سره

عِندَ رَبِّكُمْ ط أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿۷۶﴾

په نیز د رب ستاسو۔ ایا تاسو د عقل نه کار نه اخلئ۔

دنیوی د پاره۔ دویم هغه څوک چه قول کوی بغیر د علم نه یعنی روایت کښ ډیر وجوه وی د سلف مفسرینو نه او دے یئے حمل کوی په داسے طریقه چه د دغه وجوهو نه خلاف وی (یعنی د علم نحو او صرف د قواعدو نه مخالف وی او دارنګ د اهل لغت نه هم خلاف وی او د سلف مفسرینو نه هم مخالف وی) هاں بدعت په هغے سره نه ثابتوی لکه توجیهات د بعضِ مفسرینو د دے زمانے په تقطیع سره په سورة بقره ۲۹ ۲۱۴ یا معنی د (رُقِیِّكَ) په کتابچه سره کول یا معنی د صرّةٌ په دریچه سره کول یا تاویل د سوءاتهما (سورة اعراف) په عیبونو سره کول وغیره دا که صحیح وی بالفرض نو هم ګناه دے۔ او دریم تاویل یعنی ګرځولو د روایت لره په یو محمل باندے په طریقه د استنباط سره چه دغه محمل د ما قبل ما بعد سره مناسب وی او مخالف د کتاب الله او د صحیح احادیثونه نه وی نو دا مصداق د دے حدیث نه او دا جائز دے لکه صحابه کرامو او تابعینو د ایاتونه استنباطونه کړے دی۔ مِنۢ بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ، عَقَلُوا نه مراد پوهه د صحت د کلام او د صحیح مراد د هغے ده او يَعْلَمُونَ نه مراد پوهه ده د ګناه او دروغو د هغے یعنی اوله خبره دا ده چه سره د علم نه داسے تحریف کوی، لکه اول مصداق مخکښ ذکر شو او دویمه دا چه دوی علم لری چه دا تحریف ګناه دے یعنی دوی لره هیڅ عذر نیشته. او قرطبی وئیلی دی چه د دے زمانے عالم چه عناد کوی د حق سره هغه هم د لار د رُشد (هدایت) نه ډیر

لرے دے ځکه چه د دهٔ علم هم دهٔ لره د دے ګناه نه نه منع کوی۔
لـ۷۶ـکے په دے کښ دویم فریق خبیث ذکر دے چه هغه منافقین دی او معامله
د هغوی د علماءِ معاندینو محرفینو سره ده او په دے مناسبت سره یٔے حرف
عطف ذکر کړے دے۔ وَاِذَا لَقُوا ضمیر د لَقُوا یهودیانوته راجع دے لیکن
په اعتبار د یو فریق سره چه هغه اهل نفاق دی د یهودو نه۔ او کلام د عرب
کښ دا سے ډیر کړنه ذکر دهٔ چه جمع ذکر شی خو مراد د هغے نه بعض کسان
وی۔ وَاِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ اِلٰی بَعْضٍ د اول بعض نه مراد منافقین د یهودو دی
او د دویم نه علماء د هغوی دی چه تحریف او عناد یٔے کوؤ۔ په ۱۴ کښ
وَاِذَا خَلَوْا ذکر وُو او دلته وَاِذَا خَلَا، وجه د فرق دا ده چه هلته منافقین د عوامو
(د اوس او خزرج) مراد وُو نو هغوی د قبیلے د یهودیانو نه وُو او دلته
ذکر د منافقانو د یهودو دے د دے وجے نه تعبیر کښ فرق دے۔ قَالُوْا
اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ دا قول د پاره د زورنے دے د علماؤ معاندینو نه دغه منافقانو ته
چه هغوی په وخت د ملاقات د مؤمنانو او د اٰمَنَّا وئیلو کښ د تورات بعض
خبرے به مؤمنانوته نقل کولے۔ اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ، تحدیث د حدیث نه اخستلے
شوید ے او حدیث هر هغه کلام وی چه په طریقه د نقل سره وی۔
بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ په معنی د فتح کښ ډیر اقوال دی اول ښکاره کول د علم
او اسانول د طلب د علم (قفال) دویم په معنیٰ د قضاء کولو ستاسو په کتاب
کښ چه دا نبی حق دے او د دهٔ قول رښتیا دے (کلبی)۔ دریم په معنیٰ د بیان
کولو (کسائی)۔ څلورم په معنی د نازلولو په کتاب کښ (واقدی)۔ پنځم په معنی
د احسان کولو (ابو عبیده اخفش)۔ شپږم فیصله کول د عذاب (قرطبی)۔
دا ټولے معانی دلته احتمال لری لیکن اوله معنی او دریمه معنی دلته غوره
ده او مراد د دینه اخبار د تورات دے په صدق د آخری نبی صلی الله علیه
وسلم او د هغه صفات او علامات (تخے) او ذکر د عذابونو چه نازل شوی
وُو په مشرانو د یهودیانو باندے۔ لِيُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ، دا لام په معنی د کے دے
د سببیت د پاره متعلق دے د اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ سره یعنی ستاسو تحدیث به
(مؤمنانوته) سبب جوړ شی د پاره د محاجے د دوی په تاسو باندے۔
لِيُحَآجُّوْا ماخوذ دے د حجت نه او باب مفاعله دے د پاره د مغالبے او دا صلاګا
د حجت د دواړو طرفونو نه غواړی اګرچه د کافرانو د طرف نه هیڅ حجت

أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ

آیا دوی نه پوهیږي چه یقینًا الله تعالیٰ پوهه دے په هغه څه چه دوی يې پټوي

وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٧٧﴾ وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ

او په هغه څه چه دوی يې ښکاره کوي۔ او بعضے د دوی نه امیان (ان پړه) دی نه پوهیږي

نیشته لیکن د دوی جګړے نه یٔے حجت مجازًا وئیلے دے۔ نو معنیٰ دا ده چه دوی (مؤمنان) به حجت اونیسی په دغه مَا فَتَحَ سره نو په تاسو باندے به غالب شی په حجت کښ ځکه چه ستاسو خبره به په تاسو باندے حجت (الزام) اوګرځوی۔ عِنْدَ رَبِّكُمْ په دے کښ درے اقوال دی اول دا چه مراد د دے نه کتاب او دین د الله تعالیٰ دے او کتاب الله فیصلے ته وئیلے شی چه دا په نیز د الله تعالیٰ ده ځکه چه هغه نازل کړے دے۔ دویم قول عند رسول ربکم ځکه چه د رسول په نیز وی نو هغه د الله تعالیٰ په نیز هم وی (وَمَنْ يُطِعِ الرَّسُولَ فَقَدْ أَطَاعَ اللَّهَ)۔ دریم قول مراد د عِنْدَ رَبِّكُمْ نه اٰخرت دے۔ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ظاهره خبره دا ده چه دا هم د علماءِ معاندینو قول دے منافقینو ته په طریقه د زورنے سره اشاره ده چه کوم انسان دا سے خبره کوی چه په هغے سره د خصم په مخکښ پرکیږی او ملامته کیږی نو دے بے عقله وی۔ دویم قول دا دے چه دا خطاب دے د طرف د الله تعالیٰ نه مؤمنانو ته او متعلق دے د أَفَتَطْمَعُونَ سره لیکن دا ضعیف قول دے۔

یٔے دا قول دے د طرف د الله تعالیٰ نه د پاره د زورنے ورکولو علماؤ معاندینو او منافقینو دواړو ته یعنی علماء یٔے د حق خبرے د اظهار نه منع کوی او منافقان هم پټ کفر کوی لیکن د الله تعالیٰ نه هیڅ څیز نه پټیږی۔

أَوَلَا يَعْلَمُونَ ضمیر د علماء معاندینو او منافقانو دواړو ته راجع دے۔ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ عام الفاظ دی هر پټ او ښکاره ته شامل دی لیکن پټول د حق او د کفر او ښکاره کول د ایمان په طریقه د منافقت سره په دے کښ داخل دی او په دے اٰیت کښ دلیل دے چه علم د الله تعالیٰ تمام جزئیاتو او کلیاتو ته شامل دے نو دا رد دے په هغه منطقیانو چه علم د الله تعالیٰ په جزئیاتو باندے نه منی۔

النصف

# الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِيَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ﴿۷۸﴾

په کتاب باندے مګر تابعداري کوي د خواهشاتو (د ملیانو) او نه دي دوي مګرا ټکل کوي -

۷۸ په دے کښ ذکر دے د دریم فریق خبیث روستو د ذکر د علماؤ او منافقینو نه او دا فریق عوام دي د یهودیانو نه چه طریقه د هغوي تقلید او قبلول د بے دلیله خبرو دي دا قول د ابو العالیه او مجاهد نه نقل دے (البحر المحیط).

سوال:- امیین خو په سورة جمعه ۲ کښ هغه عربو او نورو خلقو ته وئیلے شوي دے چه هغوي ته هیڅ کتاب مخکښ نازل شوے نه دے نو هغوي خو د یهودیانو نه دي نو څنګه یے اوئیلو چه مِنْهُمْ -

جواب:- دلته امیین په هغه معنیٰ خاص سره نه دے چه بے کتابه خلق دي بلکه په کتابیانو کښ هغه خلق چه ان پړه او بے تعلیمه وي نو دا سے خو په یهودیانو کښ ډیر وؤ لکه چه په دے اُمت کښ هم شته -

اُمِّيُّوْنَ جمع د اُمّي ده او وجه تسمیه یے دا ده چه انسان د مور نه پیدا شي نو په هیڅ لیکلو او لوستلو باندے نه پوهیږي د دے وجے نه ان پړ ته امي وئیلے شي او دا وصف په عامو انسانانو کښ قبیح دے لیکن زمونږ د نبي صلی الله علیه وسلم په صفت کښ دا صفت د مدح دے- لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ داجمله صفتِ موضحه دے د اُمِّيُّوْنَ د پاره- الْكِتٰبَ جنس کتاب مراد دے او تورات په کښ داخل دے او دا رنګ الکتاب د الفاظ او معاني نه مرکب ته وئیلے شي- اِلَّآ اَمَانِيَّ په اِلَّا کښ دوه احتماله دي استثناء متصل او استثناء منقطع په معنیٰ د لکن سره او په لفظ اَمَانِيَّ کښ دوه قولونه دي اول داچه داجمع د امنية ده هغه څیز چه انسان د هغے په نفس سره ارزو کوي او هیڅ حقیقت یے نه وي نو مراد د دے نه هغه دروغ مسئلے دي چه علماءِ معاندینو د ځان نه (بے دلیله) جوړے کړیدي لکه په سورة بقره ۱۱۱ او سورة نساء ۱۲۳ کښ نو په دے قول سره استثناء منقطع ده اِلَّا په معنیٰ د لکن سره دے څکه چه دغه دروغ خو د جنس د کتاب الله نه نه دي حاصل داچه امّي هغه دے چه په کتاب باندے بالکل علم نه لري نه په لوستلو د الفاظو او نه په معاني سره او تقلید کوي د بے دلیله خبرو د ملایانو. او دویم قول دا دے چه اَمَانِيَّ جمع د امنية ده او هغه اخستلے شویده د تمنّیٰ نه په معنیٰ د قرءَة او تلاوة (لوستل) سره او دا معنی په سورة حج ۵۲ کښ مراد ده او صاحب اللباب وئیلي دي چه

دا قول د اکثرو اهل علمو دے او دا غوره دے تو استثناء متصل ده او امانی په
معنیٰ د لوستلو د الفاظو دے۔ نو په دے کښ اشاره ده د اُمِّيُّوْنَ دويم قسم ته
چه هغه په لوستلو د الفاظو پوهيږی ليکن په معنیٰ او تفسير باندے نه پوهيږی
په دے سره معلومه شوه چه زمونږ په زمانه کښ هغه کسان چه د قرآن
صِرف حفظ او تجويد د الفاظو ئے کړے وی او په معنیٰ او تفسير باندے
نه پوهيږی نو هغوی هم د اميانو په ډله کښ حساب دی افسوس دا دے
چه نن زمانه کښ اکثر خلقو په دے باندے اکتفا کړے ده او د قرآن
فهم او تفسير ته هيڅ توجه او اهتمام نه ورکوی او دا سبب جوړيږی د بدعاتو
او د ګمراهئ او د فسادا تو۔ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ د ظن تحقيق په تفسير د ۴۶
کښ تير شوے دے دلته اِن په معنیٰ د ما نافيه دے او په دے جمله کښ مقصد
تاکيد دے د بے علمئ د دوی (لا يعلمون الكتٰب) چه سيوا د ظن نه د دوی سره
هيڅ نيشته او ظن خو د شرعے په اصطلاح کښ علم نه دے۔ قرطبی وئيلی دی
چه دلته ظن په معنیٰ د دروغو وئيلو دے ځکه چه د دوی په صحت د خپلو خبرو
باندے علم نيشته بلکه دوی تقليد کوی د خپلو ملايانو په هغے کښ چه هغوی
ئے لوستل کوی۔ او خطيب (په سراج المنير کښ) ليکلی دی چه ظن هغه رائے
او اعتقاد ته هم وئيلے شی چه هيڅ دليل قطعی ئے نه وی اګرچه د هغے صاحب
په هغے باندے يقين کوی لکه عقيده د مقلد او او ريدونکے د حق نه په سبب
د شبهے سره۔ يَظُنُّوْنَ، دا ئے په صيغه د فعل مضارع سره ذکر کړو نه په اسم
فاعل سره اشاره ده چه ظن د دے عوامو هر وخت نوے نوے پيدا کيږی
او دا دلالت کوی په کمزورتيا والی د عقيدے د هغوی۔ ابو حيان په البحر المحيط
کښ وئيلی دی چه په دے ايت کښ دليل دے (۱) چه علمونه کسبی امور دی
(۲) او تقليد باطل دے (۳) او څوک چه په ګمراه کولو د يو ګمراه سره ګمراه شی
نو دے قابل ذم دے (۴) اکتفاء په ظن سره په اصولو کښ جائز نه ده۔ (۵)
قول بغير د دليل نه باطل دے (۶) د کوم قول او عمل چه وجود او عدم
برابر وی نو د هغے يو جانب ته تلل بغير د دليل نقلی نه نشی کيدلے۔ او
امام رازی په کبير کښ وئيلی دی چه څوک سوچ او کړی په دے ايا تونو کښ
نو چه په دے کښ د کومو فرقو ذکر دے هغه به يقينًا په دے اُمت کښ
او مومی۔ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ په اصل کښ جواب د وهم دے په دويمه توجيه باندے

فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ۗ

پس تباهي ده هغه کسانو لره چه ليکي کتاب په خپلو لاسونو

ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

بيا وائي (خلقوته) دا د طرف د الله تعالى نه دے

لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ فَوَيْلٌ

دے د پاره چه واخلي په هغے سره قيمت لږ (دُنيا معمولي). نو تباهي ده

لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ

دوی لره د وجے د هغے نه چه ليکلی ئے لاسونه د دوی او تباهي ده دوی لره

مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ ﴿۷۹﴾ وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ

د وجے د هغه مال نه چه دوی ئے گټي پيدا او دوی وائي! هيچرے به او نه رسی مونږ ته اور

يعني هر کله چه اوئيلے شو چه دا اميان ما سيوا د لوستلو نه په بل هيڅ څيز نه پوهيږي نو په عملونو او عقيدو کښ به د دوی مسلک څه وی نو جواب اوشو چه صرف ظن لکه په سورة نجم ۲۸ او سورة يونس ۳۶ کښ ذکر دی. او بناء په اوله توجيه باندے د اماني او اتباع ظن فرق دا دے چه په فروعو او اعمالو کښ دوی تابع دی په خواهشاتو او دروغو پسے او په عقيده او اصولو کښ دوی په ظن پسے روان دی او دا دواړه باطل دی.

۷۹ په دے ايت کښ ذکر د څلورم فريق خبيث د يهوديانو دے ابن کثير وئيلی دی دا هغه خلق دی چه دعوت کوی گمراهئ ته په افتراء او په دروغو جوړولو سره په الله تعالى باندے د پاره د خوړلو د مالونو د خلقو په باطل سره او دا هغه خلق دی چه تحريف لفظی ئے کولو چه د هغے يو طريقه دا ده چه د ابن عباس رضی الله عنهما نه يو روايت ابن ابی حاتم او سيوطی نقل کړے دے "چه د نبی صلی الله عليه وسلم صفات چه په تورات کښ وو (حسن الوجه، حسن الشعر، اکحل العينين، ربعة القامة) نو دوی د هغے په ځائے اوليکل (اَزْرَق سَبِطُ الشَّعْرِ) نو هغه به ئے عوامو ته ښودل چه د الله تعالى په کتاب کښ د دے نبی صفات د دے نه غير موجود ته دی نو هغوی به ئے

دَ ایمان راوړلو نه منع کول۔ او دویمه طریقه دَ تحریف لفظي دا ده چه عبارت
دَ ځان نه جوړ کړي او ورسره اولیکي چه قال الله تعالیٰ یا قال رسول الله صلی الله
علیه وسلم او شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمة الله علیه لیکلي دي چه دا سې تحریف
زمونږ په اُمت کښ په طریقهٔ دَ موضوعي احادیثو سره موجود دے اګرچه زمونږ
اُمت کښ الله تعالیٰ دا سې اهل علم پیدا کړي دي چه دغه احادیثِ موضوعه یې
دَ نورو احادیثو نه بالکل جدا کړے او په ډاګه کړیدي۔ فَوَيۡلٌ فا دَ پاره دَ تفریع ده په ماقبل
لفظ (امانی) باندے چه مراد دَ امانی نه دروغ مسئلے وے دَ عنادي ملایانو او
امیان ورپسے روان وُو نو اوس په دے ایت کښ سخت زجر او تخویف ذکر کوي
هغه ملایانو ته چه هغوی اماني خپل په کتابونو کښ لیکي او نسبت یې الله تعالیٰ
ته کوي۔ وَيۡل دا مبتداء نکره ده ځکه چه دعاءِ شر ده او په دعا ګانو کښ جائز
دي چه نکره مبتداء وي۔ ابن کثیر او صاحب اللباب دَ دے په معنی کښ
ډیر اقوال او الفاظ ذکر کړیدي ۱۔ مشقت دَ عذاب (ابن عباس رضی الله عنهما) ۲۔ شدّت
دَ مشر (خلیل)۔ ۳۔ ویل دَ هغه چا دَ پاره وئیلے شي چه په هلاکت کښ پروت
وي او ویح دَ هغه چا دَ پاره چه هلاکت ته نزدے وي (سیبویه)۔ ۴۔ ویل
تفجع (فریاد) دے او ویح ترحم دے (اصمعي)۔ ویل په معنی دَ حزن دے چه
په اصل کښ وے وُو او عربو ورسره په استعمال کښ لام یو ځائے کړیدے
(فراء)۔ دا رنګ دَ ویل سره هم معنی الفاظ دا دي ویح، ویس، ویش، ویه۔
ویب۔ ویك۔ عول۔ او په مینځ کښ یې لږ لږ فرق شته دے۔ او په حدیث دَ
دَ ترمذي کښ ذکر دي چه دا نوم دَ یو وادي دے په جهنم کښ کافر به په
هغې کښ څلویښت کاله په ښکته ځي او ویخ ته به یې نشي رسیدلے (ابن کثیر
وئیلي دي دا حدیث په دے سند سره مرفوع منکر دے)۔ دا رنګ بل حدیث
(چه ویل نوم دَ یو غر دے په اُور دَ جهنم کښ) دا هم ډیر غریب (ضعیف)
حدیث دے۔ ابوحیان وئیلي دي که په تفسیر دَ اَلۡوَيۡل کښ دَ نبي صلی الله
علیه وسلم نه صحیح روایت ثابت شي نو هغې ته رجوع کول واجب دي (لیکن
نیشته) او عربو په خپل کلام کښ دا لفظ مخکښ دَ نزول دَ قرآن نه استعمال
کړے دے لیکن دَ کندے او دَ اُور دَ غر دَ پاره یې استعمال نه دے کړے
نو معلومه شوه چه صحیح دَ دے هغه دے چه کوم دَ اهلِ لغت نه نقل دي
هغه هم اګرچه ډیر اقوال دي لیکن مقصد کښ یو بل ته قریب دي۔

يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ، لفظ د بِاَيْدِيْهِمْ کښ درے فائدے دی اوله داچه وهم د مجازيئے دفع کړو يعنی کتابت کله کنايه وی د امر کولو نه بل چا ته په ليکلو سره نو دا وهم دفع شو. دويمه فائده په دے کښ تصريح ده په جرم د دوی باندے چه دا کار دوی په خپله کړے دے۔ دريمه فائده د ابن اسراج نه نقل دے چه دا کنايه ده چه دا دوی د ځان د طرف نه جوړ کړے دے يعنی نازل کړے شوے نه دے۔ ثُمَّ يَقُوْلُوْنَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ مخکښ فعلی افتراء ذکر وه اوس قولی افتراء ذکر کوی او دا قول د دوی د اميانو د دهوکه کولو د پاره دے۔ لِيَشْتَرُوْا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيْلًا تفسير د اشتراء په ۷۹ کښ تير شوے دے۔ په ضمير راجع دے هٰذَا ته۔ ثَمَنًا عام دے که نقد روپئی اشرفئی وی او که رشوتونه او خوراکونه وی يا د دنيا تور سامان وی يا د دنيا عزت او اقتدار وی۔ قَلِيْلًا وجوه د قلت ډيرے دی ۱ فانی دی ۲ حرام دی ۳ لږ دی په نسبت د اجر د آخرت۔ او په دے جمله کښ اشاره ده د دوی خساست او شقاوت ته چه په ثمن قليل سره لوئے اجر د آخرت يئے برباد کړے دے او پخپله گمراه دی او نور هم گمراه کوی او په الله تعالٰی باندے دروغ وائی دا ټول د دنيا د محبت د پاره۔ فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ، من اجليه دے يا مصدريه دے يعنی دروغ ليکل سبب د عذاب دے۔ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ لفظ د کسب خو ټولو گناهونو ته شامل دے ليکن دلته مراد د دے نه مال حاصلول دی په تحريف سره صاحب اللباب وئيلی دی چه دا دليل دے چه اخستل د مال په باطلو طريقو سره حرام دی اگرچه په رضا د جانبينو سره وی۔

فائده ۱ قرطبی ليکلی دی چه په دے ايت کښ سره د مخکنی ايت نه د تبديل او تغيير د دين او زياتے کولو نه په شرع کښ تحذير او ويره ورکول مراد دی نو چاچه تبديل تغيير اوکړو يا يئے بدعت فی الدين پيدا کړو نو هغه کس په دے وعيد او عذاب کښ داخل دے او دا په دے زمانه کښ ډير واقع او شائع شويدی فَاِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ۔

فائده ۲ ابن قيم الجوزيه رح په صواعق مرسله کښ په حواله د تفسير بدائع ليکلی دی چه دا خلق زمونږ په امت کښ هم موجود دی چه بعض د دوی نه هغه څوک دی چه ايا تونه او احاديث چه د دوی د اقوالو نه خلاف دی نو دوی يئے پټوی او بعض هغه خلق دی چه د خپل مذهبونو او خواهشا

إِلَّآ أَيَّامًا مَّعْدُودَةً ۚ قُلْ أَتَّخَذْتُمْ

مګر یو څو ورځې شمارلې شوې - ته ورته اووایه آیا اخستې دې تاسو

عِندَ اللَّهِ عَهْدًا فَلَن يُخْلِفَ اللَّهُ عَهْدَهُ ۖ

د الله تعالی نه وعده نو (بیا خو) هیچرې خلاف نه کوی الله تعالی د وعدې خپلې نه

أَمْ تَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿٨٠﴾

بلکه جوړوئ تاسو په الله تعالی باندې هغه خبرې چه تاسو پرې علم نه لرئ (په دلیل سره).

د اثبات د پاره احادیث موضوعه جوړوی او نسبت یې الله او رسول ته کوی.
فائده ۳ په دې ایت کښ یې لفظ ویل درې کرته ذکر کړیدې ځکه د دوی ګناهونه هم درې ذکر دی اول ویل په سبب د نسبت د دروغو الله تعالی ته او دویم ویل په سبب د دروغو جوړولو او لیکلو او دریم ویل په سبب د عوض دنیوی اخستلو دې.
فائده ۴ راغب وئیلی دی چه کَتَبَتْ په صیغه د فعل ماضی او یَکْسِبُوْنَ یې په صیغه د مستقبل سره ذکر کړې دې وجه دا ده چه کتابت خو یو کرت شوید ے او د خلقو د ګمراه کولو بنیاد یې کیښودلے دے۔ نو روستو خلق په هره زمانه کښ چه د هغې تقلید کوی نو ګمراه کیږی او ګناه د اضلال په مخکنو باندې راځی په تقاضا د هغه حدیث سره چه "مَنْ سَنَّ سُنَّةً سَيِّئَةً فَعَلَيْهِ وِزْرُهَا وَوِزْرُ مَنْ عَمِلَ بِهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ" (معنی د دې حدیث امام مسلم په کتاب العلم کښ روایت کړیده)۔
نه په دے ایت کښ ذکر د پنځم خباثت د دوی دے او دا قول په دوی کښ د یو فریق دے چه تیر شوی ایت کښ د هغوی درې اعمال ذکر شول نو په دے ایت کښ د هغوی څلورم (قول) ذکر کوی نو قَالُوْا ضمیر راجع دے اَلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ ته (بحر) او دا هغه خلق دی چه د ځان د پاره جنت خاص کوی سره د تیر شوی خباثتونو نه او د ځان د پاره اُور د جهنم په طریقه د تعلیق سره لږ ورځې منی۔ وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ په دې کښ د تاکید د پاره لَنْ او لفظ د مس یې ذکر کړے دے یعنی دخول د اُور او پوره رارسیدل د اُور خو د ر کنار بلکه اُور زمونږ مس هم نشی کولے۔ إِلَّآ أَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً دا استثناء

دَ دوی په اصل کښې په طریقه دَ تعلیق سره ده قرطبی صـ۲ کښې ذکر کړیدی
چه دوی وئیلی دی چه نَحْنُ اَبْنَاءُ اللّٰهِ وَاَحِبَّاءُهُ یعنی مونږ له هیڅ کله عذاب
نه راکوی اوکه بالفرض عذاب راکوی نو لږ ورځے به وی. لفظ دَ اَیَّامًا مَّعْدُوْدَةً
دریو نه تر لسو پورے خاص نه دے بلکه دا کلسونه دَ زیات دَ پاره هم استعمالیږی
په قرآن کریم کښې لفظ ایام اویشت کرته ذکر دے دَ هغے نه په اته ځایونو کښې
دَ پاره دَ عموم دے یعنی دریو نه په بره که څومره عدد وی او باقی ځایونو
کښې په درے او شپږ او څلورو او اتو کښې استعمالیږی. نو دلته په یو قول
باندے څلویښت ورځے دی (چه هغه عبادت کول دُوَدَ مشرانو دَ دوی سخی لره)
او بل قول باندے اوه ورځے دی (چه دوی وئیل چه دَ دنیا ټول عمر اووه زره
کاله دے نو دَ زرو کالو په بدل یوه ورځ به په مونږ باندے عذاب وی).
او لفظ دَ مَعْدُوْدَةً هغه عدد ته وئیلے شی چه په شمار کښې راځی اګرچه تعیین
دَ عدد یے نه وی او دا اشاره ده لږ والی ته او په حدیث صحیح کښې یے دیته
یسیراً وئیلی دی (حدیث دَ بخاری چه په هغے کښې واقعه دَ زهر واچولو
دَ یهودو ترے وه په غوښه دَ بیزه کښې نبی صلی الله علیه وسلم ته او اخر کښې
ترے نبی صلی الله علیه وسلم تپوس اوکړو چه مَنْ اَهْلُ النَّارِ نو هغے اوئیل
"نَكُوْنُ فِيْهَا يَسِيْرًا ثُمَّ تَخْلُفُوْنَا فِيْهَا" (څوک دی اُور والا نو هغے اوئیل مونږ
به په هغے کښې لږ ورځے یو او بیا به په کښې تاسو زمونږ نه روستو پاتے
کیږئ). حاصل دا دے چه دَ قرآن او دَ حدیث الفاظو کښې تخصیص دَ اوو
یا څلویښتو نیشته بلکه مطلق دے. نو غوره توجیه په دے ایت کښې دا ده
چه دوی دَ ځان دَ پاره عذاب دَ جهنم په طریق دَ امکان او تعلیق سره لږ
ورځے منلو او هغے نه روستو یے دَ جنت دعوٰی کوله او حال دا دے چه کفر
او شرک او ډیر ګناهونه کبیره یے کول لیکن هغه یے سبب دَ عذاب نه ګڼل
نو اشاره شوه چه دوی دعوٰی دَ جنت او دَ نجات من النار کوله سره دَ کفر
او شرک نه نو دَ دے وجے نه روستو په لفظ عهد ا سره دَ دوی نه مطالبه
دَ توحید کوی او دَ دے قول دَ دوی مثال زمونږ په امت کښې دَ هغه کسانو
دے چه شرکیات کوی انبیاء اولیاء حاضر و ناظر او عالم الغیب او متصرف
په اموالو کښې ګڼړی او غیر الله ته په حاجاتو او مشکلاتو کښې غائبانه امداد
شه وائی او هغوی ته سجدے لګوی او دَ هغوی په نوم باندے ذبح او نذرونه

کوی او بیا هم دعوے کوی چه مونږ د پاره جنت دے او احتمال شته چه د بعضِ گناهونو په وجے سره لږے ورځے الله تعالیٰ مونږ جهنم ته داخل کړی او بیا به ترینه مونږ را او باسی او وائی چه دا عقیده د اهل سنت والجماعت ده نو د دوی نه هم دغه مطالبه ده (چه روستو ذکر کیږی) چه ایا په تاسو کښ عقیده د توحید شته؟ او چه نیشته نو ولے په الله تعالیٰ باندے دروغ وایئ- فائده:- او داسے په سورة العمران ۲۴ کښ هم شته دے لیکن فرق دا دے چه هلته معدودات په جمع سره ذکر دے او دلته معدودة مفرد ذکر دے- د قانونِ عربیت په لحاظ سره دواړه جائز دی ځکه ایام جمع ده نو صفت ئے جمع جائز دے لیکن مفرد هم جائز دے په تاویل د جماعة سره او بل دا چه رضی وئیلی دی چه جمع قلت په حکم د مفرد کښ وی نو توصیف ئے په مفرد سره هم جائز دے- لیکن په دے ایت کښ ذکر د لویو ملایانو د یهودو دے نو هغوی د تقلیل د مدت د پاره لفظ د مفرد ذکر کړے دے او سورة العمران کښ د وړو ملایانو ذکر دے نو د هغوی ورځے د عذاب په نسبت د غټو ملایانو ډیرے دی نو هغوی لفظ د جمع ذکر کړے دے- قُلْ اَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللّٰهِ عَهْدًا فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗ دارد دے د قول د هغوی چه لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ- حاصل د رد دا دے چه دا سے قول خو اخبار د غیبو دے چه د هغے د پاره ذریعه صرف وحی الٰهی ده نو که تاسو ته په دے باره کښ څه وحی راغلی وی نو هغه اوښایئ لیکن وحی خو تاسو سره نیشته نو معلومه شوه چه په الله تعالیٰ باندے دروغ وایئ (بدائع التفسیر)- او په دے جمله کښ دوه اقوال دی اول دا چه مراد د عهد نه صرف وعده د نجات ده د عذاب نه چه په وحی سره ئے ثابتوی- او دویم د ابن عباس رضی الله عنهما نه ابو حیان او د ابن مسعود رضی الله عنه نه فراء بغوی نقل را وړے دے چه مراد د عهد نه توحید دے او د اتخاذ نه مراد عمل کول دی یعنی تاسو عقیده د توحید حاصله کړیده او ایمان مو راوړے دے- عِنْدَ اللّٰهِ عَهْدًا توحید ته عهدِ الٰهی وئیلے شی ځکه چه په ټولو کتابونو منزلو او د ټولو انبیاء علیهم السلام په وحی کښ هغه موجود ده او ور سره دا وعده هم ده چه دا سبب د دخول د جنت دے- فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗ زمخشری وئیلی دی چه په دے کښ شرط پټ دے (اِنْ اتَّخَذْتُمْ

بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ

داسے نه دہ، بلکه چا چه اوکړه څه بدی (شرک) او راګیر کړی دهٔ لره

خَطِيْٓئَتُهٗ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ

ګناه د دهٔ (ترمرګه پورې) نو دغه کسان اور والا دی دوی په

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٨١﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا

په هغې کښ همیشه وی۔ او هغه کسان چه ایمان ئې راوړو او عمل ئې اوکړو

عند الله عهدا فلن (اه) او ابن عطیه وئیلی دی چه دا جمله معترضه ده په مینځ د دوه مقابلینو کښ چه عهد دے او تقوّل علی الله دے۔ اَمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ، اَمْ پخپله معنی سره دے یعنی تردّد په استفهام کښ لیکن سرهٔ د تقریر د روستنی جانب ته لکه په دے قول وَاِنَّآ اَوْ اِيَّاكُمْ لَعَلٰى هُدًى اَوْ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ (سورة سبا ۲۴) په دے کښ هم سرهٔ د استفهام نه روستنے جانب متعین دے۔ یا اَمْ په معنی د بَلْ سره دے او دیته ام منقطعه وئیلے شی۔ د قول نه چه روستو علٰی ذکر شی نو افتراء ته وئیلے شی۔ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ مفعول د دے پټ دے مَا لَا تَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مِنَ اللّٰهِ یعنی الله تعالٰی ته د هغه څیز نسبت جائز دے چه په دلیل سره معلوم وی چه دا د الله تعالٰی د طرف نه دے نو په کوم څیز باندے چه د الله تعالٰی د طرف نه دلیل (وحی) نیشته نو د هغے نسبت الله تعالٰی ته کول دے ته تَقَوُّل عَلَى اللّٰه وئیلے شی او دا طریقه ده د ټولو مشرکانو او بدعتیانو۔

سله په دے دوه ایتونو کښ تتمه ده د ماقبل خطاب په تخویف اخروی او بشارت سره نو په دے ایت کښ تخویف اخروی دے او رد ئې په دے قول د دوی باندے چه لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ۔ مخکښ رد وو په طریقه د طلب د دلیل سره او په دے کښ رد دے په ابطال د دے دعوے سره د وجود د شرک نه۔ بَلٰى دیته حرف ایجاب وئیلے شی (پشان د نعم۔ اجل۔ ای وجیر) لیکن بَلٰى خاص دے په هغه ځائے پورے چه مخکښ نفی موجود وی او په استفهام سره وی۔ او که نه وی نو په دے کښ ایجاب د هغه څیز وی چه مخکښ ئې نفی شوے وی نو د لته هم معنی دا ده چه هاں لګیږی به اور تاسو سره

دَ همیشه دَپاره-

مَنۡ كَسَبَ سَيِّئَةً، مَنۡ موصوله دے اودَپاره دَ تعمیم دے کتابی اوغیرکتابی سړی اوښځے ټولوته شامل دے-كَسَبَ دا دلیل دے چه انسان دَخپلوعملونو کاسب (کوونکے) دے خالق نه دے اوانسان ته الله تعالیٰ قدرت دَکسب ورکړے دے. سَيِّئَةً په معنیٰ دَ شرک دے (ابن عباس-مجاهد) یعنی څوک چه عمل اوکړی پشان دَ عملونو ستاسو او کفر او کړی پشان دَ کفر ستاسو (اے یهودیانو) ابن کثیر. اوعطاء وئیلی دی مراد دَ دے نه شرک دے په قرینه دَ سورة نمل ۹۰ او بل په دے وجه سره چه دا نازل دے په باره دَ یهودیانو کښ اګرچه حکم یے عام دے. وَأَحَاطَتۡ بِهِ خَطِيٓـَٔتُهُۥ مقصد په دے جملے سره دفع دَ وهم ده یعنی که څوک یوکرت شرک اوکړی بیا توبه اوباسی نو هغه هم په كَسَبَ سَيِّئَةً کښ داخل دے نو جواب اوشوچه بل شرط دَ همیشوالی په جهنم کښ احاطه دَګناهونو ده-دَ ربیع نه ابن کثیر نقل راوړے دے چه مراد دَ احاطے نه دا دے چه مړشی په شرک باندے او توبه اونه باسی. دَ خَطِيٓـَٔةُ نه مراد عام ګناهونه کبیره دی سره دَ کفر او شرک نه- اوفرق دَ سَيِّئَة او خطيئة دا دے چه دَ سَيِّئَه اطلاق کیږی په هغه بد عمل چه مقصد بالذات وی نو شرک کول دَ مشرک مقصود او محبوب وی او دَ خطيئه اکثر اطلاق کیږی په هغه بد عمل چه مقصود بالواسطه وی لکه نور ګناهونه کبیره چه دَ کفر او شرک نه پیدا کیږی.- او دَ سيئه سره یے کسب ذکر کړیدے او کسب خو دَ نفع راښکلوته وئیلے شی نو مشرک هم شرک ځان دَپاره نافع ګنړی یا دائے په طریقه دَ تهکم سره ذکر کړے دے- فَأُوْلَـٰٓئِكَ أَصۡحَـٰبُ ٱلنَّارِۖ هُمۡ فِيهَا خَـٰلِدُونَ داسے مخکښ تیر شویدے هرکله چه لفظ دَ مَنۡ په معنیٰ کښ جمع ده دَ دے وجے نه أُوْلَـٰٓئِكَ جمع راوړے ده.دَ دے ایت نه معلومه شوه چه دخول جهنم ته سره دَ همیشګیرئ نه دِے دَپاره دوه سببونه پکار وی یو کفر او شرک او بل مړکیدل په دغه حالت کښ بغیر دَ صحیح توبے نه (نو ځکه یے جمع راوړے ده) نو که توبه یے دَ شرک نه کړے وی یا مشرک نه وی او نور ګناهونه صغیره یا کبیره یے کړے وی نو هغه به همیشه په اور دَ جهنم کښ نه وی په باره دَ نورو ګناهونو کښ دَ الله تعالیٰ مشیت ته حواله دے که بښی یے او که سزا ورکوی.

الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَنَّةِ ۚ هُمْ
په طريقه د پيغمبر (نو) دغه كسان جنت والا دي دوى به

فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٨٢﴾ وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ
په هغې كښ هميشه وى. او كله چه واخستو مونږ پوخ لوظ

بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ ۖ
د بنى اسرائيلو نه چه بندګى به نه كوئ مګر د يو الله تعالىٰ

وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّذِى الْقُرْبٰى
او كوئ به د مور او پلار سره نيكى (ښېګړه) او د خپلوانو سره

وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَقُوْلُوْا لِلنَّاسِ
او يتيمانو سره او مسكينانو سره او وايئ خلقو ته

٨٢ په دے ايت كښ بشارت دے څه رنګ چه په مخكښ ايت كښ ذكر د كامل ګناهګارو يعنى كافر او مشرك دا رنګ په دے ايت كښ ذكر د كامل مؤمن مراد دے د دے وجے نه دلته د ايمان سره ئے عمل صالح ذكر كړے دے. وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ په جانب د مؤمنانو كښ لفظ د الَّذِيْنَ دلالت كوى په اكرام او شرافت د مؤمنانو باندے.

وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ، **سوال:-** هر كله چه عمل صالح په ايمان كښ داخل دے نو روستو ذكر كول په طريقه د عطف كښ څه وجه ده؟-

**جواب ١:** ايمان كښ اګر چه ټول اعمال صالحه داخل دى ليكن لفظ د اٰمَنُوْا په فعل سره وهم پيدا كوى چه صِرف يو عمل د ايمان ئے كړے وى نور ئے نه وى كړے نو د هغه وهم د دفع كولو د پاره عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ ئے وروسته عطف كړو.

**جواب ٢:** اٰمَنُوْا فائده كوى ايمان او عمل په زمانه ماضى كښ نو عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فائده كوى معنى د استقبال نو دلالت كوى په دوام د عملونو باندے تر مرګه پورے (خازن) نو اٰمَنُوْا په مقابله د كسب سيئة كښ دے او عَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ په مقابله د اَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓئَتُهٗ كښ دے نو تقابل د دواړو پوره شو.

حُسْنًا وَّاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ثُمَّ

خه خبرې او پابندي كوئ د مانځه او وركوئ زكوٰة - بيا

تَوَلَّيْتُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْكُمْ وَاَنْتُمْ مُّعْرِضُوْنَ ﴿۸۳﴾

مخ واړوو تاسو (د دې كوطنه) مګر لږ كسا توستاسو نه او تاسو هميشه مخ ګرځونكے يئ -

۸۳ د دې ايت نه تر ۸۶ پورې دريم قسم خطاب دې د خطابا تو د بني اسرائيلو ته او په دې كښ ذكر د خبا ثا تو د موجوده يهوديانو (خصوصًا د مدينې قريب) دې په ترقئ سره د ماقبل نه په ترك د امتثال (قبلولو) د اوامرو ثلورو او نواهي ثلورو سره، په باره د عقيدې او د اعمالو او حقوق الله او حقوق العباد كښ - او په نقض د ميثاق سره - ثلور اوامر دا دي احسان ځ خواصو سره، او قول حسن د عامو خلقو سره، او اقامة الصلوٰة، او ايتاء الزكوٰة، او ثلور نواهي دا دي :- نهي د شرك في العبادات نه، نهي د سفك الدماء نه، نهي د اخراج د خلقو د كورونو نه او نهي د تظاهر او تعاون كولو نه په ظلم او ګناه باندې - او د دې ټولو نه موجوده بني اسرائيلو اعراض كړے دے - او په اخر د خطاب كښ تتمه ده په ذكر د سبب د اعراض او تخويف اخروي سره - وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ، او دا ميثاق اخستلے شويدے په ژوندو دوى كښ په ژبه د موسٰى عليه السلام او د نورو انبياؤ د بني اسرائيلو - يا دا ميثاق مذكور دے په تورات كښ - لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ، د دې جملې په محل د اعراب كښ (اُوۡه) اقوال دي اول دا چه دا تفسير د ميثاق دے نو دې د پاره محل د اعراب نيشته دويم دا حال دے د ماقبل نه په تقدير (مُقِرِّيْنَ التَّوْحِيْدَ) دريم ملتزمين الاقامة على التوحيد، ثلورم تقدير د قُلْنَا لَهُمْ. پنځم تقدير د حرف جر يعني على ان لا تعبدوا - شپږم تقدير د اَن - اووم نفي په معنىٰ ځ نهي ده د پاره د تاكيد - (ابوحيان - صاحب اللباب) - اِلَّا اللّٰهَ استثناء مفرغ يعني مفعول پټ دے د تعميم د پاره او د زر رسيدلو د مقصد د پاره يعني لَا تَعْبُدُوْنَ اَحَدًا اِلَّا اللّٰه - او په دې كښ اصل اِيَّايَ نا پكار وُو ليكن عدول اوكړے شو د متكلم نه غائب ته ځكه چه په تصريح د اسم د الله كښ ډير عظمت دے او دلالت دے په نورو صفتونو باندې او دا ميثاق شامل دے علم د الله تعالىٰ ته او په وحدانيت د هغه او براءت د هغه د هر ضدانو نه او شريك نه او

علم په کیفیت د دغه عبادت سره او هغه علم د وحی او د رسالت دے تو لَا تَعْبُدُوْنَ اِلَّا اللّٰهَ
دے تولو علمونو لره مستلزم دے (اللباب)۔ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا، په دے کښ
لفظ د احسنوا محذوف پټ دے او احسانًا مفعول مطلق دے د پاره د تاکید۔ یا لفظ
د وصینا پټ دے لکه په سورة لقمان ۱۴ کښ چه دے۔ او مراد د احسان نه د
هغوی سره په ښه طریقه ژوند تیرول دی او هغوی ته تواضع کول، د هغوی
حکم منل بغیر د معصیت نه، د هغوی خدمت کول، په هغوی باندے خرچ کول
په وخت د ضرورت کښ د هغوی، هغوی ته دعا د مغفرت کول او د هغوی د دوستانو
سره روستو د مرګ د هغوی نه صله رحمی کول، او هغوی ته دعوت کول د حق
په نرمه لهجه سره (خازن)۔ او بعض د دے نه ذکر دی په سورة اسراء ۲۳، ۲۴ کښ۔
**فائده:**۔ امر په احسان د والدینو سره ئے په قرآن کریم کښ د حق د الله تعالیٰ
سره چه توحید دے متصل ذکر کړے دے لکه په سورة نساء ۳۶، سورة اسراء ۲۳
او سورة لقمان ۱۴ کښ نو د دے شو وجوه دی اوله وجه دا چه اول نشأة
د انسان د الله تعالیٰ د طرف نه دے نو دویم نشأة د هغه په تربیت د والدینو
سره دے (قرطبی)۔ دویمه وجه، الله تعالیٰ په انعام کولو سره په بنده باندے
هیڅ عوض ته محتاج نه دے او نه غواړی نو دا رنګ مور او پلار چه انعام کوی
په اولاد باندے نو عوض نه غواړی. دریمه وجه، الله تعالیٰ په خپل بنده
باندے انعام نه بندوی اګرچه ارتکاب د جرمونو اوکړی نو دا رنګ مور او
پلار هم په اولاد باندے د هغوی د جرمونو د وجے نه انعامات نه بندوی۔
څلورمه وجه، الله تعالیٰ په عباداتو او طاعاتو د خپل بنده کښ تصرفًا د خیر
او برکت کوی او د بربادئ نه ئے بچ کوی نو دا رنګ والدین هم په مال
د اولاد کښ د ګټے کوشش کوی او د بربادئ نه ئے بچ ساتی (اللباب)۔ پنځمه
وجه، مقصود په دے کښ فرق دے په مینځ د حق د الله تعالیٰ او حق د
والدینو کښ چه حق د الله تعالیٰ عبادت دے په توحید سره او حق د
والدینو احسان کول دی عبادت کول نه دی تو لوئے انعام کوونکی په
بندګانو کښ والدین دی چه هغوی حقدار د بندګئ نه دی نو بل
بنده به څه رنګ د الله تعالیٰ شریک کړے شی په بندګئ کښ۔
وَذِی الْقُرْبٰی قربٰی مصدر دے او په معنیٰ د قرابة سره دے او دا ئے په
والدینو پسے ذکر کړو ځکه چه دا قرابت د والدینو په واسطه سره پیدا کیږی

ځکه چه مراد ذ دے نه هغه کسان دی چه د پلار په ذریعه قریب وی او د مور په ذریعے سره قریب وی په هغې کښ ذوی الفروض، عصبات او ذوی الارحام ټول داخل دی او ذِی الْقُرْبٰی یې مفرد ذکر کړو ځکه چه مراد په دے سره جنس دے او بل دا چه اضافت مصدر ته شوے دے نو شامل دے هر ذی قرابت ته - وَالْيَتٰمٰى جمع د یتیم ده هغه ځوک چه پلار یې مړ وی او دے نابالغ وی - او د ماوردی په نیز په هغه چا باندے هم اطلاق کیږی چه مور یې نه وی - او د یتیمانو رعایت د حقوقو د دریو وجونه پکار دے. ډېر وړوکوالے او بے پلاره کیدل او نه موندل د هغه چا چه د دهٔ اصلاح او کړی او بخپله دے د انتفاع او د قیام د حاجاتو خپلو نه عاجز وی - وَالْمَسٰكِيْنِ جمع د مسکین ده - په نیز د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه مسکین ډیر محتاج دے په نسبت د فقیر او په نیز د امام شافعی رحمة الله علیه فقیر زیات محتاج دے د مسکین نه. لیکن دا فرق په هغه وخت کښ دے چه په یو کلام کښ دواړه یو ځائے ذکر شی او چه جدا جدا وی نو بیا د فرق لحاظ نیشته هاں مسکین په هره درجه کښ د یتیم نه ادنٰی ته دے ځکه چه دے بخپله کسب کولے شی او د خپل حاجاتو بخپله اصلاح کولے شی.

فائده:- ذِي الْقُرْبٰی یې مفرد ذکر کړو او یَتٰمٰى او مساکین دواړه یې جمع راوړی دی اشاره ده چه قرابت هرکله په یو جهت کښ وی نو په دوی کښ تفاضل او فرق په احسان کښ پکار نه دے په خلاف د یتیمانو او مسکینانو نه - او ذی القربٰی یې دلته بغیر د بآء نه راوړے دے او په سورة نساء ۳۶ کښ په بآء سره ذکر دے ځکه چه په دے ایت کښ ذکر د عهد د بنی اسرائیلو دے چه هغوی د والدینو د حق نه علاوه نور حقوق د بندګانو نه پیژندل نو ذِي الْقُرْبٰی یې په احسان د والدینو کښ داخل کړو د تاکید د حقوقو د دوی د پاره - او سورة نساء کښ خطاب دے امت ته هغوی د والدینو او د ذوی القربٰی جدا جدا حقوق پیژنی دا رنګ په دے ایت کښ د څلورو نه سیوا یې نور حقوق نه دی ذکر کړی او په سورة نساء کښ ډیر ذکر دی ځکه چه په دے سورت کښ مقصود عنوان د میثاق دے نو د هغې سره د اهلِ حقوقو اختصار مناسب دے او سورة نساء کښ مقصد تفصیل د حقوقو دے نو هلته یې ټول اهلِ حقوق ذکر کړیدی.

وَقُوۡلُوۡا لِلنَّاسِ حُسۡنًا، حُسۡنًا مصدر دے او په معنی د حَسَنا صفت سره دے۔ راوړے شویدے د پاره د مبالغے کولو په تحسین (خائسته کولو) د دنیا کښې۔ هر کله چه مخکښې احسان ذکر شو او هغه اکثر په اعمالو کښې وی نو اوس ذکر کوی حُسن د اقوالو۔ او هر کله چه حسن د اقوالو کښې په انسان باندے ډیر بوج نه وی بلکه اسان دی په نسبت د احسان د عمل او د مال د دے وجے نه ئے دلته الناس عام ذکر کړو۔ او د حُسۡنًا په تفسیر کښې ډیر اقوال دی (۱) قول د لا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰه او امر کول د دے (ابن عباس) (۲) رشتیا وئیل په باره د محمد صلّی الله علیه وسلم کښې (ابن جریج) (۳) امر بالمعروف او نهی عن المنکر (سفیان ثوری) (۴) نرمے خبرے کول او خائسته جواب ورکول (ابوالعالیه)۔ غوره دا ده چه دا لفظ عام شامل دے ټولو اقوالو ته او مراد د حُسۡنًا نه نرمه لهجه کشاده تندے ساتل دی په وخت د دعوت کښې د هر نیک او بد، سنّی او بدعتی سره خو بغیر د مداهنت (سستئ) کولو نه په مسئله کښې دا رنګ امر شوے وو موسیٰ او هارون علیهما السلام ته په سورة طٰهٰ ۴۴ کښې او اوس د دے زمانے داعی غوره نه دے د موسیٰ او هارون علیهما السلام نه او د دے زمانے فاجر مخاطب اخبث نه دے د فرعون نه نو هر کله چه هغوی ته امر وو د قول لیّن (په نرمه لهجه سره وینا کول) نو اوس خو ضرور داسے لهجه پکار ده نو په دے ایت کښې یهود او نصاریٰ داخل دی نو دین حنیف (توحید) والا خو پکښې ضرور داخل دی (دا تفصیل قرطبی لیکلے دے) او تفسیر فتح العزیز کښې دی چه د دے لفظ نه بعض جاهل دلیل نیسی چه الله تعالیٰ حُسۡنًا وئیلے دے نو چا ته په داسے حقه خبره نه کوئ چه هغه ورباندے خفه کیږی لیکن دا قول ئے غلط دے د حُسۡنًا نه مراد هغه قول دے چه خائسته وی په نیز د الله تعالیٰ نه په نیز د خلقو۔ او دا جمله هم داخل ده په میثاق کښې په اعتبار د معنی سره چه اَنۡ لَّا تَعۡبُدُوۡۤا اِلَّا اللّٰهَ او اَنۡ تَقُوۡلُوۡا لِلنَّاسِ حُسۡنًا۔ او دا ټول واجب وو په بنی اسرائیلو باندے په هر وخت کښې د وجے د میثاق نه او زمونږ په اُمت کښې هم واجب دی په دلیل د ایت د سورة نساء سره او د دے منافات د قتال او د جهاد فی سبیل الله سره نیشته نو دے ته منسوخ نشی وئیلے کیدے او چا چه منسوخ وئیلے دے نو هغه په یو تاویل باندے بنا دے چه حسن مقابل د قتال اخلی۔

وَاَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ دلته مراد په صلٰوة او زکٰوة سره هغه دے چه

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ لَا تَسْفِكُونَ دِمَاءَكُمْ

اوکله چه واخستو مونږ پوخ لوظ ستاسو ته چه نه به تویوئ وینې د یو بل (په ناحقه)

وَلَا تُخْرِجُونَ أَنْفُسَكُمْ مِنْ دِيَارِكُمْ

او نه به اوباسئ تاسو یو بل لره د کورونو خپلو نه

ثُمَّ أَقْرَرْتُمْ وَأَنْتُمْ تَشْهَدُونَ ﴿۸۴﴾

بیا اقرار اوکړو تاسو او تاسو پوهیدئ.

دوی ته امر شوے وؤ په هغې سره په تورات کښ. معلومه شوه چه داعبادات په ټولو ادیانو سماویو کښ فرض وؤ اګرچه د هغې په مقادیرو او کیفیاتو کښ فرق وؤ. ثُمَّ تَوَلَّيْتُمْ إِلَّا قَلِيلًا مِنْكُمْ مخاطب په دے سره هغه بنی اسرائیل دی چه په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم کښ وؤ سره د بعض مشرانو د دوی نه تغلیبًا. إِلَّا قَلِيلًا مراد هغه مشران دی چه په مخکښ زمانه کښ پخپل دین صحیح او په دے میثاق باندے کلک وؤ او دارنګ هغه کسان چه په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم کښ ئے صحیح ایمان راوړے وؤ او د دوی نه علاوه مشرانو کشرانو د دغه میثاق نه خلاف کړے دے نو اوله خبره توحید وؤ چه د هغې مخالفت ئے کړے دے په شرک کولو سره او د احسان په ځائے ظلم کړیدے او دعوت د حق ئے مطلقًا پریښودلے دے او صلوٰة او زکوٰة ئے هم برباد کړیدی. وَأَنْتُمْ مُعْرِضُونَ، د تولی او د اعراض په مینځ کښ فرق دا دے چه تولی په بدن سره ده او اعراض په زړه سره دے (قرطبی). تولی واپس ګرځیدل دی د هدایت نه ضلال ته او اعراض مخالفت کول دی په مینځ د لارے کښ (ابوحیان). دارنګ فرق دے په متعلقینو د دے دواړو کښ ۱ تولی د میثاق نه ده او اعراض د ایمان راوړلو نه په آخری رسول باندے ۲ تولی په تیرے شوے زمانه کښ او اعراض په حال او استقبال زمانه کښ.

۸۴ په دے آیت کښ د دوی دوه میثاقونه ذکر کوی دا هم په تورات کښ ذکر وؤ او دوی په هغې باندے ایمان راوړے وؤ.

لَا تَسْفِكُونَ دِمَاءَكُمْ دا نفی هم په معنی د نهی سره ده. **سوال**:- هیڅ انسان خو ځان نه قتل کوی نو د دے نهی فائده څه ده؟. **جواب** د دے په ډیرو

ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ

بیا　تاسو　اے هغه خلقو　وژنئ تاسو　یو بل لره

وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ ز

او وباسئ تاسو　یوه ډله ستاسو　دَ کورونو دَ هغوی نه

تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ط

مدد کوئ تاسو دَ یو بل سره دَ هغوی په مقابله کښې په گناه کولو او په ظلم کولو سره۔

وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ

او که راشی دوی تاسو ته قیدیان نو جرمانه ورکوئ تاسو دَ هغوی (دَ خلاصولو) دَ پاره او حال دا دے

وجوهو سره دے اوله وجه دا ده چه قتل دَ خپل ځان په بعضِ ملکونو کښې په طریقه دَ دیانت سره شته لکه په هندوانو کښې عقیده دا ده چه کله انسان ځان قتل کړی دَ پاره دَ دے چه دَ عالَم دَ فساد نه خلاص شی او عالَم دَ نُور او صلاح ته اُورسی (قرطبی او صاحب اللباب)۔ او بعضِ خپل ځان جهلاً قتل کوی لکه چه دَ دنیا دَ مصیبتونو او حوادثو نه تنګ شی نو ځان قتل کړی۔ دویمه وجه دا ده چه مراد دَ دے نه یو بل لره قتل کول دی لیکن دَ بل قتل ئے دَ ځان قتل ګرځولے دے دَ وجے دَ یو والی دَ قوم او نسب او ملت نه۔ دریمه وجه، مراد دَ دے نه اسباب دَ خپل قتل جوړول دی یعنی زنا اوکړی یا مرتد شی یا بل چا لره عمداً قتل کړی نو دَ هغے وجے نه دے قتل کړے شی نو دا قتل سببی دے۔ څلورمه وجه دَ زور زور و سره جنګ کول په اصل کښې ځان قتل کول دی دا هم قتل سببی دے۔ تو دا لفظ دے ټولو وجوهو ته شامل دے۔ وَلَا تُخْرِجُوْنَ اَنْفُسَكُمْ مِّنْ دِيَارِكُمْ په دے کښې هم وجوه دی اوله وجه، انفس نه مراد هم جنس دی او دِيَارِكُمْ په معنی دَ دِيَارِهِمْ سره دے۔ دویمه وجه، اخراج دَ بل چا سبب دے دَ پاره دَ اخراج خپل په وخت دَ غلبے موندلو په ده باندے۔ دریمه وجه، دَ کور نه ځان ویستل په خلافِ سنت طریقے سره لکه په صوفیاؤ کښې داسے کسان شته چه همیشه په صحراء بن ګرځی خپل کور ته نه داخلیږی او غوښه نه خوری او واده نه کوی او دا کار ونه ثواب ګنړی او په دے باره کښې قرطبی حدیث دَ عثمان بن مظعون رضی الله عنه بغیر دَ سند نه راوړے دے۔ ثُمَّ اَقْرَرْتُمْ مراد دَ دے نه قبلول دَ عهد دی په

مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ إِخْرَاجُهُمْ ۗ أَفَتُؤْمِنُونَ

چه حرام دی په تاسو باندے ویستل د هغوی - آیا نو تاسو ایمان راوړئ

بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُونَ بِبَعْضٍ ۚ

په بعضے حصه د کتاب او انکار کوئ د بعضے نه

فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ

پس نیشته بدله د هغه چا چه کوی دا کار ستاسو نه

إِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَيَوْمَ

مګر شرمیدل دی په ژوند دنیوی کښ او په ورځ

الْقِيٰمَةِ يُرَدُّونَ إِلٰٓى أَشَدِّ الْعَذَابِ ۗ

د قیامت به اوګرځولے شی دا خلق سخت عذاب ته -

وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿۸۵﴾

او نه دے الله تعالیٰ بے خبره د هغه عملونو نه چه تاسو یئے کوئ -

ژبے سره یا مراد دا دے چه د مخکنو بنی اسرائیلو نه دا عهد اخستلے شوے وُو او روستنو هم د هغے اقرار اوکړو - وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ مراد ددے نه شهادت (علم) دے په زړه سره - یا دا چه تاسو موجوده خلق شهادت کوئ په مشرانو خپلو باندے ددے میثاق او اقرار کولو د هغوی -

۸۵ په دے کښ قباحت د بنی اسرائیلو ذکر کوی په نقض ددے میثاق سره په درے وجوهو باندے (۱) قتل کول (۲) د کورونو نه ویستل (۳) دیوبل سره په دے کښ امداد کول - او دا پښان د تَوَلَّيْتُمْ دے چه په مخکښ آیت کښ ذکر وُو لیکن په هغه آیت کښ اکثر اوامر ذکر وُو او دا اوامرو نه خلاف کولو ته تولّی او اعراض وئیلے کیږی - او په دے آیت کښ ذکر دے د مخالفت کولو د منهیاتو نه او هغه کبیرې په ارتکاب د منهیاتو سره -

تنبیه :- په دے آیت کښ خطاب وُو موجوده بنی اسرائیلو نه په وخت د نزولِ قرآن کښ - د هغے تفصیل دا دے چه په مدینه طیبه کښ دده قومونه

د عوامو اباد وؤ یو اوس او بل خزرج وؤ د دوی په مینځ کښ د جاهلیت دشمنئ وے او د مدینے په خوا وشا کښ د یهودیانو درے قومونه موجود وؤ بنو نضیر، بنو قریظه او بنو قینقاع د دوی په مینځ کښ هم دشمنی وه۔ نو بنو نضیر دوستان وؤ د خزرج قبیلے او بنو قریظه دوستان وؤ د اوس قبیلے۔ او بل قول دا دے چه بنو قینقاع خلفاء وؤ د خزرج او بنو نضیر او بنو قریظه خلفاء وؤ د اوس (والله اعلم) نو هر کله به چه د اوس او خزرج د یو بل سره جنګونه وؤ او په هغے کښ ئے یو بل قتل کول او یو بل ئے د کورونو نه ویستل نو دلو د یهودیانو به هم د خپلو خپلو دوستانو سره مرکرتیا کوله یعنی بنو نضیر به د خزرج او بنو قریظه به د اوس سره مرکرتیا کوله (بنا په اول قول باندے) نو په دے مرکرتیا کښ به دوی هم یو بل وژل یعنی بنو نضیر به بنو قریظه وژل او د کورونو نه به ئے ویستل او برعکس به هم وؤ نو په داسے وخت کښ به عوامو یعنی اوس او خزرج په دوی باندے اعتراض کوؤ چه ستاسو په کتاب کښ خو قتل او اخراج حرام کړے شویدی دا ولے کوئ نو دوی به وئیل چه دا د وجے د دوستانو د تعصب او د له بازئ نه کوؤ او که هغوی به بیا اعتراض او کړو چه هر کله ستاسو کتابیان (دشمنان) قید کښ راشی نو تاسو هغوی په فدیئے سره ولے خلاصوئ نو دوی به وئیل چه دا مونږ په خپل کتاب باندے عمل کوؤ۔ نو دا تفصیلی حال د دوی په طریقه د زجر او توبیخ سره الله تعالیٰ په دے ایت کښ ذکر کړے دے۔

ثُمَّ اَنْتُمْ هٰٓؤُلَآءِ په اعراب د دے کښ توجیهات دی اول دا چه اَنْتُمْ مبتدا ده او هٰٓؤُلَآءِ خبر دے او تَقْتُلُوْنَ حال دے۔ دویمه توجیه ابن عطیه ذکر کړیده چه اَنْتُمْ خبر مقدم دے او هٰٓؤُلَآءِ مبتدا مؤخر ده او تَقْتُلُوْنَ حال دے۔ صاحب لباب وئیلی دی چه دا توجیه فاسد ده دریمه توجیه اَنْتُمْ مبتدا ده او هٰٓؤُلَآءِ منادٰی ده په حذف د حرف ندا، د پاره د تذلیل د مخاطبینو او تَقْتُلُوْنَ خبر دے۔ قرطبی د نحاس نه او صاحب اللباب د جمهور بصریانو نه د دے توجیه ضعف نقل کړے دے۔ څلورمه توجیه، اَنْتُمْ مبتدا ده او هٰٓؤُلَآءِ منصوب ده په طور د اختصاص سره اعنی په کښ پټ دے دا ابن کِسان وئیلی دی او صاحب لباب وئیلی دی چه دا جائز نه دے ځکه چه اختصاص په نکره او اسم اشاره کښ نه وی۔ پنځمه توجیه، اَنْتُمْ مبتدا او هٰٓؤُلَآءِ خبر دے معنی

داچه تاسو دغه کم عقل خلق یئ او تَقْتُلُوْنَ جمله مستانفه بیان دَ حماقت دَ دوی دے دا زمخشری په سورة العمران کښ ذکر کړے ده دَ دے نه علاوه نور توجیهات هم شته دے او په دے کښ اوله او اخری توجیه غوره ده۔ تَقْتُلُوْنَ اَنْفُسَكُمْ دا نقض دَ اول میثاق دے چه په تیر شوی ایت کښ ذکر وؤ۔
وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ دا نقض دَ دویم میثاق دے او دَ دے نه معلومه شوه چه په مخکښ ایت کښ دَ اَنْفُسَكُمْ او دِيَارِكُمْ نه مراد خپل هم جنس دی۔ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ دا جمله حال دے دَ ضمیر دَ تَقْتُلُوْنَ او تُخْرِجُوْنَ نه۔ تظاهر دَ ظهر نه اخستلے شوے دے یعنی په وخت دَ امداد کولو کښ هر یو دَ بل شا مضبوطوی او دلته باب تفاعل دے یعنی تاسو دَ یو بل سره امداد کوئ په مقابله دَ فریق مخالف کښ۔ دا هم نقض عهد دے اگرچه دَ دے ذکر په جانب دَ میثاق کښ ښکاره نه دے شوے۔ لیکن هر کله چه قتل او اخراج گناه و نه دی نو لازمه دا ده چه په هغے کښ دَ یو بل سره امداد کول هم حرام دی۔
بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ، اثم په اصل کښ گناه ته وئیلے شی یعنی هغه فعل چه دَ هغے کوؤنکے مستحق دَ بدائی او دَ ملامتیا وی۔ او هغه فعل چه نفس (سلیمه) دَ هغے نه نفرت کوی۔ او عُدْوَانِ تجاوز کول دی دَ حد شرعی نه۔ نو فرق دَ دے دواړو په درے وجوهو سره دے اول دا چه اِثم گناه دے په حقوق الله کښ او عُدْوَان گناه دے په حقوق العباد کښ یعنی ظلم کول۔ دویم دا چه اثم گناه دَ فسق و فجور دے او عدوان گناه دے دَ بدعت کولو۔ دریم دا چه په دے مواثیقو کښ چه په اول ایت کښ ذکر دی دَ هغے مخالفت کولو ته اثم وئیلے شی او په دویم ایت کښ چه مواثیق ذکر دی نو دَ هغے نقض ته عدوان وئیلے شی۔ فائده: په سورة مائده ۲ کښ ذکر دے وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ نو دلته ئے بَاء ذکر کړے ده او هلته ئے عَلٰی ذکر کړے نو په بَاء کښ اشاره ده چه دا تعاون کول په قتل او په اخراج کښ پخپله گناه او ظلم دے لکه چه قتل او اخراج هم گناه او عدوان دے او په لفظ دَ عَلٰی کښ اشاره ده چه تعاون کول دَ بل چا سره په داسے طریقه چه هغه له تمکین او قدرت ورکړی په گناه او عدوان باندے یعنی اسباب دَ گناه ورله جوړ کړی اگرچه پخپله ئے په هغه عمل کښ شرکت نه وی کړے۔ نو تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ عام دے دَ تظاهر دَ گناه نه۔ دا رنگ تظاهر په استعمال دَ قرآن کښ مختص دے په

ملادکولو د شرکښې لکه په سورة قصص ۴۲ او سورة تحریم ۴ کښې او تعاون په خیر او شر دواړو کښې استعمالیږی - وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ، دا د دوی بل عمل ذکر کوی چه عمل د خیر وُ لیکن په نیت د شر سره - یعنی په جنګونو کښې به یٔے د مخالف فریق نه چه څه اشخاص قید کړل تو دوی به فدایه راجمع کړله او هغه قیدای به یٔے په فدایه ورکولو سره خلاصوؤ ریعنی اوس قبیلے به په جنګ کښې په ملګرتیا د بنو قریظه سره د بنو نضیر څه کسان قید کړل تو بنو قریظه به فدایه جمع کړله او خپلو دوستانو یعنی اوس قبیلے ته به یٔے ورکړه او هغه قیدای به یٔے د هغوی نه خلاص کړو)- او نیتِ فاسد ه یٔے دا ؤ چه فدایه به یٔے ډیره جمع کړله او د قیدای خلاصولو د پاره به یٔے لږه ورکړله او باقی به مشرانو د هغوی په کورنیٔ کښې تقسیم کړله نو دا خیانت وُو. لیکن چه دوی نه به چا تپوس او کړو چه تاسو خو دوی لره قتل کویٔ او اخراج یٔے کویٔ او چه قید شی تو بیا یٔے په فدیٔے ادا کولو سره ولے پریږدیٔ نو دوی به د دهوکے د پاره وئیل چه دا حکم د فدیٔے په تورات کښې ذکر دے نو مونږ په کتاب الله باندے عمل کوؤ - اُسٰرٰى جمع د اَسِرٰى ده او هغه جمع د اسیر ده نو اُسٰرٰى جمع الجمع ده او بل قول دا دے چه اُسٰرٰى جمع د اسیر ده - تُفٰدُوْهُمْ د دشمن د لاس نه د قیدای د خلاصولو د پاره فدایه ورکول - وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ، هُوَ ضمیر شان دے مبتدا ده او مُحَرَّمٌ خبر مقدم دے او اِخْرَاجُهُمْ مبتدا مؤخر ده او دغه جمله خبر دے د پاره د هُوَ - یا هُوَ ضمیر اخراج ته راجع دے او اِخْرَاجُهُمْ د هغے تفسیر دے - یا هُوَ ضمیر امر ته راجع دے او اِخْرَاجُهُمْ د هغے نه بدل دے - **سوال** :- قتل او اخراج او تظاهر ټول حرام دی نو د اخراج تخصیص یٔے ولے او کړو؟ - **جواب ۱** په نسبت د قتل کښې دا خفیف وُو نو وهم راتلو چه دا به حرام نه وی صِرف مکروه به وی نو د وهم د دفع کولو د پاره یٔے د دے تصریح او کړه - **جواب ۲** په قتل سره خو انسان ختم شی لیکن په اخراج سره ذلیل او شرمنده شی او هغه ذلت ترهمیشه پورے جاری وی نو په دے اعتبار سره اخراج ډیر سخت دے په نسبت د قتل سره - اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ، مراد د ایمان نه قیدای په فدایه سره آزادول دی او مراد په کفر سره قتل او اخراج او تظاهر دے - **سوال** :- قتل او اخراج وغیره خو اعمال دی او عمل د معصیت سره خو

انسان نه کافر کیږی په نیز د اهلِ سُنت والجماعت ؟ - **جواب ۱** د دے میثاق د وجوب نه دوی انکار کړے وو او په تورات کښ تصریح ده د دے په وجوب باندے نو په انکار د فرض سره کفرِ حقیقی لازمیږی - **جواب ۲** ابن قیم په بدائع التفسیر کښ وئیلی دی چه دا ایمان عملی او کفرِ عملی دے دلته ایمان اعتقادی چه د هغے مقابل کفر اعتقادی دے مراد نه دے -

بله توجیه په دغه جملو کښ داده :- ایمان په موسیٰ علیه السلام باندے او تکذیب د محمد صلی الله علیه وسلم او حال داچه د دواړو صِدق په تورات کښ ذکر شوے وو او دا ایمان اعتقادی او کفر اعتقادی دے -

فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْيٌ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا، دا تفریع د تخویف او عقوبت ده په تیر شوے طریقه د دوی باندے - مَا نافیه دے جزا مبتدا ده - اِلَّا خِزْيٌ استثناء مفرغ ده او خبر دے د مبتدا - یا مَا استفهامیه دے مبتدا او جزاء خبر دے او اِلَّا خِزْيٌ بدل دے د جزاء نه - جَزَآءُ مطلق عوض او بدلے ته وئیلے شی که خیر وی او که شر وی - خِزْيٌ، سپکوالی، رسوایئ، ذلت او غضب ته وئیلے شی - دا رنګ خزی بے حیایئ او شرمندګئ ته وئیلے شی - دا رنګ په مصیبت کښ پریوتلو ته هم وئیلے شی او مراد د خزی نه عام دے هر قسم ذلت او توهین ته شامل دے تو جلا وطن کول د بنی نضیر و د مدینے نه او بیا د خیبر نه او قتل د بنو قریظه او قید کول د هغوی او په بعضو باندے په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم او د خلفاءِ راشدین کښ جزیه مقرر کول دا ټول په خزی کښ داخل دی - وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ، دا تخویف اخروی دے - **سوال** :- عذاب د دهری کافر خو د دغه یهودیانو نه ډیر سخت دے ؟ - **جواب** :- دلته مراد د اَشَدِّ نه په نسبت د عذاب د دُنیا دے لکه چه سورة حم سجده ۱۶ کښ دی - **سوال** :- يُرَدُّوْنَ د رد نه ماخوذ دے او رد خو وئیلے شی واپسی مخکښ حالت ته دلته خو داړه حالتونو کښ فرق دے ؟ - **جواب** :- دلته رد په معنی د نفسِ صیرورت دے معنی د واپسئ پکښ مراد نه ده یا داچه دنیا کښ هم دوی په یو قسم عذاب کښ دی او په آخرت کښ به په بل قسم عذاب کښ وی لیکن جنسِ عذاب یو دے - وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ مقصد په دے کښ زجر او توبیخ دے -

أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا

دا هغه کسان دي چه اخستې دے ژوند دنيوي

بِالْاٰخِرَةِ ۚ فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ

په بدل د آخرت کښې تو سپک به نشي د دوي نه عذاب (مقرر په دوي باندې)

وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ ﴿۸۶﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوسَى

او نه به د دوي سره مدد کيدې شي. او يقيناً ورکړي وو مونږ موسیٰ (عليه السلام) ته

الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ۚ وَاٰتَيْنَا

کتاب (تورات) او پر له پسې اوليږل مونږ روستو د هغه نه رسولان او ورکړي وو مونږ

عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَأَيَّدْنٰهُ

عيسیٰ (عليه السلام) ځوئي د مريم (عليها السلام) ته ښکاره دليلونه (معجزات) او کلک کړي وو مونږ ده له

۸۶ په دے ايت کښې تتمه ده د تير شوي خطاب په زجر او تخويف اخروي سره. او په دے کښې سبب د تير شوي قباحتونو ذکر کړے دے چه دنيا غوره گنړل دي په آخرت باندے او دا ډير لوئے مرض دے.

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ، د تخفيف ډيرے طريقے دي (۱) اسا نتيا (۲) ختمول (۳) کمول (۴) تخفيف په يو وخت د اوقاتو کښې او دلته دا ټولے طريقے په نفي سره مراد دي ځکه نفي د تخفيف نفي د ماهيت د هغه ده او نفي د ماهيت نفي د ټولو صورتونو ته مستلزم وي. **سوال:-** په حديث صحيح کښې وارد دي چه په ابوطالب باندے په آسان عذاب وي چه په خپو کښې به يئے د اور کيړئي وي او د هغے نه به يئے دماغ خوټ کيږي؟ **جواب:-** الْعَذَابُ کښې الف لام عهدي دي يعني کوم عذاب چه کافر له د ابتداء نه مقرر وي نو په هغے کښې به هيڅ قسم تخفيف نشي کيدے.

وَلَا هُمْ يُنْصَرُونَ مراد د نصرت نه بچ کول دي د عذاب نه يا غلبه ورکول دي په عذاب ورکوونکي باندے او نفي په صيغه د مجهول سره اشاره ده چه دا نصرت د طرف د الله تعالیٰ او د ملائيکو نه هم نيشته د دوي د معبودانو او نورو دوستانو د طرف نه هم نيشته.

بِرُوْحِ الْقُدُسِ ؕ اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌۢ

په روح پاک سره ـ آیا پس هر کله چه راوړلو به تاسو ته یو رسول

بِمَا لَا تَهْوٰۤى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ج

هغه حکم چه ته یه خوخولو نفسونو ستاسو لوئي اوکړه تاسو

فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ ﴿۸۷﴾

نو یوه ډله دروغژنه کړه تاسو او بله ډله اووژله تاسو۔

۸۷ د دے ایت نه تر ۸۸ پورے په دوه ایاتونو کښ څلورم خطاب دے د خطاباتو د بنی اسرائیلو نه او په دے خطاب کښ ترقی ده په ذکر د خباثاتو د دوی کښ په ذکر کولو د تکذیب او د قتل د انبیاؤ علیهم السلام سره او د دے وجے نه د دے په سر کښ الفاظ د قسم ذکر کړل په وَلَقَدْ سره۔ ربط د دے د مخکښ سره دا دے چه مخکښ یے قتل د کورنئ ذکر کړو نو په دے کښ قتل د پیغمبرانو ذکر کوی دا رنګ مخکښ مواثیق (لوظونه) ذکر کړل چه دوی د خواهش د اتباع د وجے د هغے نقض کړے وؤ نو اوس ذکر کوی چه ادیان د الله تعالیٰ همیشه د خواهشاتو نه خلاف وی۔ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ، مراد د دے نه تورات دے او د دے سورت په ۵۳ کښ په طور د انعام سره ذکر کړے وؤ۔ وَقَفَّيْنَا مِنْۢ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ، قَفَّيْنَا د قفا نه ماخوذ دے او قفا د سر روستنئ حصے ته وئیلے شی او تقفیه یو څیز په بل څیز پسے راوستل دی۔ سوال:۔ قَفَّيْنَا او مِنْۢ بَعْدِهٖ دواړه په روستو والی دلالت کوی نو دا خو تکرار دے؟ جواب:۔ مِنْۢ بَعْدِهٖ دلالت کوی په روستو والی د زمانے او قَفَّيْنَا دلالت کوی په اتباع د تورات باندے یعنی روستو تر عیسیٰ علیه السلام پورے چه څومره انبیاء په بنی اسرائیلو کښ راغلی دی نو هغوی تابع د تورات وؤ تورات ته یے خلق رابلل او تهولو تجدید کوؤ د دین د موسیٰ علیه السلام او دا د دے وجے نه چه په هره زمانه کښ بنی اسرائیلو د دین د موسیٰ علیه السلام او د تورات نه خلاف کوؤ سره د دے نه چه دعوی یے د ایمان په موسیٰ علیه السلام او په تورات باندے کوله۔ او د دے شرح په سورة مائده ۴۴ کښ شته۔ سوال:۔ معلومه شوه چه د دغه انبیاؤ مستقل کتاب او شریعت نه وؤ نو دوی ته یے رُسل ولے

وئیلی دی؟۔ **جواب:**۔ دلته ئې رُسُلِ په اعتبار د دعوت رسوونکی او تبلیغ کوونکی
وئیلی دی یعنی حقیقتاً رسولان نه وو۔ رُسل ئې دوی ته مجازاً وئیلی دی او
په سورة مائده ۴۴ کښې ورته النَّبِیُّوْنَ وئیلی دی۔
وَاٰتَیْنَا عِیْسَی ابْنَ مَرْیَمَ الْبَیِّنٰتِ، اشاره ده چه عیسٰی علیه السلام ته نوے
شریعت او کتاب ورکړے شو او د هغې بعضِ احکام د تورات نه خلاف وو نو
بنی اسرائیلو د هغه ډیر مخالفت کولو د دے وجې نه الله تعالی هغه ته ډیر
معجزات او تائید د روح القدس ورکړو د پاره د دے چه دوی ئې تصدیق
اوکړی۔ عِیْسٰی، اصح دا ده چه دا عجمی لفظ دے او دا معرّب دے او اصل
د دے یسوع یا یشوع دے او هغه په سریانئ کښې په معنیٰ د مخلص دے۔
او مَرْیَمَ په سریانئ کښې په معنی د خادم سره دے یا په معنی د عابده دے۔
**فائده:**۔ نسبت د عیسٰی همیشه مور ته کړے شویدے اګرچه دا د اٰدابِ
شرعیه او د عرف دواړو نه خلاف ده شرعی ادب په سورة احزاب ۵ کښې
ادعوهم لاٰبآءهم کښې ذکر دے لیکن دا د دے وجې نه چه معلومه شی چه
د عیسٰی علیه السلام پلار نه وو۔ الْبَیِّنٰتِ جمع د بَیِّنَة ده هر هغه څیز ته وئیلے
شی چه په خپله ښکاره وی او بل څیز لره ښکاره کوی نو د هغې په وحی او عقلی
دلیلونو او معجزاتو باندے اطلاق کیږی۔ دلته مراد معجزات د عیسٰی علیه
السلام دی چه په سورة العمران ۴۹ او سورة مائده ۱۱۰ کښې ذکر دی (قرطبی)۔
وَاَیَّدْنٰهُ دا د اید نه ماخوذ دے په معنی د قوت سره۔ بِرُوْحِ الْقُدُسِ، امام
راغب وئیلی دی چه روح په اصل کښې هغه جزء ته وئیلے شی چه په هغې سره
ژوند د حیوان حاصلیږی۔ او مجاهد وئیلی دی چه القدس او قدوس نوم
د الله تعالی دے او نسبت د روح الله تعالی ته د تشریف د وجې نه دے او
رُوْحُ الْقُدُس په نیز د اکثر اهل علم جبرائیل علیه السلام دے لکه په
سورة نحل ۱۰۲ کښې دا معنی ده او قول د حسّان رضی الله عنه دے "وجبریل
رسول الله فینا وروح القدس لیس به کفاء"۔ او هغه ته روح د دے وجې نه
وائی چه هغه وحی راوړی او وحی سبب د ژوند د زړونو دے، او نحاس وئیلی
دی چه د دے وجې نه ورته روح وئیلے شی چه الله تعالی پیدا کړے دے روح
بغیر د ولادت د والد او والده نه۔ او بعضو وئیلی دی چه روح القدس انجیل
دے لکه چه قرآن ته روح وئیلے شویدے په (سورة نحل ۲) کښې ځکه چه

کتاب دَ الله تعالیٰ سبب وی دَ پارہ دَ حیات دَ زړونو- او بعضو وئیلی دی چه روح القدس هغه اسم اعظم وؤ چه عیسیٰ علیه السلام به په هغې سره مړی ژوندی کول لیکن په دے ټولو کښ اول قول اصح دے- او تائید دَ جبرائیل خو دَ ټولو انبیاؤ سره وؤ لیکن دَ عیسیٰ علیه السلام سره خصوصی تائیدات دی- اول دا چه دَ دهٔ دَ بشارت ئے ورکړے وؤ مور دَ دهٔ ته چه مریم وه- دویم په نفخ دَ جبریل سره پیدا شو- دریم دا چه په ټولو حالاتو کښ ئے دَ هغه تربیت کړے دے- څلورم هغه به ورسره کرځیدلو چه هغه به کوم خوا ګرځیدو- پنځم دَ هغه سره اسمان ته ختلے وؤ (ابوحیان)- اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰۤى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ دا مقام دَ زجر دے او بیان دَ قباحت دَ دوی دے همزه دَ استفهام دَ توبیخ او دَ زورَنے دَ پاره دے- بِمَا لَا تَهْوٰۤى اَنْفُسُكُمْ، تهوٰی دَ هوٰی نه اخستلے شویدے هوٰی په اصل کښ میلان ته وئیلے شی تو په (هوٰی) خواهش پرستئ کښ هم او ړیدل وی دَ حق نه او غورزیدل دی په جهنم کښ- او دَ دے وجے نه دَ هوٰی اکثر استعمال په ناحق او بے خیره ځیز کښ وی او کله کله هوٰی استعمالیږی په مقام دَ خیر کښ لکه په سورة ابراهیم ٣٧ کښ او په حدیث صحیح دَ مسلم کښ په باره دَ قیدیانو دَ بدر کښ (قول دَ عمرؓ) فهوی رسول الله صلی الله علیه وسلم ما قال ابوبکر ولم یهو ما قلت- او بل حدیث صحیح دَ عائشه رضی الله عنها دے چه والله ما ارٰی ربك اِلَّا یُسَارِعُ فِیْ هَوَاكَ (قسم په الله تعالیٰ زه نه وینم ستا رب مګر جلدی کوی ستا په خواهش پوره کولو کښ)- او هر کله چه ناکاره خواهش دَ نفس نه پیدا کیږی دَ دے وجے نه اسناد ئے دَ هغې انفس ته اوکړو- اسْتَكْبَرْتُمْ دا مقام دے دَ دخول دَ همزه دَ توبیخ- استکبار په معنی دَ تکبر کولو سره دے او دا استکبار دَ دوی دَ اجابت دَ رسول نه وؤ په وجه دَ سپک ګڼړلو دَ هغه او بعید ګڼړل دَ رسالت دَ هغه- فَفَرِیْقًا كَذَّبْتُمْ دا اثار دَ استکبار دی یعنی تکذیب او قتل کول- تکذیب ئے مقدم کړو په قتل باندے ځکه دا اول فعل وؤ دَ استکبار دَ وجے نه او تکذیب سبب دے دَ پاره دَ قتل کولو او بله وجه دا ده چه تکذیب مشترک وؤ په مینځ دَ مقتول او غیر مقتول دواړو کښ- وَ فَرِیْقًا تَقْتُلُوْنَ یعنی په چا باندے ئے چه وس رسیدلو دَ قتل کولو نو هغه ئے قتل کوؤ او چه په چا باندے ئے وس دَ قتل کولو نه رسیدلو نو دَ هغه به ئے صرف تکذیب کوؤ

او قتل یې په صیغه د مضارع ذکر کړې دے په طریقه د حکایت د حال ماضی د پیرې مبالغې د وجې نه د قباحت د دے فعل نه یا اشاره ده اراده د قتل د دوی زمونږ رسول صلی الله علیه وسلم لره تو معلومه شوه چه دا د دوی عادت دے نو صیغه د فعل مضارع سره یې ځکه ذکر کړو- او دا دلیل هم صریح دے چه بنی اسرائیلو قتل د انبیاء علیهم السلام کړے دے-

**فائده ۱:-** بِمَا لَا تَهْوَىٰ کښ اشاره ده چه دین د انبیاؤ همیشه خلاف وی د خواهشاتو د خلقو نه- او هر خواهش (مخالف د دین نه) بدعت دے او د هغې اتباع کول حرام دی-

**فائده ۲:-** دا رنګ آیت په سورة مائده نے کښ هم راغلی دی فرق په مینځ د دواړو ایاتونو کښ په څلورو وجوهو سره دے اوله وجه دلته ذکر د کتاب د موسیٰ علیه السلام او تقفیه د نورو رسولانو ذکر دے او په سورة مائده کښ اخذ د میثاق او ارسال رُسل یې ذکر کړیدے- دویم دلته اَفَكُلَّمَا په همزه او فاء سره دے او په سورة مائده کښ دا دواړه نیشته- دریمه وجه دلته جَآءَكُمْ دے او هلته جَآءَهُمْ دے- څلورمه وجه دلته فَفَرِيْقًا دے په فاء سره او هلته صرف فریقا دے- **وجې د فرق یې دا دی:-** د اول فرق وجه، د دینه مخکښ ډیر مواثیق ذکر شویدی نو په دے آیت کښ ذکر د میثاق نه حاجت نه وُو بلکه د ایتاء الکتاب نعمت یې ذکر کړو او په دے سورت کښ د دوی قباحات ذکر کول مقصد وُو نو د پاره د الزام حجت یې په دوی باندے تقفیه د رسولانو ذکر کړه چه دغه رسولان په یو بل پسے راغلی وُو او یو کتاب او یو دین ته یې دعوت ورکوؤ او دے بنی اسرائیلو د هغوی تکذیب اوکړو او په سورة مائده کښ مخکښ مواثیق ذکر نه وُو او زجر او الزام حجت هم مقصد نه وُو پشان د دے سورت د دے وجے نه هلته یې اخذ د میثاق او صرف ارسال رُسل ذکر کړو- دویمه وجه، دلته مقصد زجر او توبیخ دے د دے وجے نه همزه او فاء یې په اول د جمله کښ راوړو او په سورة مائده کښ دا مقصد نه وُو- دریمه وجه، دلته په مخکښ ایاتونو کښ خطابات وُو موجوده بنی اسرائیلو ته د دے وجے نه په دے آیت کښ هم جَآءَكُمْ ذکر کړے دے او په سورة مائده کښ د مخکښ نه میثاق د بنی اسرائیلو ذکر وُو نو د هغې د پاره ضمیر د غائب ضروری دے- څلورمه وجه، دلته استکبرتم ذکر شو نو د هغې تفصیل د پاره په مابعد

وَقَالُوا قُلُوبُنَا غُلْفٌ ۭ بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ

او دوی وئیل، زړونه زمونږ د علم نه ډک دی - (نه) بلکه لعنت کړیدے په دوی باندے الله تعالیٰ

بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيلًا مَّا يُؤْمِنُونَ ﴿٨٨﴾ وَلَمَّا جَاۗءَھُمْ

په سبب د کفر د دوی، پس لږ کسان د دوی نه ایمان راوړی - او هر کله چه راغے دوی ته

کښ حرف د فاء پکار وو او سورة مائده کښ اسْتَكْبَرْتُمْ نه دے ذکر نو فاء تفصیلیه ته ئے ضرورت نیشته۔

۸۸ په دے آیت کښ هم زجر دے او دا ذکر د طریقے د تکذیب دے چه په مخکښ آیت کښ کذبتم ذکر وو یعنی تکذیب ئے په داسے طریقے سره کړے دے۔

وَقَالُوا ضمیر دغه مکذبینو ته راجع دے۔ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ابن کثیر وئیلی دی چه دلته دوه قراء تونه دی یو په سکون د لام سره دے جمع د اغلف ده اغلف په اصل کښ هغه څیز ته وئیلے شی چه پرده په هغه باندے احاطه کړے وی او د دے وجه نه ئے په ناسته باندے اطلاق کیږی نو مقصد د منکرینو دا دے چه زمونږ زړونه د علم او تمیز د خبرو نه په پرده کښ دی لکه په سورة حٰمٓ سجده ۵ کښ دی - او دا قول د دوی په طریقه د موافقت سره دے یعنی د انبیاؤ د معجزاتو او بیّناتو د مقابلے نه دوی عاجز وو نو ځان ئے د انسانیت نه حیوانیت ته راوغورځوو یا دا قول په طریقه د استفهام پټ سره دے استفهام انکاری یعنی زمونږ زړونه او فکرونه قوی دی موږ په پوره فکر سره سناسو د خبرو نه انکار کوو (اللباب)۔ دویم قراءت په غُلُفٌ کښ په پیښ د لام سره دے او هغه جمع د غِلاف ده غلاف لوښی ته وئیلے شی او دا ضحاك او عطیه د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړے دے په دے معنی چه زمونږ زړونه لوښی د علمونو دی (ډک دی د علمونو نه) علم د محمد صلی الله علیه وسلم ته محتاج نه دی او د هغه نه به پوهیږو او د دے معنے تائید په سورة غافر ۸۳ کښ دے۔

سوال:- په دے قراءت (سکون د لام) کښ خو دا معنی مناسب نه ده؟

جواب:- دلته تخفیف کړے شویدے په حذف د ضمه سره یا بدلول د پیښ په سکون سره۔

سوال:- ابن عطیه وئیلی دی چه په جمع (وزن د فُعل) کښ پیښ په سکون

سره نه بدلیږي ما سیوا د ضرورتِ شعري نه او شیخ الاسلام ابن تیمیه او
ابن قیم دا قول رد کړے دے او ابن جریر هم دا قول ضعیف کړیدے؟۔
جواب:۔ ابو حیان د ابن مالک نه نقل کړے دے چه بغیر د ضرورتِ (شعري)
نه هم جائز دے لکه حُمْر کښ حُمُر جائز دے او ابن جریر د تائید د اول قول
د پاره حدیث ذکر کړیدے چه زړونه څلور قسمونه دي یو قسم قَلْبٌ اَغْلَفُ
مَغْضُوْبٌ عَلَيْهِ وَذٰلِكَ قَلْبُ الْكَافِرِ لیکن دا دلالت کوي په ترجیح د اول قول
باندے دلالت نه کوي په ابطال د قول دویم باندے۔
بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ دا بَلْ د پاره د اضراب دے رد دے د قول د دعوی
یعنی د نسبت د قلوبو پردے یا الوحي د علم ته، یعني دواړه نسبتونه د دوی
غلط او بے دلیله دي هاں سبب د حق د نه قبلولو لعنتِ الٰهیه دے او د لعنت
سبب کفر د دوی دے او دا سے په سورة نساء ۱۵۵ کښ راغلي دي۔ لَعَنَ په
اصل کښ بُعد (لرے والی) ته وئیلے شي او په اصطلاح کښ د طرف د الله تعالیٰ نه
د رحمتِ خاصه نه محروم کول او د طرف د مخلوق نه دعاءِ شر کولو ته وئیلے
شي، برابره خبره ده چه په لفظ د لعنت سره دُعا کوي یا په نورو الفاظو سره
خیرے کوي۔ فائده:۔ ماده د لعنت په قرآن کښ یو څلویښت کرته ذکر
ده په اعتبار د نسبت او عدم نسبت سره څلور طریقے دي اول الله تعالیٰ ته
نسبت کول دا په څلیریشت ایاتو کښ دے۔ دویم نسبت مخلوق ته په
څلورو مواضعو کښ سورة اعراف ۳۸، سورة عنکبوت ۲۵، سورة بقره ۱۵۹،
سورة احزاب ۶۸ ۔ دریم مطلق او دا اته کرته دے۔ څلورم صیغه د مجهول
او دا په درے ځایو کښ دے (په بعضِ ایاتو کښ مکرر دے)۔ او اسباب
د لعنت په دغه ایاتو کښ شل ذکر دي اول سبب کفر دے (سورة بقره ۸۸
سورة احزاب ۶۴) دویم سبب اعراض د قرآن نه (سورة نساء ۴۷) دریم
نقضِ میثاق (سورة مائده ۱۳) څلورم قتل ناحق د مؤمن (سورة نساء ۹۳)
پنځم عقیده ساتل په جبت او طاغوت (سورة نساء ۵۲) شپږم منافقت کول
(سورة توبه ۶۸) اووم ایذاء الله ته او رسول ته (سورة احزاب ۵۷) اتم نفاق
او شرک او ظن السوء په الله تعالیٰ باندے (سورة فتح ۶) نهم د مشرکانو مریدی
کول (سورة عنکبوت ۲۵) لسم کتمان د حق (سورة بقره ۱۵۹) یوولسم تقلید
کول د سادا تو او کبراؤ په گمراهئ کښ (سورة احزاب ۶۸) دولسم عصیان او

كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ۙ

كتاب (قرآن) دَ طرف دَ الله تعالىٰ نه تصديق كوونكے دے دَهغه كتابونو چه دَ دوى سره دى

وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ

او وو دوى مخكښ دَ دے نه چه خبرئے وركوو (دَ اخرى نبى دَ راتلو) هغه كسانو ته

كَفَرُوْا ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ ؗ

چه (اميان) كافران وو۔ پس هركله چه راغے دوى ته هغه چه دوى پيژندلو، نو انكار ئے اوكړو دَهغے نه

اعتداء او ترك دَ نهى عن المنكر (سورة مائده ۷۹) ديارلسم الله تعالىٰ نه دَ بخل نسبت كول (سورة مائده ۶۴) څوارلسم قذاق دَ پاكدامنو خلقو (سورة نور ۲۳) پنځلسم كذاب (دروغ وئيل) (سورة العمران ۶۱) شپاړسم ظلم (سورة اعراف ۴۴) اوولسم نقض عهد۔ قطع الوصل او فساد فى الارض (سورة رعد ۲۵) اتلسم مرض دَ زړه او دروغ پراپيګنډه كول (سورة احزاب ۶۰) نولسم دا قول چه قُلُوْبُنَا غُلْفٌ (سورة بقره ۸۸) شلم توبه نه كول ترمرګه پورے (سورة بقره ۱۶۱)۔ **فائده ۲** په سورة نساء ۱۵۵ كښ طبع ذكر كړے ده او دلته لعنت۔ لعنت خو ډير سخت دے په نسبت دَ طبع سره نو دا مقام دَ ډير زجر دے نو دَ دے مناسبت دَ وجے نه ئے دلته سخت لفظ (لعنت) ذكر كړے شو۔

فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ، دَ دے جملے په اعراب او معنىٰ كښ ډير اقوال دى اول قول قَلِيْلًا صفت دے دَ ايمانًا پټ يعنى لږ ايمان راوړى يعنى الله تعالىٰ منى او بعض رسولان نه منى۔ دويم دا صفت دے دَ زمانًا پټ يعنى په لږ وخت كښ ايمان راوړى لكه په سورة العمران ۷۲ كښ۔ دريم قول په دے كښ حرف جر پټ دے يعنى په لږ څيز ونو ايمان راوړى دا پشان دَ اول قول شو۔ څلورم دا حال دے په تقدير دَ جمعًا قَلِيْلًا يعنى لږ كسان دَ دوى نه ايمان راوړى او دا پشان دَ سورة نساء ۱۵۵ دے۔ پنځم قول مَا نافيه دے يعنى لږ هم ايمان نه لرى او نه ډير۔ شپږم قول قِلَّت په معنىٰ دَ نيشتوالى دے خو په دے باندے ابوحيان اعتراض كړے دے ليكن زمخشرى دا دَ واقدى نه نقل كړے دے (اللباب) او بِنا په مخكنو اقوالو باندے حرف دَ مَا زياتى دے دَ پاره دَ مبالغے په كموالى كښ يا دَ پاره دَ تاكيد دَ قلت دے۔

# فَلَعۡنَةُ اللّٰهِ عَلَى الۡكٰفِرِيۡنَ ﴿۸۹﴾

تو لعنت د الله تعالی دے په (داسے) کافرانو باندے۔

۸۹ د دے ایت نه ترپلو پورے پنځم خطاب دے د خطابا تو د بنی اسرائیلو او په دے کښ ترقی په قبائحو کښ ذکرکوی ځکه چه مخکښ خطاب کښ تکذیب او قتل د ډیر شو انبیاؤ ذکر وؤ نو اوس ذکر کوی کفر د دوی په خاتم النبیین صلی الله علیه وسلم باندے سره د علم او معرفت د دوی نه او تتمه د دے ذکر کوی په دوه زجرونو سره۔ په دے ایت کښ زجر او توبیخ ذکر کوی هغه بنی اسرائیلو ته چه په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم کښ وؤ او د هغه د راتللو یقین ئے کولو لیکن هرکله چه راغے نو په هغه باندے کفر او کړو۔ وَلَمَّا داعطف د قصے دے په قصه باندے۔ یعنی مخکښ ذکر وؤ د رسولانو د تورات او انجیل او تکذیب د بنی اسرائیلو هغوی لره نو اوس ذکر کوی رسول د قرآن او د هغه نه انکار د دوی۔ جَآءَهُمۡ كِتٰبٌ نسبت د راتللو کتاب ته په دے لحاظ سره دے چه دوی په مدینه کښ او نزدے هغے ته اوسیدل او رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینے ته هجرت او کړو او د قرآن دعوت ئے په مدینه کښ شروع کړو۔ مِّنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ دا صفت د کتاب دے په تقدیر د کائنٌ او منزلٌ سره۔ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمۡ دا دویم صفت د کتاب دے او هرکله چه کیدل او نازلیدل د طرف د الله تعالی نه اوکل صفت دے او سبب دے د پاره د دویم صفت ځکه ئے مِنۡ عِنۡدِ اللّٰهِ مخکښ راوړے دے۔ او معنی د مصدقیت په تفسیر د ۴۱ کښ تیره شویده۔ وَكَانُوۡا مِنۡ قَبۡلُ دا عطف دے په جَآءَهُمۡ باندے یا جمله حالیه ده۔ مِنۡ قَبۡلُ د قبل مضاف الیه پټ دے او د هغے په عوض کښ په لام باندے پیښ لګولے دے یعنی مخکښ د راتللو د دے رسول او کتاب نه۔ يَسۡتَفۡتِحُوۡنَ عَلَى الَّذِيۡنَ كَفَرُوۡا خبر به ئے طلب کوؤ (د دے نبی په باره کښ) د امیین کافرانو نه یا خبر به ئے ورکوؤ (د دے نبی په باره کښ) کافرانو امییونو ته یا فتح او مدد به ئے غوښتلو د الله تعالی نه په کافرانو امییونو باندے په باره د راتللو د دے نبی صلی الله علیه وسلم کښ او داسے هم وئیلے شویدی چه فتح او مدد به ئے غوښتلو د الله تعالی نه په حق د دے نبی سره د کافرانو امییونو په مقابله کښ دا معانی مفسرینو لیکلی دی۔ او د لَمَّا جَآءَهُمۡ جزا پټه ده یعنی كَذَّبُوۡا بِهٖ وَاسۡتَهَانُوۡا بِمَجِيۡئِهٖ (تکذیب ئے د هغه او کړو او د هغه راتلل ئے سپک او ګڼړل) (بحر محیط)

فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا، قراء وئیلی دی چه جواب د مخکنی لَمَّا د پاره دویم لَمَّا دے په سبب د فاء جزائیه سره۔ مَا عَرَفُوْا لفظ د مَا په نیز د سیبویه عام دے ذوی العقول او غیر ذوی العقول دواړو ته شامل دے نو دلته د مَا نه نبی صلی الله علیه وسلم مراد دے او دلیل د معرفت د هغه استفتاح د دوی وه په هغه سره مخکښ د پیدائش د هغه نه او دا استفتاح د وجے د هغه صفاتو د نبی صلی الله علیه وسلم نه وه کوم صفات چه په تورات او انجیل کښ ذکر وو سره د نورو علاماتو د صدق د نبی صلی الله علیه وسلم نه او ملازمه د استفتاح معرفت لره ابن قیم په بدائع التفسیر ص۳۲۵ ج۱ کښ په لس طریقو عقلیو سره ذکر کړیده په هغے کښ اوګورئ۔ کَفَرُوْا بِهٖ دا کفر ضدی او عنادی دے او د ضد او عناد د وجے نه ئے اووئیل چه دا هغه رسول نه دے چه د ده صفات په تورات کښ وو۔ فَلَعْنَةُ اللّٰهِ هر کله چه دوی کفر په طریقه د استهانت د نبی صلی الله علیه وسلم سره اوکړو نو سزا د دوی ئے هم په لعنت سره ذکر کړه او اضافت د لعنت ئے الله تعالیٰ ته اوکړو د ډیر تاکید د وجے نه۔ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ اسم ظاهر ئے په ځائے د ضمیر ذکر کړو د پاره د اظهار د علتیت د کفر د لعنت د پاره او د دے د پاره چه په دے الْكٰفِرِيْنَ کښ جاهلان او کتابیان کافران دواړه داخل شی۔

**تنبیه:۔** د دے آیت نه بدعتیانو د توسل بالذوات د اثبات د پاره دلیل نیولے دے او دے ته استدلال بالقرآن وائی طریقه د استدلال ئے دا سے ده چه مفسرینو لیکلی دی چه په دوی باندے به د دشمنانو (مشرکینِ عرب) د طرف نه سختی په جنګ کښ راغله نو دوی به وئیل چه اللهم انصرنا بالنبی الْمَبْعُوْثِ فِیْ اٰخِرِ الزَّمَانِ الذی نَجِدُ نَعْتَهٗ فِی التَّوْرَاةِ او په بل روایت کښ راغلی دی چه په دوی باندے به جنګ کول د مشرکین عرب سره سخت شو نو دوی به تورات بهر راوویستلو او لاس به ئے په هغه ځائے باندے کیښودلو چه کوم ځائے به د نبی صلی الله علیه وسلم نوم ذکر وو او دوی به وئیل اَللّٰهُمَّ اِنَّا نَسْئَلُكَ بِحَقِّ نَبِيِّكَ الَّذِیْ وَعَدْتَّنَا اَنْ تَبْعَثَهٗ فِیْ اٰخِرِ الزَّمَانِ الخ (قرطبی روح المعانی) نو د دے دواړو (بالنبی او بحق نبیك) نه توسل په ذات د نبی صلی الله علیه وسلم باندے ثابت شو او نور ذوات غوره په هغه باندے قیاس کړے شوی دی۔ **جواب** دا دے چه دا استدلال غلط دے په ډیرو وجوهو سره۔ اوله وجه دا ده چه بالنبی لفظ کښ احتمالات دی اول احتمال بمجیئ النبی دویم بخروج النبی دریم بحق النبی

او هر کله چه احتمالات په دلیل کښ موجود شی نو په هغې سره استدلال صحیح نه وی
دویمه وجه دا ده چه ابن کثیر اول احتمال ذکر کړیدے (یَسْتَنْصِرُوْنَ بِمَجِیْئِهٖ صلی الله
علیه وسلم یعنی مراد یې طلب کولو په راتللو د آخری نبی سره. دویم احتمال یې
په روایت د ابن عباس رضی الله عنه سره ذکر کړے دے (یَسْتَنْصِرُوْنَ بِخُرُوْجِ محمد صلی الله
علیه وسلم) مراد یې غوښتلو په راوتلو یعنی رالیږلو د محمد صلی الله علیه وسلم.
مراد دا چه اے الله هغه نبی را اُولیږه. دریمه وجه دا ده چه کوم دے نه روستو
عبارت ښکاره دلیل دے چه د دوی مطلب د هغه نبی راتلل او بعثت وُو، د هغه
ذات نه وُو هغه عبارت دا دے. اللهم ابْعَثْ هٰذَا النَّبِیَّ الَّذِیْ نَجِدُ مَكْتُوْبًا عِنْدَنَا
(ابن کثیر). قَدْ اَظَلَّ زَمَانُ نَبِیٍّ یَّخْرُجُ بِتَصْدِیْقِ مَا قُلْنَا فَنَقْتُلُكُمْ مَعَهٗ قَتْلَ
عَادٍ وَّ اِرَمَ (سراج المنیر. بیضاوی. معالم التنزیل. خازن. مدارك). معنی دا ده چه
رانږدے شویده زمانه د دغه نبی (آخر الزمان) چه راځی به په تصدیق د خبرے زمونږ.
نو چه راشی نو مونږ به د هغه په ملګرتیا کښ تاسو قتل کوو پشان د قتل د عاد
او ارم. او هر چه استدلال د دوی دے په دویم عبارت چه په هغې کښ بحق
النبی دے نو دا هم باطل دے په ډیرو وجوهو سره. اوله وجه، دا روایت د سدی
دے او سدی ضعیف او کذاب دے په روایت د تفسیر او حدیث دواړو کښ.
دویمه او غټه وجه دا ده چه دا خو عمل د یهودیانو دے او دا زمونږ دپاره حجت نه دے.
**سوال:**- که اُوئیلے شی چه دا خو شریعت د مخکنو خلقو دے او مونږ ته رانقل
شویدے او شریعت د مَنْ قَبْلَنَا زمونږ د پاره حجت دے؟ **جواب:**- دا عمل
د هغوی په طریقهٔ شرعیه سره هیڅ ثبوت نه لری. دویم دا چه دا عمل د هغوی
په طریقه د مدح کولو سره نقل نه دے صِرف طریقه د اخبار ده او مقصد پکښ
زجر او توبیخ دے. دریمه وجه چه په دے سوال کښ ذکر دے په حق د
نبی او په باب د وسیله کښ د حنفی کتابونو نه دا ثابت شویدے چه فقه
حنفی سوال بحق الانبیاء وغیرهم ته مکروه تحریمی وئیلے دے نو دا دلیل
دے چه استدلال د دے فعل د یهودیانو نه صحیح نه دے.
دا جوابونه خو بنا دی په دے خبره چه مراد د یَسْتَفْتِحُوْنَ نه مدد غوښتل
شی او حال دا دے چه دا تفسیر متعین نه دے ځکه چه په دے کښ نور اقوال
د مفسرینو شته دے لکه چه مونږ اول په معنی د یَسْتَفْتِحُوْنَ کښ ذکر کړی
دی د هغې تفصیل دا دے چه یَسْتَفْتِحُوْنَ د فتح نه ماخوذ دے او فتح په معنی

بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ

بد دے هغه څيز چه خرچ كړيدي دوى په هغے سره ځانونه خپل چه كفر كوى دوى په هغه كتاب

اَنْزَلَ اللّٰهُ بَغْيًا اَنْ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ

چه نازل كړيدے الله تعالىٰ د وجے د ضد نه په دے باندے چه نازلوى الله تعالىٰ د فضل خپل نه

عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۚ فَبَآءُوْ

په هغه چاچه غواړى د بندګانو خپلو نه ، نو اخته شو دوى

بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ ؕ وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ

په يو غضب د پاسه د بل غضب باندے - او خاص كافرانو لره عذاب

د علم سره دا لكه چه ښكاره كښ تير شويدى او سين په دے كښ د پاره د طلب دے او على په معنى د من سره دے يعنى علم او خبر به يئے طلب كوؤ د مشركينِ عرب نه په باره د پيدا ئيښ د آخرى نبى كښ (راغب - روح المعانى - اللباب) او تائيد د دے حديث د تميم الدارى دے په باره د دجال كښ چه دجال د عربو نه په وخت د ملاقات كښ تپوس د آخرى نبى په باره كښ كړے وؤ (مسلم، مشكوٰة) - او بله توجيه داده چه فتح په معنى د علم او خبر سره دے خو سين د طلب د پاره نه دے او على په خپله معنى سره دے نو معنى دا چه خبر به وركوؤ دوى د آخرى نبى په باره كښ مشركينو اميانو ته، او تائيد د دے مخكښ روايت د مفسريتو دے چه قَدْ اَظَلَّ زَمَانُ نَبِيٍّ الخ او دا رنګ حديث د راهب دے په باره د سفر د نبى صلى الله عليه وسلم كښ د خپل تره او نورے قافلے سره مخكښ د نبوت نه هغه ته او اخبار د راهب دوى ته چه په ده كښ علامات د آخرى نبى دى شام ته يئے مه بوځئ هلته يهوديان دى او هغوى د ده دشمنان دى (مشكوٰة) نو هر كله چه په تفسير د يَسْتَفْتِحُوْنَ كښ داسے اقوال او احتمالات شته دے نو سره د دے احتمالونو نه استدلال د اثبات د توسل د پاره څه رنګے صحيح كيدے شى؟ او كه دا هر څه بالفرض صحيح او منلے شى ليكن دينه استدلال په قرآن يا په حديث مرفوع سره نشى وئيلے كيدلے دا خو استدلال دے په قول د مفسرينو چه هغه صِرف حديث موقوف ضعيف دے او نور تفصيل د دے مسئلے په تفسير د سورة مائده كښ اوګورئ -

مُّهِيْنٌ ﴿۹۰﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

ذلیلوونکے. اوکله چه اووئیلے شی دوئیته ایمان راوړئ په هغه کتاب چه نازل کړیدے الله تعالیٰ

نو داتمه ده د ځلورم او پنځم خطاب په طریقه د زجر سره په کفر بغیًا سره او ربطے ئے محکښ سره دا دے چه هر کله ثابت شو په محکښ آیت کښ کفر د دغه کتابیانو، نو وهم راغے چه سره د علم نه ولے کفر کوی نو په دے آیت کښ وجه د کفر د هغوی ذکر کوی چه هغه بغی ده- بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖ اَنْفُسَهُمْ، بِئْسَ فعل د ذم دے او په بِئْسَ نِعم کښ په اصل کښ څلور لغات جائز دی (۱) بَئِسَ نَعِمَ (۲) بِئِسَ نِعِمَ (۳) بَأْسَ نَعْمَ (۴) بِئْسَ نِعْمَ لیکن دا روستنے تعبیر د دے سره لازم کړے شویدے د پاره د دے چه د فعل ماضی د معنی نه اوځی او صرف په معنی مصدری د ذم یا مدح باندے مبالغةً دلالت اوکړی- او فراء وئیلی دی چه بِئْسَمَا مرکب یو لفظ دے او جمهور نحویانو وئیلی دی چه مَا د دے نه په اصل کښ جدا دے صرف په لیکلو کښ یو ځائے دے او مَا په معنی د شیئًا سره تمییز دے د نسبت د بِئْسَ، او اشْتَرَوْا جمله صفت د مَا دے- اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ دا فاعل د بِئْسَ دے- یا فاعل پټ دے د بِئْسَ نه روستو او اَنْ يَّكْفُرُوْا د هغے نه بدل دے او دیته مخصوص بالذم وئیلے شی- اصل عبارت داسے شو بِئْسَ الشیئ شیئًا اَنْ يكفروا اه نا کاره څیز د څیز په لحاظ سره کفر کول دی په مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ سره د وجے د بغی (ضد او عناد) نه- اشْتَرَوْا په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه دا په خپله معنی سره دے او مراد د دے نه ځان بچ کول دی د تاوان یا د عذاب نه معنی دا ده "چه بچ کوی دوی خپل ځانونه په هغے سره"۔ **سوال**:- په کفر سره خو بچ کیدل نیشته؟- **جواب**:- مراد د دے نه بچ کیدل دی په گمان د دوی کښ نه په حقیقت کښ نو الله تعالیٰ د دوی رد اوکړو په عکس د گمان د دوی سره په بِئْسَمَا اه سره- دویم قول دا دے چه اشتراء په معنی د بیع سره دے او انفسهم نه مراد حصه د ثواب د دوی ده (سراج المنیر او خازن)- نو معنی دا ده چه خرڅه کړیده دوی په هغے سره حصه د ثواب خپل یا خرڅ کړیدی دوی (تباه کړیدی) په هغے سره ځانونه خپل- بَغْيًا دا مفعول لهٗ (علت) دے د پاره د يكفروا- قرطبی وئیلی دی بغی په اصل لغت کښ فساد ته وئیلے شی یا طلب ته وئیلے شی او دلته مفسرینو معنی د حسد او ظلم او طلب د بے مناسبه څیز کړیده او قرآن کریم کښ مَا ده د دے شپږ نوی ځله راغلے ده په پنځه وجوهو سره

اوله وجه معنی حسد او عناد (سورة بقره ۲۱۳) - دویمه معنی ظلم او زیاتے کول (سورة ص ۲۲، سورة یونس ۲۳) - دریمه وجه په معنی د طلب کولو (سورة انعام ۱۶۴، سورة اعراف ۱۴۰) څلورمه په معنی د بدکارئ کولو (سورة مریم ۲۰، سورة نور ۳۳) - پنځمه وجه په معنی د امکان او جواز (سورة مریم ۹۲، سورة یٰسٓ ۴۰) - دلته قید د بَغْیًا سره معلومه شوه چه کفر دوه قسمونه دے اول قسم کفرِ جهلی - دویم کفرِ بغی حسدی - دا دویم وصف د ناکاره اهلِ علمو دے او دا علت د کفر او اختلاف د پاره په سورة بقره ۲۱۳، سورة العمران ۱۹، سورة شوری ۱۴، سورة جاثیه ۱۷ کښ ذکر دے - اَنْ یُّنَزِّلَ اللّٰهُ، دلته لام پټ دے یعنی لِاَنْ یُّنَزِّلَ - دا علت د بَغْیًا دے - مِنْ فَضْلِهٖ، مِنْ د پاره د بعضیت دے او فضل نه مراد وحی او نبوت دے - عَلٰی مَنْ یَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ مراد د مَنْ نه محمد صلی الله علیه وسلم دے - یعنی یهودیانو د نبی صلی الله علیه وسلم سره حسد کوؤ د دے وجے نه چه هغه اسرائیلی نه وؤ بلکه خالص عربی وؤ او دا د دوی تعصبِ قومی دے چه سبب د کفر د هغوی اوګرځیدلو - او احتمال دے چه په آیت کښ فضل په عامه معنی شی او مَنْ یَّشَآء هم عام شی یعنی هر چا باندے چه الله تعالی یو فضل دینی کړے وی او نور خلق ورسره حسد او تعصب کوی نو دا سبب اوګرځی د پاره د اختلاف او کفر کولو او حال دا چه فضل او رحمت په مشیت د الله تعالی کښ دے او هغه ئے پخپله تقسیموی - فَبَآءُوْ بِغَضَبٍ عَلٰی غَضَبٍ لفظ د عَلٰی په معنی د مع یا په معنی د بعد سره دے او په تکرار د غضب کښ اقوال دی د مفسرینو - اول قول، په دے کښ دوه والے د غضب مراد دے په وجه د دوه سببونو سره نو د حسن او شعبی وغیرهما قول دا دے چه اول سبب تکذیب د عیسٰی علیه السلام او دویم تکذیب د محمد صلی الله علیه وسلم دے - او د مجاهد قول دا دے چه اول سبب بربادول د تورات دی او دویم کفر دے په محمد صلی الله علیه وسلم یا د اول غضب سبب کفر دے په ما انزل الله او دویم سبب بغی او حسد کول دی - دویم قول د عطاء او ابو عبید دے چه دلته دوه والے د غضب مراد نه دے بلکه ډیر اقسام د غضب پرله پسے مراد دی د وجے د اسبابو کثرو نه چه په مخکښ اقوالو کښ ذکر شول - دریم قول، د ابو مسلم دے چه غضب په اصل کښ یو دے خو د هغے تاکید د عظمت د پاره تکرار کړے شوید ے - وَلِلْکٰفِرِیْنَ عَذَابٌ مُّهِیْنٌ، تصریح کول په لفظ د اَلْکٰفِرِیْنَ باندے د پاره د علت د عذاب ده او لام د پاره د تخصیص دے یعنی عذاب په صفت د اهانت کښ خاص دے په کافرانو

قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَيَكْفُرُوْنَ

دوی وائی ایمان راوړو مونږ په هغه کتاب چه نازل کړے شویدے په مونږ باندے، او کفر کوی دوی

بِمَا وَرَآءَهٗ ق وَهُوَ الْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ ط

په هغې چه سیوا دی د دغه نه او حال دا چه هغه حق دے، رشتینے کوونکے دے د هغه کتابونو چه دوی سره دی

قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ

ته ورته اووایه، چه ولے وژل تاسو پیغمبران د الله تعالی د دے نه مخکښ

اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿٩١﴾ وَلَقَدْ جَآءَكُمْ مُّوْسٰى

که یئ تاسو ایمان راوړونکی (په خپل تورات) او په تحقیق سره راغلے وو تاسو ته موسی علیه السلام

پورے ادا اهانت ذلیل کول رسوا کول او شرمنده کولو ته وئیلے شی۔

**سوال :-** دا ایت دلالت کوی چه عذاب د جهنم په کافرانو پورے خاص دے نو خوارج استدلال کوی چه د مؤمن ګناهګار د پاره هم عذاب دے نو معلومه شوه چه هغه هم کافر دے او مرجئه استدلال کوی چه د مؤمن د پاره هیڅ عذاب نیشته اګرچه ګناه کوی؟۔

**جواب :-** په ایت کښ وصف د مهین نه اعتبار دے یعنی مطلق عذاب په کافرانو پورے خاص نه دے ګناهګار مؤمن هم په مشیت د الله تعالی سره عذاب والا کیدے شی او عذاب چه په صفت د اهانت سره وی نو دغه عذاب همیشه دے او دا خاص دے په کافرانو پورے۔ او هرچه عذاب دے د پاره د مؤمن نو هغه د پاره د پاکولو د هغه دے د خیرو د ګناهونو نه هغه د پاره د اهانت نه دے۔
شیخ الاسلام ابن تیمیه رح په الصارم المسلول ص۵۲ کښ وئیلی دی چه وصف د اهانت او تذلیل او دخور وغیره د عذاب سره ذکر شی نو دا خاص وی په کافر پورے او په دے کښ نهه ایاتونه د عذاب مهین په باره کښ ذکر کړیدی۔ او ابن کثیر د دے وجه دا ذکر کړے ده چه د دوی د کفر سبب بغی او حسد دے او هغه پیدا کیږی د تکبر نه نو د متکبر عذاب په اهانت سره مناسب دے په دنیا او اخرت دواړو کښ۔

ملـ۹ په دے کښ دویم زجر دے په طریقه د مناظرے سره چه هر کله دوی دعوی او کړه۔ نُؤْمِنُ بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا تو په دوی باندے ئے دوه حجتونه قائم کړل اول

حجت دَيَكْفُرُوْنَ او دَهُوَالْحَقُّ اه او دويم حجت په طريقه د نقض سره قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اه
او په دے ایت کښ دلیل دے په بغي د دوی باندے یعني هرکله چه دوی په دلیل
سره مغلوب دی او بیا هم کفر کوی نو معلومه شوه چه د بغي او حسد د وجے نه
کفر کوی - اٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللهُ مراد په لفظ د مَا سره عموم دے تول مَا اَنْزَلَ اللهُ
پکښ داخل دی که قرآن وی او که نور کتبِ منزله وی بعضِ اهلِ عربیت د دے
نه استدلال پیش کړے دے چه کلمه د مَا د عموم د پاره وضع کړے شویده
لیکن دا قول صحیح نه دے بلکه دا خو صرف استعمال دے د عموم د پاره لکه چه
استعمالیږی د خصوص د پاره هم - قَالُوْا نُؤْمِنُ بِمَآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا جواب د دوی
په تخصیص سره دے یعني صِرف په تورات باندے ایمان لرو او حال دا دے
چه د تخصیص د تورات د پاره هیڅ دلیل نیشته - وَيَكْفُرُوْنَ بِمَا وَرَآءَهٗ دا جمله
مستانفه ده د پاره د ذکر د کفر د دوی په ماسیوا د تورات باندے - یا جمله حالیه
ده - وَرَآءَهٗ د اضداد و نه دے یعني کله په معني د روستو او کله په معني د مخکښ
سره راځی لکه سورة کهف ۷۹ او سورة الدهر ۲۷ کښ - او فراء د دے تفسیر په
سِوَی سره کړیدے لکه په سورة مؤمنون ۷ او سورة معارج ۳۱ کښ دی.
او ابو عبیده د دے تفسیر په بعد سره کړے دے چه هغه اوله معني ده -
وَهُوَالْحَقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمْ په دے کښ اول الزام د حجت دے په دوی
باندے، طریقه دا ده که تاسو په تورات باندے د دے وجے نه ایمان راوړے
وی چه حق دے نو دارنګ قرآن هم حق او مصدق دے او حق چه هرڅه
وی او د هر چا سره وی نو په هغے باندے ایمان راوړل فرض دی او په لفظ
وَيَكْفُرُوْنَ اه کښ لطیفه اشاره ده چه د دوی ایمان په تورات باندے د وجے د
حقانیت نه نه دے ځکه چه دوی فرق کوی په دواړه حق شیزونو کښ چه یو
باندے ایمان راوړی او په بل باندے نه راوړی نو معلومه شوه چه دوی
خپل کتاب هم نه مني د حقانیت د وجے او نه قرآن مني نو دوی صریحي کافر
دی (او دا په طریقه د الزام ابن قیمؒ په بدائع التفسیر کښ ذکر کړیده) بیا ځے
وئیلی دی چه دا دلیل دے چه څوک په یو حق باندے ایمان راوړی او په
بل حق باندے د تعصب د وجے ایمان نه لری نو دا کافر دے - او معلومه شوه
چه په دے زمانه کښ ډیر خلق داسے دی چه دعوٰی د ایمان کوی او حال دا
چه د ایمان نه بری دی (ولا حول ولا قوة الا بالله) -

بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْ بَعْدِهٖ

(په ښکاره دلیلونو (او احکامو) سره بیا اونیولو تاسو سخي په خدایئ سره روستو (د تللو) د هغه نه

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿٩٢﴾ وَاِذْ اَخَذْنَا مِيْثَاقَكُمْ

او تاسو ظلم کوونکي (په شرک کولو سره). او کله چه واخستو مونږ پوخ لوظ ستاسو نه

---

قُلْ فَلِمَ تَقْتُلُوْنَ اَنْبِيَآءَ اللّٰهِ مِنْ قَبْلُ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ دا دویم حجت دے په دوی بانلے په طریقه د نقض سره او دا هم په دوه طریقو سره دے اول دا چه په تورات کښ لیکلے شوی دی چه قتل د انبیاء علیهم السلام حرام او کفر دے او تاسو خو ډیر انبیاء قتل کړیدی لکه د دے سورت په ۶۱ او ۸۷ کښ تیر شویدی نو دا دلیل دے چه تاسو په تورات بانلے ایمان نه لرئ بلکه کافریئ. دویمه طریقه دا ده چه ډیر انبیاء د بنی اسرائیلو ؤ چه تورات ته یئے دعوت ورکوؤ او د هغے تصدیق یئے کولو لیکن تاسو هغوی قتل کړیدی د دے وجے نه چه د هغوی دعوت ستاسو د خواهش نه خلاف وؤ نو دا ښکاره دلیل دے چه تاسو په تورات بانلے ایمان نه لرئ نو حاصل دا دے چه ایمان بالتورات مستلزم وؤ ترک د قتل د انبیاؤ لره یا قتل د انبیاؤ مستلزم دے عدم ایمان بالتورات لره دا رنګ ایمان بالتورات او قتل د انبیاؤ کښ تناقض دے او تناقضان خو نشی جمع کیدلے نو قتل خو ستاسو طرف نه موجود دے نو معلومه شوه چه ایمان بالتورات په تاسو کښ نیشته - **فائده**:- هغه خلق چه د قتل د انبیاؤ نه انکار کوی او د هغے تاویلونه کوی نو هغوی به دے ایت سره څه رنګه کفر د یهودیانو ثابتوی معلومیږی چه دا قول د دوی د یهودیت د تحریک اثر دے لکه چه مخکښ بحث تیر شویدے یا هغوی د جهل په تیارو کښ پراته دی - **سوال**:. دلته زجر په قتل سره په صیغه د مستقبل دے او ورسره یئے مِنْ قَبْلُ ذکر کړے دے نو هغه دلالت کوی په ماضی بانلے؟ - **جواب ۱**: کله مستقبل په معنی د ماضی راوړے شوے وی په طور د حکایت سره - **جواب ۲**:. دلته مراد دا دے چه ولے رضا کیږئ اے موجوده کسانو په قتل د انبیاؤ چه مشرانو ستاسو مخکښ قتل کړی وؤ (اللباب). **جواب ۳**:- کوم صفت چه په طریقه د لزوم او عادت سره وی اګرچه په زمانه ماضی کښ وی لیکن د هغے نه تعبیر کیدیشی په مضارع سره (ابن عطیه - ابوحیان) - ۹۲ د دے ایت نه تشریم خطاب دے او د هغے تتمه ده په مباهلے سره تر ۹۶ پورے

په دے خطاب کښې ذکر د دوه خباثتونو د دوی دے په ترقئ سره د ماقبل نه اول شرک کول په عبادة العجل سره سرهٔ د بیّنا تو د توحید نه۔ دویم اعراض کول د کتاب الله نه په سبب د مرض د محبت کولو د سخی سره۔ ربط د دے د مخکښې سره دا دے چه دوی وئیل چه مونږ خو د هغه کسانو قتل او تکذیب کړے چه په بیّنه سره د هغوی نبوت مونږ ته ثابت شوے نه وُو او مونږ خو د بینه تابعداری کوُو؟ حاصلِ جواب دا دے چه دا قول ستاسو باطل دے ځکه چه په زمانه د موسیٰ علیه السلام کښې سرهٔ د ډیرو بیّناتو نه تاسو عبادت د سخی کړے وُو نو معلومه شوه چه تاسو تابعدار د خواهش یئ او د بیّنه تابع نه یئ۔

بِالْبَيِّنٰتِ، با د ملابست او مصاحبت ده یا د سببیت ده او مراد د بَیِّنَات نه هغه نهه معجزات دی چه تعداد د هغې په سورة اسراء ۱۰۱ کښې او تفصیل ئے په سورة اعراف ۱۰۷ ۱۰۸ ۱۳۰ ۱۳۳ کښې ذکر دے یا عام مراد دے یعنی فلق البحر۔ اغراق فرعون تظلیل الغمام۔ انزال مَنّ وسلوٰی۔ انفجار الماء من الحجر او نور دلیلونه د پاره د اثبات د توحید۔

ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ، ثُمَّ د پاره د زیادتِ توبیخ دے او مِنْ بَعْدِهٖ د پاره د روستو والی دے۔ یا ثُمَّ د پاره د روستو والی د زمانے دے (د پاره د فکر کولو په بیناتو کښې) او مِنْ بَعْدِهٖ نه مراد روستو د تللو د موسیٰ علیه السلام نه میقات ته۔

وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ، **سوال**:- دا سے په ۵۱ کښې هم تیر شوے دے نو حکمت د تکرار څه دے؟۔

**جواب**:- هلته ئے ذکر کړے دے د پاره د انعام کولو په عفو سره روستو د پښیمانتیا د دوی نه او دلته ذکر دے د پاره د بیان د خباثت د دوی۔ بله وجه دا ده چه هلته ذکر وُو په تفصیل د حالاتو د بنی اسرائیلو کښې او دلته مقصد تسلّی ده آخری نبی صلی الله علیه وسلم ته یعنی چه دا موجوده یهود که ستا تکذیب کوی سرهٔ د واضح دلیلونو د نبوت ستا نه نو پرواه مکوه ځکه د دوی مشرانو د موسیٰ علیه السلام نه هم مخالفت کړے وُو په شرک کولو سره سرهٔ د بیناتو نه۔

او خطاب موجوده یهودیانو ته دے ځکه چه دوی رضا وُو په دغه عمل د مشرانو خپلو۔

وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّوْرَ ؕ خُذُوْا مَآ اٰتَيْنٰكُمْ

او اوچت کړو مونږه ستاسو دپاسه طور غر - (اُوئیل مونږ) اونیسئ هغه کتاب چه درکړے دے مونږ تاسو ته

بِقُوَّةٍ وَّاسْمَعُوْا ؕ قَالُوْا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا ق

په کوشش سره او واورئ (په قبلولو سره) - دوی اُوئیل واورېدو مونږه او نه منو مونږه

وَاُشْرِبُوْا فِىْ قُلُوْبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ؕ

او ګډ شویدے په زړونو د دوی کښې محبت د سخی په سبب د کفر د دوی.

قُلْ بِئْسَمَا يَاْمُرُكُمْ بِهٖۤ اِيْمَانُكُمْ اِنْ كُنْتُمْ

ته ورته اووایه بد دے هغه څه چه حکم کوی تاسو ته په هغے سره ایمان ستاسو که یئ تاسو

مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۹۳﴾ قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ

ایمان لرونکی (په خپل کتاب) ته ورته اووایه که وی ستاسو د پاره کور روستنے (جنت)

ف۹۳ په دے کښې ذکر د خباثت د دوی دے په اعراض کولو سره د کتاب الله نه په ذکر د سبب د هغے چه هغه محبت د عجل دے - دلته په ف۶۳ کښې تیر شوی دی د اول دریو جملو شرح هلته تیره شویده - وَاسْمَعُوْا د دے نه مراد سماع د قبولیت ده لکه په دے قول کښې سَمِعَ اللّٰهُ لِمَنْ حَمِدَهٗ (قبلوی الله تعالیٰ حمد د هغه چا چه د هغه حمد کوی)-

قَالُوْا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا سوال ۱: سمع که په معنی د قبولیت سره وی تو هغه ضد دے د عَصَيْنَا سره نو دا جمع د ضد ینو ده او که په معنی د صرف اوریدلو سره وی نو صرف اقرار د اوریدلو دے بغیر د قبولیت نه او دا رنګ عَصَيْنَا وئیلو سره خو عذاب د الله تعالیٰ (طور راغورزیدل) نشی دفع کولے؟-

سوال ۲: په وخت د پورته کولو د غر کښې خو ډیر خوف وو نو په هغه کښې څه رنګ دوی عَصَيْنَا وئیلے شو؟- د دے سوالو تو جوابونه په ډیر طریقو سره دی۔

اوله طریقه د جواب:- چه قَالُوْا کښې نسبت خو ټولو بنی اسرائیلو ته وو لیکن د هغوی دوه ډلے وے یو مشران بل روستنی نو مشرانو سَمِعْنَا او وئیلو په هغے سره طور د دوی د سرونو نه لرے کړے شو او کشرانو اوئیل عَصَيْنَا روستو د لرے کیدلو د طور ته - او د دے نکتے د وجے نه یئے قالو وئیلے دے قلتم یئے نه دے وئیلے۔

دويمه طريقه دَ جواب:- چه حاضرين په هغه وخت کښ دوه ډلے شولے يوې ډلے سَمِعْنَا اوئيل او بلے ډلے عَصَيْنَا ليکن په قبوليت دَ بعضو سره عذاب لرے شوے نه و- دريمه طريقه:- چه ټولو په ژبه باندے سَمِعْنَا اوئيل او عَصَيْنَا ئے په زبان حال سره اوئيلو- **څلورمه طريقه**:- په هغه وخت کښ ټولو سَمِعْنَا وئيلی دُو او روستو چه وخت دَ عمل شروع شو نو ټولو عَصَيْنَا اوئيلو. په ﷺ کښ دلالت دے چه دوی اول وخت قبوليت کړے وُو او روستوئے تولّی کړے نو دا تائيد کوی چه روستنے جواب صحيح دے.

وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ دا عطف دے په قَالُوا سَمِعْنَا باندے عطف دَ علت په معلول باندے يعنی سرهٔ دَ پوهے او دَ نمونے دَ عذاب او دَ عهد نه دوی ولے عصيان اوکړو نو علت ئے ذکر کړو په دے قول سره چه وَأُشْرِبُوا- دائے په صيغه دَ مجهول سره ذکر کړو اگرچه فاعل دَ دے اشراب الله تعالیٰ دے په نيز دَ اهلِ سنت والجماعت ليکن اسباب دَ دے ډير وو لکه سامری- شياطين الجن- شياطين الانس دَ دے وجے نه صيغه دَ مجهول مناسب وه- معانی دَ اشراب په نيز دَ فصحاءِ عرب دوه دی اوله معنیٰ څښکول، سيراب کول او مړول په او بو سره هغه بيا دوه قسمه دے اول دَ زهکے او به کول او مړول په او بو سره نو دَ هغے نه بوټی پيدا شی نو دا رنگ په مينه دَ سخی سره دَ دوی زړونه پوره او به شوی او ماړه شو يدیٰ نو دَ هغے نه ډير خباثات او قباحات پيدا شو يدی دويم څښکول دَ نشے دَ څيز و نو لکه چه نشه کونکے شراب په چا باندے او څښکولے شی نو هوش او حواس ئے خراب شی او دا سے بے عقله شی چه دَ حرام حلال او مور خور تميز نشی کولے دا رنگ محبت دَ سخی دَ دوی په زړونو کښ دا سے ورننوتلے دے چه عقل او معرفت دَ حق دَ دوی نه بهر شو يدے چه دوی شرک او توحيد کښ فرق نشی کولے- دويمه معنیٰ دَ اشراب- دَ يو رنگ سره بل رنگ پوره ککړا ول لکه چه عرب وائي ثَوْبٌ مُشْرَبٌ بِحُمْرَةٍ (جامه کښ سور رنگ پوره ککړ کړے شو يدے) چه دَ جامے په ټولو مساماتو کښ دننه ننوتلے دے دا رنگ محبت دَ سخی دَ دوی زړونو له دا سے رنگ ورکړے دے چه بل رنگ نه قبلوی (تفسير فتح العزيز)- او دَ دے وجے نه تعبيرئے په اکل سره نه دے کړے ځکه چه خوراک خو په هر عضو کښ سرايت نشی کولے.

فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ **سوال**:- اشراب خو په او بو يا په رنگ کښ استعماليږی

لکه چه مخکښ ذکر شو نو عجل خو حیوان دے د هغه سره خو شراب نه ښائیږی؟
**جواب:-** دلته مضاف پټ دے یعنی حُبَّ العجل لیکن د ډیرے مبالغے د وجے نه عجل ئے مشروب اوګرځوو۔
**تنبیه:-** دلته ابن کثیر او بعض تفسیرونو واقعه ذکر کړیده چه موسٰی علیه السلام هغه سخے د دوی ذرے ذرے کړو او په دریاب کښ ئے او توستلو نو دوی هغه اوبه اوڅکلے نو د بعض کسانو (محبت کوؤنکی د عجل) په شونډو باندے د سرو زرو د ذراتو اثار ښکاره شول نو قرطبی وئیلی دی چه ذرے کول او په دریاب کښ نوستل خو د قرآن نه ثابت دی لیکن د خلقو څښکل وغیره د قرآن د دے لفظ نه خلاف دی چه فِیْ قُلُوْبِهِمْ۔
بِکُفْرِهِمْ، باء سببیه ده یعنی کفر د دوی سبب د دے اشراب دے او مراد د کفر نه عقیده د تشبیه ده (مدارک)۔ دوی مجسمه او حلولیه وو نو دوی ته دا جسم د سخی خائسته ښکاره شو نو د دوی په زړونو کښ عقیده د الوهیت د هغه داخله شوه (سراج المنیر)۔
قُلْ بِئْسَمَا یَاْمُرُکُمْ بِهٖۤ اِیْمَانُکُمْ اِنْ کُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ، دا بل دلیل دے په ابطال د قول د دوی (نُؤْمِنُ بِمَاۤ اُنْزِلَ عَلَیْنَا) یعنی په تورات کښ خو عبادت د عجل نیشته نو که تاسو په تورات ایمان لرئ نو ولے دا سے بدکار کوئ نو معلومه شوه چه تاسو کښ ایمان نیشته۔
**سوال:-** ایمان خو امر او نهی نشی کولے نو دلته ایمان ته ولے د امر نسبت اوشو؟
**جواب:-** ایمان خو اعمالِ صالحه باندے سبب او باعث ګرځی نو د سببیت د وجے نه مشابه کړے شو د امر سره لکه چه صلوٰة شرعیه ئے د سببیت د وجے نه ناهی ګرځولے دے په اِنَّ الصَّلٰوةَ تَنْهٰی عَنِ الْفَحْشَآءِ وَالْمُنْکَرِ کښ۔
**سوال:-** ایمان خو ډیر شریف څیز دے نو هغه ته د دے امر قبیح نسبت ولے شویدے؟ **جواب:-** دے ته تهکم وئیلے شی یعنی په دوی پورے ټوقے کول او د دے وجے نه ورپسے د دوی ایمان په شک سره ذکر کوی چه اِنْ کُنْتُمْ مُّؤْمِنِیْنَ۔ یعنی ایمان ئے نیشته ځکه دوی شرک کوی۔
**سوال:-** د دے تعبیر چه نسبت د امر قبیح ئے ایمان ته اوکړو (اګرچه تهکم دے) څه فائده ده؟ **جواب:-** شاه عبدالعزیز رحمة الله علیه وئیلی دی چه دا ټول کلام مخکنے د قلوبنا غلف سره متعلق دے یعنی که څوک وهم اوکړی

عِندَ اللَّهِ خَالِصَةً مِّن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا

په نيز د الله تعالیٰ يواځې (خالص) سيوا (بغير) د نورو خلقو نه نو اوغواړئ

چه دا قول د دوی په تصلب في الدين بانده دلالت کوی چه دوی په دين کښ ډير کلک دی نو روستو کلام کښ د دے وهم جواب اوشو چه دا خو تعصب في الدين دے او هغه خو باطل دے او د دے يئ غټ درے دليلونه ذکر کړل اول (يستفتحون) يعنی دوی دا نبی مبارک ګڼړلو د هغه په ذريعه يئ فتح غوښتله ليکن هرکله چه هغه نبی په بنی اسماعيلو کښ پيدا شو نو د تعصب قومی د وجے نه يئ د هغه نه انکار اوکړو- دويم دا چه دوی وائي چه بغير د تورات نه بل کتاب نه منو اګر چه هغه بل هم حق دے نو دا تعصب دينی دے- دريم دا چه د دوی مشرانو سره د بيّنا تو نه اصرار اوکړو په محبت د سخی بانده او د هغے د پاره يئ د الله تعالیٰ وعدے هم ماتے کړلے نو دے نه تصلب في الدين نشي وئيلے کيدے بلکه دا خو تعصب جهلی دے- نو په آخر کښ اوئيل چه دا تعصبات د ايمان سره نشی يو ځائے کيدے نو معلومه شوه چه دوی ايمان والا نه دی-

**فائده:-** د ۶۳ او د دے په مينځ کښ په څو طريقو سره فرق دے اوله طريقه دا ده چه هلته يئ واذکروا ما فيه وئيلی وُو او دلته واسمعوا دے- دويمه طريقه هلته يئ ثم توليتم من بعد ذلك وئيلی دی او دلته يئ قالوا سمعنا وعصينا وئيلی دی- د دے بعض حکمتونه دادی:- د اول طريقے حکمت دا دے چه د احکام الٰهيه (چه په کتاب الله کښ دی) مقصد ذکر (درس وتدريس او بيان) او اوريدل د هغے ذريعه ده نو په هغه آيت کښ د دوی ډير خباثت ته اشاره وه چه دوی د اصل نه مخ اړولے دے- او په دے آيت کښ د زجر سره ترتيب ذکر کول هم مقصد دے او په ترتيب کښ سمع مخکښ ده د ذکر نه-

د دويمے طريقے حکمت دا دے چه د قرآن آيا تو نه د يو بل تفسير کوی نو په هغه آيت کښ مضمون د ميثاق يئ ذکر کړے وُو ليکن قبوليت د دوی يئ نه وُو ذکر کړے نو په دے آيت کښ ذکر شو قَالُوا سَمِعْنَا او هلته توليتم- او بل دا چه دا تولی عصيان وُو په لفظ د عصينا سره او هرکله چه په دے آيت کښ مقصد بيان د علت د عصيان وُو نو معلول (عصيان) يئ اول ذکر کړو او بيا يئ علت ذکر کړو په اشربوا سره (وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِحِكَمِ كِتَابِهِ)-

الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۹۴﴾ وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ

مرګ (په دروغژن) که یئ تاسو رشتینی - او نه غواړی دوی مرګ

۹۴ داتتمه د ماقبل خطاباتو ده په اعلانِ مباهله سره - او جواب د سوال د دوی دے که دوی او وائی چه مونږ (تصلب فی الدین) کوؤ د دے وجے نه چه زمونږ د دین نه سیوا ټول دینونه باطل دی او حق دین صرف زمونږ دے نو په دے ایاتونو کښ د دے وهم تردید کوی - قُلْ اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ عِنْدَ اللّٰهِ خَالِصَةً ، داخطاب د دوی بنا دے د دوی په دعوٰی باندے چه سورة بقره ۸۰ او ۱۱۱ او سورة مائده ۱۸ کښ ذکر دی ځکه چه د دغه دعوٰ سره داخبره لازم ده چه دوی جنت د ځان د پاره خاص ګنړی او د بل چا د پاره په هغے کښ حصه نه منی. خبر د كانت خالصةً دے او عند الله په هغے پورے متعلق دے یا لکم خبر دے یا عند خبر دے - عِنْدَ اللّٰهِ مراد د دیته عندیت د درجے دے. خَالِصَةً په معنی د سَالِمَةً دے چه د شرکت د بل چا نه پاک وی. یا په معنی د خاصة دے - مِنْ دُوْنِ النَّاسِ دابیان د خالصةً دے مراد د الناس نه عام خلق دی او بالخصوص صحابه کرام او اُمت د محمد صلی الله علیه وسلم پکښ مراد دی -

فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ ، تمنّٰی طلب د یو څیز دے په زړهٔ کښ او کله کله په ژبه سره ښکاره کیږی او دلته مراد په ژبه سره سوال کول دی دا ابن جریر د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت ذکر کړے دے - صاحب اللباب وئیلی دی چه تمنّٰی په لغت د عرب کښ نه معلومیږی مګر په قول سره. او قاسمی وئیلی دی چه دلته مراد د تمنّٰی نه تلفظ کول دی په طلب د موت باندے صِرف په زړه کښ تمنا او طلب کول مراد نه دے ځکه چه دا مقام د حجت قائمولو دے او هغه معلومیږی په تلفظ د ژبے سره -

اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ، رشتینی په دعوی د جنت او د خصوصیت د هغے کښ- په دے مقام کښ د مفسرینو دوه توجیهات دی. اوله توجیه په تفسیرونو کښ مشهوره شویده هغه داده که تاسو رشتینی یئ په دعوٰی د جنت کښ نو د ځان د پاره مرګ او غواړئ ځکه چه کوم څیز د انسان محبوب وی نو د هغے ذریعه ورته هم محبوبه وی اګرچه فی نفسه ترخه (او مکروهه) وی نو جنت ته د رسیدلو ذریعه مرګ دے د دے وجے نه د مرګ سوال په تاسو باندے لازم دے. دویمه توجیه ابن جریر د ابن عباس رضی الله عنهما نه په سند سره نقل کړیده او ابن کثیر

غوره کړېده بلکه متعین کړې ئې ده هغه دا ده چه دا مباهله ده او مراد د تمنّیٔ د موت نه سوال د موت دے په دروغژن باندے یعنی تاسو (اے یهودو) دعوی کوئ چه مونږ ضرور په حق دین باندے یو او د دے وجے نه جنت زمونږ حق دے نو د حق د اثبات د پاره خو اول محاجّه (یعنی دلیلونه) پیش کول ضروری وی نو د دے ځائے پورے معلومه شوه چه تاسو سره هیڅ دلیل د حقانیت نیشته صِرف تعصب دے نو اوس تیار شئ مباهلے ته او تفصیل د مباهلے په سورة العمران ۶۱ کښ به انشاء الله رائی او دا رنګ دا سے آیت په سورة جمعه ۶ کښ هم دے او ابن کثیر او ابن قیم په اوله توجیه باندے اعتراضونه ذکر کړیدی۔

اول اعتراض:۔ چه جنتی کیدل مستلزم نه دی طلب د مرګ لره ځکه چه ډیر انبیاء او صلحاء تیر شویدی چه اهلِ جنت دی او حال دا دے چه هغوی طلب د مرګ نه دے کړے بلکه اوږد والے د عمر د هغوی سبب د زیادت د خیر او د رفع د درجاتو دے لکه چه په حدیث کښ ذکر دی خَیْرُکُمْ مَنْ طَالَ عُمُرُہٗ وَحَسُنَ عَمَلُہٗ (غوره په تاسو کښ هغه څوک دی چه عمر ئې اوږد وی او عمل ئې ښائسته وی) او کوم چه مفسرینو د علیؓ او عمار بن یاسرؓ او نورو کسانو واقعات ذکر کړی دی نو په هغې کښ طلب کول د مرګ په ژبے سره د هغوی نه نقل نه دی صِرف محبت د موت د هغوی نقل کړے شویدے۔

دویم اعتراض:۔ که د غسے ملازمه شی نو کیدے شوه چه هغه یهودیانو نبی صلی الله علیه وسلم او صحابو ته وئیلے وے چه تاسو خو جنتیان یئ نو تاسو ولے مرګ نه غواړئ؟۔ او دا اعتراض په دویمه توجیه باندے نه لازمیږی ځکه چه په وخت د مباهله کښ خو نبی صلی الله علیه وسلم او صحابو هم د دروغژنو د پاره د مرګ دعا غوښتلے وه۔

دریم اعتراض:۔ په حدیث صحیح کښ راغلی دی چه لَا یَتَمَنَّ اَحَدُکُمُ الْمَوْتَ وَلَا یَدْعُ بِهٖ (هیڅوک دِے ستاسو نه تمنا د مرګ نه کوی په زړه کښ او نه دِے دُعا کوی د مرګ د پاره په ژبه سره) تو چه نبی صلی الله علیه وسلم د دے نه منع کوی نو بیا دوی ته څه رنګ امر کوی د هغې۔ دا اعتراضونه په دویمه توجیه باندے نه لازمیږی۔ او مباهلے ته ئې تمنا وئیلے ده نو ځکه چه په مباهله کښ هر یو فریق ارمان د طلب د بل د هلاکت کوی۔ لیکن یهودیانو د مباهلے کولو نه انکار کړے وُو لکه چه نصاراؤ هم کړے وُو۔ او د دے انکار د پاره ئې روستو دوه وجے ذکر کړیدی۔

أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۗ وَاللَّهُ عَلِيمٌ

هیچرے، په وجه د هغه عملونو چه مخکښې لیږلی دی لاسونو د دوی۔ او الله تعالیٰ پوهه دے

بِالظَّالِمِينَ ﴿٩٥﴾ وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ

په ظالمانو باندے۔ او خامخا او به مومے ته دوی لره ډیر حرص ناک د خلقو نه

۹۵ په دے کښې دلیل قطعی دے چه دوی طلب د موت په راتلونکی وخت کښې هیڅکله نه کوی۔ لَنْ۔ اَبَدًا دوا ړه الفاظ د تاکید د نفی د پاره دی په زمانه د مستقبل کښې۔ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيهِمْ مراد د دینه هغه اعمال د دوی دی چه اسباب د جهنم دی انکار کول د اخری نبی نه او تحریف کول د کتاب الله او نور ډیر معاصی چه دوی پیژندل۔ اَيْدِيهِمْ مراد د دے نه نفسونه د دوی دی لیکن اکثر کارونه انسان په لاسونو سره کوی نو ځکه هغے ته اکثر نسبت کیدیشی لکه سورة حج ۱۰ سورة انفال ۵۱ سورة شوری ۳۰۔ او یو قول دلته دا دے چه مراد د دے نه هغه تحریف دے چه دوی مخکښې لاسونو باندے لیکلے دے لکه چه په ۷۹ کښې تیر شویدی او په لفظ د بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيهِمْ کښې اشاره ده که چرے دوی یا بل څوک د دُنیا د مصیبتونو او مرضونو نه تنګ شی او ځان له مرګ اوغواړی۔ نو دا تمنا خو د وجے د دعوے د جنت نه ده اګرچه جائز نه ده۔ وَاللّٰهُ عَلِيمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ په دے کښې زجر دے او دلیل دے چه د غه دعوی کوونکی د جنت (په دروغه سره) دوی ظالمان دی دا رنګ دا جمله علت دے د نفی د لَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا د پاره یعنی دغه اخبار بالغیب د طرف د الله تعالیٰ نه دے او دا یقینی رشتینی دے ځکه چه الله تعالیٰ د دوی په حالت باندے عالم دے۔ فائده ۱: که سوال اوکړیشی چه څه ثبوت دے د دوی په تمنا نه کولو باندے؟ جواب دا دے چه تر اوسه پورے د هیڅ یو کتابی یا غیر کتابی نه دا سے نقل نیشته چه هغه سوال د مرګ کړے وی۔ بیا که سوال اوکړیشی چه تمنا خو د زړهٔ عمل دے کیدے شی چه دوی په زړه کښې تمنا کړے وی؟ جواب مخکښې ذکر شویدے چه دلته تمنا په معنی د سوال کولو دے په ژبے سره او دوی په ژبه سره دا سوال چرے نه دے کړے۔

فائده ۲: په دے کښې دلیل دے په صدق د نبی صلی الله علیه وسلم باندے چه هغه دا اخبار بالغیب کړے دے چه لَنْ يَّتَمَنَّوْهُ اَبَدًا او تر اوسه پورے دا خبر رشتینے دے نو معلومه شوه چه دا اخبار د طرف د الله تعالیٰ نه دے او

عَلٰى حَيٰوةٍۚ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْاۚ يَوَدُّ اَحَدُهُمْ

په ژوند دنيوي باندے او د هغه کسانو نه چه شرک ئے کړيدے۔ غواړي هريو د دوى

لَوْ يُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍۚ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ

چه عمر دے ورکړے شي زر کاله او نه دے دغه عمر بچ کوونکے دے هغه لره د

الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٦﴾

عذاب نه که عمر ورکړے شي۔ او الله تعالىٰ ليدونکے دے په هغه عملونو چه دوى ئے کوي۔

نبي صلى الله عليه وسلم نه په وحي سره معلوم شويدے نو معلومه شوه چه هغه حق نبي دے۔ فائده ع۳ دا سے ايت په سورة جمعه ۶ کښ هم راغلے دے ليکن په دواړوکښ فرق دے په دوه طريقو سره اوله طريقه دلته ئے اِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْاٰخِرَةُ وئيلے دے او هلته اِنْ زَعَمْتُمْ اَنَّكُمْ اَوْلِيَآءُ لِلّٰهِ مِنْ دُوْنِ النَّاسِ دے دويمه طريقه دلته وَلَنْ يَّتَمَنَّوْهُ دے او هلته وَلَا يَتَمَنَّوْنَهٗ ذکر دے نو وجه د اول فرق دا ده چه په دے سورت کښ په ۸۰ او ۱۱۱ کښ دعوىٰ د جنت ذکر ده نو د هغے د مناسبت د وجے په دے ايت کښ هم الدَّارُ الْاٰخِرَةُ (جنت) ذکر کړو او په سورة جمعه کښ چه هرکله د دوى تمثيل د حمار سره ذکر شو نو دوى او ئيل چه موږ اولياء الله يو نو موږ ته نسبت د حمار کولو زموږ توهين دے نو هلته ئے اولياء لِلّٰه ذکر کړو۔ وجه د دويم فرق دا ده چه دعوىٰ د جنت او چته دعوىٰ ده ځکه چه جنت حاصلول خو انتهائي درجه د سعادت ده او دعوىٰ د ولايت د دے نه کوزه ده ځکه چه ولايت خو ذريعه ده د پاره د جنت نو هرکله چه په دے سورت کښ ئے د دوى او چته دعوىٰ ذکر کړه نو د هغے ترديد ئے په ډير تاکيد سره اوکړو (لَنْ يَّتَمَنَّوْهُ) او هرکله چه سورة جمعه کښ ادنىٰ دعوىٰ ذکر وه نو د هغے په رد کښ صرف په نفي (لَا) سره اکتفاء اوکړه (والله اعلم)۔

۹۶ دا دويمه وجه د انکار د دوى ده۔ په دے کښ هم تاکيد دے په لام او نون تاکيد سره او خطاب دے نبي صلى الله عليه وسلم او هر هغه چاته چه اهل د خطاب وي۔ وَلَتَجِدَنَّهُمْ دلته وجد په معنىٰ د عَلِمَ دے متعدي دے دوه مفعولونه هُمْ اول مفعول دے او اَحْرَصَ دويم دے او احتمال دے چه په معنىٰ

دَ لقِي (موندلو) وی نو متعدی دے یو مفعول ته چه هُمْ دے او احرص حال دے
اَحْرَصَ النَّاسِ په دے کښ مِنْ پټ مراد دے او احرص اسم تفضیل دے دلالت
کوی په ډیر حرص کولو دَ دوی باندے۔ النَّاسِ کښ الف لام دَ یا رکه دَ جنس دی ځکه
هر انسان طبعًا ژوند دَ دُنیا باندے حرص کوی یا الف لام عهدی دی مراد په
دے کښ منکرین دَ بعث بعد الموت دی۔ عَلٰی حَیٰوةٍ، نکره دلالت کوی په یو
نوع دَ ژوند باندے چه هغه حیاةِ طویله دے (سراج)۔ وَمِنَ الَّذِیْنَ اَشْرَکُوْا،
داعطف دے په معنی دَ اَحْرَصَ النَّاسِ یعنی "واحرص من الذین اشرکوا" یا عطف دے
په احرص باندے په تقدیر دَ یل احرص سره او یل احتمال دا دے چه داخبر
دے مخکښ دَ مبتداء نه په تقدیر دَ قوم سره دَ دے نه روستو هغه په مبتداء وی
او مراد دَ الذین اشرکوا نه مجوسیان دی یا مشرکینِ عرب دی یا هر هغه کافر
چه بعث بعد الموت باندے عقیده نه لری۔ او زمخشری وئیلی دی چه مراد
دَ دے نه هغه یهودیان دی چه دَ عزیر ابن الله عقیده لری نو داعطف دَ خاص
دے په عام باندے۔ یَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْ یُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ، دا استیناف دے دَ پاره دَ بیان
دَ زیادتِ حرص دَ یهودیانو یا مبتداء ده په تقدیر دَ قوم سره۔ **سوال:** دَ اَلْفَ
سَنَةٍ (زرو کالو) تخصیص ئے ولے کړیدے؟ **جواب:** داعادت دَ مجوسیانو دے
په وخت دَ سلام کولو کښ چه هغوی وئیل ژوندے اوسے زر کاله۔ ستادِ زر نیروزه
او مهرجانه عمر وی او یهودیانو هم داعادت دَ مجوسیانو نه ایزده کړے وُو۔
یَوَدُّ په معنی دَ تمنا کولو دے او لَوْ یُعَمَّرُ کښ لَوْ دَ پاره دَ تمنا دے مصدریه دے
جزاء جواب نه غواړی۔ **سوال:** یهودیان دَ الَّذِیْنَ اَشْرَکُوْا نه ولے زیات
حرصناک دی؟ **جواب:** اَلَّذِیْنَ اَشْرَکُوْا دَ جزاء او سزاء عقیده نه لری نو
ژوند دَ دنیا ډیر اُوږد نه غواړی هغوی وائی چه دَ سزاء هیڅ ویره نیشته او یهودیان
خو دَ بعث بعد الموت قائل دی نو هغوی وائی چه دا ژوند دَ دنیا تیر شی نو
ورتللو سره زمونږ دَ پاره سزا ده نو دَ یرے دَ وجے نه هغوی دَ دنیا ژوند ډیر اُوږد
غواړی۔ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ الْعَذَابِ اَنْ یُّعَمَّرَ، هو ضمیر احد ته راجع دے
یا ضمیر شان دے او اَنْ یُّعَمَّرَ دَ دے ته بدل دے یا راجع دے تعمیر (عمر ورکولو)
ته چه مصدر دے په یُعَمَّرُ کښ، یعنی عمر ورکول که کم وی او که زیات وی
(بغیر دَ ایمان او عمل صالح) نه هیڅ فائده نه ورکوی او دَ عذاب نه یې کول نه شی
کولے۔ وَاللّٰهُ بَصِیْرٌ بِمَا یَعْمَلُوْنَ په دے کښ تهدید او زورنه ده چه دَ الله تعالیٰ نه

قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ
ته ورته اووایه، څوک چه وی دشمن د جبریل علیه السلام (هغه تباه دے) پس یقیناً دهٔ را اوړے دے دا قرآن
عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ
په زړه ستا باندے په حکم د الله تعالیٰ سره تصدیق کوونکے دے د هغه کتابونو چه مخکښ
يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۹۷﴾
د دهٔ نه دی او لار خودونکے دے او زیرے دے ایمان والو لره۔

او د هغه د عذاب نه څوک پټ نشی پاتے کیدلے۔ بصیر د الله تعالیٰ صفت دے په حقیقت باندے حمل دے بغیر د تشبیه او تمثیل د مخلوق نه او بغیر د تاویل او تحریف نه۔ او چا چه وئیلی دی چه بصیر په معنی د علیم دے نو دا قول ئے فاسد دے۔
۹۷ د دے آیت نه تر ۱۷۶ پورے د دے سورت دویمه حصه ده په اثبات د رسالت د رسول صلی الله علیه وسلم کښ په جوابا تو د نهٔ شبها تو سره چه تعلق لری د رسالت سره۔ مخکښ د یتی اسرائیلو هغه خباثات وو چه د عقیدے د توحید سره ئے تعلق لرلو او اوس ذکر د هغه خباثاتو د هغوی دے چه د انکار د رسالت سره متعلق دی۔ او په دے حصه کښ څلور بابونه دی اول باب د ۹۷ نه تر ۱۲۳ پورے دے په دے کښ جوابات دی د پنځه شبهاتو د بنی اسرائیلو او بیا پنځه زجرونه دی (چه هغه هم د دوی خباثات دی) بیا د دوه شبهاتو جوابونه دی بیا پنځه امور دی چه تعلق لری د رسالت سره۔ تفصیل ئے دا دے چه اوله شبهه په باره د جبرائیل علیه السلام کښ ده چه دے وحی راوړی په آخری نبی باندے او دے زمونږ دشمن دے نو مونږ ئے ځکه نه منو۔ دویمه شبهه په باره د سلیمان علیه السلام کښ چه دے خو ساحر وو نو ته ورته ولے نبی وایئے او که نبی وی نو بیا خو سحر جائز دے نو ته ولے سحر ته کفر وایئے۔ دریمه شبهه په باره د هاروت ماروت کښ چه دا ملائیک وو او خلقوته ئے سحر ښودلو نو معلومه شوه چه سحر جائز دے ته ولے هغے ته کفر وایئے۔ څلورمه شبهه چه لفظ راعنا جائز دے ځکه چه تر اوسه پورے صحابه کرامو دا لفظ استعمالولو نو د جائز لفظ نه ولے منع کوے۔ پنځمه شبهه کله یو حکم کوے او صباله د هغے نه خلاف بل حکم کوے نو ته په خپله خبره کښ متردد ئے

نو نبی ته یئے دا رنګ د الله تعالیٰ په کلام کښ داسے تردّد خو نشی راتلے نو معلومه شوه
چه ستا کلام د طرف د الله تعالیٰ نه ده دے - بیا پنځه زجرونه دی په پنځه کاروتو
او اقوالو د هغوی باندے - اول زجر په اعتراضونو کولو په رسول باندے - دویم
خلق د دین نه اړول په سبب د حسد سره - دریم ځان د پاره د جنت دعویٰ کول
څلورم د بویل د کتاب (حق) نه انکار کول - پنځم د مساجدو د الله تعالیٰ نه توحید
والا منع کول - بیا شپږ مه شُبهه ده په باره د نسبت د ولد کښ الله تعالیٰ ته - بیا اوومه
شُبهه ځان د پاره د وحی او د نبوت خواهش کول - بیا پنځه امور د رسالت سره
متعلق دی اول صدق د رسول صلی الله علیه وسلم او هغه ته تسلی ورکول
دویم اتحاد کول ممکن نه دے د یهودو او نصاریٰ سره - دریم دلیل نقلی کتابیانو
مؤمنانو نه - څلورم ترغیب - پنځم تخویف اخروی - د هرے شبهے ذکر او د هغے جواب او
د زجرونو تفصیل به په تفسیر کښ راځی -
ربط د دے ایت ۹۷ دا دے چه مخکښ ذکر شو چه دوی ماسوا د تورات نه بل کتاب نه منی د تعصب او
د ضد د وجے نه نو دوی اوئیل چه تا ! مونږ خو د دے وجے نه قرآن نه منو
چه دا زمونږ دشمن راوړے دے چه جبرائیل دے نو د هغے جواب کوی -
دا رنګ بما قدمت ایدیهم کښ د دوی ناکاره اعمالو ته اشاره وه نو اوس
د دوی د بدو عملونو تفصیل کوی چه اول په هغے کښ د جبرائیل سره دشمنی
کول او د هغه د وجے نه د قرآن او د دے رسول نه انکار کول دی - نو په دے ایت
کښ جواب دے د دوی د اولے شبهے چه هغه په باره د جبرائیل علیه السلام کښ
وه تفصیل یئے داسے دے چه ابن جریر او ابن کثیر وئیلی دی چه اجماع د
مفسرینو ده چه دا په رد د یهودیانو کښ نازل شوے دے چه هغوی به رسول
الله صلی الله علیه وسلم ته وئیل چه تا ته وحی جبرائیل راوړی هغه ستا
دوست دے لیکن زمونږ دشمن دے که میکائیل دا وحی راوړے نو مونږ به
ایمان راوړے وے - لیکن په سبب د دے قول کښ اختلاف دے بعضِ مفسرینو
د دے سبب مناظره د یهودو او د نبی صلی الله علیه وسلم ګرځولے ده او هغه
روایات ابن کثیر راجمع کړیدی، په بعضو کښ د یهودیانو د درے سوالاتو ذکر
دے او په بعضو کښ د څلورو او بعضو کښ د پنځو سوالاتو ذکر دے او کوم
روایت کښ چه درے سوالات ذکر دی هغه بخاری راوړے دے په هغے کښ
واقعه د ایمان راوړلو د عبدالله بن سلام رضی الله عنه ده په هغے کښ دا دی

چه عبدالله بن سلام اوئیل چه جبرائیل خو دشمن د یهودیانو دے نو نبی صلی الله
علیه وسلم دا ایت اولوستلو (نو معلومه شوه چه د هغے نه مخکښ دا ایت نازل
شوے وؤ نو دا سبب د نزول نه دے) او په کومو روایاتو کښ چه ذکر د څلورو او
پنځو سوالاتو دے نو په هغے کښ تصریح ده چه دا ایات په دغه وخت کښ نازل
شویدی د دے په سندونو کښ اګرچه ضعف دے لیکن د یو بل تقویت کوی۔
بعض مفسرینو د دے ایت سبب نزول مناظره د عمر رضی الله عنه او د یهودیانو
ذکر کړیده خو د هغه روایاتو په سند کښ انقطاع ده په مینځ د شعبی او د عمر
رضی الله عنه کښ او په مینځ د قتاده او د عمر رضی الله عنه کښ او په دے ټولو
روایاتو کښ مجموعی طور سره ذکر ده چه دوی وئیلی وؤ چه جبرائیل علیه
السلام محکه زمونږ دشمن دے چه هغه داسے مَلك دے چه د سختئ او د قتل حکمونه
راوړی۔ او جنګونه او عذابونه راوړی۔ هغه مَلك د تنګسیا راوستلو دے
او مَلك د قحط دے۔ او امام رازی وئیلی دی چه غوره دا ده چه سبب د دشمنئ
د دوی دا دے چه هرکله هغه ایاتونه د سورة نحل ۱۰۲ او د سورة شعراء ۱۹۳
دوی اوریدلے وؤ چه په هغے کښ نسبت د انزالِ قرآن دے روح القدس او
روح الامین ته او یهودیانو اقرار کوؤ چه دا صفتونه خو د جبرائیل دی نو دوی
اعتراض اوکړو چه دے زمونږ دشمن دے د دے وجے نه چه حق د وحی خو په
بنی اسرائیلو کښ دے او جبرائیل اخری وحی په بنی اسماعیلو کښ راوړے ده
او په دے توجیه سره د دے ایت ربط هم قُلْ إِنْ كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ الخ
سره دا دے لکه چه دوی د ځان د پاره جنت خاص کوؤ نو دا رنګ دوی د ځان
د پاره وحی د نبوت هم خاص کوله نو په روستنئ خبرے سره دوی د جبرائیل
علیه السلام د دُشمنئ اظهار کړیدے (نو د دے شبهے مقصد دا دے چه د
قرآن کریم کذب او بطلان ثابت شی نو د دے نبی د نبوت دعوٰی به هم
باطله شی۔ د دے مثال دا دے چه یو حدیث صحیح سند والا وی لیکن باطل
پرست انسان د هغے په سند باندے (غلط) اعتراض اوکړی۔ او د دے طریقه
اوس په شیعه ګانو کښ ده چه هغوی په سند د دینِ اسلام باندے بد وائی
چه هغه صحابه کرام دی یا وائی چه جبرائیل خطا شویدے په وحی کښے د
علی رضی الله عنه په ځائے په محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے وحی
راوړے ده۔ دغه شیعه ګانو ته غرابیه وئیلے شی) نو د دے شبهے جواب اوشو

په دے قول سره چه قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ حاصل د جواب په راتلونکو اياتونو کښ دا دے چه جبرائيل دا وحی په اذن د الله تعالیٰ سره راوړے ده او په وحی (قرآن) کښ ئے تصديق او موافقت دے د مخکنو کتابونو سره او په دے کښ هدايت او بشارت دے او دشمنی د جبرائيل عليه السلام سبب دے د دُشمنئ د الله تعالیٰ او د ټولو رسولانو او ملائيکو سره. او سبب دے د کفر. او دا وحی ايات بينات دی او په دے باندے کفر کول کمالِ فسق دے او دا اعتراض کوونکی لوظونه ماتوونکی دی او بے ايمانه دی او د دے رسول په راتللو سره دوی خپل کتاب شاته غورزولے دے او د اميانو پشان شويدی او د سحر او منتر تابعداری ئے شروع کړے ده (په دے ټولو اياتونو کښ د دوی جوابات او خباثات ذکر دی. لِجِبْرِيْلَ صاحب اللباب په دے لفظ کښ ديارلس قراءت ذکر کړی دی، امام بخاری تفسير کښ ذکر کړيدی چه جبر او ميك او اسر دلالت کوی په عبديت باندے او ايل په معنیٰ د الله دے او قرطبی وئيلی دی چه جبر په معنیٰ د عبد او ميك په معنیٰ د عبيد دے. او بعضِ علماؤ وئيلی دی چه جبر او ميك صفات د الله تعالیٰ دی لکه رحمٰن رحيم او ايل په معنیٰ د عبد دے او دا عجمی (عبرانی) ژبه ده چه په دیکښ مضاف اليه مخکښ راوړلے کيږی په مضاف باندے. ابن خلدون هم داسے وئيلی دی (والله اعلم).

فَإِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ **سوال:**- دلته خو د شرط او جزاء مناسبت نيشته؟.

**جواب:**- جزاء په اصل کښ پټه ده او دا دلالت کوی په هغه جزاء پټه باندے او په هغے کښ ډير اقوال دی (۱) د هغه د دُشمنئ هيڅ وجه د جواز نيشته (۲) مرد شی بخپله غصه کښ (۳) د غاړے نه ئے کړئ د انصاف اُويسنله (۴) کفر ئے اوکړو په ما انزل الله باندے (۵) هغه زما دشمن دے او زه د هغه دشمن يم (داسے الفاظ د جزاء د پاره پټ دی).

فَإِنَّهٗ نَزَّلَهٗ مرجع ضمير د إِنَّهٗ او فاعل د نزول جبرائيل دے. عَلٰى قَلْبِكَ عَلٰى دلالت کوی په استعلاء يعنی قرآن عالی دے ستا په زړه باندے چه د بره طرف نه راغی او احاطه ئے کړيده ستا په زړه باندے او قَلْبِكَ کښ اشاره ده محل د علم او د عقل ته يعنی دا انزال صِرف په ژبه باندے نه دے بلکه په زړه باندے دے او کوم علم چه په زړه کښ وی نو هغه پوخ علم وی. دا رنګ اشاره ده چه محل د وحی د انبياء عليهم السلام زړهٔ وی او د هغوی سترګے اوده کيږی ليکن زړهٔ ئے

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ

څوک چه وی دشمن دَ الله تعالیٰ او دَ ملائکو دَ هغه او دَ رسولانو دَ هغه

وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۹۸﴾

او دَ جبرائیل او دَ میکائیل (علیهما السلام) نو یقیناً الله تعالیٰ دشمن دے دَ کافرانو۔

نه اُوده کیږی او دَ دے وجے نه دَ هغو دَ خوب یا ویدیدل هم وحی ده (دا په صحیح حدیث سره ثابت دی)۔ او دا رنګ په سورة شعراء ۱۹۴ کښ شته دے۔ بِاِذْنِ اللّٰهِ دَ اذن معانی ډیرے دی (روستو به انشاء الله ذکر کیږی) لیکن دلته په معنیٰ دَ امر سره دے په دلیل دَ سورة مریم ۶۴ سره او احتمال شته چه په معنی دَ عِلْمِهٖ او اِخْتِيَارِهٖ او تَسْهِيْلِهٖ سره شی۔ نو دا اصل جواب دے چه جبرائیل که په وحی کښ سختی او عذابونه راوړی او که خیر راوړی لیکن په امر دَ الله تعالیٰ سره راوړی دَ ځان نه په کښ هیڅ دخل نه کوی نو دا خو سبب دَ دُشمنئ دَ هغه سره نشی کیدلے۔ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ، حال دے دَ مفعول دَ نزله یا دَ فاعل دَ هغے نه او په دے کښ دفع دَ یو وهم ده هغه دا ده چه کله خو راویان دَ سند معتمد وی لیکن په متن (اصل) دَ حدیث کښ نقصان وی دَ دے وجے نه محدثینو وئیلی دی چه صحت دَ سند مستلزم نه دے صحت دَ متن لره نو کیدے شی چه په قرآن کښ څه نقصانات وی نو دَ هغے جواب او شو چه قرآن کریم کښ هیڅ عیب نیشته او دَ هغے درے درجے دی۔ اول مُصَدِّقًا ۱ه یعنی مخکښ کتابونو کښ دَ دے قرآن دَ راتللو ذکر شوید ے نو دَ دے نازلیدل تصدیق دَ هغه خبر دے چه مخکښ کتابونو کښ ورکړے شویدے دا رنګ مضمون دَ دے قرآن موافق دے دَ مضامینو دَ مخکنو کتابونو سره نو دا دلیل دے دَ کمالِ صدق دَ قرآن کریم۔ دویمه وجه هُدًى دا مصدر په معنی دَ هادی سره دے مصدر ئے دَ مبالغے دَ پاره راوړے دے۔ یعنی دا قرآن پوره هدایت دے نقصان دَ خطایئ یا دَ ګمراهئ خبرے او بے دلیله پکښ نیشته۔ دریمه وجه وَبُشْرٰى دا مصدر هم په معنی دَ فاعل دے یعنی مبشرًا۔ او مراد دَ دے دا دے چه دَ دے په اوریدلو سره مؤمن هر وخت په زړه کښ خوشحالی او اطمینان محسوس کوی او په ظاهری مخ کښ ئے هم آثار دَ خوشحالئ ښکاریږی په مؤمن باندے هیڅ قسم بوج کیږی نه۔ یعنی صِرف اَیاتو نه دَ بشارت مراد نه دی۔ لِلْمُؤْمِنِيْنَ دا متعلق دے دَ هدًى او بشرٰى دواړو سره او تخصیص دَ مؤمنین ئے

د دے وجے نه کړیدے چه د قرآن نه فائده د هدایت او بشارت دوی نه حاصلیږي.
۹۸ په دے کښ بل رد دے په هغوی باندے. یعنی دشمنی د جبرائیل سره سبب د دُشمنئ د الله او د ټولو ملائیکو او د ټولو رسولانو دے او دا علامت د کفر دے.
مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِلّٰهِ دشمن د الله تعالٰی هر مخالفت او نافرمانی کوؤنکے د هغه دے.
او په قرآن کښ ذکر دے چه هر کافر عدو الله دے لکه په سورة توبه ۱۱۴ کښ او دا رنګ منع کوؤنکے د قرآن نه لکه په سورة حم سجده ۲۸ کښ او فرعون لکه په سورة طٰهٰ ۳۹ کښ. وَمَلٰٓئِكَتِهٖ دشمنی د ملائیکو سره د هغوی نه انکار کول دی یا د هغوی دا سے صفات ذکر کول چه قرآن او سنت کښ وارد نه وی یا ملائیک د الله تعالٰی بنات (لونړه) ګنړل یا په دے وجه سره دشمنی کول چه هغوی ولے په آخری نبی صلی الله علیه وسلم باندے وحی راوړے ده. وَرُسُلِهٖ هر مخالفت کوؤنکے د رسول نه او د هغه دا سے صفتونه کول چه د هغه د شان نه خلاف وی دا د رسول سره دشمنی کول دی او قرآن کښ ذکر دی چه شیاطین انسیه او جنیه دشمنان د پیغمبرانو دی لکه چه په سورة انعام ۱۱۳ کښ دی او هر مجرم د هغه دشمن دے لکه په سورة فرقان ۳۱ کښ.
وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ **سوال**:- دا دواړه خو په مَلٰٓئِكَتِهٖ کښ داخل وو جدا ئے ولے ذکر کړل؟ **جواب**:- په ډیرو وجو سره دے اوله وجه دا ده چه بحث د یهودو سره په باره د دشمنئ د جبرائیل او دوستانه د میکائیل کښ وو. دویمه وجه په دے کښ اشاره ده د دے دواړو شرافت او فضیلت ته په نورو ملائیکو باندے. دریمه وجه دا ده چه جبرائیل روح الله او امین د الله تعالٰی دے په وحی باندے او میکائیل امین دے په خزانو د فتح او د رحمت باندے (ابن قیم).
**فائده**:- هر کله چه دشمنی د رسولانو سره په سبب د نزول د وحی سره ده او نزول د وحی په سبب د نزول د ملائیکو سره دے او نزول د ملائیکو په امر د الله تعالٰی سره دے نو اول ئے ذکر د الله تعالٰی او کړو بیا ذکر د ملائیکو بیا ذکر د رسولانو. او واو په دے کښ په معنٰی د او سره دے ځکه چه دشمنی د یو د دوی ذکر کړے شوؤنه هم کفر دے. فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ، دا جزاء ده د مَنْ او اسم ظاهر (کافرین) ئے په ځائے د ضمیر کښ ایښودلے دے. یا جزاء پټه ده (فَاِنَّهٗ كَافِرٌ). **تنبیه**:- عداوت ئے په قرآن کښ په څوارلس مصداقاتو سره ذکر کړے دے. اول مطلق دشمنی په مینځ د انسانانو او شیطان کښ لکه په

وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ۚ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ

او په تحقیق سره نازل کړي دي مونږ تاته ایتونه ښکاره (مضمون والا) او نه کوي کفر په هغې سره

اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ ﴿۹۹﴾ اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ

مګر نافرمان خلق - آیا او هر وخت چه لوظ اوکړي دوی لوظ ، نو مات کړي هغه

سورة بقره ۳۶ کښ - دویم عداوت د ملائیکو لکه په دے ایت کښ - دریم عداوت د الله تعالیٰ د کافرانو سره لکه په دے ایت کښ - څلورم عداوت د شیطان د انسان سره لکه په سورة بقره ۱۶۸ کښ - پنځم عداوت د کتابیانو د مؤمنانو سره لکه په سورة نساء ۴۵ کښ - شپږم عداوت د کافر حربي سره لکه په سورة نساء ۹۲ کښ - اووم عداوت د انبیاؤ سره لکه په سورة انعام ۱۱۳ کښ - اتم عداوت د کافر د الله تعالیٰ سره لکه په سورة توبه ۱۱۴ کښ - نهم فرعون دشمن د الله تعالیٰ دے لکه په سورة طٰهٰ ۳۹ کښ - لسم هر نبی دشمن د کافر دے لکه په سورة قصص ۸ کښ - یوولسم اٰلِهَۂ باطله دشمنان دی د مشرکانو په ورځ د قیامت لکه په سورة احقاف ۶ کښ - دولسم عداوتِ اخرویه د دوستانو په ورځ د اٰخرت کښ لکه په سورة زخرف ۶۷ کښ - دیارلسم هر منافق دشمن د مؤمن دے لکه په سورة منافقون ۴ کښ - څوارلسم بعضِ اولاد او بیبیانے دشمنان دی لکه په سورة تغابن ۱۴ کښ -

۹۹ دا هم د تیر شوی جواب سره تعلق لري - یعني د جبرائیل په واسطه اٰیاتِ بینات نازل شوی دی نو چه اٰیات بینات نه کوري او صرف په عذر د دُشمنۍ د جبرائیل سره د قرآن نه انکار کوی نو دا خلق ډیر سرکشان دی -

اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ، مراد د دیته اٰیاتونه د قرآن کریم دی چه واضح دی په ذکر د اصولو د دین کښ او په احکامو د حرام او حلال کښ او په حدودو کښ - او داخل دی په دے کښ اٰیات د تحدی او د مباهلے او نور معجزات د اٰخری نبی صلی الله علیه وسلم

وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ، حسن بصری وئیلی دی چه فِسق چه مستعمل شی په هره نوعه د ګناهونو کښ نو د هغې نوعے لوئے قسم په کښ مراد وی یعني هر کله چه په معاصی د مسلمانانو کښ فِسق ذکر شی نو مراد د دے نه ګناهونه کبیره وی او چه په کفر کښ ذکر شی نو مراد د دے نه اٰخری درجه د کفر ده چه تجاوز ئے کړے وی په حالت د کفر کښ د حد نه یعني ضدی او عنادی او سرکشی کوونکے په کفر کښ نو دا سے شخص د طاعت د الله تعالیٰ او رسول صلی الله علیه وسلم نه بهر وتلے دے -

فَرِيقٌ مِّنْهُمْ ۚ بَلْ أَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠٠﴾

يوه ډله دَ دوى نه - بلكه ډير دَ دوى نه ايمان نه لرى -

وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِّنْ عِندِ اللَّهِ

او هر كله چه راغے دوى ته رسول دَ طرف دَ الله تعالى نه

مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيقٌ

تصديق كوونكے دے دَ هغه كتابونو چه دَ دوى سره دى، نو اوغورځوو يوے ډلے

تنا داهم متعلق دے دَ عداوتِ جبرائيل سره يعنى څوك چه دُشمنى دَ جبرائيل كوى نو سره دَ ډيرشوى خبرتونو نه دوى عهدماتوونكى دى او بے ايمانه هم دى نو داهم زجردے دغه منكرينو ته۔

اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوا، داهمزه استفهامى دَپاره دَ زجر دے كله داخليږى په واؤ باندے لكه په دے ايت كښ او كله په فا باندے لكه په سورة مائده نت كښ او كله په ثُمَّ باندے لكه په سورة يونس نك كښ. زمخشرى وئيلى دى چه واؤ دَ عطف دے دلالت كوى چه معطوف ئے پټ دے يعنى اَيَا دوى كفر كوى په اياتِ بينات باندے او لوظونه هم ماتوى او مراد دَ عَهَدًا الله هر هغه حكم دَ الله تعالىٰ دے چه په تورات كښ موجود وو او دوى دَ هغه عهد نه خلاف كړيدے لكه چه په دے سورت ۳ ۴۳ ۶۹ ۸۳ ۸۴ كښ تير شول او تورو سورتونو كښ هم ذكر كيږى۔ نَبَذَهٗ، نبذ په اصل كښ غورزول دَ يو څيزوى په طريقه دَ نفرت سره او كله كله په مطلق پريښودلو كښ مستعمليږى۔

فَرِيقٌ مِّنْهُمْ، اشاره ده چه ټولو عهد نه دے مات كړے بلكه بعضو په هغے عهد باندے وفا كړے ده۔ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ په دے كښ رد دے دَ يو وهم چه دَ فريق نه مراد لږ كسان دى؟ نو په دے سره ئے وهم دفع كړو چه دغه فريق ډير كسان دى۔ او لَا يُؤْمِنُونَ نه مراد ترقى ده په نبذ كښ يعنى بے لوظى دَ دوى په مرتبه دَ عدم ايمان كښ ده۔ يا په دے كښ اشاره ده دوه قسمه خلقونه اول هغه دى چه عهد ئے منلے دے خو روستو ئے هغه مات كړيدے دا يو فريق دے او بل قسم هغه دى چه دَ سره عهد هم نه منى او دا خو اكثر دى چه انكار كوى دَ عهد نه په ضد او عناد او په تحريف كولو سره په عهودو دَ تورات كښ۔

مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ اللّٰهِ وَرَآءَ

هغه کسانو نه چه ورکړے شوے ورته کتاب (تورات) کتاب د الله تعالیٰ روستو د

ظُهُوْرِهِمْ كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾ وَاتَّبَعُوْا

د شاګانو خپلو نه ګویا که دوی نه پوهیږی ۔ او تابع شول دوی

مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ

د هغه څه چه لوستل به شیطانانو (جنی او انسی) په زمانه د بادشاهئ د سلیمان علیه السلام کښ

وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا

او کفر نه وو کړے سلیمان علیه السلام لیکن شیطانانو کفر کوو

يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ ۗ وَمَآ اُنْزِلَ

چه خودلو ئے خلقو ته جادو او هغه څه چه نازل کړے شوے وو

عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ؕ

په دوه ملائکو باندے په بابل ښار کښ چه هاروت او ماروت وو ۔

۱۰۱ په دے کښ هم زجر دے او عطف دے په مخکښ باندے یعنی دشمنئ د جبرائیل دوی غټ کفر نه اُو رسول چه هغه کفر دے په آخری رسول باندے او غورځول د کتاب الله دی ۔ ربط ، مخکښ آیت کښ نبذ د عهود الٰهیه ذکر شو نو په دے آیت کښ نبذ د هغه کتاب ذکر کوی چه مشتمل وو په دغه عهودو باندے ۔ رَسُوْلٌ تنکیر د پاره د تعظیم دے ۔ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ، په دے کښ هم تعظیم د رسول دے لیکن مخکښ په رَسُوْلٌ کښ تفخیم ذاتی وو او په دے کښ تفخیم اضافی دے ۔ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ په دے کښ تفخیم علمی دے ۔ نَبَذَ فَرِيْقٌ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ، فریق کښ اشاره ده چه بعض اهل کتاب و ایمان راوړے وو لکه عبد الله بن سلام رضی الله عنه ۔ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ سیوطی وئیلی دی چه دا لفظ په مقابل د قباحت کښ اکثر ذکر کیږی او آتینا هم الکتاب په مقام د مدح کښ ذکر کیږی ۔ د اُوْتُوا الْكِتٰبَ نه د هغوی علماء مدرسین مراد دی یا هغه ټول چه دعوی کوی د تمسک په کتاب باندے که علم لری او که نه لری ۔

وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ

او خو دوئ نه کوله دے دواړو هیڅ یو تن ته تر دے پورے چه اوبه یئ وئیل (ربه طور دَ نصیحت) چه یقینًا مونږ

فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ۖ فَيَتَعَلَّمُوْنَ مِنْهُمَا مَا

ستاسو دَ پاره امتحان یو، نو کفر مه کوه (په جادو کولو سره)۔ پس ایزده کوو به هغوی دَ دے دواړو ملائکو نه هغه څه

يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ۖ وَمَا هُمْ

چه جدائی به یئ راوستله په هغے سره په مینځ دَ خاوند او دَ ښځے دَ هغه کښ۔ او نه وو دوی

بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ۖ

نقصان (ضرر) ورکوونکی په هغے سره هیچا ته مګر په حکم دَ الله تعالی سره۔

وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ۖ

او ایزده کوو به یئ هغه څه چه نقصان به یئ ورکوو دوئته او نفع به یئ نه ورکوله۔

كِتٰبَ اللّٰهِ په دے کښ دَ مفسرینو دوه قولونه دی۔ اول قول، چه مراد دَ دے نه قرآن دے۔ دویم قول دا دے چه مراد دَ دے نه تورات دے او دا غوره قول دے په دوه وجوهو سره اوله وجه دا ده چه لفظ دَ نبذ په هغے ځائے کښ ذکر کیږی چه یو څیز دَ مخکښ نه ورسره وی او بیا یئ او غورځوی۔ دویمه وجه فَرِيْقٌ دلالت کوی په انکار دَ بعض باندے ځکه چه دَ قرآن نه خو ټولو انکار نه وو کړے۔ سوال:۔ تورات خو دوی غورزولے نه دے بلکه دَ هغے درس وتدریس کوی؟۔ جواب ۱ هر کله چه قرآن په ایمان نیا تو کښ موافق وو دَ تورات سره نو غورځول دَ قرآن غورځول دَ تورات لره مستلزم شول۔ جواب ۲ امام شعبی وئیلی دی چه کتاب خو دوی لولی لیکن عمل ورباندے نه کوی او سفیان بن عیینه وئیلی دی اګرچه دوی خپل کتاب په ریښمو کښ انغښتلے دے او په سرو زرو سپینو زرو باندے خائسته کړے دے لیکن دَ هغے حلال حلال نه ګڼړی او حرام یئ حرام نه ګڼړی نو دا نبذ دے (قرطبی ابوحیان)۔ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ دا کنایه ده دَ اعراض کولو نه تشبیه ده دَ هغه چا سره چه یو څیز لره شا طرف ته او غورځوی نو هغے ته کتلے نه شی مګر چه ستن یئ کوږ شی او په دے کښ اشاره ده چه دَ کتاب دَ الله تعالی نه اعراض کول

وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِى الْاٰخِرَةِ

او په تحقیق سره دوی پوهیدل چه چا واخستو جادو لره نو نیشته د ده لره په اخرت کښ

مِنْ خَلَاقٍ ۟ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ط

هیڅ حصه - او خامخا بد دے هغه څه چه دوی خرڅ کړیدی په هغے سره ځانونه خپل

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٢﴾ وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا

که دوی پوهیدے (نو دا کار به ئے نه کولے). او که چرے دوی ایمان راوړے وے

سبب د پاره د تنزل او شا ته راتللو دے - كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ په دے کښ تشبیه د دغه اهل علمو ده کړے علمه امیا تو سره او مفعول د دے پټ دے یعنی علم نه لري چه دا کتاب الله دے یا دا چه دا نبی صادق دے یا دا چه په دے کتاب باندے عمل کول فرض دی -

۱۰۲ په دے ایت کښ بل زجر دے او ذکر د بل خیانت د دوی دے روستو د غورځولو د کتاب الله نه او په دے کښ جواب دے د دوی د دویم شبهے په رسالت د رسول الله صلی الله علیه وسلم باندے چه هغه په باره د سلیمان علیه السلام کښ وه یعنی دوی وئیل چه سلیمان علیه السلام ساحر وُو بادشاهی د هغه په سحر سره چلیده او ته هغه ته نبی وائے او په انبیاؤ کښ ئے شمارے نو د دے نه خو یو دا خبره معلومه شوه چه ته په خپله حق نبی نه ئے ځکه چه ساحر ته نبی وائے او دویمه دا معلومه شوه چه ته سحر ته کفر وائے او حال دا دے چه دا خو د سلیمان علیه السلام عمل وُو نو د نبی علم او عمل نه کفر وائے د دے وجے ته مونږ ستا نبوت نه منو - او د دے شبهے سبب دا وُو چه د سلیمان علیه السلام په وخت کښ علم د سحر ډیر خور شو انسی او جنی شیطانانو د هغے عملیات شروع کړل هرکله چه سلیمان علیه السلام ته معلومه شوه نو هغه شیاطین قید او پابند کړل او کتابونه د سحر ئے ټول ضبط کړل او د خپل تخت د لاندے ئے دفن کړل نو هغه وخت چرچه د سحر بند ه شوله لیکن هرکله چه هغه وفات شو نو شیاطینو هغه کتابونه راوویستل او په هغے سره ئے خلقو ته دهوکه ورکړه چه د سلیمان علیه السلام بادشاهی په سحر باندے چلیده او د ثبوت د پاره ئے خلقو ته اووئیل چه

دَ هغه دَ تخت دَلاندې کتابونه دَ سحر پراته وُو چه هغه دوی راُویستل نو بیا دَ سحر چرچه په یهودیانو کښې شروع شوله او تورات ئې پریښودلو حاصل دَ جواب دادې چه داخو تاسو په سلیمان علیه السلام افتراء کړیده هغه سحر نه وُو کړې بلکه په سحر باندې ئې پابندی لګولې وه او کتابونه دَ سحر ئې بند کړی وُو یعنی هغه حق نبی او بادشاه وُو بادشاهی دَ هغه معجزانه وه او هغه دَ سحر نه پاک وُو ځکه چه سحر کفر دې او انبیاء علیهم السلام دَ هر ګناه نه او خاص طور دَ کفر نه خو پوره پاک دی۔ او قاسمی په تفسیر کښې وئیلی دی چه مخکنو یهودیانو (شیطانانو) مشهوره کړې وه چه سلیمان علیه السلام په آخری عمر کښې مرتد شوې وُو او دَ بتانو عبادت ئې کولو او دَ هغې دَپاره ئې عبادت ځائې هونه جوړ کړی وُو دا دَ تورات (محرّف) په یولسم فصل دَ سفر الملوك دریم باب کښې دی نو هر کله چه عاقلانو دَ اهلِ کتابو روستنو دا افتراء اولیده نو دوی اوئیل چه زمونږ په کتابونو مقدسو کښې هره خبره الهامی نه ده بلکه بعضِ خبرې په دې کښې په طریقه دَ اهل تاریخ لیکلې شویدی (اظهار الحق دَ شیخ رحمت الله) زهٔ وائیم:۔ چه دَ یهودیانو داوسوسه دې اُمت کښې هم راغلی دی کَ دې اُمت جادوګرو تعوینګرو او کوډو والو هم کتاب چهاپ کړیدې چه په هغې کښې ډیر الفاظ شرکیه کفریه او مهمل دی او دَ هغې نوم ئې ایښودلې دَ نقشِ سلیمانی یعنی دوی هم په سلیمان علیه السلام دَ شرک او سحر تُهمت تړی۔

وَاتَّبَعُوْا ضمیر هغه کسانو ته راجع دې چه فاعل دَ نبذ وُو په تیر شوی آیت کښې۔ مراد دَ دینه تابعداری کول دی په درس وتدریس او عمل کولو سره په سحر باندې او طبری وئیلی دی چه اتباع نه مراد فضیلت ورکول دی ځکه چه څوک دَ یو څیز اتباع کوی نو هغې له غوره والې ورکوی۔ مَاتَتْلُوا الشَّیٰطِیْنُ دا دَ تلاوت نه دې یعنی لوستلو په شیطانانو۔ یا دَ تِلُوّ نه دې یعنی شیطانانو دَ هغې تابعداری کوله۔ یا په معنی دَ تَکْذِیْبُ دې ځکه چه کَ دې نه روستو عَلٰی راغلې دې یعنی دروغ وئیل دی دَ شیطانانو (راغب)۔ الشَّیٰطِیْنُ په دې کښې دَ مفسرینو دوه اقوال دی اول قول دادې چه مراد شیطانان انسی او جنی دواړه دی۔ دویم قول دادې چه کَ دې نه مراد صِرف اِنسی شیطانان دی ځکه چه لوستل او تعلیم ورکول انسانانو ته پیریان نشی کولې عادةً بلکه انسانان کورنئ کښې یو بل ته تعلیم او تعلُّم کوی دا قول قاسمی غوره کړیدې او ابن کثیر په روایت دَ عوفی سره

وَمَا تَتْلُوا نه مراد الات دَ هغه تکورا ولو بے او هر هغه څیز چه ذکر دَ الله تعالیٰ ته متع
کوی مراد کړیدی او په تورو روایاتو کښ مراد دَ دے نه سحر دے ځکه روستو
جملے دَ دے تائید کوی۔ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ، عَلٰى پخپله معنی دے او تَتْلُوا په معنی دَ
دروغو جوړولو دے یعنی دروغ وئیل دی په بادشاهئ دَ سلیمان علیه السلام
(چه دا په سحر سره چلیږی) یا مضاف پټ دے عَلٰى عَهْدِ مُلْكِ سُلَيْمٰنَ په
زمانه دَ بادشاهئ دَ سلیمان علیه السلام کښ۔ یا عَلٰى په معنی دَ فی سره دے ابن کثیر
اول توجیه غوره کړیده۔ یا عَلٰى په معنی دَ مقابلے سره او دَ مُلْك نه مراد شرع
او نبوت دے یعنی دوی په سحر سره دَ هغه دَ شرعے او نبوت مقابله کوله (قرطبی)
او ابن کثیر دَ حسن بصری رحمه الله نه روایت راوړے دے چه سحر دَ دغه زمانے نه مخکښ
هم موجود وو لکه په زمانه دَ موسیٰ علیه السلام کښ او په زمانه دَ صالح علیه السلام
کښ (سورة شعراء ۱۵۳) او په زمانه دَ شعیب علیه السلام کښ (سورة شعراء ۱۸۵)۔
وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ دا تصریح ده په جواب سره او صفائی بیانول دی دَ سلیمان علیه السلام
دَ ټولو کفریاتو نه او خاص طور دَ سحر نه۔ **سوال**:۔ دوی خو نسبت دَ سحر هغه ته
کړے وو نسبت دَ کفر ئے نه وو کړے؟ **جواب ۱**:۔ دغه قسم سحر کفر وو دَ دے
وجے په هغے باندے اطلاق دَ کفر ئے اوکړو۔ **جواب ۲**:۔ مخکښ تیر شول چه دوی
سلیمان علیه السلام ته سره دَ سحر نه دَ کفر او شرك نسبت هم کړے وو دَ دے
وجے نه عام لفظ (کفر) ئے تری نه نفی کړو۔ وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا، په استعمال دَ
سحر او تدوین او ترتیب دَ هغے سره شیطانانو کفر کوو۔ يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ
ضمیر راجع دے شیاطین ته او دا جمله حالیه ده یا دویم خبر دے دَ پاره دَ لٰكِنَّ
یا استیناف دے۔ په دے کښ مقصد بیان دَ کفر دَ هغوی دے چه تعلیم دَ سحر
دے دَ پاره دَ گمراه کولو دَ خلقو۔

**مباحث په باره دَ مسئلے دَ سحر کښ**:۔ اول بحث په باره دَ معنی دَ سحر
کښ لغةً او عرفاً۔ دویم بحث په باره دَ اقسامو دَ سحر کښ۔ دریم بحث په باره
دَ احکامو دَ سحر کښ۔ څلورم بحث په باره دَ حقیقت دَ سحر او دَ تاثیر دَ هغے کښ۔

**اول بحث**:۔ ماده دَ سحر (س ح ر) په قرآن کښ دریے شپیته کرته ذکر ده په
شپږو وجو سره۔ اول په معنی دَ اړولو دَ حق نه (سورة مؤمنون ۸۹)۔ دویم
په معنی دَ جادو سره په واقعه دَ موسیٰ علیه السلام کښ نهه دیرش کرته راغلی
دی۔ دریم په معنی دَ جادو په باره دَ قرآن کریم کښ دَ طرف دَ منکرینو نه دیارلس

کړته - څلورم اتهام د طرف د منکرینو نه په سحر سره د نورو رسولانو ته (سورة شعراء ۱۵۳، ۱۸۵، سورة ذاریات ۵۲). پنځم په معنی د وخت د پیشمنی (سورة قمر ۳۴، سورة العمران ۱۷، سورة ذاریات ۱۸). شپږم په معنی د دروغو (سورة هود ۷). او قرطبي د دے نهه معانی ذکر کړیدی. اوله معنی خِداع (دهوکه ورکول). دویمه معنی تربحے (یو عضو د انسان) چه په هغے سره انسان خوراک او څښاک ته محتاج وی دا معنی په تفسیر د مسحور اکښ بعض مفسرینو لیکلے ده. دریمه معنی خِفاء (پټول) څلورمه معنی صَرف (اړول). پنځمه معنی مائیل کول. شپږمه معنی طریقه یا کلام چه باریک وی. اوومه معنی دروغ خائسته کول. اتمه معنی څیزونه په خیالاتو کښ بدلول. نهمه معنی طرف د مرئ. لسمه معنی غِذاء (خوراك). یوولسمه معنی وخت د پیشمنی (روستو دوه معانی په مفردات د راغب کښ ذکر دی).

**دویم بحث په اقسامو د سحر کښ:-** شاه عبدالعزیز په تفسیر فتح العزیز کښ او ابن کثیر په تفسیر کښ د رازی نه د سحر ډیر اقسام نقل کړیدی. اول قسم سحر د کشدانیینو او کلدانیینو په زمانه د ابراهیم علیه السلام کښ چه هغه په طریقه د مخاطبے کولو د ستورو سره دے او هغه مشهور دے په سحر بابلی سره چه د هاروت ماروت نه اخستلے شویدے او په دے باب کښ کتاب دے د امام رازی (کتاب السر المکتوم فی مخاطبة الشمس والنجوم) د دے کتاب د وجے نه بعض اهل علمو هغه ته نسبت د کفر کړیدے او بعضو وئیلی دی چه هغه د دے نه توبه ویستلے ده او بعضو وئیلی دی چه دائے په سبیله د اعتقاد سره نه وو لیکلے (والله اعلم). دویم قسم سحر د اصحاب الاوهام او نفوس قویه، او دے ته سحر تعلیق الوهم وئیلے شی او ابن کثیر د دے تقسیم کړیدے دوه قسمونو ته اول احوال د نفوسو د کراماتو په طریقے سره او هغے ته سحر نشی وئیلے کیدے لیکن هغه د خاوند د کرامت په اختیار کښ نه وی. دویم احوال د مفسدانو لکه دجال او د هغه کسان چه مخالفت کوی د شریعت د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه او دے ته استدراج وئیلے شی. دریم قسم استعانت په جناتو سره او دا حاصلیږی په لرے اعمالو او اسانو عملونو د دموتو او لوګی کولو او دے ته عزائم او عمل تسخیر وئیلے شی په دے جناتو کښ بعض مؤمنان وی او بعض کافران وی ایمان والا اکثر په ښه کارونو کښ کښ مدد کوی او کافران په ناکاره کارونو کښ مدد کوی. څلورم قسم سحر

د تخیلا تو او نظر بندی کول او مفسرینو وئیلی دی چه سحر د فرعون د ساحرانو د دے قبیلے نه وؤ۔ پنځم قسم سحر په استعمال د پټو آلاتو سره لکه بعض مفسرینو وئیلی دی چه ساحرانِ فرعون تیلے رسئ او همساکانے د پارے نه ډکے کړے وے او په نمرکښ ئے اچولے وے نو هغه په خوزیدلے۔ شپږم قسم سحر تیرنج دے چه په استعمال د بعض دواګانو سره په خوراکونو او مشروباتوکښ وی او په دے سره عوامو ته دهوکے ورکوی لکه بعض منتریان په ځان پورے یو قسم دوا اومږی او بیا اُور په لاس کښ راخلی او نه سوزیږی۔ اووم قسم سحر د انخلولو د زړونو لکه یو انسان دعوٰی کوی د علم د اسم اعظم او د تسخیر د جناتو او بل انسان کم عقل وی نو د هغے دعوے د وجے نه د هغه زړه کښ د اول انسان نه یرهٔ او رعب پیداشی یا د هغه سره ئے محبت او عقیدت پیداشی او دینه تنبله وئیلے شی۔ اتم قسم سحر جادوکول دی په چغلئ کولو سره په داسے باریکه طریقے سره چه د دوؤ مؤمنانو په مینځ کښ جدائي راولی۔ نهم قسم سحر، جادو دے د لاسونو د صفایئ او د چالاکئ چه په هغے سره خلق په تعجب کښ واچوی او دے ته سحرِ شعبده بازی وئیلے شی۔

ابن کثیر وئیلی دی چه په دے کښ بعض اقسام په سحر کښ د معنی لغوی د مناسبت د وجے نه داخل کړے شویدی ځکه چه په هغے کښ معنی د پټ والی او د باریکئ وی۔

شاه عبد العزیز وئیلی دی چه سحر د یهودیانو اکثر په استعانت د ارواح شیطانیه او د هغوی نوموته ذکر کول یا لوستل د کلماتِ مهمله او تصویر د صورتونو مرغوبه یا مرهوبه وؤ۔

**دریم بحث په باره د احکامو د سحر کښ:**۔ په اعتبار د اختلاف د اقسامو سره د دے په احکاموکښ هم اختلاف دے بعض کفر او شرک دے او بعض د دے نه حرام دی۔ شاه عبد العزیز په تفصیل سره احکام داسے ذکر کړیدی چه اول قسم (سحر بابلی) خالص کفر او محض شرک دے ځکه چه په هغے کښ اول شرط عقیده د علم دا رواحو د ذره په خبرو باندے، دویم عقیده د قدرتِ تامّه د هغوی په هرڅه باندے، دریم د هغوی دُعا په کلماتِ شرکیه سره لکه چه په دعا د قمر کښ وائي اَيُّهَا الْمَلِكُ الْكَرِيْمُ وَالسَّيِّدُ الرَّحِيْمُ وَمُرْسِلُ الرَّحْمَةِ وَمُنْزِلُ النِّعْمَةِ او په دعا د عطارد کښ وئیلے شی كُلُّ مَا حَصَلَ لِي مِنَ الْخَيْرِ

فَهُوَ مِنْكَ وَكُلّ مَا يَنْدَفِعُ مِنَ الشَّرِّ مِنّي فَهُوَ مِنْكَ او دا رنګ دائي چه اَيُّهَا السَّيِّد الْفَاضِلَ النَّاطِقُ الْعَالِمُ بِخُفْيَاتِ الْاُمُوْرِ الْمُطَّلِعُ عَلَى السَّرَائِرِ-او دا عقيدے او دُعا كانے تول صريح كفر او شرك دے- او دويم قسم حكم ئے دا دے كه مقصد په دے كښ جائز او صحيح وى لكه اهلاك دَ ظالم او كافر نو دا مباح دے او كه مقصد په ديكښ غير شرعي وى لكه ښځه خاوند جدا كول يا اهلاك دَ بے ګناه نو دا حرام دے. او دريم قسم په دے كښ هم صريح كفر لازميږى ځكه چه په دے قسم سحر كښ عاجزى او تضرع كول لازم دى دَ پيريانو اكابرو ته او دَ هغوى په نوم باندے قربانى او نذر كولے شي او دَ هغوى دَ حضور په ځائے كښ عطريات استعمالوى او داكارونه دَ شرك دى. او دَ څلورم قسم حكم دا دے كه دا قسم په مقابله دَ معجزه كښ كيږى لكه سحر دَ فرعونيانو په مقابله دَ موسىٰ عليه السلام كښ نو دا كفر دے يا په مقابله دَ اولياء الله كښ وى يا چالاكه دهوكه وركول او دَ هغه مال حاصلول په كښ مقصد وى نو دا حرام دى او چه په دے كښ تضرع كول وى پيريانو ته يا ذكر دَ نومونو دَ غټانو پيريانو وى سره دَ ډير تعظيم نه نو بيا كفر دے- او پنځم قسم خو كفر او حرام نه دے مګر هغه وخت چه فاسد غرض په هغے سره قصد كړے شي. او شپږم قسم په دے كښ چه مقصد غرضِ فاسد وى يعني خلقو ته دهوكه وركول وى او لهو لعب وى نو حرام دے- او اووم قسم دا هم حاصليږى په ذكر دَ نومونو دَ ارواحو دَ شياطينو او هغوى ته نذرونه او قربانئ پيش كول او غالبًا خبيث كارونه كول لكه بعضِ دَ دوى نه استعمال دَ بول كوى يا په نطفه دَ زنا سره تعويذونه ليكى او هغے سره تسخير يا تفريق پيدا كوى او دا تول كفر او شرك دے- او اتم قسم چغلى كول او دوه كسانو په مينځ كښ خفګان او دشمني پيدا كول خو ګناه كبيره دے- او نهم قسم، دا قسم هم شرك او كفر دے ځكه چه استعانت په ارواحو دَ شياطينو سره كفر دے او كه دم اچول وى په الفاظ مهمله سره او نوره بده عقيده ورسره ګډه نه وى نو دا هم ګناه ده-

او هر چه تعليم او تعلُّم دَ سحر دے نو په دے كښ اختلاف دے دَ علماؤ نو بعضِ علماؤ وئيلى دى چه دا مطلقًا كفر دے او بعضو وئيلى دى چه حرام دى او مراد دَ تعليم نه تعليم دے دَ پاره دَ اغوا او دَ ګمراه كولو دَ خلقو- غوره قول روستنے دے چه دا حرام دى او هر كله چه حلال او جائز ئے ګڼړى (هغه اقسام چه په هغے كښ شرك او كفر دے) نو دا كفر او شرك او ارتداد دے او احكام دَ مرتد به پرے جارى كيږى-

شلورم بحث په باره د حقيقت د سحر او د تاثير د هغې کښې دے

که مراد د حقيقت نه معنى او ماهيت وى نو د هغې نه انکار نه شي کيدلے نو
جمهور اهلِ علمو وئيلى دى چه سحر امر خارق للعادت دے (نا اشنا د عادت نه)
چه ښکاره کيږى د شريرو خلقو نه په کولو د خاص عملو نو د هغوى سره. او که مراد
د حقيقت نه وجود حقيقى وى نو په دے کښې اختلاف دے. په نيز د معتزلو
سحر صرف تخيُّل او وهمى شيز دے حقيقى وجود نه لرى. او دليل پيش کوى
چه د موسىٰ عليه السلام په باره کښې راغلى دى يُخَيَّلُ اِلَيْهِ مِنْ سِحْرِهِمْ اَنَّهَا تَسْعٰى
او سحر د لبيد ابن اعصم يهودى په نبى صلى الله عليه وسلم باندے چه په هغې
کښې (په حديث د بخارى کښې) تخيل راغلے دے. او اهلِ سنت والجماعت وئيلى
دى چه د سحر حقيقت شته او الله تعالىٰ د هغې د استعمال په وخت کښې هغه شيز
(اثر) پيدا کوى چه الله تعالىٰ يې اوغوارى او د اثبات د تاثير د باره دليل په دے
ايت کښې مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ
اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ. او وَمَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ دا ټول دلالت کوى په ثبوت د تاثير د
سحر باندے او هرچه په ايت د سورة طٰهٰ او حديث لبيد کښې ذکر د تخيل دے نو
د هغې دوه جوابونه دى. اول دا چه تاثير خيالى خاص دے په انبياء عليهم السلام
پورے په هغوى باندے تاثير عقلى نه واقع کيږى. دويم جواب چه مخکښې
ثابته شوه چه هغه خو هم يو قسم د سحر دے او تفصيل د دے قرطبى ذکر کړيدے.

**سوال:** هرکله چه دا حرام دے نو تاثير ولے کوى؟ **جواب:** حرام کيدل
حکم تشريعى دے او اثر کول امر تکوينى دے لکه يو انسان حرام خوراک او خوړى
نو په هغې سړ مړيږى خامخا ليکن هغه خو حلال نه وى.

وَمَآ اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ، په دے کښې جواب دے کړ د يو
شبهے د يهوديانو هرکله چه مخکښې اووئيلے شو چه سحر کفر دے نو يهوديانو اعتراض
اوکړو چه سحر خو په واسطه د ملائيکو (هاروت او ماروت) سره نازل کړے
شوے علم دے او نازل کړے شوے د طرف د الله تعالىٰ نه شرعاً جائز وى او
دانبى ديته کفر وائى نو دا نبى حق نشى کيدے چه د علم منزّله نه خلاف کوى؟
حاصل د جواب دا دے چه دا ملائيک نه وُو بلکه عام سړى يا شيطانان وُو
(لکه چه په دے زمانه کښې بعضِ مشرکان او بدعتيان د ناکاره شخص په کلام
سره دليل اونيسى او گمان کوى چه هغه نيک سړے وُو او د هغه خبره دليل گنړى)

یا داچه دغه ملائیک دی اوپه سحر سره دوی نازل شوی وؤ لیکن د دے دپاره چه په خلقو باندے ابتلاء اوکړی او خلقو ته تمییز اوکړی د سحر او معجزے لیکن دغه خلقو ترینه غلطه فائده واخستله او هغه سحر په یهودیانو کښ مشهور شو او تفصیل یُے روستو ذکر کیږی۔

فائده:۔ په دے ایت کښ ډیر احتمالات دی او هغه مفسرینو ټول یا بعض ذکر کړیدی د هغے تفصیل دا دے، اول قسم احتمالات په لفظ د ما او د عطف د هغے کښ۔ ما موصوله دے یا نافیه دے او چه موصوله شی نو معطوف دے په مَا تَتْلُوا باندے یا په اَلسِّحر باندے بنا په اول باندے معنی دا ده چه ډے یهودیانو تابعداری اوکړه د هغے چه لوستلو شیطانانو او دارنګ تابعداری یُے اوکړه د هغے چه نازل شوے وؤ په دوه ملکینو باندے۔ او بنا په دویم باندے معنی دا شوه چه دوی تعلیم ورکوؤ خلقو ته د سحر او دارنګ د هغے چه نازل شوی وؤ په ملکینو باندے۔ سوال:۔ عطف مغایرت غواړی نو چه اول سحر وؤ نو دویم څه څیز وؤ؟ جواب:۔ د عطف د پاره مغایرت مِن وجه هم پوره دے یعنی اول یو قسم سحر وؤ او دویم بل قسم سحر وؤ دویم ته اګرچه په ایت کښ سحر نه دے وئیلے شوے لیکن نسبت د تفریق بین الزوجین او د ضرر دلالت کوی چه سحر دے دارنګ اجماع د مفسرینو ده چه دغه منزل هم سحر وؤ۔ او هر کله چه ما نافیه شی نو معطوف دے په مَا کَفَرَ سُلَیْمٰنُ باندے او قرطبی دا قول اصح او غوره ګرځولے دے او په دے کښ رد دے په یهودیانو باندے چه هغوی نسبت د سحرِ بابلی کوؤ دوه ملائیکو ته چه جبرائیل او میکائیل وؤ لکه چه نسبت یُے کوؤ سلیمان علیه السلام ته نو الله تعالی د دواړو نفی اوکړله۔ په دے توجیه الوسی ډیر رد کړیدے۔ او دویم قسم احتمالات په انزل کښ دی هغه دوه دی ۱ انزل په معنی حقیقی سره یعنی انزال د اسمان نه په طریقه د وحی سره ۲ انزل په معنی د تعلیم ورکولو سره لکه چه د انزال نسبت اوشی امت ته (سورة العمران ۸۴)۔ په دیکښ اول احتمال غوره دے۔ او دریم قسم احتمالات په مصداق د ملکین کښ دی او هغه درے دی۔ ۱ مراد د دینه ملائیک دی هاروت او ماروت یُے تو مونه وؤ ۲ مراد د دے نه جبرائیل او میکائیل علیهما السلام وؤ په احتمال د ما نافیه سره۔ ۳ مراد د دے نه دوه سړی زمیندار ان بد معاشان وؤ او ملکین ورته وئیلے کیدال په

اعتبار د صلاحیت د هغوی په ګمان د خلقوکښ یا په بل قراءت کښ مَلِکَین (مشران یا بادشاهان) په زیر د لام سره راغلے دے او دا توجیه په احتمال د انزال چه په معنی د تعلیم سره وی. او اول احتمال او دریم احتمال بنا دی په ما موصوله باندے۔ شلورم قسم احتمالات په لفظ هاروت او ماروت کښ دی او هغه هم درے دی ١ دا بدل دے د ملکین نه او هاروت ماروت نومونه دی د ملائیکو ٢ بدل دے د ملکین نه چه په معنی د دوه سړو سره دے او نومونه د سړو یا بادشاهانو وو ٣ بدل دے د الشیاطین نه په وَلٰکِنَّ الشَّیٰطِیْنَ کَفَرُوْا کښ او دا نومونه دی د شیاطینو او ابدال د تثنیه د جمع نه جائز دے. نو اول دواړه احتمالونه بنا دی په ما موصوله باندے او آخری احتمال بنا دے په ما نافیه باندے او په عبارت کښ تقدیم او تاخیر دے یعنی وَ مَا کَفَرَ سُلَیْمٰنُ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَی الْمَلَکَیْنِ وَ لٰکِنَّ الشَّیٰطِیْنَ کَفَرُوْا هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ یُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ۔ او پنځم قسم احتمالات دی په وَمَا یُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰی یَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَکْفُرْ کښ او په دے کښ هم درے احتمالات دی ١ ضمیر د مَا یُعَلِّمٰنِ او یَقُوْلَآ راجع دے ملکین ته او مراد د هغے نه ملائیک دی یعنی هاروت او ماروت نو معنیٰ دا شوه چه دے ملائیکو تعلیم د سحر هیچا ته نه ورکوو تر دے چه اول به ئے په طور د نصیحت سره او ئیل چه یقیناً مونږ د طرف د الله تعالیٰ نه په تاسو باندے امتحان یو نو کفر مه کوئ په عقیده ساتلو په سحر باندے یا په عمل کولو سره په هغے یعنی د سحر او کفر نه به ئے پوره منع او کړه۔ سوال:۔ د ملائیکو د شان نه خو تعلیم د سحر بعید دے؟ جواب:۔ قاضی عیاض په شفاء کښ وئیلی دی چه دا تعلیم د انذار دے یعنی تعلیم ئے ورکوؤ سرهٔ د ویره ولو د هغے د عقیدے او د عمل نه او شاه عبد العزیز وئیلی دی چه دا تعلیم د طرف د ملکیتو نه وو خو په طریقه د انذار ورکولو سره لیکن د اوریدونکو په نیز په طریقه د تعلُّم وو لکه چه یو فقیه او وائی چه چا دوه روپئ د یو روپئ په عوض کښ واخستلے نو دهٔ ربٰو (سود) او کړه لیکن کله چه یو اوریدونکے دا سے واوری نو په هغے باندے عمل شروع کړی نو په دے کښ ګناه د استاد نیشته ګناه د اوریدونکی دهٔ۔
دوېم احتمال دا دے چه ضمیرونه د تثنیے راجع دی هاروت او ماروت ته او هغه نومونه د بدمعاشانو سړوو۔ دریم احتمال دا دے چه ضمیرونه راجع دی

هاروت او ماروت ته او هغه تو مونه د شیطانانو دی او په دے دوه احتمالاتو کښ بیا په
اِنَّمَا نَحۡنُ فِتۡنَةٌ کښ دوه احتمالونه دی اول دا چه دا په معنی د مَفۡتُوۡنُوۡنَ دے
یعنی مونږ باندے ډیر ازمیښتونه او تجربے کړے شویدی نو د فَلَا تَکۡفُرۡ معنی
دا شوه چه انکار مه کوه زمونږ د تاثیر د عمل نه نو دا ترغیب دے تعلم د
سحر ته - دویم دا چه دا په طریقه د استفهام دے ایا مونږ په فتنه او گمراهئ
کښ غورزیدلی یو؟ نو فَلَا تَکۡفُرۡ یعنی کفر زمونږ پشان مه کوه دا استفهام
زجری وو مقصد په دے کښ ترغیب بلیغ دے ایزده کولو د سحر ته -
فَيَتَعَلَّمُوۡنَ مِنۡهُمَا مَا يُفَرِّقُوۡنَ بِهٖ بَيۡنَ الۡمَرۡءِ وَزَوۡجِهٖ په دے کښ دوه احتمالونه دی
اول دا چه دا معطوف دے په واتبعوا باندے، دویم دا چه دا مستقل کلام دے او هم لفظ پټ دے
یعنی فَهُمۡ يَتَعَلَّمُوۡنَ - مِنۡهُمَا ضمیر راجع دے ملکین ته یا هاروت او ماروت ته
یا دواړو قسمونو د سحر ته چه په (السحر و ما انزل) کښ ذکر دی - تعلم
ایزده کولو ته وئیلے شی او په دے ایزده کولو کښ اختیار د استاد نه وی نو
په دے کار د هغه خلقو کښ په ملائیکو باندے اعتراض نیشته دے -
مَا يُفَرِّقُوۡنَ بِهٖ، عملیات د سحر د ډیرو کارونو د پاره دی لیکن ډیر ناکاره په
هغے کښ د ښځے خاوند تفریق دے چه دا سبب دے د ډیرو مفاسدو او دا رنګ
په حدیث د مسلم کښ ثابت دی (اوږد حدیث دے) "چه ابلیس د هغه شیطان
سره ډیر محبت کوی چه د ښځے خاوند په مینځ کښ جدائي پیدا کوی" - او په
دے تفریق کښ دوه توجیهات دی - اوله توجیه تفریق عرفی تکوینی یعنی
دوی په دا سے عمل د سحر او کړو چه د ښځے خاوند په مینځ کښ په بغض نفرت
او دشمنی پیدا شوه نو خاوند به ښځے له طلاق ورکړو - دویمه توجیه تفریق
شرعی، یعنی د سحر په عمل کولو سره سړے یا ښځه به کافر شوا و ښځه خاوند
کښ چه یو تن کافر شی نو نکاح ئے مات شی - وَمَا هُمۡ بِضَآرِّيۡنَ بِهٖ مِنۡ
اَحَدٍ اِلَّا بِاِذۡنِ اللّٰهِ، په دے جمله کښ دوه مقصد وته دی اول خو جواب
د سوال دے چه هر کله مخکښ جمله کښ ثابته شوه چه په سحر سره تفرّق
راځی نو معلومه شوه چه سحر بخپله تاثیر کوی او دویم مقصد په دیکښ
تسلی ورکول دی مؤمنانو ته چه هر کله یهودیان په سحر سره په جدائي
پیدا کولو قدرت لری نو کیدے شی چه هغوی په دے سحر سره د نبی صلی الله
علیه وسلم او د هغه د صحابو په مینځ یا د صحابو په کورنئ کښ دا رنګ

د نورو مؤحدینو په خلاف کښ سحرونه اوکړی او د هغوی په مینځ کښ اختلاف دشمنی او نفرت پیدا شی یا هغوی هلاک شی نو دا وهم یئے ردکړو چه تاثیر د سحر په اختیار د الله تعالیٰ کښ دے نو الله تعالیٰ به مؤمنان د ساحرانو د افساد نه بچ ساتی هاں د هغے بچاؤ د پاره په شرع کښ مختلف طریقے ښودلے شویدی۔

اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ سوال:۔ اذن دلالت کوی په رضا باندے نو آیا الله تعالیٰ په سحر باندے رضا دے؟ جواب:۔ اذن په قرآن کښ پنځویشت کرته ذکر دے او د هغے اته معانی دی (۱) په معنی د نصرت او مدد سره (سورة بقره ۲۴۹) (۲) په معنی د اجازت ورکولو (سورة بقره ۲۵۵) (۳) په معنی د قدرت او اختیار سره (سورة العمران ۴۹) (۴) په معنی د تقدیر الٰهی سره (سورة العمران ۱۶۶) (۵) په معنی د رضا سره (سورة نساء ۲۵) (۶) په معنی د تسخیر الٰهی سره (سورة سبا ۱۲) (۷) په معنی د امر تشریعی سره (سورة حشر ۵) (۸) په معنی د امر تکوینی سره په دے آیت کښ او د دے نه تعبیر کیږی په تخلیه سره۔

وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ، په دے جمله کښ تعمیم د روستو د تخصیص نه یعنی د تعلّم د سحر نه علاوه نور هم مُضِر او بے نفع علمونه دوی ایزده کوی۔ په ضمیر د هُمْ کښ اشاره ده چه کوم څیز صرف دوی ته ضرر ورکوی اګرچه بل چا ته ضرر نه ورکوی یا بل چا ته نفع ورکوی او دوی ته نفع نه ورکوی نو د هغے ایزده کول خو د عاقلانو کار نه دے او دوی دا سے کول۔ تفسیر فتح العزیز کښ لیکلی دی چه هر علم خو فی نفسه بد کار نه دے لیکن په یو د درے وجو سره هغه مذموم اوګرځی۔ اوله وجه، چه نقصانات یئے ډیر وی او منافع یئے کم وی لکه علم د سحر او د نجوم چه د هغے د وجے اکثر د انسانانو نظر او توجه د الله تعالیٰ نه منقطع شی او شرک طرف ته نزدے شی دا رنګ علم د فلسفے او سائنس چه اکثریت د هغوی صِرف اسباب پیژنی او مالک د اسبابو چه الله تعالیٰ دے هغه ته هیڅ توجه نه کوی۔ دویمه وجه، بعض د علمونو نه دا سے وی چه د انسانانو د استعداد نه بهر وی نو د وجے د عدم استعداد نه هغه د انسان د ګمراهئ د پاره سبب اوګرځی او دے قسم ته علم د تاریخ د مشاجراتِ صحابه رضی الله عنهم (جنګونه او اختلافات د هغوی) او علم تصوف او بحثونه کول په مسئله د قضا او تقدیر کښ وئیلے شی۔ دریمه وجه په علومو شرعیو کښ بے ځایه تعمق کول او په هغے کښ افراط تفریط کول لکه په علمِ عقیده او توحید کښ فلسفیا توله

دخل ورکول او په علم فقه کښې حیلو او روایاتِ نادره د فتاوؤ ته توجه کول او
په علم تاریخ او قصص انبیاء علیهم السلام کښې د یهودو دروغ قصے او روایات
د روافضو او شیعه گانو خلط کول او هغې ته توجه ورکول نو په دا سے علمونو کښې
فائده کمه وی او نقصانات پکښې ډیر وی دا سے اشتغال د یهودیانو سره مشابهت
کول دی۔ تنبیه :- د دے ایت په تفسیر کښې بعضِ مفسرینو او مؤرخینو قصه د
هاروت ماروت ذکر کړیده چه دوی الله تعالیٰ زمکے ته راکوز کړی وؤ او سحر ئے
ورته ښودلے وؤ او دوی ته ئے شکل د انسانانو ورکړے وؤ او شهوت ئے هم
ورته ورکړے وؤ نو دوی عاشقان شول په زهره ښځه بانده او هغې د دوی د
مطلب پوره کولو د پاره شرط اولګولو چه عبادت د بُت او کړئ یا شراب او څښکئ
یا قتل د یو نفس او کړئ نو دوی د هغې شرط او منلو او شراب ئے اوڅښکل نو
په نشه کښې ئے بُت ته سجده او کړه سړے ئے هم قتل کړو او بیا ئے د هغې سره
زنا او کړله په دغه حال کښې هغې د دوی نه اسم اعظم ایزده کړو د هغې په وجه
د هغې نه زهره ستورے جوړ شو او اسمان ته اوخیژولے شوه او هاروت ماروت
ته الله تعالیٰ اختیار ورکړو په مینځ د عذاب د دنیا او د عذاب د اٰخرت کښې نو
دوی دنیوی عذاب خوښ کړو نو پر مخې د ویښتو ته اویزان کړے شول په کوهی
د بابل کښې او په دغه حال کښې ئے هم خلقو ته سحر ایزده کولو۔ او د دوی د
ملاقات په باره کښې حاکم او بیهقی او ابن المنذر د اوزاعی نه هم روایات ذکر
کړیدی په زمانه د صحابه کرامو او د تابعینو کښې او دغه قصه او روایات امام
احمد او ابن جریر او ابن ابی حاتم او خازن وغیره ذکر کړی دی اٰلوسی په
روح المعانی کښې وئیلی دی چه د دے مختلف سندونه څه د پاسه شل دی
لیکن محققینو مفسرینو د دے قصے رد کړیده ۱۔ قاضی عیاض په شفاء کښې لیکلی
دی چه د دے قصے نه هیڅ په ضعیف یا په صحیح سند سره د رسول الله صلی الله
علیه وسلم نه نقل ثابت نه دے ۲۔ ابوحیان البحر المحیط کښې وئیلی دی چه
د دے ټولے قصے نه هیڅ څیز ثابت نه دے ۳۔ خازن په تفسیر کښې وئیلی دی
چه دا اخبار اخستلے شویدے د یهودیانو نه او د هغوی افتراء گانے په انبیاؤ او په
ملائیکو باندے مشهورے دی ۴۔ ابن کثیر وئیلی دی چه حق ته نزدے خبره
داده چه دا روایت د ابن عمر رضی دے د کعب الاخبار نه او کعب نقل کوؤ د کتابونو
د بنی اسرائیلو نه (او بخاری وئیلی دی چه د کعب په روایاتو کښې ډیر دروغ راغلی دی)

اوپه دے کښې حدیث مرفوع صحیح متصل الاسناد تر نبی صلی الله علیه وسلم پورې
نیشته یعنی روایات پکښ شته لیکن څه مرفوع نه دی او څه مرفوع دی خو صحیح
نه دی او څه مرفوع صحیح دی لیکن سند ونه ئې منقطع دی ۵ امام رازی په
تفسیر کښ وئیلی دی چه دا روایات فاسد مردود غیر مقبول دی او د شهاب
عراقی نه ئې تصریح نقل کړیده چه د هاروت ماروت په باره کښ څوک داسې
عقیده ساتی چه دوی ملائیک دی او په دغه (ذکر شوی) گناهونو کښ د زهره
سره دوی له عذاب ورکیدلے شی نو دا شخص کافر بالله العظیم دے او رازی
قرطبی او خازن او صاحب د فتح العزیز وغیره د دے قصے د ابطال فی نفسها
د پاره شپږ وجے ذکر کړیدی - اوله وجه عصمت د ملائیکو ټولو په اجماع او په
صریح نصوصو سره ثابت دے (انبیاء ۲۷ ۱۹، سورة تحریم ۶ او نور آیاتونه
چه په هغې کښ صفات د ملائیکو ذکر دی) نو د دے نصوصو په مقابله کښ هیڅ
ثابت حدیث نیشته - دویمه وجه چه دوی په عذاب کښ مبتلا دی نو دغه
وخت دوی ته څه رنګ فرصت ملاویږی چه خلقو ته د سحر تعلیم ورکړی -
دریمه وجه عقل نه منی چه بدکاره ښځه دے په اسم اعظم سره آسمان ته
اوخیژی او د هغې نه ستورے رڼړا والا جوړ شی - څلورمه وجه دا ده چه په تاریخ
او مخکنو کتابونو کښ ثابت ده چه زهره غټ ستورے دے د اوؤ ستورونه چه
مخکښ د آدم علیه السلام نه پیدا کړے شوی وُو - پنځمه وجه په دے قصه کښ
وئیلے شویدی چه الله تعالیٰ دوی ته اُوئیل چه زه تاسو ته شهوت درکړم
نو ضرور به ستاسو نه گناه کیږی او دوی ورته اوئیل چه زمونږ نه بیا هم
هیڅ گناه به نه کیږی نو دوی تکذیب او تجهیل د الله تعالیٰ اوکړو - شپږمه وجه
قرآن کریم په ظاهری نص کښ د دے قصے په هیڅ حصه باندے دلالت نه کوی
او قرآن په تفسیر کښ داسے روایاتو ته هیڅ حاجت نه لری -

سوال:- ابن حجر په المسدد فی الذب عن المسند کښ او سیوطی د دے
روایاتو د قصے د هاروت ماروت تصحیح کړیده او وئیلی دی چه د دے ډیر سندونه
دی نو دلالت کوی چه د دے څه اصل او صحت شته دے ؟ -

جواب:- (۱) د ابن کثیر نه مخکښ نقل اوکړے شو چه په دے کښ حدیث چه
صحیح او مرفوع او متصل الاسناد وی نیشته په هر یو سند باندے د عدم صحت
یا عدم رفع یا د انقطاع اعتراض دے او د صریح قرآنی نصوصو نه هم دا روایاتونه

مخالف دی (۲) آلوسی وئیلی دی که سند وته صحیح شی لیکن روایت باطل دے په دغه وجوهو سره چه مخکښ تیر شویدی او بطلان د یو روایت فی نفسه منافات نه لری د صحت د سند سره یعنی یو واقعه اسرائیلی وی لیکن سند د نقل ئے صحیح وی نو په دغه سند سره صحت او یقین په دغه واقعه باندے نه حاصلیږی او کومو تفسیرونو چه د دے تاویلات کړیدی او دا واقعه ئے حمل کړیده په رموزو او په اشاراتو باندے نو د هغوی دا طریقه هم فاسد ده ځکه چه اول رموز او اشارات د مقام تفسیر نه خارج دی، دویم دا چه هر کله قصه صحیح نه ده نو د هغے نه رموز او اشارات راویستل هم صحیح نه دی لکه چه تخم فاسد وی نو د هغے نه ثمر رنګ صحیح بوټے راوتلے شی؟ (هذا ما عندی والله اعلم بالصواب).

فائده:- لفظ د فِتْنَةٌ او ماده د هغے په قرآن کښ شپیته ⁶⁰ کرته واقع ده او لفظ فِتْنَةٌ ډیرش کرته راغلے دے او د هغے ډیر وجوه دی بعض د هغے نه سیوطی په اتقان ص ۱۵/۲ کښ ذکر کړے دی. اوله وجه په معنی د شرك سره (سورة انفال ۳۹). دویمه په معنی د اضلال (ګمراه کول) (سورة آل عمران ۷). دریمه په معنی د قتل (سورة نساء ۱۰۱). څلورمه په معنی د اړولو د حق نه (سورة مائده ۴۹) پنځمه په معنی د ګمراهئ سره (سورة مائده ۴۱). شپږمه په معنی د عذر او بهانه کول (سورة انعام ۲۳). اوومه په معنی د قضاء سره (سورة اعراف ۱۵۵). اتمه په معنی د ګناه سره (سورة توبه ۴۹). نهمه په معنی د مرض سره (سورة توبه ۱۲۶). لسمه په معنی د عبرت سره (سورة یونس ۸۵). یوولسمه په معنی د امتحان سره (سورة نور ۶۳). دولسمه په معنی د عذاب سره (سورة عنکبوت ۳). دیارلسمه په معنی د سوزولو سره (سورة ذاریات ۱۳). څوارلسمه په معنی د جنون سره (سورة قلم ۶) (دا خو سیوطی ذکر کړیدی). او پنځلسمه په معنی د بدعت سره (سورة نور ۶۳). او شپاړسمه په معنی د دین نه اړول په زور یا په دهوکے سره (سورة بقره ۱۹۱). او اولسمه په معنی د فساد او ورانی کول (سورة توبه ۴۷). نو دلته فِتْنَةٌ په معنی د امتحان دے د نورو خلقو د پاره.

وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِی الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ، یعنی د دوی مشغولیت په دغه ضررئ علمونو باندے د وجے د ناپوهئ نه نه وو بلکه ښه عالمان وو او پوهیدل چه د دے سره ثواب د اخرت برباد یږی یعنی باطل علمونه دی. اشْتَرٰىهُ ضمیر راجع دے سحر ته یا مَا یَضُرُّهُمْ وَلَا یَنْفَعُهُمْ ته

وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ط

او ځان يې ساتلے وے (د شرک او جادو نه) نو خامخا بدله د طرف د الله تعالى نه غوره ده۔

لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿١٠٣﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

که دوی پوهيدے۔ اے ايمان والو

اواشتراء نه مراد طلب او محبت د هغې دے۔ خَلَاقٍ مطلق حصے او برخے ته وئيلے شي ليکن اکثر استعمال يې په حصه د خير کښ وي او په معنی د برخې د دنيا په سورة توبه ٦٩ کښ دے او په معنی د برخې د آخرت په سورة بقرة او سورة آل عمران ٧٧ کښ دے۔

وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖۤ اَنْفُسَهُمْ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ، دا جمله معطوف ده په لَقَدْ عَلِمُوْا باندے په لَمَنِ اشْتَرٰىهُ باندے معطوف نه ده او په دے سره دوه سوالونه دفع شول اول سوال:۔ چه لَبِئْسَ مَا شَرَوْا اه جمله انشائيه ده نو څه رنگ عطف شوه په جمله خبريه باندے چه لَمَنِ اشْتَرٰىهُ دے؟۔ حاصل جواب دا دے چه دا په لَقَدْ عَلِمُوْا اه باندے عطف ده او هغه د لام قسميه د وجے نه جمله انشائيه ده۔ دويم سوال:۔ چه د لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ د لَقَدْ عَلِمُوْا سره منافات دے ځکه چه لَقَدْ عَلِمُوْا کښ د دوی د پاره اثبات د علم دے او لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ کښ نفی د علم ده؟ حاصل جواب دا دے چه اثبات د يو علم دے چه مضمون د لَمَنِ اشْتَرٰه دے او نفی د بل علم ده چه هغه ناکاره والے د خرچ کولو د خپل ځانونو (عمرونو او مالونو) دے په بدل د هغه مُضِر علمونو کښ۔ سوال:۔ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ دلالت کوی په نفی د علم د دوی باندے او لَقَدْ عَلِمُوْا دلالت کوی په اثبات د علم د دوی باندے؟ جواب:۔ (١) مخکښ تير شو چه اثبات د يو علم او نفی د بل علم ده نو منافات نيشته او د دے پشان بل۔ جواب:۔ (٢) په لَقَدْ عَلِمُوْا کښ اثبات د علم اجمالی دے يا علم حصولی او په لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ کښ نفی د علم تفصيلی او علم بالمشاهده ده۔ جواب:۔ (٣) لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ کښ نفی د علم په اعتبار د ترکِ عمل ده۔

١٠٣ په دے آيت کښ ترغيب دے توبے کولو ته د مخکښ گناهونو نه په ذکر د دوه شرطونو سره۔ اول شرط ايمان حقيقی چه په هغې کښ ايمان په قرآن او

لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا وَقُوْلُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوْا ؕ

مه وایئ لفظ راعنا او وایئ انظرنا او واورئ په قبولیت سره.

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿١٠٤﴾ مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ

او د پاره د کافرانو عذاب دردناک دے. نه غواړی کافران

په اخری رسول صلی الله علیه وسلم باندے هم داخل دے. دویم شرط تقوٰی دے چه په هغے کښې ځان بچ کول د هر کفر او شرک نه او د سحر او د مُضِر علومو نه داخل دی. لَمَثُوْبَةٌ دا لام ابتدائیه دے او جواب د شرط پټ دے (لَاُثِیْبُوْا) او جمله اسمیه یې په ځائے د جملے فعلیه کښې ذکر کړه د پاره د افادے د ثبات او استقرار. مَثُوْبَةٌ مصدر په وزن د مفعول په معنی د ثواب او جزاءِ خیر دے. خَیْرٌ دا صیغه د تفضیل نه ده بلکه د بیان د نفسِ خیریت د پاره دے. لَوْ کَانُوْا یَعْلَمُوْنَ جزاء د دے پټه ده (لَاٰمَنُوْا).

ربط د مخکښې سره دا دے چه یهودیانو په مؤمنانو کښې سحر او غلط علمونه خورول تو دا سے دوی ناکاره کلمات هم په هغوی کښې خورَوی. بل دا چه ایمان د سحر نه منع کول کوی نو دا رنګ د راعنا نه هم منع کول کوی. او په دے کښې خطاب دے مؤمنانو ته په اعتبار د ظاهر سره لیکن مقصد پکښې زجر دے یهودیانو ته او د هغوی د شبهے جواب ته اشاره ده. تفصیل د هغے دا دے چه هر کله رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینے ته هجرت او کړو او یهودیان د هغه مجلس ته راتلل نو د هغه د خبرو په مینځ کښې به یو کس د هغوی نه آواز او کړو (راعنا) ظاهری معنٰی یې دا ده چه په خبرو کښې زمونږ لحاظ او کړه یعنی زمونږ د پوهه کولو کوشش او کړه. نو صحابه کرامو هم د هغوی نقل شروع کړو په دے لفظ کښې په دے خیال چه دوی خو اهلِ علم دی او دا کلمه وائي نو کیدے شی چه په دے کښې به ادب کول مقصد وی نو هغوی به هم په مینځ د خبرو کښې دا کلمه وئیله او دغه ظاهری معنٰی د دوی مقصد وه. لیکن یهودیانو به د خباثت د وجے دا لفظ ذکر کوؤ او په نیت کښې د دوی باطله معنی مراد وه (چه هغه روستو ذکر کیږی) نو هر کله چه یهودیانو د صحابو نه هم دا کلمه واوریدله نو دوی به وئیل چه مونږ خو محمد صلی الله علیه وسلم ته پټ کنځل کوؤ او دوی ورته ښکاره کنځل کوی

اوپه کورنئ کښې یې خندا کوله نو سعد بن معاذ رضی الله عنه په دوی باندې
پوهه شو او هغه د دوی په محاوره باندې پوهیدلو نو یهودیانو ته یې اوئیل
که چرې ما دا کلمه د یو تن ستاسو نه بیا واوریدله نو زه به د هغه سټ او وهم
نو هغوی ورته اُوئیل چه ستاسو ملګری هم دا کلمه وائي نو دا ایت نازل شو
(اللباب)۔ او مؤمنان یې د دې د استعمال نه منع کړل اګرچه هغوی صحیح
معنی مراد کوله خو دا د دې د پاره چه یهودیان د دې نه منع شي ځکه چه
هغوی د دې باطله معنی اراده کوی او دلیل د دوی د وئیلو په سورة نساء ۴۶
کښې دې۔ نو یهودیانو به د دې منعې نه روستو وئیل چه دا نبی او صحابه
ډیر تعصب او حسد کوی ځکه چه دوی یو کلمه استعمالوی نو جائز وی
لیکن هر کله چه موږ د هغې استعمال کوؤ نو بیا یې زموږ د ضد د وجې نه
منع کړی؟۔ حاصل د جواب دا دې چه هر کله صفا کلمه شته دې (انظرنا)
نو د هغې استعمال پکار دې ځکه چه کوم خلق دغه کلمه استعمالوی او باطله
معنی تر ینه اراده کوی هغه خو کافران او د درد ناک عذاب مستحق دی نو
دا منع د ضد او عناد د وجې نه نهٔ ده بلکه د کفر نه د بچ کیدلو د پاره ده۔

**باطله معنی د راعنا:۔** د هغې ډیر وجوه دی۔ اوله وجه مشهوره دا ده چه راعن
د رعونت نه اخستلې شوې دې او په عربي لغت کښې رعونت کمعقلتیا ته وئیلې شي
او په سریانئ ژبه کښې یې هم دا معنی ده او الف یې په اخر کښې د نداء (اواز)
د پاره زیات کړو او نبی د الله تعالی ته بې وقوف (کمعقل وئیل) دا د هغه توهین
او کفر دې۔ دویمه وجه دا ده چه دوی اراده کوو په دې سره شپونکے (چرواها)
ډګلاو بیزو او مطلب یې دا وؤ چه ته خو صرف د ګلاو بیزو او ښانو راعي یې
او دا د اهلِ حجاز و عادت وؤ (او په حدیث صحیح کښې دی چه هر یو نبي ګلاې
بیزې څرولې دی او زموږ نبی هم د مکې والو د پاره په قراریط باندې څرول
کول مخکښې د نبوت نه) یعنی ستا مناسبت د انسانانو د تربیت سره نیشته او
دا هم بې ادبی د نبی ده او کفر دې۔ دریمه وجه دا ده چه راعنا امر دې د رعایت نه
او د رعایت نه دوی اراده کوله حفاظت کول یعنی ته زموږ نګهبان او ساتنه
کوؤنکے یې (د تکالیفو او مصیبتونو نه) او دا صفت په الله تعالی پورې خاص
دې نو نبی له دا صفت ثابتول شرک دې (د دوی اګرچه دا عقیده زموږ
د نبی په باره کښې نه وه لیکن دوی غوښتله چه دا موهمه کلمه د شرک

په صحابو کښې شائع شي نو په دوی کښې به شرك پټ پټ خورشي او بنا په دے دا کلمه نشر کول شرك او كفر دے۔ څلورمه وجه دا چه رَاعِنَا د باب مفاعله نه دے او مفاعله د جانبينو نه صدور غواړي يعني موږ ستا رعايت كوؤ نو ته زمونږ رعايت كوه نو دوى په دے لفظ كښې په نبى صلى الله عليه وسلم باندے خپل احسانات خپرول او د هغه سره يې د خپلے برابرئ دعوٰى كوله (اللباب) او دا هم د نبى بے ادبى ده۔ پنځمه وجه د مصر په بعض تاريخونو كښې ليكلى دى چه څه كښې زمانه كښې د اهل مصر ډير معبودان وو د غو عبادت يې كولو چه هغے ته به يې حاثور وئيلو او د نمر او سپوږمئ او ستورو وغيره عبادتونه يې كول ليكن نمر د دوى په تيز معبود اكبر وو هغه ته به يې امن راع يا راع وئيلو او د دوى عقيده وه چه د مصر باشاه هم هغه جوړيږي چه په هغه كښې ظل (سورے) وى د نمر نو د دے وجے نه يې هغه ته فاراع وئيلو او بيا هغه لفظ نقل شو فرعون لفظ ته۔ نو راع د يهودو په مختلفو اصطلاح مصري كښې لوئے معبود ته وئيلے شو نو دوى رَاعِنَا كلمه د دے وجے نه په مسلمانانو كښې خورول چه دا مسلمانان خپل نبى صلى الله عليه وسلم ته معبود اكبر او وائي او په شرك كښې اخته شي۔ نو الله تعالىٰ د دغے كلمے وئيلو نه منع اوكړله او او فرمائيل يې چه يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَقُولُوا رَاعِنَا نو رَاعِنَا كلمه په نص صريح سره وئيل حرام دى او په طريقه د دلالت النص په دے منع كښې هر هغه كلمه داخل ده چه هغه موهم د كفر او د شرك وى يعني د هغے صحيح معنى هم موجود او متعارف وى او د هغے بله معنى باطله وى نو داسے كلمات وئيل حرام دى او داسے تعبير شامى ص ۲۵۳/۵ كښې ذكر كړيدے (مُجَرَّدُ اِيْهَامِ الْمَعْنَى الْمُحَالِ كَافٍ فِى الْمَنعِ عَنِ التَّلَفُّظِ بِهٰذَا الْكَلَامِ وَاِنِ احْتَمَلَ مَعْنًى صَحِيحًا) "صرف وهم د باطلے معنى پوره دے د پاره د منع كولو د لوستلو د هغه كلام نه اګرچه په هغے كښې احتمال د صحيح معنى وى". او د دے قاعدے د لاندے په عرف كښې ډير كلمات دى چه په هغے كښې صحيح معنى هم وى او باطله معنى پكښې هم وى ليكن ويونكى باطلے معنى ته خيال نه كوى۔ يو د هغے نه هغه كلمات دى چه بدعتيانو په درود تاج كښې داخل كړيدى (دَافِعُ الْبَلَاءِ وَالْوَبَاءِ وَالْقَحْطِ وَالْاَلَمِ) درود تاج يې هم مخترع دے او دا كلمات په هغے كښې موهم د شرك دى اګرچه صحيح معنى يې كيدے شي چه نبى صلى الله عليه وسلم

بہ پہ ژوند کښں بلاګانے او وباګانے او قحطونه دردونه په دعاګانو سره دفع کول لیکن ظاهری معنی داده چه نبی صلی الله علیه وسلم په دفع د بلیاتو وغیره اختیار او تصرف لری او دا عقیده خو شرک دے د قرآن د قُلْ اِنِّیْ لَآ اَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَّلَا رَشَدًا (سورة جن ۲۱) نه بالکل خلاف عقیده ده نو د دے کلماتو نه په سختئ سره منع کول پکار دی فتاوٰی رشیدیه په ص۱۴۵ او مجموعة الفتاوٰی ص۲۳ کښں دا یئے د موهماتو نه شمار کړیدی - دویم د هغے نه عبد الرسول عبد النبی او د دے پشان نومونه ایښودل دی اګرچه د هغے تاویل کیدا شی چه عبد په معنی د غلام او تابعدار او خدمتګار دے لیکن ظاهری معنی یئے بندګی کوؤنکے دے او د دے اضافت کول غیر الله تعالیٰ ته حرام دے دارنګ شرح فقه اکبر کښں یئے لیکلی دی او سورة العمران ۷۹ کښں هم د دے نه منع راغلے ده - دریم لفظ د حضرت او حضور دے او خاص په وخت د استعمال کښں د پاره د غائب یعنی اګرچه په عرف کښں حضرت او حضور په ځائے د ادب کښں استعمالیږی لیکن په دے کښں د باطلے معنی دوه وجوه دی اوله وجه داده چه حضرت او حُضور دواړه مصدرونه دی د یو بنده چه غائب وی داصفت کول د عقیدے د حاضر ناظر او د علم د غیب وهم پیدا کوی او حمل د معنی مصدری مبالغه پیدا کوی هاں د حاضر شخص په وصف کښں لفظ حضور نقصان نه لری - او دویمه وجه خاص ده په لفظ حضرت پورے چه دا د متصوفه ملحدینو په اصطلاح کښں د مرتبے د وحدة الوجود د حلول یو اطلاق دے بکر بن زید په معجم المناهی اللفظیه (ص۲۳۳ طبع ثالث) کښں لیکلی دی چه معنی یئے داده (چه دا د فاسد اصطلاحاتو نه دے او صوفیه په دے سره مراد کوی فناء د رب د بنده په بنده کښں او دا پشان د حضرت دے په نیز د ملحدینو چه اراده کوی دوی په دے سره حضرت د جمع د وجود په یو وجود کښں) او د دے حواله یئے ورکړیده په مدارج السالکین ص۲۱۸/۳ او الروض الانف ص۲۵۹/۳ لیکن تعجب د اهل حسد وعناد نه چه هغوی په نورو خلقو باندے استعمال د موهم الفاظو منع کوی او د خپلو مشرانو په باره کښں غائبانه دا الفاظ استعمالوی او ځان له د جواز بے دلیله لارے جوړوی - دارنګ ابن قیم په الجواب الکافی کښں ډیر کلمات موهمه شمار کړیدی چه د هغے نه منع ضروری ده لکه مَا شَاءَ اللهُ وَمَا شَاءَ فُلَانٌ . هٰذَا مِنْ بَرَكَةِ اللهِ

دَبَرَکَةِ فُلَانٍ۔ اَنَا فِی حِفْظِ اللهِ وَحِفْظِ فُلَانٍ۔ اَنَا مُتَوَکِّلٌ عَلَی اللهِ وَعَلٰی فُلَانٍ وغیرہ
(څه چه د الله تعالیٰ خوښه وی او د فلانی۔ دا د برکت د الله تعالیٰ نه دے او د
برکت د فلانی نه دے۔ زه په حفاظت د الله تعالیٰ او د فلانی کښ یم۔ زما توکل دے
په الله تعالیٰ او په فلانی باندے)۔

**قاعده:**- که یو لفظ کښ وهم د باطلے معنے وی لیکن دلیل شرعی موجود وی
د هغے په ورود باندے نو د هغے استعمال جائز دے لکه سمیع او بصیر او رؤف
رحیم مولیٰ او سید صفات د الله تعالیٰ دی لیکن د بنده په صفاتو کښ هم
نقل دی (په معنی مناسب د بنده گانو سره) نو د هغے استعمال منع نه دے۔

**فائده ۱:** د دے نه معلومه شوه چه مشابهت د کفارو مشرکینو مبتدعینو سره
په اعمالو او اقوالو لباس او اخترونو او عباداتو د هغوی کښ منع دے دا ابن کثیر
وئیلی دی او حدیث د مَنْ تَشَبَّهَ بِقَوْمٍ فَهُوَ مِنْهُمْ ئے نقل کړے دے۔

**فائده ۲:** یَآیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا خطاب په قرآن کریم کښ نهه اتیا کرته راغلے دے
په دے خطاب سره مراد ډیر شرافت د دے امت دے۔ د ابن مسعود رضی الله
عنه روایت دے چه هغه ته یو سړے راغے ورته ئے اُوئیل چه ما ته وصیت اوکړه
هغه ورته اُوئیل چه هر کله په قرآن کښ واورے یَآیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوْا نو شه
غوږ ورته کیږده ځکه چه وروستو به د خیر په باره کښ امر وی یا به د
شر نه نهی وی۔ نو په دے تهه اتیا خطابا تو کښ درے شلو یشت او امر دی
او اته ویشت نواهی دی او اتلس اخبار دی چه په هغے کښ د اتو مرجع
او امرو ته ده او د لسو مرجع نواهی ته ده او دغه او امر نواهی څه د پاسه
اویا شعبے د ایمان لری په حذف د تکرار سره۔

وَقُوْلُوا انْظُرْنَا دا امر په دا سے لفظ سره دے چه په هغے کښ باطله معنی نیشته
او نظر په معنی د تاخیر او مهلت سره دے یعنی په خبرو کښ مونږ ته دمه
اوکړه او بل قول دا دے چه نظر په معنی د فکر او توجه کولو سره دے۔

وَاسْمَعُوْا، **سوال:**- هر کله چه غوږونه د انسان روغ وی نو آواز اوریدل
خو بے اختیاره دی نو په هغے باندے امر ولے اوکړے شو؟ **جواب ۱:**- مراد
د دے نه غوږونه او نګارول دی او ریدلو د خبرو د رسول الله صلی الله علیه
وسلم نه د ابتداء نه د پاره د دے چه بیا اُنْظُرْنَا ته ضرورت نه پریوځی۔
**جواب ۲:**- مراد د سمع نه اطاعت او قبولیت دے یعنی صرف اُنْظُرْنَا وئیل

كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّنَزَّلَ

د کتابیانو نه اونه د مشرکانو نه چه نازل کړے شی

عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ

په تاسو باندے څه خیر د طرف د رب ستاسو نه - او الله تعالی خاص کوی

بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿١٠٥﴾

په رحمت خپل سره چالره چه او غواړی - او الله تعالی خاوند د لوئے فضل دے -

مقصد نه دے بلکه په هغې پسے په خبره باندے عمل کول هم ضروری دی په خلاف د یهودیانو نه چه راعنا په یئے اوئیلو او بیا به یئے اطاعت نه کوؤ.

جواب۳:- مراد په دے کښ تاکید دے یعنی لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا او قُوْلُوا انْظُرْنَا (نهي او امر) پوره دا وړئ چه مخالفت تر ینه اونه کړئ.

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ په دے کښ مقصد رد دے په یهودیانو باندے چه لفظ راعنا استعمالوؤنکی نبی صلی الله علیه وسلم ته په اصل کښ کافران دی، د کفر نشر و اشاعت کول غواړی.

۱۰۵ په دے ایت کښ ذکر د دوه علتونو دے د پاره د ما قبل حکم چه هغه منع د تقلید او تشبیه نه ده د کافرانو سره - اول علت سخت بُغض او حسد د هغوی د مؤمنانو سره او دویم انعاماتِ خاصه د الله تعالی په مؤمنانو باندے.

مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا، وَدٌّ محبت د زړه ته وئیلے شی او دلته مراد په نفی د وَدٌّ سره سختنه دشمنی او بغض د هغوی دے. مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ مِنْ د پاره د تبعیض یا د بیان دے. وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ عطف دے په اهل باندے او لَا د پاره د تاکید د نفی دے او عطف په مغایرت ذاتی باندے حمل دے نو مقصد دا دے چه د كَفَرُوْا دوه قسمونه دی یو کتابی او بل غیر کتابی یا عطف د صفت دے په صفت باندے ذات یو دے یعنی کتابی چه کفر کوی او شرک کوی او دا رنګ په سورة بینه سل کښ هم دی یا دا عطف دے په الَّذِيْنَ باندے او حالتِ جرّی د الْمُشْرِكِيْنَ د وجے د جوار نه دے لیکن اول قول اصح دے.

سوال:- دا عطف دلالت کوی چه اهلِ کتابو ته مشرک نشی وئیلے کیدے اګرچه شرک کوی؟ جواب:- دا دلیل ښکاره نه دے د دوه وجونه اوله وجه

خو دا ده چه دا عطف دَ صفت دے په صفت باندے یعنی کتابی کافر او مشرک دے لکه چه مخکښ ذکر شول او که عطف دَ ذات وی په ذات باندے نو دے وجه دا ده چه دَ کتابیانو کافرانو خپل وصفِ مشهوره شته چه اهل الکتاب دے اگرچه کافر او مشرک دی او دَ غیر کتابی خویل وصفِ مشهوره نیشته سیوا دَ مشرک نه نو دا دلالت نه کوی په دے خبره باندے چه کتابی (شرک کوونکی نه) مشرک نشی وئیلے کیدے ځکه نصوص په دے کښ موجود دی چه دَ مشرک کتابی او غیر کتابی دواړو باندے اطلاق کیږی لکه په سورة انعام ۱۲۱ او سورة یوسف ۱۰۶ کښ عموم دے او سورة بقره ۱۳۵، سورة آل عمران ۶۷ کښ اشارة النص دے چه کتابیان مشرکان دی او حدیث دَ اَخۡرِجُوا الۡمُشۡرِکِیۡنَ مِنۡ جَزِیۡرَةِ الۡعَرَبِ چه عمر رضی الله عنه وئیلی وُو په وخت دَ جلا وطن کولو دَ یهودیانو کښ۔ هاں دَ کتابی مشرک او غیر کتابی په مینځ کښ په بعضِ احکامو کښ فرق شته دے دَ هغے چلا وجه ده۔ دا تفصیل به انشاء الله په تشریح دَ ۲۲۱ کښ راشی۔ اَنۡ یُّنَزَّلَ عَلَیۡکُمۡ مِّنۡ خَیۡرٍ مِّنۡ رَّبِّکُمۡ، ظاهر دا ده چه دَ دے نه هر انعام دَ الله تعالیٰ مراد دے دینی وی او که دنیوی وی ځکه چه دَ مؤمنانو هر خیر او نعمت سبب دَ غضب دَ کافرانو دے لکه په سورة آل عمران ۱۲۰ کښ دی او په دے عموم کښ وحی او لفظ دَ اَنۡظُرۡنَا هم داخل دی۔ وَاللّٰهُ یَخۡتَصُّ بِرَحۡمَتِهٖ مَنۡ یَّشَآءُ، دا دویم علت دے یعنی تاسو الله تعالیٰ په خپل رحمت سره خاص کړی یئ نو تشبیه دَ کافرانو سره مکوئ دا رنګ دا دفع دَ یو وهم ده هغه وهم دا دے چه کافران مشرکان هر کله ستاسو په خیر باندے خفه کیږی نو آیا قدرت لری چه خیر په تاسو باندے بند کړی جواب او شو چه دا په اختیار دَ الله تعالیٰ کښ دے۔ رحمت نه مراد نبوت دے په قول دَ علی رضی الله عنه سره او اسلام دے په قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما اول خاص دے په نبی صلی الله علیه وسلم پورے په آخری اُمت کښ او دویم عام دے تولو امتیانو دَ هغه نه۔ مَنۡ یَّشَآءُ او مشیت دَ الله تعالیٰ په حکمت باندے بنا دی معلومه شوه چه په الله تعالیٰ باندے هیڅ خیز واجب نه دے او په هغه باندے دَ هیچا حق نیشته (سراج المنیر)۔ وَاللّٰهُ ذُو الۡفَضۡلِ الۡعَظِیۡمِ، مراد دَ فضل نه ابتداء دَ احسان ده بغیر دَ علت نه په دیکښ اشاره ده چه اختصاص دَ رحمت په یو انسان باندے دَ هغه انسان په مخکنی احسانانو باندے موقوف نه دے

مَا نَنۡسَخۡ مِنۡ اٰيَةٍ اَوۡ نُنۡسِهَا نَاۡتِ بِخَيۡرٍ مِّنۡهَاۤ

هغه چه منسوخ کړو يو ايت يا هير کړو هغه ستا نه نو راوړو مونږ غوره د هغې نه

اَوۡ مِثۡلِهَا ؕ اَلَمۡ تَعۡلَمۡ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ ﴿١٠٦﴾

يا پشان د هغې - ايا ته نه پوهيږې چه يقيناً الله تعالىٰ په هر څه باندې قادر دې -

داسې په سورة آل عمران ۳۷ کښ هم ذکر دی -

ربط د دې د مخکښ سره دا دې چه هر کله د راعنا په ځائې باندې اُنظُرۡنَا کيښودلې شو نو دا مثال د نسخ دې ځکه اوس حکمت د نسخ ذکر کوی او دا جواب دې د پنځم اعتراض د يهوديانو هر کله چه په راتللو د قرآن کريم سره د تورات او انجيل ډير احکام منسوخ شول نو هغوی اعتراض اوکړو چه نسخ په کلام د الله تعالىٰ کښ نشی کيدې ځکه چه دا دلالت کوی په ناخبرئ د الله تعالىٰ باندې چه کله يو حکم کوی او کله بل حکم - دا رنګ د نبی صلی الله عليه وسلم په ژوند کښ ډير احکام منسوخ شول - قبله - خمر - ميسر - صوم - عاشورا وغيره نو يهوديانو اعتراض اوکړو چه دا څنګه نبی دې چه کله يو حکم کوی او کله بل نو دې په خپل دين کښ ګړوړ دې نو په دې ايت کښ د هغې جواب اوشو چه نسخ د طرف د الله تعالىٰ نه واقع کيږی او د هغې ډير حکمتونه دی - د يهوديانو مقصد په دې اعتراض کښ دا وو چه د خپل کتاب (تورات) منسوخيت په بل کتاب سره نه منی دا رنګ اوس وخت کښ هم کله چه په يو مسئله باندې يو تقليدی عمل کوی يا په دليل ضعيف (چه دې خيال کوی چه دا قوی دې) باندې روان وی ليکن هر کله چه د ده ته صحيح دليل شرعی معلوم شی او د هغه مخکښ دليل ضعف ورته ښکاره شی نو دې په هغه مخکښ مسئله باندې عمل پريږدی او په قوی دليل باندې عمل شروع کړی نو جاهل متعصب اعتراض کوی چه دا شخص جاهل دې کله په يو طريقه عمل کوی او کله په بله باندې نو دا مشابهت دې د يهوديت سره - مَا نَنۡسَخۡ ما موصوله دې او معنی د شرط لره متضمن دې - نسخ ماده په قرآن کريم کښ څلور کرته ذکر ده په څلور معانی سره استعماليږی اول په معنی د ليکلو سره لکه په سورة جاثيه ۲۹ او سورة اعراف ۱۵۴ کښ - دويم په معنی د زائيل کولو او محو کولو لکه په سورة حج ۵۲ کښ - دريم په معنی د نقل

کولو لکه مناسخه د میراث او عقیده د تناسخ دا رواحو- څلورم په معنی د تبدیل سره لکه په دے آیت کښ په تفسیر د آیت د سورة نحل ۱۰۱ سره- او نسخ په اصطلاح د شرع کښ په تیز د بعضِ علماؤ بدلول د نص دی د تلاوت یا د حکم د هغے په عام کولو د خاص سره یا خاص کولو د عام یا په مقید کولو د مطلق سره یا په مطلق کولو د مقید سره- او دا معنی ډیره عامه ده حتّٰی چه بعضِ علماؤ په قرآن کښ پنځه سوه آیاتونه منسوخ وئیلی دی او په تیز د نورو علماؤ نسخ زائیل کول د حکم دی چه ثابت شوی وی په یو نص سره په بل نص باندے چه د مخکنی نه روستو راغلی وی او روستو والے ئے په صحیح دلیل سره ثابت وی او په دے معنی باندے علماؤ صرف یویشت ۲۱ آیاتونه منسوخ لیکلی دی دا سے علامه سیوطی په اتقان کښ لیکلی دی او امام ولی الله دهلوی په الفوز الکبیر کښ د دغه آیاتونو دا سے معانی لیکلی دی چه د هغے په سبب صرف پنځه آیاتونه منسوخ پاتے شویدی- لیکن په دغه پنځه آیاتونو کښ دا سے تاویلات شته دے چه د هغے د وجے نه هغے ته مطلقاً منسوخ نشی وئیلے کیدے یعنی په یو معنے سره به منسوخ وی او په بله معنی سره به منسوخ نه وی-

تنبیه:- د دے مطلب دا نه دے چه په قرآن کښ منسوخ آیاتونه بالکل نیشته بلکه مقصد دا دے چه دا سے آیت چه تلاوت ئے منسوخ نه وی نو هغه مِنْ کُلِّ وجه منسوخ الحکم نه وی بلکه یو حکم تربنه منسوخ وی او نور احکام په کښ باقی وی نو بیخ کندی د آیت نه راځی- (نور تفصیل د مسئلے د نسخ په تنشیط الاذهان کښ اوګورئ)-

فائده:- نسخ درے قسمه دے اول دا چه تلاوت او حکم دواړه منسوخ وی- دویم دا چه صرف تلاوت منسوخ وی او حکم باقی وی- دریم دا چه صرف حکم منسوخ وی او تلاوت باقی وی-

نُنسِهَا د نسیان نه اخستے شوید ے او یو مفعول ئے پټ دے نُنسِکَهَا- د قتاده نه روایت دے چه الله تعالیٰ به د خپل نبی نه بعضِ وحی هیره کړه او بعضِ به ئے منسوخ کړه ربیع او عبید بن عمیر وئیلی دی چه دا په معنی د پورته کولو دے سنا سو نه او د ابن عباس رضی الله عنهما نه نقل دے چه نسیان دلته په معنی د پریښودلو دے او د ابن زید نه نقل دے چه دا په معنی د محو کولو سره دے- او په بل قراءت کښ په همزه سره دے (ننسئها) په معنی

دَ تاخير (روستوكولو)۔ او دلته فرق په مينځ دَ نسخ او دَ إنساء كښ په پنځو وجو سره دے اول مَا نَنْسَخْ هغه چه ختم كړو موږ تعبد (بندګی) په تلاوة يا حكم يا دواړو سره او نُنْسِهَا يا پريږدو هغه په خپل حالت باندے بغير دَ بدل نه۔ دويم مَا نَنْسَخْ هغه چه بدل كړو موږ تلاوت دَ يو آيت يا حكم دَ هغے يا دواړه او نُنْسِهَا يا وران كړو هغه ستا دَ زړه نه (دَ حفظ نه) دا خو دَ صحابه كرامو دَ پاره واقع دے بالاتفاق او دَ نبی صلی الله عليه وسلم دَ پاره په دے كښ اختلاف دے مفسرينو دلته دَ هغے تفصيل ذكر كړے دے۔ دريم مَا نَنْسَخْ هغه حكم دَ آيت چه موږ زائيله كړو هغه دَ قرآن نه تلاوت ئے باقی وی يا نه وی۔ او نُنْسِهَا هغه تلاوت دَ آيت چه لرے كړو موږ هغه برابره خبره ده كه حكم ئے پاتے وی او كه نه وی پاتے۔ څلورم مَا نَنْسَخْ هغه چه بدل راوړو موږ يو آيت په ځائے دَ بل آيت او نُنْسِهَا يا هغه چه لرے كړو موږ بغير دَ بدل نه. پنځم مَا نَنْسَخْ هغه چه پورته كړو موږ روستو دَ نازلولو نه او ننسئها (په همزه سره) يا روستو كړو نازلول دَ هغے يا منسوخ كول دَ هغے (او په قراءة دَ غير مهموز دا معنی نيشته هاں كه چرے تخفيف دَ همزه اوكړے شی په حذف سره) نَأْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَا خيريت عام دے، په كولو كښ دَ مخكښ نه آسان وی او دَ مصلحت سره به برابر وی او زيات وی په ثواب كښ۔ أَوْ مِثْلِهَا مثليت په عمل كښ يا په ثواب كښ ليكن چه په مصلحت سره ډير برابر وی دَ دے دَ پاره چه دَ بدلولو فائده ښكاره شی۔ دَ دے مثال نسخ دَ بيت المقدس دَ قبلے دے كعبے طرف ته۔ دا دواړه په هغه معنی پورے خاص دی چه په هغے كښ دَ بدل راوړلو اشاره وی چه هغه دويم او دريم او څلورم او پنځم احتمال دے۔

فائده:۔ نسخ دليل دَ جهل نه دے بلكه دليل دَ علم بليغ او حكمت دے لكه يو ماهر ډاكټر يا طبيب دَ يو مريض دَ پاره دَ موسم په تغير سره دوائی بدلوی دا رنګ دَ يو نوع يو مريض له يو قسم دوائی وركوی او دغسے چه بل مريض وی نو هغه له بل قسم دوائی وركوی دَ طبائعو دَ اختلاف دَ وجے نه، نو الله تعالی دَ خپل مخلوق په طبائعو او حالاتو باندے پوره علم لری نو دَ هرے زمانے دَ اُمت دَ پاره جدا جدا احكام (فرعی) مقرر كوی او په هره تبديلئ او بدلون كښ خيريت او منفعت دَ اُمت مقصود وی۔ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللهَ عَلٰی كُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ، لفظ دَ اَلَمْ تَعْلَمْ او اَلَمْ تَرَ او دَ دے

أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ

ایا ته نه پوهیږې چه یقیناً خاص الله تعالیٰ لره بادشاهي ده د آسمانونو

وَالْأَرْضِ ۗ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ

او د زمکې. او نیشته تاسو لره سیوا د الله تعالیٰ نه هیڅوک

وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿١٠٧﴾ أَمْ تُرِيْدُوْنَ أَنْ تَسْـَٔلُوْا

دوست او نه مددگار. ایا غواړئ تاسو چه تپوس ته اوکړئ (په طریقه د اعتراض)

پښتان نور استعمالیږی د پاره د تنبیه په بدیهی (ښه ښکاره) ځایونو کښ او دا خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دے او مراد ترینه ټول اُمت دے یا خطاب دے هرهغه چاته چه په هغه کښ اهلیت د خطاب شته. او کُلِّ شَیْءٍ هر څیز او په هغې کښې داخل دے بدل راوړل د یو آیت په ځائے د بل چه د هغه نه خیروی یا په دنیا یا په آخرت کښ یا د هغې مثل راوړل. اشاره ده چه نسخ کول دلیل د عجز او بے علمئ نه دے لکه چه د یهودیانو خیال دے بلکه دلیل د قدرت او علم کلی دے.

نکته په دے کښ هم تنبیه ده په عموم د بادشاهئ د الله تعالیٰ ټولو اسمانونو او زمکو او ما بین د هغې ته او لفظ د لَهٗ مخکښ راوړے دے د پاره د دلیل د حصر او تخصیص نو دلالت کوی په رد د شرک فی التصرف باندے. ابن جریر وئیلی دی چه عرب هرکله خبر ورکوی د مملکت او سلطان نه نو لفظ د ملك په عموم سره ذکر کوی او هرکله چه خبر ورکوی د تصرف او د مِلك نه نو مِلك ذکر کوی په خصوص سره. نو مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ اشاره ده چه اوامر نواهی او بعض منسوخ کول او بعض باقی ساتل اختیار د الله دے او دلیل دے د بادشاهئ کُلّی د هغه نو د نسخ نه انکار کول په اصل کښ انکار دے د بادشاهئ د الله تعالیٰ نه. وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ په دے کښ اشاره ده ترغیب د طاعت د الله تعالیٰ او انقیاد د حکم د هغه ته په منسوخ او غیر منسوخ احکامو او حدود الهیه کښ او ویرے نه کولو ته د هغه چا نه چه اعتراض نه کوی ځکه چه ستاسو د پاره سیوا د الله تعالیٰ نه څوك انتظام چلوونکے، دفاع کوونکے او نصرت کوونکے نیشته. وَلِیٍّ په معنی د قیّم (انتظام چلوونکے) او مالك

رَسُولَکُمۡ کَمَا سُئِلَ مُوسٰی مِنۡ قَبۡلُ ؕ

دَ رسول ستاسو نه لکه څنګه چه تپوسونه کيدے شول دَ موسٰی علیه السلام نه دَ دے نه مخکښ

وَمَنۡ یَّتَبَدَّلِ الۡکُفۡرَ بِالۡاِیۡمَانِ فَقَدۡ

او چا چه واخستو (خوښ ئے کړو) کفر په بدل دَ ایمان کښ نو په تحقیق سره

ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِیۡلِ ﴿۱۰۸﴾ وَدَّ کَثِیۡرٌ مِّنۡ

واوړيدو دے دَ برابر لارے نه ۔ غواړي ډير دَ

دَ نفعے او ضرر دے نو ټول امور په اکمل او اصلح طریقه باندے چلوی ۔ او نَصِیۡر مدد او اعانت کوونکے دے یعنی دَ نقائصو او مفاسدو نه بچ ساتونکے دے ۔ او دا دواړه صفات ئے دَ دے وجے نه جمع کړيدی چه مالک کله په نصرت باندے قدرت لري او کله نه لري ۔ او نَصِیۡر هم کله مالک وی او کله نه وی ۔

فائده :۔ صیغه دَ وَلِی مفرد په قرآن کښ څلور څلویښت کرته او په صیغه دَ جمع سره دوه څلویښت کرته ذکر دے ۱ ۔ اثبات دَ ولایت په مینځ دَ عبادو مؤمنانو کښ په معنی دَ دوستانه او ملګرتیا کول لکه سورة انفال ۷۲ سورة توبه ۷۱ ۔ ۲ ۔ اثبات دَ ولایت په مینځ دَ کافرانو کښ او دَ شیطان سره په معنی دَ ملګرتیا کولو او خبره منل دَ یو بل لکه سورة جاثیه ۱۹ سورة نساء ۷۶ سورة انفال ۷۳ ) ۔ ۳ ۔ اثبات دَ ولایت دَ الله تعالٰی مطلقًا لکه په سورة شورٰی ۹ ۲۸ دا په معنی دَ اختیارمند او واکدار او مالک دَ دے ۔ ۴ ۔ اثبات دَ ولایت دَ الله دَ پاره دَ مؤمنانو، په معنی دَ مددګار خاص لکه په سورة نساء ۴۵ سورة العمران ۶۸ او سورة اعراف ۱۵۵ ۔ ۵ ۔ نفی دَ ولایت دَ غیرالله عمومًا څلیرېشت کرته لکه په سورة بقره ۱۰۷ سورة انعام ۵۱ سورة توبه ۷۴ ۱۱۶ ۔ ۶ ۔ زجر په ولایت دَ غیرالله باندے شپږ کرته لکه په سورة کهف ۵۰ ۱۰۲ سورة عنکبوت ۴۱ ۔ ۷ ۔ او نهی دَ ولایت دَ کافرانو نه اوه کرته لکه په سورة نساء ۸۹ سورة العمران ۲۸ کښ ۔ معانی دَ ولی په قرآن کښ بچ کوونکے، تدبیر کوونکے، دوست، مددګار، وارث، نائب، ملګرے دے نو په هر ځائے کښ خپله مناسب معنی مراد ده ۔

۱۰۸ اوس روستو دَ جوابانو دَ بعضِ شبهاتو دَ یهودیانو نه زجرونه ذکر کوی په ناکاره اعمالو او اقوالو دَ هغوی باندے ۔ نو په دے ایت کښ اول زجر دے

په اعتراضاتو کولو سره په آخری رسول باندے۔
اَمۡ تُرِيۡدُوۡنَ، اَمۡ دلته منقطعه دے په معنی د بل آ باندے او په دے خطاب کښ د مفسرینو درے اقوال دی۔ اول قول، چه داخطاب دے مشرکینِ عرب ته۔ او د دوی سوالات (په طور د ضد او عناد سره) متعلق وو د طلب د معجزاتو سره چه د هغے ذکر په سورة اسراء ۹۰، ۹۱، ۹۲، ۹۳ کښ شوے دے۔
سوال:۔ د دوی نه دا سوال خو بالفعل موجود وو نو دلته اراده ئے ولے ذکر کړے ده؟ جواب ۱: منع د ارادے نه په طریقه د مبالغے سره ده۔
جواب ۲: اراده متعلق ده د کما سئل له سره یعنی سوالونه کوئی او اراده لرئی چه په دے سوالونو سره دا رسول خفه شی پشان د موسیٰ علیه السلام۔
دویم قول، چه داخطاب دے صحابه کرامو ته او سوال نه مراد سوال د هغه څیز دے چه د هغے په بحث کښ خیر نه وی لکه په سورة مائده ۱۰۱ کښ دی او اراده په خپله معنی سره ده۔ دریم قول، داخطاب دے یهودیانو ته او دا قول غوره کړے دے اکثر مفسرینو د دے وجے نه چه د دے نه مخکښ او روستو ټول د یهودیانو بحث دے۔ او د دے قول په بنا اراده په طور د تاکید او مبالغے سره ده او سوال نه مراد هغه دے چه په سورة نساء ۱۵۳ کښ ذکر دے او د دے پشان نور عنادی سوالات دی۔
رَسُوۡلَكُمۡ په دے خطاب کښ تخصیص مراد نه دے بلکه احسان ښودل مراد دی او اشاره ده عموم د رسالت د آخری رسول صلی الله علیه وسلم ته۔
كَمَا سُئِلَ مُوۡسٰى مِنۡ قَبۡلُ، دلته تشبیه په ایذاء ورکولو او په ضد او په عناد کښ ده او سوالونه په موسیٰ علیه السلام باندے د بنی اسرائیلو ډیر وو لکه په سورة بقره ۵۵ او سورة اعراف ۱۳۸ کښ او نور د دے پشان چه په هغے سره موسیٰ علیه السلام ته ایذاء ورکول مقصد وو۔
وَمَنۡ يَّتَبَدَّلِ الۡكُفۡرَ بِالۡاِيۡمَانِ چه مراد د دینه مشرکین یا یهودیان دی نو تبدل نه مراد کفر اخستل دی د ایمان په مقابله کښ او که خطاب صحابو ته وی نو تبدل نه مراد مرتد کیدل دی او په دے کښ اشاره ده چه د نبی د معجزاتو نه مخ اړول او په هغه باندے اعتراضونه او طعنونه کول کفر دے۔
فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ، سواء وسط ته وائی او مراد ترینه مستقیم لاره ده او دا دلیل دے چه بدلول د کفر په ایمان سره سبب د کامل ضلال دے۔

أَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يَرُدُّوْنَكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ إِيْمَانِكُمْ كُفَّارًا ۚۖ

کتابیانو نه (اړول ستاسو چه واړوي تاسو روستو د ایمان ستاسو نه کفر کوونکي

حَسَدًا مِّنْ عِنْدِ أَنْفُسِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ

په وجه د حسد (چه پیدا شویدے) د نفسونو د دوی نه روستو د دے نه چه ښکاره شو

لَهُمُ الْحَقُّ ۚ فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا حَتّٰى يَأْتِيَ اللّٰهُ

دوی ته حق۔ نو معاف کوئ او بے پرواشئ د دوینه تر دے پورے چه راوړي الله تعالی

بِأَمْرِهٖ ۗ إِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ۝١٠٩

حکم خپل۔ یقینًا الله تعالی په هر څه باندے قدرت لرونکے دے۔

ف۱۰۹ په دے ایت کښ دویم زجر دے په عمل د اهل کتابو باندے چه مرتد کول د مؤمنانو دی د ایمان او اسلام نه او دغه سوالونه او شبهات چه مخکښ ایت کښ ذکر شول یو سبب دے د مرتد کولو د پاره۔ وَدَّ د زړه تمنا ته وئیلے شي مراد دلته پوره کوشش کول د هغوی دی۔ كَثِيْرٌ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ دا لفظ یهود او نصاری دواړو ته شامل دے ځکه چه په دے فعل کښ دواړه شریک دی۔ لَوْ يَرُدُّوْنَكُمْ اړول لَوْ مصدریه دے او د تاکید د تمنا د پاره دے او داسے په سورة العمران ف۶۹ کښ هم دی۔ حَسَدًا ماده د حسد په قرآن کښ پنځه کرته ذکر ده۔ او داسے په سورة نساء ف۵۴ کښ هم ذکر دے او منافقین د دے تهمت لګوی په مؤمنانو باندے لکه په سورة فتح ف۱۵ کښ او د دے په قباحت باندے لوئے دلیل دا دے چه امر شویدے په تعوذ غوښتلو د دے نه په سورة فلق ف۵ کښ۔ حسد تمنا کول د زوال د نعمت الهیه دی د هغه چا نه چه په هغه باندے خاص نعمت د الله تعالی شوے وی او کله کوشش هم کوئ هغه د زائیل کولو د پاره او امام رازی د دے اُوه اسباب لیکلی دی۔ (۱) خپل ځان عزت مند ګنړل۔ (۲) د بل چا نه خدمت اخستل۔ (۳) عجب او تکبر کول۔ (۴) بیره د فوت کیدلو د خپل مقصد۔ (۵) مینه کول د مشرئ او د دنیوی مرتبو سره۔ (۶) بخل او حرص کول په خیر د بندګانو د الله تعالی سره۔ نور تفصیل ئے په تفسیر کبیر کښ ذکر دے۔

او حسد هر قسم چه دے نو هغه مذموم او ګناه دے او د دے بعض تفصیل یه په تفسیر

وَاَقِیْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۭ وَمَا تُقَدِّمُوْا

او پابندي کوئ د مونځ او ورکوئ زکوٰة - او څه چه مخکښې اولیږئ

لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَیْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ ۭ

د پاره د فائدې د ځانونو ستاسو څه نیک عمل او به مومئ (بدله د هغې) د الله تعالیٰ سره

د سورة فلق کښې راځي او د دې نه ګناهونه کبیره پیدا کیږي لکه چه د واقعې د یوسف علیه السلام نه په حسد کولو د رونړو د هغه کښې تفصیلاً معلومیږي او حسد کله په معنی د غبطه (اغتباط) سره وي او مراد د هغې نه تمنا کول د مثل د نعمت د بل چاوي چه هغې ته سیالي وئیلې شي او امام بخاري باب ایښې دې باب الاغتباط في العلم والحكمة او په دې کښې حدیث ذکر کړې دې لا حسد الا في اثنین (الحدیث) یعنی په دې حدیث کښې حسد په معنی د سیالۍ کولو دې. مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ دا صفت د حسد ا دې یعنی دا حسد د دوی د خبیث نفسونو نه راپیدا شوې دې یا متعلق دې په ودّ پورې یعنی دا تمنا او حسد د حق پرستۍ او دیانت د وجې نه نه دې بلکه د نفساني خواهش نه دې. مِنْ بَعْدِ مَا تَبَیَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ، حق توحید او صدق د آخري رسول او د قرآن کریم دې چه د هغې په هر قسم دلیلونو او معجزاتو سره وضاحت کړې شوې دې.

فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا، د دې ځائې نه پنځه اخلاق او اعمال ذکر کوي په وخت د ښکاره کیدلو د حسد د حاسدانو کښې. اول عفو کول دویم صفح کول. د دې مراد سره د فرق نه دا دې چه عفو نه راتیول دي په هغه جرم سره چه ستاسو په باره کښې او کړي لکه سب وشتم بې عزتي کول ستاسو وغیره. او صفح یعنی د هغې اثر د زړه نه لرې کول او عملاً هم د معافۍ اظهار کول دي (قرطبي). دویم فرق، عفو تجاوز کول دي د دوی د شبهاتو او سوالاتو نه او صفح د دوی د جواب کولو نه اعراض کول دي. دریم فرق، عفو د دوی محبت د زړونو نه محو کول دي او صفح د دوی د دوستانې او تعلقاتو نه ځان ګرځول دي.

فائده:- دلته بعض مفسرینو وئیلي دي چه عفو او صفح کول منسوخ شوي دي په هغه آیاتونو سره چه په هغې کښې حکم د قتال کولو دې د اهل کتاب کافرانو سره لیکن د دې اول جواب دا دې چه په دې کښې غایه ذکر ده په

إِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ بَصِيۡرٌ ﴿١١٠﴾ وَقَالُوۡا

یقیناً الله تعالی په هغه عملونو چه تاسو یئے کوئ لیدونکے دے۔ او دوی وائی

لَنۡ يَّدۡخُلَ الۡجَنَّةَ اِلَّا مَنۡ كَانَ هُوۡدًا

هیچرے به داخل نه شی جنت ته مګر هغه څوک چه یهودی وی

اَوۡ نَصٰرٰى ؕ تِلۡكَ اَمَانِيُّهُمۡ ؕ قُلۡ هَاتُوۡا

یا نصرانی وی - دا آرزوګانے (بے دلیله خبرے) د دوی دی۔ ته ورته اووایه راوړئ

بُرۡهَانَكُمۡ اِنۡ كُنۡتُمۡ صٰدِقِيۡنَ ﴿١١١﴾ بَلٰى ق

یقینی دلیل ستاسو که تاسو رشتینی یئ - بلکه

حَتّٰى يَاۡتِىَ اللّٰهُ اه سره او په منسوخ اصطلاحی کښ غا یه ذکر نه وی بلکه حکم مطلق وی۔ او دویمه وجه دا ده چه دا اخلاق دی په وخت د دعوت کښ منافی د قتال سره نه دی نو قول د نسخ ته حاجت نیشته۔ بِاَمۡرِهٖ، مراد د دے نه امر د قتال د دوی دے یا غلبه د مسلمانانو یا توفیق د ایمان ورکول دوی ته او الله تعالی په دے ټولو کارونو قدرت لری د دے وجے نه ورپسے یئے اوفرمائیل چه اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىۡءٍ قَدِيۡرٌ۔

سلا په دے کښ د رے اداب ذکر کوی۔ اقامة الصّلوٰة۔ ایتاء الزکوٰة او تقدیم د عمل د خیر۔ وَمَا تُقَدِّمُوۡا لِاَنۡفُسِكُمۡ مِّنۡ خَيۡرٍ، د اجر د حصول د پاره دوه شرطونه ذکر دی اول لِاَنۡفُسِكُمۡ یعنی چه نیت یئے د ځان د پاره کړے وی بل چاته یئے د ثواب ورکولو یا د بل چا د نیابت په نیت سره یئے نه وی کړے۔ دویم مِنۡ خَيۡرٍ هر هغه عمل چه د قرآن او سنت سره برابر وی۔ تَجِدُوۡهُ عِنۡدَ اللّٰهِ د عمل موندلو نه مراد ثواب د هغے دے۔ بَصِيۡرٌ اشاره ده چه د هغه نه د هیچا عمل نه روکیږی او نه غائب او ضائع کیږی۔

سلا په دے ایت کښ دریم زجر دے د هغوی په قول یعنی دعوی د جنت د ځان د پاره خاص کول او د خلقو د مرتد کولو د پاره دا دعوے کول تو ځکه ئې ایت سره یئے په دے وجے سره ربط دے۔ هُوۡدًا اَوۡ نَصٰرٰى، اَوۡ د تفصیل د پاره دے یعنی په قَالُوۡا کښ یئے دوه ډلے یو ځائے کړیدی لیکن په اَوۡ سره یئے دلالت اوکړو چه د هر قائل (مدعی) جدا جدا دعوی ده یعنی یهود وائی

مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗ

چاچه تابع کړو ځان خپل خاص الله تعالیٰ ته او دے ښائسته عمل والا وو نو ده لره

اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۪ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

ثواب د عمل د ده دے په نیز د رب د ده - او نه به وي هیڅ یره په دوي باندے او نه به دوي

يَحْزَنُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى

غمژن کیږي - او وائي یهودیان چه نه دي نصارٰی

چه جنت زمونږ د پاره خاص دے او نصارٰی وائي چه زمونږ د پاره خاص دے ځکه چه د دوي هم په کورنئ کښ اختلاف وو لکه چه روستو ایت کښ ذکر کیږي - تِلْكَ اَمَانِيُّهُمْ ، دا رد دے په دعوٰی د هغوي باندے - اَمَانِي جمع د امنية ده هر هغه څیز چه نفس د هغے خواهش کوي او دلیل شرعي یې نه وي یعنی دا بے دلیله خبرے دي - بُرْهَانَكُمْ ، برهان هر هغه دلیل دے چه یقیني وي او صداق د دعوے د پاره ضرور مستلزم وي - دالفظ په قرآن کښ اته کرته راغلے دے - او داسے مطالبه د مشرکانو نه د هغوي په شرك باندے په دنیا کښ په سورة انبیاء ۲۴ او سورة نمل ۶۴ کښ ذکر ده او په قیامت کښ په سورة قصص ۷۵ کښ او مصداق یې په سورة نساء ۱۷۵ کښ قرآن دے او په سورة قصص ۳۲ کښ معجزات دي - اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ، یعنی رشتینوالے د دعوے بغیر د قطعي او یقیني دلیل نه نه کیږي -

۱۱۲ دا هم رد دے په قول د یهود او نصارٰی باندے او په دے کښ ذکر دے د سبب د استحقاق د جنت - یعني جنت په یهودیت او نصرانیت (قومیت) سره نه حاصلیږي بلکه په عقیده او عمل صالح سره حاصلیږي - اَسْلَمَ ابن جریر وئیلي دي چه اسلام استسلام (تابعداری کولو) ته وئیلے شي او د اخلاص په معنی سره هم راځي - وَجْهَهٗ ذکر د مخ مراد ترینه ټول بدن (ذات) دے ځکه چه په تابع کولو د مخ سره تابعداری د ټول بدن لازمیږي - او ابن کثیر په معنی د دین سره اخستے دے او آلوسي او قرطبي وئیلي دي چه په معنی د قصد (مقصد) سره هم کیدے شي - په هره معنی سره چه وي خو مراد په دے کښ توحید دے عقیدةً او عملاً - وَهُوَ مُحْسِنٌ ، مراد په دے سره هغه څوك دے

عَلٰى شَيْءٍ ۖ وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ

په هیڅ دین باندې - او وائي نصارٰی چه نه دي یهودیان

عَلٰى شَيْءٍ ۙ وَّهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ؕ كَذٰلِكَ

په هیڅ دین باندې او دوی لولي کتاب - دغسې

قَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ

وئیل هغه کسانو چه نه پوهیدل پشان دَ وینا دَ دوی

فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيْمَا

نو الله تعالٰی به فیصله اوکړي په مینځ دَ دوی کښ په ورځ دَ قیامت په هغه څه کښ

كَانُوْا فِيْهِ يَخْتَلِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ

چه دوی په هغې کښ اختلاف کوو - او څوک لوئې ظالم دے

چه عمل ئې احسن وي یعني په تابعدارئ دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم سره وي - ابن کثیر وئیلي دي چه دَ قبولیت دَ عمل دَ پاره دوه شرطونه دي اول داچه دَ الله تعالٰی دَ پاره خالص وي (شریک په کښ نه وي) دویم داچه موافق دَ شریعت سره وي نوکه خالص وي خو موافق دَ سنت نه وي نو نه قبلیږي - وَلَا خَوْفٌ الخ کنایه ده دَ دخولِ اوّله دَ جنت نه -

۱۱۳ دا خلورم زجر دے په اختلاف کولو دَ یهودو او نصارٰؤ په کورنئ کښ په داسې طریقې سره چه دَ یو بل تکفیر کوي - سره دَ دے نه چه په تورات کښ تصدیق دَ انجیل شته او په انجیل کښ تصدیق دَ تورات شته دے - او اختلاف دَ هغوی په بعضِ جزئیاتو کښ دے - شیخ الاسلام رحمة الله علیه په کتاب اقتضاء الصراط المستقیم کښ وئیلي دي چه دَ دے مثال په دے امت کښ هغه مسلمانان دي چه په اصولو او عقائدو کښ متفق دي لیکن دَ فروعو دَ اختلاف دَ وجے نه دَ یو بل تکفیر کوي او سبب ئې تعصب او ضد او عناد وي نو دا مرض دَ یهودو او نصارٰؤ دے چه دے امت کښ منتقل شوے دے -

سوال:- دا دواړه ډلے خو دَ نبوت دَ آخري نبي نه منکر دي نو دواړه کافر دي

# وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ اَنْ يُّذْكَرَ فِيْهَا

دَ هغه چا نه چه منع کوی دَ کورونو (مسجدونو) دَ الله تعالیٰ نه داچه یاد کړے شی په هغے کښې

# اسْمُهٗ وَسَعٰى فِىْ خَرَابِهَا ؕ اُولٰٓئِكَ مَا كَانَ

نوم دَ الله تعالیٰ (په توحید سره) اوکوشش کوی په خرابولو دَ هغے کښې - دغه کسان نه دَه لائق

# لَهُمْ اَنْ يَّدْخُلُوْهَآ اِلَّا خَآئِفِيْنَ ؕ لَهُمْ

دوی لره چه داخل شی دوی مسجدونو ته مګر یره کوونکی - دوی لره

# فِى الدُّنْيَا خِزْىٌ وَّلَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ

په دنیا کښې شرمندګی دَه او دوی لره په اخرت کښې

نو دا قول خو دَ دوی ړو رشتینے دے چه (لَيْسَتِ الْيَهُوْدُ عَلٰى شَىْءٍ - او لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَىْءٍ) ؟ -

**جواب:**- مراد دَ ایت دا دے چه یغیر دَ تعرّض کولو نه انکار دَ نبوت دَ اخری نبی ته دا دوی دَ یو بل دَ اصل دین نه انکار کوؤ او دَ اصلِ دین انکار په اصل کښې انکار دے دَ اصلِ تورات او انجیل نه او دلیل په دے باندے دا جمله دَه چه وَهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ او دَ سوال جواب ابن جریر او شربینی په خپلو تفسیرونو کښې ذکر کړیں ے۔

عَلٰى شَىْءٍ، مراد دَ شَىْءٍ نه هغه دین دے چه دَ الله تعالیٰ په نیز باندے حق وی لیکن دَ مبالغے دَ وجے نه مطلقِ نفی دَ څیز یے اوکړله - وَهُمْ يَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ مراد دَ الکتاب نه دواړه کتابونه دی تورات او انجیل او په هغے کښې دَ یو بل تصدیق شته دے او دوی یے لولی - الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ، مراد دَ دے نه هغه ټول جاهلان او امیان کافران دی چه دَ حق تکذیب یے په هره زمانه کښې کړیں ے - په دے کښې قباحت دَ یهودو او نصاراؤ دے چه دوی سره دَ علم نه پشان دَ بے علمو کار ونه کوی - فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ مراد دَ دے نه عملی فیصله کول دی یعنی نیکان خلق به جنت ته داخل کړی او منکرین به جهنّم ته داخل کړی - يَوْمَ الْقِيٰمَةِ، دا نوم ورته دَ دے وجے نه وئیلے شی چه ټول خلق به دَ قبرونو نه بهر شی او الله تعالیٰ به په میدان حشر کښې اُودریږی۔

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١١٤﴾ وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ

| عذاب | لوئے دے۔ | او خاص الله تعالیٰ لره مشرق او مغرب دے |
| --- | --- | --- |

١١٤ دا ینځم زجر دے په منع کولو د بیان د حق ته په مساجدو کښ د ځکښ ایت ته ربط دا دے چه د یهود او نصاراو د یو بل سره اختلاف دا سے دے د چه یو بل د مساجدو ته منع کوی۔ وَمَنْ أَظْلَمُ دا استفهام انکاری دے یعنی د دا سے شخص نه لوئے ظالم نیشته۔ مَسَٰجِدَ اللَّهِ بعض مفسرینو د دے نه مسجد اقصٰی مراد کړیدے چه نصاراو د بخت نصر په مدد سره هغه وران کړے وو او یهودیان یئے ترینه بندکړی وو او بعض مفسرینو د دے نه مسجد حرام مراد کړے دے چه د مکے مشرکانو د هغے نه نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه منع کړی وو او خراب کړے یئے وو یعنی د توحید او مؤحدینو نه یئے خالی کړے وو اگرچه په ظاهر کښ یئے نه وو خراب کړے۔ لیکن غوره دا ده چه دا حکم په یو مسجد پورے خاص نه دے د دے وجے نه مساجد یئے جمع صیغه راوړے ده او دا قول قرطبی غوره کړیدے نو هر مسجد ته دا حکم شامل دے۔ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ، دا بدل اشتمال دے د مساجدو نه نو په دے کښ دوه گناهونو ته اشاره ده یو د مسجد نه منع کول او بل د ذکر د اسم الله منع کول لیکن مقصد د منع د دوی دویمه خبره ده۔ ذکر د اسم الله نه مراد ذکر د هغه دے په شرعی طریقے سره په توحید د ربوبیت او الوهیت او تشریع سره او هغه بیان کول دی د توحید او دعوت ورکول دی حق ته او مونځ په سنت طریقے سره کول او قرآن لوستل دی۔ وَسَعَىٰ فِي خَرَابِهَا، خرابی دوه قسمه ده۔ اول ظاهری یعنی نړول، په هغے کښ گندگی او خزلے وغیره غورځول۔ دویمه خرابی معنوی ده یعنی په هغے کښ شرک، بدعت کول، فسق و فجور کول، د دنیا خبرے او مجلسونه کول۔ أُولَٰئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَا إِلَّا خَائِفِينَ، په دے کښ دوه توجیه دی۔ اول دا جمله خبریه ده په خپله معنی سره تو پیشنگوئي او بشارت دے چه دا سے وخت به راشی چه الله تعالیٰ به مؤمنانو له غلبه او قدرت ورکړی او دغه مسجد به قبضه کړی د پاره د توحید او سنت جاری کولو نو مشرکان او منافقان که دینه راځی نو په خوف سره به راځی۔ دویم دا جمله خبریه په معنی د انشاء ده یعنی په مسلمانانو باندے فرض دی چه جهاد او کړی

فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ

پس کوم طرف ته چه گرځوئ مخ خپل نو هلته مخه د الله تعالیٰ ده۔ یقیناً الله تعالیٰ

وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۙ

فراخ فضل والا دے او پوهه دے په هر څه۔ او دوی وائي چه نیولے دے الله تعالیٰ ځوئے (نازولے)

تر دے پورے چه مساجد د مشرکانو د قبضے نه ازاد کړی او هغوی ادیر وی۔ او دغسے او شوله چه نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه غالب شول او مکه یئے فتح کړله او مسجد حرام یئے د مشرکانو د قبضے نه ازاد کړو۔ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ خزی د دوی مغلوبیت او جزیه (ټیکس) ورکولو او نورو ذلتونو ته شامل دے۔ دا سے ابن کثیر وئیلی دی۔ فائده ١ مساجد او مسجد په قرآن کښ اتویشت کرته ذکر دے او د دے اته مصداقات دی، اول هر یو مسجد لکه دا ایت، دویم مسجد قباء یا مسجد نبوی (سورة توبه ١٠٨)، دریم مسجد حرام (سورة اسراء ١)، څلورم مسجد اقصی دغه مخکښ ایت۔ پنځم مسجد ضرار (سورة توبه) شپږم مسجد په معنی د سجود (سورة اعراف ٢٩)، اووم مساجد په معنی د اعضاءِ سجود (سورة جن ١٨) او اتم مسجد د مړو په خواکښ (سورة کهف ٢١) او دا اخری قسم شرعًا حرام دے۔ فائده ٢ سوال: اَظْلَمُ صیغه د اسم تفصیل ده او د دے مصداق خو یو فرد وی او حال دا چه په قرآن کښ دا لفظ شپاړس کرته ذکر دے او په دے کښ د اَظْلَمُ افراد یئے شپږ ذکر کړیدی اول منع کول د مساجد ته لکه دا ایت، دویم شهادت پټول (سورة بقره ١٤٠)۔ دریم تکذیب د ایاتونو (سورة انعام ١٥٧)۔ څلورم اعراض کول د ایات الله نه۔ پنځم افتراء په الله تعالیٰ باندے او دا یئے اته کرته ذکر کړے دے (سورة انعام ٢١)۔ شپږم په الله تعالیٰ باندے دروغ وئیل (سورة زمر ٣٢)؟۔ جواب ١ دا صفتونه دی د یو شخص (کافر) لیکن جدا جدا یئے ذکر کړیدی هر یو په مناسب ځائے کښ دے۔ جواب ٢ دا تفصیل د هرے نوعے جدا جدا دے یعنی دا شپږ انواع دی په هره نوعه کښ جدا جدا اظلم دے نو په ما تعیتو کښ ډیر ظالم منع کوونکے دے د مسجد نه۔

١١٥ په دے ایت کښ تسلّی ده هغه چالره چه د یو مسجد نه مشرکانو منع کړے وی نو دا تعلق لری د مَنْ مَنَعَ مَسٰجِدَ اللهِ ا ه سره یعنی که تا سو لره څوک

منع کوي د مساجدو د الله تعالیٰ نه نو د الله تعالیٰ بیان د توحید او بیا د قرآن او مونځ
په بل ځائے کښ کوئ ځکه ټول طرفونه د دنیا د الله تعالیٰ دی - وَلِلّٰهِ الْمَشْرِقُ
وَالْمَغْرِبُ، د دے دوه طرفونو نه مراد ټوله دنیا او ټول طرفونه دی یو وجه
دا ده چه په اصل کښ د نمر او تورو ستورو ټولو د پاره دا دواړه مدارونه دی
او دا اصلي جهات (طرفونه) دی او شمال وجنوب عارضي جهات دی - بله
وجه دا ده چه جسم د کرة الارض په نصف باندے تیم شي نو یوه ټکړه مشرق
شو او بله ټکړه مغرب شو - فَاَيْنَمَا تُوَلُّوْا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ، د دے په باره کښ ډیر
اقوال دی اول دا چه هر کله نبی صلی الله علیه وسلم د مکے نه راووتلے شو
او مدینے ته ئے هجرت اوکړو تو امر ورته اوشو چه بیت المقدس ته مخ
اوګرځوه نو شپاړس یا اولس میاشتے روستو بیا هغه منسوخ شوه او قبله ئے کعبه
مقرر کړه نو یهودو اعتراض اوکړو نو په دے جملے سره جواب ورکړے شو -
دویم قول دا دے چه دا حکم په هغه وخت کښ وو چه کعبے ته مخ ګرځول فرض
شوی نه وو دا دواړه اقوال ابن جریر ذکر کړیدی - دریم دا چه دا په باره د نفلي
مونځ کښ د سفر په وخت کښ بلکه د کلی نه بهر په سورلئ باندے - او قرطبي
د مجاهد نه نقل کړیدی چه معنی د ایت دا ده چه د مشرق او مغرب نه کعبے
طرف ته مخ کوئ ځکه چه دغه یو قبله د هر طرف والو د پاره ده لیکن مناسب
معلومیږی چه دا اقوال د دے سورت د ۱۴۲ سره تعلق لري - او هر چه دا
ایت دے نو اول ئے موتر مقصد ذکر کړیدے یعنی هر کله چه ناسولره خوک
د مسجد نه منع کړي د بیان د توحید او د قرآن نه یا د مونځ نه نو بهر د مسجد
نه په بل ځائے کښ الله تعالیٰ ته توجه د مخ او د زړه اوکړئ او خپل عبادت
ادا کوئ او دا ابن جریر غوره کړیدے - وَجْهُ اللّٰهِ په دے کښ اختلاف دے
د سلف صالحینو - د بعضو په نیز دا د متشابهاتو نه دے معنی ئے محکم ده
او حقیقت دے یعنی مخ د هغه بغیر د تشبیه او تمثیل نه د مخلوق سره
او بغیر د تحریف او تاویل نه په انکار د حقیقت سره او دا مذهب د سلف
صالحینو دے په ټولو متشابهاتو کښ - او د بعضو سلفو په نیز دا د متشابهاتو نه
نه دے بلکه مشترک دے په وضع سره د پاره د ډیرو معانیو او په هره
معنی چه مستعمل دے نو حقیقت دے د قرینے د مقام د وجے نه هلته د
معنی تعیین کیدے شي - شیخ الاسلام په فتاوی ص ۱۹۳ ج ۳ کښ وئیلي دی

سُبْحٰنَهٗ ؕ بَلْ لَّهٗ مَا فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

(نه) پاک دے الله تعالیٰ - بلکه هغه لره اختیار دے د هغه څه په اسمانونو او زمکه کښ دی۔

كُلٌّ لَّهٗ قٰنِتُوْنَ ﴿۱۱۶﴾ بَدِيْعُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ

دا ټول هغه ته تابعداری کوونکی دی۔ نوے (رنا اشنا) پیدا کوونکے د اسمانونو او د زمکے دے۔

وَلَيْسَتْ هٰذِهِ الْاٰيَةُ مِنْ اٰيَاتِ الصِّفَاتِ وَمَنْ عَدَّهَا فِی الصِّفَاتِ فَقَدْ غَلَطَ (دا ایت د ایاتونو د صفاتو نه دے او چا چه شمار لے دے په صفاتو کښ نو غلط شوید دے) او وئیلی ئے دی چه وَجَهٗ په معنی د جهت سره ده او مراد تری نه قبله ده دا قول د مجاهد او امام شافعیؒ وغیره نه روایت دے په دے بنا باندے زه وایم چه وجه په قرآن کښ شپږو دیرش کرته ذکر دے او په اوو معناو سره استعمال دے، اول په صفت د الله تعالیٰ کښ دیارلس کرته، دویم په معنی د اول (سورة العمران ۷۲)، دریم په معنی د توجه (سورة یوسف ۹)، څلورم مخ د انسان (سورة یوسف ۹۳)، پنځم ذات نفس (سورة یونس ۱۰۵)، شپږم طریقه (سورة حج ۱۱، سورة مائده ۱۰۸)، او ووم مخاویزی (سورة زمر ۲۴)۔ اِنَّ اللّٰهَ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ، واسع صفت د الله تعالیٰ نهه کرته ذکر دے۔ قرطبی د دے پنځه معانی ذکر کړیدی۔ اول معنی متعدی ده یعنی فراخی راولی په بندګانو خپلو باندے په احکامو د دین کښ۔ دویم صفت دے په اعتبار د علم سره یعنی فراخه دے علم د هغه هر څیز ته۔ دریم سخی دے په اعتبار د عطاء او رحمت سره۔ څلورم فراخ بخشش والا دے۔ پنځم فضل کوونکے دے په وسعت سره په بندګانو خپلو باندے۔

۱۱۶ دا هم زجر دے یهود و نصارٰی او نورو مشرکینو ته او جواب دے د شپږم شبهے د هغوی۔ هر کله چه قرآن کښ ځائے په ځائے عبدیت او عجز د عامو انبیاؤ او د عیسٰی علیه السلام او د ملائیکو بیان شو نو دوی اعتراض اوکړو چه تاسو د الله تعالیٰ د انبیاؤ او ملائیکو بے ادبی کوئی هغوی ته عباد (بندګان) وایئ؟۔ حاصل جواب په طریقه د الزام سره دے چه مونږه بے ادبی د هغوی ته کوو لیکن تاسو الله تعالیٰ ته کنځلے کوئی ځکه په حدیث قدسی کښ وارد دی چه څوك الله تعالیٰ ته د ولد نسبت کوی نو دا هغه ته کنځل دی او دا خو صریح کفر او شرك دے۔ وَقَالُوا اتَّخَذَ اللّٰهُ وَلَدًا، نسبت کول د ولد

الله تعالیٰ ته په قرآن کښ (سورة صافات ۱۵۲، سورة بقره ۱۱۶، سورة یونس ۶۸، سورة کهف ۴، سورة مریم ۸۸، سورة انبیاء ۲۶) کښ او نفی د ولد د هغه نه (سورة جن ۳، سورة زمر ۴، سورة فرقان ۲، سورة مریم ۹۱ ۹۲، سورة اسراء ۱۱۱، سورة زخرف ۸۱، سورة مؤمنون ۹۱، سورة مریم ۳۵، سورة انعام ۱۰۱، سورة نساء ۱۷۱، سورة اخلاص ۳) کښ ذکر دے او لفظ د ولد، ابن او بنت (ځوئے ـ لور) دواړو ته شامل دے نو نسبت د ابن او بنون ابناء الله تعالیٰ ته په (سورة توبه ۳۰، سورة انعام ۱۰۰ او سورة مائده ۱۸) کښ دے او نسبت د بنات الله تعالیٰ ته په (انعام ۱۰۰، سورة نحل ۵۷، سورة صافات ۱۴۹، سورة طور ۳۹) کښ دے او په دے ټولو آیاتونو کښ رد دے په عقیده د کافرانو او د مشرکانو باندے. او په دے شرک د یهودو او نصاراؤ نه وړاندے هندوان او بده مذهب والا اخلق اخته وُو په دوی کښ د براهمه عقیده دا ده چه الله تعالیٰ حلول کړے دے په کرشنه (د دوی یو معبود دے) کښ نو په هغه کښ لاهوت او ناسوت دواړه جمع شویدی او هغه د الله تعالیٰ ځوئے دے. دا رنګ بوذیه ډله هم د بوذا (چه د دوی معبود دے) په باره کښ دا سے عقیده لری چه بوذا ابن الله دے او الله تعالیٰ په دهٔ کښ حلول کړے دے.

**مقصد د اتخاذ ولد:-** ولدِ حقیقی خو هغه وی چه د والد ینونه پیدا شوے وی په دے معنی سره خو الله تعالیٰ لره ولد د مشرکانو په نیز باندے هم نه وُو مراد هاں که چرے په هغوی کښ د بعضِ جاهلانو عقیده وی نو څه بعیده خبره نه ده لیکن د اکثرو په نیز ولد حکمی مراد دے او په اولاد کښ خصوصی صفات دادی چه نیابت کول د پلار نه په کارونو کښ د پلار د طرف نه هغه ته اختیارات سپارل، د پلار آثار او صفات په ولد کښ ښکاره کیدل، او هر کله چه ډیر محبوب وی (بیوی) نو هغه ته نازولے وئیلے شی او هغه د ډیر محبت د پلار نه په پلار باندے مجبوراً بعضِ کارونه کوی. نو د دوی عقیده دا ده چه عزیر او عیسیٰ علیهما السلام یا ملائیک په دے صفاتو سره د الله تعالیٰ د باره په حکم د اولاد کښ دی. او آلوسی وئیلی دی چه لفظ اتَّخَذَ چه ولد سره ذکر دے دا هم ښکاره دلالت کوی په ولد حکمی باندے لکه چه عزیزِ مصر په باره د یوسف علیه السلام کښ وئیلی وُو (او نتخذه ولدا) یا د فرعون ښځے په باره د موسیٰ علیه السلام کښ

وئیلی دی (او نتخذہ ولدا) او داسے ابن عطیه په تفسیر کښې لیکلی دی او قرطبی (دَ هغه نه نقل کړیدی) چه مراد دَ ځوئي والی نه ځوئي والے دَ مینے او شفقت دے حقیقةً مراد نه دے (تفسیر سورة توبه)۔ او داسے امام ولی الله دهلویؒ په حجة الله البالغه کښې وئیلی دی حاصل یې دا دے چه مشرکان عقیده لري چه الله تعالیٰ خو یو دے خو دَ دنیا دَ بادشاهانو په شان دَ ملک په اطرافو کښې بعض بزرګانو ته دَ هغه علاقے اختیارات او تصرفات او سپاري او دَ هغه علاقے دَ خلقو حاجات دَ هغه په سفارش سره پوره کوي نو هغه خلق دَ ډیر عقیدت دَ وجے نه هغه بزرګ ته بنده نه وائي بلکه دَ الله تعالیٰ محبوب مطلق او ځویځ ورته وائي او دا مرض په یهودیانو او نصاراؤ او دَ دے امت په بعض منافقانو کښې هم شته دے۔ او نیشاپوری لیکلی دی چه یهودیانو عزیر علیه السلام دَ الله تعالیٰ دَ علمونو مظهر ګنړلو چه الله تعالیٰ دهٔ ته ټول علمونه خپل ښودلی دی دَ دے وجے نه یې ورته ابن الله وئیلو او نصاراؤ عیسیٰ علیه السلام دَ تصرفاتو دَ الوهیت مظهر ګنړلو چه الله تعالیٰ دهٔ ته دَ الوهیت او خدایئ قدرت او تصرف ورکړیدے دَ دے وجے نه یې هغه ته ابن الله وئیلو (انتهیٰ)۔ نو معلومه شوه چه داسے عقیده دَ عامو مشرکانو په دے وخت کښې هم شته دے لیکن دوی ورته ځویځ نه وائي صرف نازولے ورته وائي او دَ یهودیانو او نصاراؤ په کتابونو کښې دَ ولی ځائے لفظ دَ ابن استعمالیدلو (لکه چه آلوسی لیکلی دی) نو هغوی ورته ځویځ وائي۔

نو په دے ایت کښې دَ هغوی دَ قول تردید یې په درے طریقو سره کړیدے اول سُبْحٰنَهٗ قرطبی وئیلی دی چه دَ سُبْحَانَ معنی تنزیه تبریهٔ (پاکولے) او محاشات دے یعنی الله تعالیٰ دَ هر نقصان او عیب نه (چه منافی وی دَ الوهیت سره) پاک دے نو ولد حقیقی یا حکمی کیدل دَ الوهیت دَ پاره عیب او نقصان دے۔ او دَ دے ډیرے وجے دی۔ اوله وجه، ولدیت تقاضا دَ جنسیت کوی او جنسیت مستلزم دے حدوث لره او حدوث دَ الوهیت سره منافی دے۔ دویمه وجه، ولدیت مستلزم دَ احتیاج لره او الله تعالیٰ دَ احتیاج نه پاک دے۔ دریمه وجه، ولدیت (حقیقی) تبعیض او تجزی غواړی (یعنی ولد ټکړه وی دَ پلار نه) او دا دَ الوهیت سره منافات لري۔ څلورمه وجه، ولدیت تشبیه غواړی یعنی په بعض صفاتو کښې

وَإِذَا قَضَىٰٓ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ﴿۱۱۷﴾

او کله چه اراده اوکړی ډیوکار نو یقیناً اووائی هغې ته اوشه نو هغه اوشی۔

ولد ضرور مشابه وی ډ والد سره اوالله تعالیٰ ډ تشبیه نه پاک دے۔ پنځمه وجه پلار والے زوال او فنا غواړی اوالله تعالیٰ ډ زوال نه پاک دے اوکډے وجوهو نه په حدیث ډ جامع بخاری کښ راغلی دی چه بعضِ انسانان الله تعالیٰ ته کنځلے کوی او کنځلے دادی چه هغه ته ډ ولد نسبت کوی. نو معلومه شوه چه ډ صفاتو ډ ولدیت اوډ صفاتو ډ الوهیت په مینځ کښ ډیر منافات دے۔

دویمه طریقه ډ رد، بَل لَّهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ، داسے په سورۃ یونس ۶۸ کښ هم دی اوډ دے معنی په سورۃ مریم ۹۳ کښ ده۔ په لَّهُۥ کښ لام ډ پاره ملکیت او ملوکیت او خلق او عبدیت دے۔ یعنی داټول ډ هغه په تصرف کښ اوبادشاهئ کښ داخل دی اوډ هغه مخلوق او عبید دی او دا صفا منافی دی ډ ولدیت سره ځکه چه ولد ته مملوك او رعیت او مربئ نشی وئیلے کیدے او دا اوصاف ولد حقیقی او حکمی دواړو ته عام دی ډ ولد حقیقی سره خو ملکیت عرفاً او شرعاً دواړه ښکاره منافی دی اوډ ولد حکمی هم چه کوم صفات مونږ مخکښ ذکر کړیدی هغه هم ډ مملوکیت او مربئ والی سره منافات لری۔ بَل ډ پاره ډ ترقئ دے ځکه چه ډ سبحانه په استدلال کښ اجمال دے او په دے کښ دلیل، وضاحت او تفصیل دے. دریمه طریقه، كُلٌّ لَّهُۥ قَٰنِتُونَ، قرطبی او ابن کثیر ډ قنوت ډیرے معانی لیکلی دی طاعت، قیام په عبادت سره، سکوت، خضوع، انقیاد، اخلاص، استکانت، صلوٰۃ او اقرار کول په بندګئ سره۔ اوکوم روایت چه ابو سعید خدری رضی نه مسند احمد کښ نقل دے چه په قرآن کښ هر قنوت په معنی ډ طاعت سره دے نو ابن کثیر وئیلی دی چه ډ دے سند کښ ضعف دے او مرفوعاً منکر دے۔ او اطاعت او انقیاد دوه قسمه دے یو شرعی هغه قنوت ډ صالحینو ډ او ملائیک عیسیٰ او عزیر علیهم السلام پکښ داخل دی او دویم قنوت قدری (تکوینی) دے په هغې کښ ټول مخلوق داخل دی خوک طوعاً او خوک کرهاً او قنوت په هره معنی سره ډ ولدیت ډ معنی سره منافات لری۔

۱۱۷ په دے ایت کښ رد دے په قول ډ اتخاذِ ولد باندے په دوه طریقو سره (یعنی څلورمه او پنځمه طریقه)۔ بَدِيعُ دا صفت ډ الله تعالیٰ په سورۃ انعام ۱۰۱ کښ

هم ذکر دے او مادہ د دے (ب دع) نہ دہ قُلْ مَا كُنْتُ بِدْعًا مِّنَ الرُّسُلِ (سورۃ احقاف ۹). په لغت د عرب کښ بدع اِبْدَاعٌ بِدْعَةٌ په معنی د يو څيز پيدا کول يا يو کار کول چه د هغے مثال مخکښ موجود نه وی. او چا چه دغسے کار او کړو نو هغه ته مبدِع او بديع وئيلے شی نو دلته معنی دا ده چه الله تعالیٰ پيدا کوونکے او موجود وونکے د اسمانونو او د زمکو دے بغير د مثال مخکنی نه نو د هغه ذات ولد ته هيڅ حاجت نيشته. او دا رنګ د ولد د پاره اصل او عنصر خو پلار وی نو هغه مبدَع نه دے۔

**فائده:**- ابن کثير او قرطبی وئيلی دی چه په اصطلاح د شريعت کښ د دينه بدعةً اخستلے شوے ده ځکه چه د هغے د پاره هم په شريعت کښ اصل (دليل) موجود نه وی نو قرطبی د بدعت شرعية تعريف دا سے کړے دے چه هغه څيز چه موافق د کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله عليه وسلم او د عمل د صحابه کرامو سره نه وی او ابن عابدين شامی وئيلی دی چه هر هغه څيز چه پيدا کړے شی خلاف د هغه حق نه چه راخستلے شوے دے د رسول الله صلی الله عليه وسلم نه علم وی او که عمل وی يا حال وی په يو قسم شبهے او استحسان سره او د هغے نه جوړ کړے شی دين او صراط مستقيم (شامی ص ۳۹۳/۱) او مجالس الابرار کښ ئے وئيلی دی چه هر هغه کار چه نبی صلی الله عليه وسلم نه دے کړے او نه ئے په هغے باندے ترغيب ورکړے وی نو هغه بدعت قبيحه دے (ص ۱۲۷)۔ او حديث صحيح (مَنْ احدث فی امرنا هذا ما ليس منه فهو ردٌّ) چا چه نوے پيدا کړو په دين زمونږ کښ هغه کار چه د دين نه ئے اصل (دليل) نه وی نو هغه مردود دے - دا دلالت کوی په تعريف د بدعتِ شرعيه باندے په دے حديث کښ لفظ د ما عام دے عقيدے، عبادات، عملونه، ترک (يو عمل پريښودل) د اعمالو، مقادير د هغے کيفيات او هيئات او د هغے اوقات ټولو ته شامل دے۔ نو د دے نه معلومه شوه چه بدعت دوه قسمه دے۔ اول بدعتِ حقيقيه چه ايجاد د عبادت او عمل بغير د دليل شرعی نه اوکړے شی لکه کوم بدعات چه قبرونو سره کيږی لکه طوافونه، جنډے، غلافونه، ګنبدونه وغيره۔ دويم بدعتِ اضافيه دے چه د يو عبادت او عمل اصل ثابت وی ليکن د هغے مقدار يا هيئت يا د وخت تخصيص د ځان نه بے دليله مقرر کړی او دا سے بدعات خو په دے وخت کښ ډير دی لکه

موخٔ دَ قضا عمرئ، موخٔ احتیاطی، صدقات په شپه دَ جمعې یا څلویښتمې پورې خاص کول یا روژه دَ جمعې په ورځ پورې خاص کول یا دعاګانو دَپاره هیئتِ اجتماعیه جوړول روستو دَ فرض او سنت او دَ جنازې دَ مونځونو نه او دَ فدیې دَپاره حیله او نور هیئات جوړول وغیره نو دا کارونه ټول بدعات دی او ناروا دی. او په دې حدیث کښې لفظ دَ فِیۡ اَمۡرِنَا کښې اشاره ده چه بدعت بیا په دوه قسمه دې اول بدعت فی الدین یعنی یو عمل یا دَ هغې وصف په دین کښې داخل اوګڼړی او هغې ته سنت یا مستحب نوم کیږدی نو په دې حدیث سره او په ایت دَ سورة نساء او سورة مائده (لا تغلوا فی دینکم) سره داسې بدعات حرام دی. دویم قسم بدعت للدین دې چه هغې ته بدعت فی الوسائل وئیلې شی یعنی دَ دین جزء یې نه ګڼړی بلکه دَ دین دَ یو عبادت او عمل دَپاره یې ذریعه جوړه کړی لکه تصنیف دَ دینی کتابونو او دینی مدارس جوړول او دینی اجتماعات جوړول دَ نشر و اشاعت دَ دین دَپاره او محراب دَ مسجد دَ قبلې او دَ وسطِ مسجد دَ معلومولو دَپاره تسبیح (معروف پټه) استعمالول دَپاره دَ ادا دَ اذکار مسنونه. نو داسې بدعت ګناه نه دې لیکن شرط پکښې دا دې چه حدودِ شرعیه نه پکښې مخالفت نه کوی او عبادت یې نه ګڼړی صِرف دَ ذریعې په طور یې ګڼړی او استعمالوی. مَا لَیۡسَ مِنۡهُ، په دې کښې اشاره ده چه په وحی (کتاب الله او حدیث) کښې دَ هغې ثبوت نه وی یعنی اصل (دلیل) یې نه وی. دا رنګ دا حدیث دلالت کوی چه دَ بدعاتو نور دوه قسمونه هم دی اول بدعت اعتقادی او دویم بدعتِ عملیه. اعتقادی دا دې چه یو عقیده چه دَ شرعې نه ثابت نه وی هغې ته دین وائي لکه هغه عقیدې چه دَ سلف صالحین نه خلاف وی لکه عقیدې دَ روافضو او شیعه ګانو او معتزلو او خوارجو او جهمیو او مرجؤ او قبر پرستی او تصوف وغیره. او بدعتِ عملیه هغه دې چه مخکښې یې تفصیل ذکر شو په بدعتِ اضافیه کښې. (دَ بدعاتو دَ تفصیلی بحث دَپاره دَ علامه شاطبی کتاب الاعتصام او کتاب الموافقات مطالعه کول ضروری دی).

وَاِذَا قَضٰۤی اَمۡرًا فَاِنَّمَا یَقُوۡلُ لَهٗ کُنۡ فَیَکُوۡنُ، دا پنځمه طریقه دَ رد دَ قول دَ اتخاذ الولد ده یعنی هر کله چه الله تعالیٰ په خپلو ارادو پوره کولو کښې اسبابو ته حاجت نه لری او هیڅ مراد دَ هغه کار ارادې ته نه روستو کیدیشی

اوته مخالف کیدیشی تو د هغه ولد حقیقی یا حکمی ته هیڅ حاجت نیشته۔
قَضٰی دا ماده په قرآن کښ درے شپیته کرته ذکر ده او قرطبی د دے اته[۸] معانی لیکلی دی، اول په معنی د خلق (سورة حم سجده ۲۳)، دویم معنی اعلام (سورة اسراء ۴)، دریم معنی امر کول (سورة اسراء ۲۳)، څلورم معنی الزام او فیصله کول د مرګ (سورة سبا ۱۴)، پنځمه معنی دنیوی فیصله کول (سورة طٰه ۷۲)، شپږمه معنی حق پوره اداکول (سورة قصص ۲۹)، اوومه معنی اراده کول (لکه دا آیت)، اتمه معنی تقدیر کول (سورة انعام ۲)۔ نورے معانی ئے دادی، اداکول (سورة بقره ۲۰۰)۔ او حکم شرعی (سورة احزاب ۳۶)۔
تو دلته په معنی د اراده کولو سره دے۔ اَمْرًا دا لفظ هم په قرآن کښ یوسل شپږ شپیته کرته [۱۶۶] ذکر دے او قرطبی د دے څوارلس معانی لیکلی دی۔ دین[۱] (سورة توبه ۴۸) قول[۲] (سورة کهف ۲۱) عذاب[۳] (سورة انعام ۸) قتل په بدر کښ[۴] (سورة انفال ۴۲) قیامت[۵] (سورة نحل ۱) قضاء[۶] (سورة سجده ۵) وحی[۷] (سورة طلاق ۱۲) امور الخلق[۸] (سورة بقره ۲۱۰) نصر[۹] (سورة العمران ۱۵۴) ذنب[۱۰] (سورة طلاق ۹) شان[۱۱] او فعل (سورة هود ۹۷) ایجاد د څیز[۱۲] (دا آیت) حکم کول[۱۳] (سورة بقره ۲۷) قرآن[۱۴] (سورة نحل ۱ بنا په یو تفسیر باندے) تو دلته مراد ایجاد د یو څیز دے چه په هغے پورے اراده د الله تعالیٰ متعلق شی۔
کُنْ دا کلمه چه هر کله د هر څیز د ایجاد د پاره او هر وخت کښ استعمالیږی نو د دے وجے نه دے ته کلمات الله وئیلے شویدی په حدیث کښ۔ اعوذ بکلمات الله التامة مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ۔ **سوال:۔** دا امر د الله تعالیٰ په یو څیز ته خالی نه وی یا به حال د عدم د هغے کښ وی یا به په حال د وجود د هغے کښ وی او دواړه محال دی ځکه چه معدوم ته خطاب نه کیږی او موجود ته خطاب خو تحصیل حاصل (بے فائدے) دے؟۔ **جواب:۔** د دے ډیر جوابونه ابن جریر او قرطبی ذکر کړیدی لیکن غوره جواب دا دے ابن جریر وئیلی دی چه دا امر د الله تعالیٰ کله چه اراده اوکړی د ایجاد د یو څیز تو نه مخکښ کیږی په وجود د هغه څیز باندے او نه روستو کیږی د هغے نه۔ او د قرطبی د عبارت معنی دا ده چه الله تعالیٰ همیشه امر کوونکے دے معدوماتو ته په شرط د وجود د هغوی قادر دے سره د روستو والی د مقدوراتو نه او عالم دے سره د روستو والی د معلوماتو نه تو دا جمله په خپل عموم باندے

## وَقَالَ الَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ

او وائي هغه كسان چه نه پوهيږي ولې خبرې نه كوي زموږ سره الله تعالىٰ

## اَوْ تَاْتِيْنَآ اٰيَةٌ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ

يا ولې نه راځي موږ ته نښه (په رسالت). دغسې وئيل هغه كسانو چه

## قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ؕ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ؕ

مخكښې وو د دوی ته پشان د وينا د دوی. يو شان دي زړونه د دوی.

## قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿۱۱۸﴾

يقيناً ښكاره كړيدي موږ (ډيرې) نښې د پاره د هغه قوم چه يقين كوي.

حمل ده هيڅ تخصيص ته په كښې حاجت نيشته دے. او دا جمله په قرآن كريم كښې څلور ايا توتو كښې ذكر ده (۱) دا ايت (۲) سورة العمران ۴۷ (۳) سورة مريم ۳۵ (۴) سورة غافر ۶۸. او كلمه د كُنْ فَيَكُوْن د دينه علاوه هم څلور كرته ذكر ده ۱۱۸ دا هم زجر دے او جواب دے د اووے شبهے او شُبهه يَے په ايت كښې په اوله جمله كښې ذكر كړے ده او دے قائلينو (شبهه كوؤنكو) كښې د مفسرينو درے اقوال دي اول دا نصارىٰ دي دويم دا يهود دي تو هركله چه دوی په خپل علم باندے عمل نه كوؤ نو الله تعالىٰ ورته بے علمه اُوئيل. دريم دا مشركينِ عرب دي. او ابن جرير اول قول غوره كړيدے ليكن غوره خبره دا ده چه دا دغه ټولو ته شامل دے. لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللّٰهُ يعنى الله تعالىٰ دے ستا د رسالت په باره كښې موږ سره پخپله خبره اوكړى. يا دا چه موږ ته دِے ستا په شان وحى اوكړى په باره د نفى د ولد د الله تعالىٰ كښې لكه چه سورة انعام ۱۲۴ كښې دي. اَوْ تَاْتِيْنَآ اٰيَةٌ، مراد د دے نه هغه معجزات دي چه دوی غوښتل يعنى په شان د معجزاتو د موسىٰ عليه السلام يا د عيسىٰ عليه السلام لكه په سورة قصص ۴۸ كښې او سورة انبياء ۵ كښې. كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ د دے نه مراد عام مشركان دي چه هغوی د خپلو انبياؤ نه معجزات طلب كول لكه قوم د صالح عليه السلام چه د هغه نه يَے طلب كړے وؤ (سورة شعراء ۱۵۴) او قوم د شعيب عليه السلام چه د هغه نه يَے مطالبه كړے وه (سورة شعراء ۱۸۷) او مشركين مكه چه د نبى صلى الله عليه وسلم نه مطالبه كړے وه (سورة اسراء

إِنَّآ أَرۡسَلۡنَٰكَ بِٱلۡحَقِّ بَشِيرٗا وَنَذِيرٗاۖ

يقيناً ليږلے يې مونږ ته د پاره د حق بيان كولو زيرے وركوونكے او يره وركوونكے

وَلَا تُسۡـَٔلُ عَنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡجَحِيمِ ﴿١١٩﴾

او تپوس نه شي كيدے ستا نه په باره د دوزخ والو كښې.

ف ٩٠ ٩١ ٩٢ ٩٣) - مِثۡلَ قَوۡلِهِمۡۘ كَذَٰلِكَ د باره د مشابهت دے په صرف طلب كولو كښې او مِثۡلَ قَوۡلِهِمۡ مشابهت دے په صفت د مطالبه كښې چه هغه ضد عناد او تعنت كول دي. تَشَٰبَهَتۡ قُلُوبُهُمۡۘ مراد د دينه مشابهت دے په عقيده د كفر او شرك او حسد او عناد او جهل او سركشي كول په مقابله د انبياء عليهم السلام كښې. قَدۡ بَيَّنَّا ٱلۡأٓيَٰتِ لِقَوۡمٖ يُوقِنُونَ، اول جواب الزامي وو او دا جواب تحقيقي دے يعني تاسو يو نښه غواړئ او مونږ تاسو ته ډير ايات (نښې) پيش كړيدي ليكن هغه يقين والوله فائده وركوي. يقين هغه علم دے چه روستو د ازالے د شك نه په دليلونو سره حاصل شي.

ف١١٩ د زجرونو او دفع د شبهاتو نه روستو د رسالت د اثبات سره متعلق پنځه خبرے ذكر كوي. دا اوله خبره ده په دے كښې اثبات د رسالت د نبي صلى الله عليه وسلم دے او هغه له تسلي وركول دي. بِٱلۡحَقِّ مراد د دے نه قرآن دے په روايت د ابن عباس رضي الله عنهما سره او د ابن جرير او ابن كيسان قول دا دے چه مراد د دے نه اسلام دے. بَشِيرٗا وَنَذِيرٗا دا دوه طريقے د دعوت دي زيرے دنيوي او اخروي وركول ايمان لرونكو ته او يره د عذاب دنيوي او اخروي وركول انكار كوونكو ته. وَلَا تُسۡـَٔلُ عَنۡ أَصۡحَٰبِ ٱلۡجَحِيمِ يعني كافرانو چه كفر كړے دے او عذاب ابدي ته په وړاندې نو د رسول صلى الله عليه وسلم نه د هغوي باره كښې تپوس نه كيږي چه دوي ولے په داسے حال دي ځكه چه د هغه په باره كښې دي چه فانما عليك البلاغ. او په دے كښې تقبيح ده د هغه چا چه د بيو امتي په ګناه او جرم باندے نبي يا بل داعي الى الحق لره بدنامه وي. جَحِيمِ په قرآن كښې پنځويشت كرته ذكر ده او د هغے اوسيدونكي په دغه اياتونو كښې موصوف دي په صفاتو د كفر او تكذيب د اياتونو او مقابله كول د اياتونو او غوايت كوونكي او طغيان والا او دنيا غوره كوونكي او فجور كوونكي او مكذبين او ضالين (سورة مائده ١٠، سورة حج ٥١،

وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى

او هيچرې به رضا نه شي ستا نه يهوديان او نه نصارا

حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ۗ قُلْ اِنَّ هُدَى اللّٰهِ

تر دې پورې چه ته تابع شې د دوی د طريقې - ته اُووايه يقيناً دين د الله تعالیٰ

هُوَ الْهُدٰى ۗ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ

خاص هغه پوره (حق) دين دې - او که چرې تابعداري اوکړې ته د خواهشاتو د دوی

بَعْدَ الَّذِيْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ

روستو د هغې نه چه راغلې دې تاته علم د قرآن

مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۲۰﴾

نو نيشته تاره د (عذاب د) الله تعالیٰ نه څوک دوست هيڅ کوونکې او نه مددګار -

سورة شعراء ۹۱، سورة واقعه ۹۴، سورة نازعات ۳۹، سورة انفطار ۱۴).

۱۲۰ په دې کښ ذکر د اُميد نه لرلو دې د يهودو او نصاراؤ نه د ايمان راوړلو او منع کول دی د هغوی د اتباع کولو نه يعنی د الله تعالیٰ او د رسول د هدايت په مقابله کښ د کتابيانو د اهواؤ نه ځان بچ کړئ - وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى دا خطاب نبی صلی الله عليه وسلم ته دے او مراد ترينه امت دے او په دے کښ اشاره ده ضد او عناد د کتابيانو ته مقصد دا دے چه د دوی د رضا کولو کوشش مه کوه بلکه د الله تعالیٰ د رضا کوشش کوه په دعوت کولو سره حق دين ته او هغه دا دے چه اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى، د هُدَى الله نه مراد اسلام دے چه په قرآن کريم کښ ذکر دے - الْهُدٰى نه مراد حق او يقينی دے يعنی حقانيت او صِدق په دين اسلام کښ منحصر (بند) دے د دے نه علاوه په يهوديت او نصرانيت وغيره کښ حقانيت نيشته. ابن جرير او بيضاوی وئيلی دی چه دلته مطالبه کړے وه يهودو او نصاراؤ د نبی صلی الله عليه وسلم نه چه مونږ سره متحد شه او زمونږ ملت قبول کړه نو هغوی ته جواب اوکړے شو په اِنَّ هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى سره. او دا دليل صريح دے چه د اهل توحيد د مشرکانو سره اتحاد جائز او ممکن

الَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ

هغه كسان چه وركړي دي موږ هغوى ته كتاب لولي هغه په لائق

تِلَاوَتِهٖ اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ

لوستلو د هغې سره. دغه كسان ايمان لري په دې باندې او چا چه كفر اوكړو په دې

فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۲۱﴾ يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ

نو دغه كسان خاص دوى تاوان والا دي - اے اولاد د يعقوب عليه السلام

نه دے - مِلَّتَهُمْ قرطبي وئيلي دي چه ملت نوم د هغه شرع دے چه الله تعالىٰ مقرر كړے ده په كتابونو خپلو كښې او په ژبه د رسولانو سره - نو ملت او شريعت يو څيز دے او هر چه دين دے نو هغه دا دے چه ادا كوى يې بندګان په امر د الله تعالىٰ سره - اويل فرق دا دے چه ملت نه مضاف كيږي الله تعالىٰ ته او امتي ته بلكه صرف نبي ته يې اضافت كيږي او دارنګ په فروعو كښې نه استعماليږي او دين عام دے - او ملت لفظ په قرآن كښې پنځلس كرته ذكر دے او د دے دوه طريقے دي اوله طريقه استعمال دے په ملت حقه ابراهيميه كښې او دا په نهه مقامات كښې دے او دويمه طريقه استعمال دے په ملت باطله كښې لكه (په سورة يوسف ۳۷ سورة ص ۷ سورة اعراف ۸۸ ۸۹ سورة ابراهيم ۱۳ سورة كهف ۲۰ كښې). د مِلَّتَهُمْ اضافت يهود او نصارىٰ ته دے او دا ملتِ باطله دے او د شريك اضافت نه بعض علماؤ دليل نيولے دے چه كفر ملتِ واحده دے او په دے باندے بعض مسائل فقهيه متفرع كړيدي. - وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ. اهواء جمع د هوى ده او دوى هم په كورنئ كښې مختلف دي د دے وجے نه اهواء يې جمع ذكر كړله. - او د دے نه مراد د دوى بے دليله مسئلے دي په عقائدو او اعمالو كښې. - مِنَ الْعِلْمِ مراد د علم نه قرآن او وحي ده او قرطبي وئيلي دي چه امام احمد رحمة الله عليه د دے نه دليل نيولے دے چه قرآن مخلوق نه دے ځكه چه دا علم د الله تعالىٰ دے او دا صفت د الله تعالىٰ دے نو څوك چه وائي چه دا مخلوق دے نو هغه كافر دے. - وَّلِيٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ د دے تفسير مخكښې تير شويدے. ۱۲۱ په دے ايت كښې دريمه خبره ده يعنى دليل نقلي د مخكښې علماءِ حق نه

د پاره د تصدیق د رسول او د قرآن - او په دے ایت کښې تقسیم د کتابیانو دے
دوه قسمونو ته - اَلَّذِیْنَ اٰتَیْنٰهُمُ الْکِتٰبَ، د اهلِ کتابو مخکنو په باره کښې په قرآن
کښې اُوه اوصاف ذکر شویدی - اوتوا الکتاب، اٰتینا هم الکتاب، اوتوا العلم،
اولوا العلم، اهل الذکر، اوتو نصیبًا من الکتاب او اهل الکتاب، د دے فرق
داسے دے چه اوتوا الکتاب په ناکاره ملایانو کښې استعمالیږی او اٰتینا هم
الکتاب په حق پرست علماؤ کښې استعمالیږی - اوتوا العلم د صحابه کرامو
او د دے اُمت د علماءِ حق د پاره استعمال شوے دے او مخکښې علماءِ حق
هم په کښې داخل دی - اولوا العلم هم د علماء حق د ټولو اُمتونو د پاره
استعمالیږی - اهل الذکر د هغه علماؤ د پاره دے چه د هغوی تعلق د وحی
سره دے په علم او عمل او استدلال کښې د هر اُمت نه چه وی - اوتوا نصیبا
من الکتاب هغوته وئیلے شی چه نیمګړی ملایان وی یعنی الفاظ د کتاب الله
ورځی لیکن په معنی ئے علم نه لری - اهل الکتاب عام دے د ښه او بد دواړو
د پاره استعمالیږی -
په دے ایت کښې د مفسرینو دوه اقوال دی اول دا چه مراد د الکتاب نه قرآن
دے او مراد ترینه اهلِ قرآن دی دویم دا چه مراد ترینه تورات او انجیل
دی او په هغوی کښې علماءِ حق مراد دی او دا روستو قول غوره دے -
یَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ، دا خبر د الذین دے یا حال دے او یَتْلُوْنَ اخستلے شویدے
د تلاوت کولو نه یا د تِلْو (تابعداری کولو) نه او د دواړو مقصد یو دے او ابن
کثیر لیکلی دی چه مراد د دے نه په روایت د عمر رضی الله عنه کښې هغه خلق
دی چه ذکر د جنت راشی (په ایت کښې) نو جنت غواړی او چه ذکر د جهنم
راشی نو په الله تعالیٰ سره پناهی غواړی د هغے نه او په روایت کښې د ابن مسعود
رضی الله عنه کښې دی چه حلال حلال ګنړی او حرام حرام ګنړی او لولی
هغه چه الله تعالیٰ نازل کړے دے او تحریف په کښې نه کوی او تاویل (مذموم)
په کښې نه کوی - او په روایت د حسن بصری کښې دی چه علم په محکماتو لری
او ایمان په متشابهاتو باندے لری - او قرطبی وئیلی دی چه ترتیل د الفاظو
سره ئے تلاوت کوی او په معنی ئے پوهیږی ځکه چه تابعداری کول موقوف
دی په معانی پوهیدلو باندے - اُولٰٓئِكَ یُؤْمِنُوْنَ بِهٖ، دا دویم خبر دے د الذین
او ضمیر د بِهٖ راجع دے الکتاب ته (تورات او انجیل ته) یا دا ضمیر راجع دے اَلْعِلْمِ ته

اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَنِّيْ

یاد کړئ ربه دې (رسول متلو سره) نعمت زما هغه چه انعام کړیدے ما په تاسو باندے او یقیناً ما

فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۲۲﴾ وَاتَّقُوْا يَوْمًا

غوره والے ورکړیدے تاسو ته په خلقو باندے. او اویریږئ (د عذاب) د هغه ورځ نه

لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْئًا وَّلَا يُقْبَلُ

چه بدله به نه شی ورکولے هیڅ یو تن د بل تن نه د هیڅ څیز او نه به قبلیږی له شی

مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

د هغه نه څه فدیه (جرمانه) او نه به نفع ورکوی هغه ته څه سفارش او نه به د دوی سره مدد کیدے شی

چه مراد ترینه قرآن دے او په مخکښ آیت کښ تیر شویدے. وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ په دیکښ د دویمے ډلے د کتابیانو ذکر دے چه مقابل دی د اولے ډلے په صفتونو او حالاتو د هغوی کښ.

۱۲۲ ـ ۱۲۳ په دے دواړو آیاتونو کښ د رسالت سره متعلق دوه خبرے دی اول ترغیب دویم تخویف. تو هرکله چه په ابتداء د احوال د بنی اسرائیلو کښ د دے آیاتونو نه شروع شویده نو اختتام ئے هم په دے سره اوکړو. دا رنګ د دے تعلق د روستو سره دے یعنی روستو ذکر د ملتِ ابراهیمیه کوی نو د هغے د پاره بنی اسرائیلو ته دعوت ورکوی. ځکه چه بنی اسرائیلو د ملتِ ابراهیمیه نه اعراض کړے وُو خصوصاً د کعبے د عظمت نه ئے انکار کړے وُو (یعنی د قبلے د تقرر او هلته د حج کولو نه). دا رنګ د آخری رسول او د توحید نه ئے انکار کړے وُو نو د دے وجے نه هغوی ته ترغیب ورکوی د ملتِ ابراهیمیه د قبلولو او تخویف ورکوی د هغے د مخالفت کولو نه.

فائده :- دویم آیت کښ ضمیرونه د لَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ راجع دی دویم نفس ته یعنی مجرم ته او مجرم د خپل نجات د پاره اول په فدیه ادا کولو سره کوشش کوی بیا په طلب د شفاعت سره. او غواړی چه ځما فدیه دے قبوله شی او شفاعت دِے ځما د پاره نافع شی د دے وجے نه دلته ئے عدل مخکښ ذکر کړو د شفاعت نه او د عدل سره قبولیت او د شفاعت سره ئے نفع ذکر کړه او په ۴۸ کښ ضمیرونه نفس اول (غیر مجرم) ته راجع وُو

وَاِذِ ابْتَلٰۤى اِبْرٰهٖمَ رَبُّهٗ بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ ؕ

او کله چه ازمیښت اوکړو په ابراهیم علیه السلام باندې رب دَهغه په یو څو کارونو سره نو پوره یې اداکړل

قَالَ اِنِّىْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا ؕ قَالَ وَمِنْ

او فرمائیل الله تعالیٰ یقینًا زه ګرځوم تا دَخلقو دَپاره پیشوا۔ او وئیل ابراهیم علیه السلام او دَ

ذُرِّيَّتِىْ ؕ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۲۴﴾

اولاد زمانه (هم پیشوایان اوګرځوه) او فرمائیل الله تعالیٰ چه نه رسی لوظ زما دَ امامت ورکولو ظالمانو ته۔

نو هلته یې شفاعت په عدل باندې مقدم کړے دَے هغه هلته دَ هغې په تفسیر کښې ذکر شوے دی۔

۱۲۴ دَ دے ایت نه تر ۱۴۱ پورې دویم باب دَ دے حصے دے په دیکښې دلیل نقلی دَ ابراهیم علیه السلام نه ذکر کوی دَ پاره دَ ترغیب دَ بنی اسرائیلو قبولیت دَ ملتِ ابراهیمیه ته خصوصًا په باره دَ کعبه او دَ آخری رسول کښې او سفاهت دَ هغه چا چه ملتِ ابراهیمیه نه خلاف کوی او په دے کښې درې خبرې غټې دی اول جوړول دَ ابراهیم علیه السلام کعبې لره دَ پاره دَ توحید په ۱۲۵ کښې، دویم دُعا غوښتل دَ هغه دَ آخری نبی دَ پاره په ۱۲۹ کښې، دریم وصیت دَ هغه په باره دَ توحید کښې په ۱۳۲ کښې۔ او تفصیلی پنځه امور دی اول عظمت شان دَ ابراهیم علیه السلام په ۱۲۴ کښې، دویم عظمت شان دَ کعبې په ۱۲۵ کښې، دریم دعا دَ ابراهیم علیه السلام دَ پاره دَ اهل دَ دغه بیت په ۱۲۶ کښې، څلورم دعا دَ پاره دَ قبولیت او دَ تثبت دَ خپل ځان سره دَ اولاد نه په توحید باندې په ۱۲۷ ۱۲۸ کښې، پنځم دُعا په باره دَ خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم په ۱۲۹ کښې بیا زجر په سفاهت سره هغه چا ته چه دَ ملتِ ابراهیمیه نه اعراض کوی په ۱۳۰ کښې بیا وصیت دَ ابراهیم علیه السلام او یعقوب علیه السلام په دین توحید باندې په ۱۳۲ کښې په ردکولو په اوښکاځ نو تو دَ یهودیانو باندې۔ اول جواب سوال په باره دَ افتراء دَ دوی په یعقوب علیه السلام باندې په باره دَ وصیت کښې په ۱۳۳ کښې، دویم فخر کول دَ دوی په عمل دَ مشرانو چه انبیاء وُو په ۱۳۴ کښې، دریم دعوت کول دَ دوی دینِ باطل ته په ۱۳۵ کښې، څلورم عقیده ښکاره کول په

باره د انبیاؤ کښ په جواب د اعتراض د دوی کښ په ۱۳۶ کښ، پنځم رد په رسمِ باطل د دوی چه رنګ ورکول دی په ۱۳۸ کښ، شپږم رد په محاجه کولو د دوی په باره د توحید د الوهیت کښ سره د اتفاق نه په توحید د ربوبیت کښ په ۱۳۹ کښ، اووم نسبت د دینِ باطل ابراهیم علیه السلام او نور انبیاؤ ته. او په اخر کښ زجر په دعوی د نجات په عمل د مشرانو سره په ۱۴۱ کښ۔
تفسیر:- په دے ۱۲۴ کښ ذکر د لوئے شان د ابراهیم علیه السلام دے په دریو صفاتو سره اول پوره کول د امتحان دویم امامت د خلقو او دریم دعا قبلیدل په باره د اولاد کښ۔
ربط مخکښ ایت کښ اووئیلے شو چه په دغه ځلور وطریقو سره په اخرت کښ نجات نه حاصلیږی نو اوس د نجات طریقه ذکر کوی چه هغه قبولیت د ملتِ ابراهیمیه دے۔ وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ - ابتلاء د بلاء نه اخستلے شوے دے په ۴۹ کښ د دے تحقیق تیر شویدے او امتحان د بندګانو د طرف د الله تعالیٰ نه د دے د پاره وی چه دغه شخص ته خپل حقیقت معلوم شی دارنګ نور خلقو ته هم معلوم شی او الله تعالیٰ ته خو د مخکښ نه د هر چا حقیقت معلوم دے. او ابتلاء د الله تعالیٰ د طرف نه دوه قسمونه ده یو ابتلاء په امور شرعیه اختیاریه سره لکه عبادات فرض کول په بندګانو باندے ابتلاء ده نو ځوک یئے اداکوی او ځوک د هغے رعایت نه کوی دویم ابتلاء په امور تکوینیه غیر اختیاریه سره لکه مرضونه د بدن تکلیفونه مالی راتلل د دعوت د حق د وجے نه د خلقو (مخالفینو) د طرف نه اذیتونه راتلل چه په دے باندے ځوک صبر کوی او که نه کوی په اول قسم کښ صبر علی الطاعات او صبر عن المعاصی دے او په دویم قسم کښ صبر علی البلایا دے او ابتلاءات د ابراهیم علیه السلام د دواړه قسمونو نه دی لکه چه روستو ذکر کیږی۔ إِبْرَاهِيمَ ماوردی او ابن عطیه ذکر کړیدی چه اب رحیم (مهربان پلار) دے په دے لفظ کښ سریانی او عربی ژبے متفق شویدی رَبُّهُ دلته یئے مفعول مخکښ راوړے دے د دوه وجونه اول داچه د فاعل (رَبُّهُ) ضمیر ده ته راجع شی د خصوصیت د پاره دویم داچه ابتلاء کوؤنکے خو معلوم دے چه الله تعالیٰ دے خو د مفعول ذکر کولو دلته اهتمام لرلو۔ په رَبُّهُ کښ اشاره ده چه په دے ابتلاءاتو کښ حکمت د الله تعالیٰ ربوبیت

بښکاره کول او دَ ابراهیم (علیه السلام) تربیت او ترقي ورکول وۀ۔
بِكَلِمٰتٍ فَاَتَمَّهُنَّ، اتمام نه مراد پوره پوره اداکول دي چه هغې ته په امتحان کښې کامیابي وئیلې شي او دلته په سورة نجم ۳۷ کښې دي۔ کلمات جمع دَ کلمة ده مراد دَ دے نه هغه وظائف (اعمال) دي چه په کلام دَ الله تعالیٰ سره هغه ته بیان شوي وۀ۔ ماده دَ (ك ل م) په قرآن کښې دوه کرته ذکر ده او لفظ کلمات څوارلس کرته ذکر دے په پنځو معانو سره اول معنیٰ دعاګانے لکه سورة بقره ۳۷ دویمه معنیٰ اعمال سورة بقره ۱۲۴ دریمه وعدے دَ الله تعالیٰ سورة انعام ۳۴ څلورمه قرآن سورة کهف ۲۷ پنځمه معنیٰ علمونه او صفات سورة کهف ۱۰۹۔
په تعیین دَ دے کلماتو کښې ډیر روایات دي چه هغه ابن جریر ابن کثیر قرطبي وغیره جمع کړیدي او هغه ټول دَ ابن عباس رضی الله عنهما نه په مختلف سندونو سره نقل دي۔ اول داچه مناسك دَ حج مراد دي۔ دویم پنځه سنت په سر کښې لکه بریتونه قینچي کول۔ مضمضه کول۔ استنشاق کول۔ مسواک کول۔ ویښتو دَ سر کښې په مینځ کښې لار جوړول۔ او پنځه په توربدن کښې لکه نوکونه پرېکول، دَ نامے دَ لاندے ویښته خرئیل۔ ختنه (سنت) کول۔ دَ ترخونو ویښته ویستل او استنجاء په اوبو سره کول۔ حدیث مرفوع دَ مسلم کښې هم داسے لس شمارلي دي (سره دَ لږ فرق نه) او حدیث دَ صحیحین کښې پنځه ئے دَ فطرت نه ذکر کړیدي حاصل داچه دا زموږ دَ پاره هم سنت دي۔ دریم صفات دَ مؤمنانو په سورة توبه ۱۱۲ کښې او په سورة مؤمنون کښې دَ ۱ نه تر ۹ پورے او سورة معارج کښې دَ ۲۲ نه تر ۳۴ پورے او په سورة احزاب ۳۵ کښې دا ټول ذکر دي۔ څلورم امتحانات په دعوت کولو کښې (۱) محاجه دَ نمرود سره په سورة بقره ۲۵۸ کښې (۲) محاجه دَ قوم سره په سورة انعام ۸۰ کښې۔ (۳) محاجه دَ پلار سره په سورة مریم ۴۶ کښې۔ (۴) صبر په بعض اهل پاتے کولو سره په صحراء دَ مکه کښې په سورة ابراهیم ۳۷ کښې۔ (۵) صبر په اُور باندے په سورة انبیاء ۶۸ کښې۔ (۶) هجرت کول دَ خپل وطن نه په سورة صافات ۹۹ او سورة عنکبوت ۲۶ کښې۔ (۷) صبر په ذبح دَ ولد باندے په سورة صافات ۱۰۶ کښې۔
غوره دا ده چه لفظ دَ کلمات دے ټولو ته شامل دے۔
قَالَ اِنِّيْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا، امام په قرآن کښې اُوۀ کرته او جمع دَ دے ائمة پنځه کرته ذکر دے او دَ دے اُوۀ مصداقات دي اول امامة النبوة یعني امام

په معنیٰ دَ نبی (سورۃ انبیاء ۷۳). دویم تورات (سورۃ هود ۱۷). دریم لویه لار (سورۃ حجر ۷۹). څلورم هر یو مقتدٰی دَ قوم که دَ خیر وی او که دَ شر وی (سورۃ اسراء ۷۱). پنځم صالحین دعوت کوؤنکی غیر دَ انبیاؤ نه (سورۃ قصص ۵). شپږم مقتدا دَ کفر (سورۃ قصص ۴۱). اوم لوح محفوظ (سورۃ یٰسٓ ۱۲). اتم مقتدا دَ ټولو انبیاؤ او صالحینو سره دَ صفت دَ نبوت نه (سورۃ بقره ۱۲۴). په دے ایت کښ دوه قولونه دی اول دا چه دلته مراد اٰخری معنیٰ ده او دا حاصل شویده روستو دَ نبوت نه ابراهیم علیه السلام ته په سبب دَ اتمام دَ ابتلاءاتو دَ دے وجے نه روستو انبیاء دَ هغه په اولاد کښ را ولیږلے شول او هغوی ته حکم وشو دَ اتباع دَ ابراهیم علیه السلام او دغه تیر شوی صفاتو کښ هر صالح شخص دَ ابراهیمی سنت اقتداء کوی. دویم قول دا دے چه مراد دَ دینه نبوت دے لیکن (قَالَ اِنِّیْ جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ اِمَامًا) مستقل کلام دے دَ پاره دَ عظمتِ شان دَ ابراهیم علیه السلام یعنی دَ ابتلاءاتو دَ وجے نه نبوت نه دے ورکړے شوے. دَ دے دوه وجے دی اول دا چه نبوت په کسب سره نه حاصلیږی دویم دا چه دغه ابتلاءات په وخت دَ نبوت دَ هغه کښ شویدی.

قَالَ وَمِنْ ذُرِّیَّتِیْ، ذُرِّیَّة دَ ذرء یا دَ ذَرّ نه اخستلے شویدے دواړه په معنیٰ دَ خورولو سره دے نو اول اولاد اٰدم هم الله تعالیٰ په ټوله زمکه باندے خواره کړیدی. او دا دُعا ده دَ ابراهیم علیه السلام په باره دَ اولاد خپل کښ یعنی اِجْعَلْ مِنْ ذُرِّیَّتِیْ اَئِمَّةً (زما دَ اولاد نه هم امامان جوړ کړے) دَ دے دَ پاره چه دین دَ الله تعالیٰ او ملتِ ابراهیمیه په دنیا کښ اورسوی. لفظ دَ ذریة مفرد او جمع او مذکر او مؤنث بالغ او نابالغ ټولو ته شامل دے دا لفظ په قرآن کښ دیرش کرته ذکر دے او ذریة دَ ابراهیم علیه السلام بنی اسرائیل او بنی اسماعیل دواړو ته شامل دے. قَالَ لَا یَنَالُ عَهْدِی الظّٰلِمِیْنَ، په عهد کښ ډیر اقوال دی دَ مفسرینو. امامت، نبوت، ایمان، رحمت، دین دَ الله تعالیٰ، اوامر دَ الله تعالیٰ او امن دَ عذاب دَ الله تعالیٰ نه. الظّٰلِمِیْنَ په دے کښ دوه اقوال دی. عام گناهگاران او مشرکان. غوره په دے اقوالو کښ اوله معنیٰ ده یعنی امامت په عامه معنی سره دے چه اول ذکر شویده او ظالم نه مراد هم عام دے او په دے باندے بِنا قول دَ قرطبی او ابن کثیر دے چه نقل کړیدے دَ ابن خویز منداد نه چه دَ دے ایت نه

وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا ۖ

او کله چه اوګرځوو مونږ کور د الله تعالیٰ ځائے د ثواب د خلقو د پاره او ځائے د امن

وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ إِبْرَاهِيمَ مُصَلًّى ۖ وَعَهِدْنَا

او ونیسئ (اوګرځوئ مونږ) د مقام د ابراهیم علیه السلام سره ځائے د مانځه - او حکم اوکړو مونږه

إِلَىٰ إِبْرَاهِيمَ وَإِسْمَاعِيلَ أَن طَهِّرَا بَيْتِيَ

ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام ته چه پاک ساتئ کور زما

لِلطَّائِفِينَ وَالْعَاكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿١٢٥﴾

د پاره د طواف کوونکو او اعتکاف کوونکو او رکوع او سجده کوونکو۔

استدلال کړیدے په دے خبره باندے چه ظالم شخص نبی او خلیفه او حاکم او مفتی او امام او ګواهی کوونکے نشی کیدلے او نور تفصیل قرطبی ذکر کړے دے یا دویمه معنی ده چه نبوت دے تو بنا په دے باندے قول د خطیب شربینی او آلوسی او بیضاوی دے چه دا دلیل دے چه نبی د نبوت نه وړاندے هیڅ ظلم نه کوی یعنی معصوم قبل النبوت وی۔

تنبیه :- دا جمله چه لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ دے دا رد د دعا د ابراهیم علیه السلام نه دے بلکه اشاره ده تقسیم د اولاد د هغه دوه قسمونو ته لکه په سورة صافات ۱۱۳ کښ او قبولیت د دعا دے په باره د غیر ظالمینو کښ ځکه چه الله تعالیٰ د هغه په اولاد کښ نبوت او امامت جاری ساتلے دے دلیل په هغے باندے سورة عنکبوت ۲۷ او سورة انبیاء ۷۳ دے۔

۱۲۵ په دے آیت کښ ذکر د عظمت د بیت الله دے روستو د ذکر د عظمت د بانی (جوړوونکی) د هغے نه او په دے کښ هم درے امور دی. مثابه، امن او مصلی۔ او درے قسمه عبادت کوونکی دی چه د هغے اختصاص د کعبے سره دے په ترتیب سره - مَثَابَةً د ثاب یثوب نه اخستلے شویدے. مثابه ځائے د رجوع ته وئیلے شی یعنی زړه ئے موړ شوے نه وی نو بیا بیا ورته واپس کیدل غواړی او دا معنیٰ ابن اجریر د مجاهد او ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت کړیده. یا په معنی د مجمع (ځائے د جمع کیدلو) دے دا د قتاده نه نقل ده۔ او تاء په مثابة کښ د پاره د مبالغے او د کثرت ده - وَأَمْنًا دا صفت په دویٔ کښ

په جاهلیت کښې هم وُو لکه په سورة قصص ۵۷ کښې دی او په اسلام کښې هم دے
او مراد ذ دے نه مأمن (ځائے د امن) دے د لوټ مار او د ظلم نه تر دے
پورے چه ښکار او بوټی هم په هغې کښې په امن (شرعی) سره دی او شربینی
وئیلی دی چه مراد د البیت نه ټول حرم دے لکه ذکر د کعبے او مراد ترے نه
ټول حرم دے په سورة مائده ۹۵ کښې او دا صفت په سورة العمران ۹۷ کښې
هم ذکر دے۔ او دا صفتونه په بیت المقدس کښې نیشته نو دا فضیلت د کعبے
دے۔ وَاتَّخِذُوا مِنْ مَّقَامِ اِبْرٰهٖمَ مُصَلًّى، مقام ابراهیم ټول حج ته وئیلے شی
یعنی مواضع مناسک د حج چه عرفه، مزدلفه، منٰی، جمرات یا ټول حرم دے
او په دے دواړو قولونو کښې مراد د مصلی نه ځائے د دُعا دے۔ یا مقام هغه
کټه ده چه ابراهیم علیه السلام په وخت د جوړولو د کعبے کښې په هغې باندے اُودریدلو
او مصلی نه مراد ځائے د مونځ کولو دے یعنی دوه رکعته د طواف او دا په
حدایث صحیح کښې ذکر دی۔ مِنْ مَّقَامِ، مِنْ د پاره د تبعیض دے یا په معنی
د قریب دے۔ ابن جریر د قتاده نه نقل کړیدی چه الله تعالیٰ امر کړیدے
چه د هغې په خوا کښې مونځ کوئ د هغې د مسح کولو امر یئے نه دے کړے
لیکن دا دے اُمت ځان له تکلّف (بدعت) جوړ کړے دے۔ او ذکر کړے شویدی
چه په دے کټه کښې اثر (نښے) د گوتو او د پوندو د ابراهیم علیه السلام موجود
وُو لیکن د خلقو د ډیر مسح کولو په وجے سره هغه آثار محو شول۔
وَعَهِدْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ اَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ، عَهِدْنَآ دا عطف دے په
جَعَلْنَا باندے۔ عهد په معنی د امر یا وحی کولو دے او په لفظ عهد سره
ذکر کولو کښې اشاره ده چه د هغه اولاد باندے لازم دی چه د تطهیر د بیت
هر وخت او په هره زمانه کښې رعایت او لحاظ او ساتی۔ اَنْ طَهِّرَا مراد د دینه
تطهیر باطنی او ظاهری دواړه دے۔ باطنی دا دے چه د عبادت د غیر الله نه
پاک او ساتلے شی نو مقصد دا دے چه مخکښې د اباد ولو نه نیت او
اراده او کړئ د داسے تطهیر او روستو د اباد ولو نه هم کوشش کوئ د هغې د تطهیر۔
او تائید د دے تطهیر په سورة حج ۲۶ کښې دے۔ او ظاهری تطهیر خو
دا دے چه روستو د اباد ولو نه یئے د هر قسم پلیتئ نه پاک ساتئ او خوشبوئ
کوئ یئ۔ بَيْتِيَ اضافت د دے بیت، الله تعالیٰ ته د پاره د ډیر شرافت دے۔
لِلطَّآئِفِيْنَ طواف داسے عبادت دے چه خاص دے په بیت الله تعالیٰ پورے

وَاِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا

او کله چه او وئیل ابراهیم علیه السلام اے ربه زما، او گرځوه دا ځائے ښار

اٰمِنًا وَّارْزُقْ اَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ

امن والا او روزي ورکړه اوسیدونکو ددے ته د هر قسم غلونه هغه چا ته

اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ

چه ایمان لري د دوي نه په الله تعالیٰ او په ورځ د آخرت باندے.

قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَاُمَتِّعُهٗ قَلِيْلًا ثُمَّ

او فرمائیل الله تعالیٰ او چا چه کفر او کړو نو فائده به ورکړم هغه ته لږه موده (ژوند د دُنیا) بیا به

د هغې نه علاوه د بل بیت یا قبر یا اونے او کتے وغیره طواف کول د شرك عمل دے او په دے باندے علماءِ احناف او نورو تصریح کړیده نو د دے وجے (د تخصیص نه یئے دا مخکښ ذکر کړو. وَالْعٰكِفِيْنَ، عکوف په لغت کښ اقامت (دیره کیدلو) ته وئیلے شي او په عرف کښ توجه کول یو څیز ته په طریقه د لزوم او تعظیم کولو سره او په شریعت کښ اقامت کول د یو شخص په مسجد کښ د پاره د عبادت کولو د الله تعالیٰ. په معنیٰ د اقامت په سورة حج ۲۵ کښ او په معنیٰ د عکوف شرکي سره په سورة طٰهٰ ۹۲ او سورة اعراف ۱۳۸ کښ ذکر دے او دلته مراد صرف اقامت دے په مکه او مسجد حرام کښ بغیر د طواف او صلوات نه یا اعتکاف شرعي مراد دے. نو دائے په طواف پسے ذکر کړو اګرچه په بیت الله پورے خاص نه دے لیکن په مسجد پورے خاص دے. وَالرُّكَّعِ السُّجُوْدِ، مراد د دینه مونځ کوؤنکي دي دا دواړه یئے ځکه ذکر کړل چه دا هیئت خاص دے په مونځ پورے او په دے سره مونځ کوؤنکے معلومیږي، صرف په قیام سره نه معلومیږي او دائے د عکوف نه روستو د دے وجے نه ذکر کړو چه اګرچه په مسجد حرام او په بل مسجد پورے خاص نه دے لیکن د قبلے په حیثیت په کعبه پورے خاص دے او دارنګ په سورة حج ۲۶ کښ ذکر دي. تنبیه:- د تطهیر سره یئے دا درے عبادات د دے وجے نه ذکر کړل چه دا عبادات خو توحید دے او دا خاص د الله تعالیٰ د پاره ادا کیږي نو که چرے د کعبے شریفے سره بتان (معبودان) موجود وي نو په دے عبادتونو کښ توحید باقي نه پاتے کیږي.

# اَضْطَرُّهٗۤ اِلٰى عَذَابِ النَّارِؕ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿۱۲۶﴾

په زور بوځم دهٔ لره عذاب د اُور ته. او بد دے ځائے د ورتللو دا اُور.

۱۲۶ په دے کښې دُعا د ابراهیم علیه السلام ذکر ده د پاره د اوسیدونکو د حرم مکه په درے دعاګانو سره - بَلَدًا دا اوله دعا ده - بلد ځائے د جمع کیدلو د خلقو دے چه په هغے کښې د ژوند عام ضروریات پیدا کیږی مراد د دے نه ښار جوړول دی او بلد کله صِرف خالی زمکے ته هم وئیلے شی لکه په سورة اعراف ۵۸ کښې او د دے دُعا د وجے نه په هغه وخت کښې بنو جرهم راغلل او دیره شول او د اسماعیل علیه السلام رشته د ازدواج د هغوی سره اوشوه او د هغوی په اولاد کښې قریش پیدا شول. سوال :- په دے ایت کښې بَلَدًا دے او په سورة ابراهیم ۳۵ کښې اَلْبَلَدَ دے؟ جواب :- دا دعا د مکے د اباد‌ئ (د بنو جرهم د راتلو) نه مخکښې وه او هر کله چه هغوی پکښې اباد شول نو ابراهیم علیه السلام بیا هغه دُعا غوښتله کومه چه په سورة ابراهیم کښې ذکر ده نو په هغے کښې البلد معرفه ذکر کړو. اٰمِنًا د دے صفت د وجے نه هغے ته حرم وئیلے شی او دا دویمه دعا ده چه قبوله شویده. او مراد د امن نه دا دے چه هیڅ جابر د قیامت قریب پورے په هغے باندے قبضه نشی کولے او د خسف او زلزلو او نورو دنیوی عذابونو به بچ وی نو دارنګ د قحط او د لوټ مار د خلقونه به بچ وی. قرطبی لیکلی دی چه په هغے کښې سپے او ښکاری ځائے شی نو سپے د هغه ښکار په ځیز حمله نشی کولے تر څو پورے چه د حرم نه بهر نه وی وتلے. دارنګ په دے کښې ښکار کول او د دے بوټی پریکول منع دی او د دے لقطه (موندلے شوے څیز) راپورته کول منع دی او که څوک ئے راپورته کړی نو د همیشه د پاره به د هغے تعریف (اعلان) کوی.

تنبیه :- مفسرینو (ابن جریر ابن کثیر قرطبی خازن وغیره) اختلاف ذکر کړیدے چه دا تحریم د مخکښې نه موجود وؤ او که په دُعا د ابراهیم علیه السلام سره ثابت شویدے، دواړه طرفونو ته دلیلونه دلالت کوی لیکن ابن جریر وئیلی دی چه صحیح دا ده چه دا حرمت د دنیا د پیدائش سره شروع شویدے په دلیل د حدیث د صحیحین په خطبه د نبی صلی الله علیه وسلم په مکه کښې (ان هذا البلد حرّمه الله تعالٰی یوم خلق السموات والارض اه) او په دعا د ابراهیم علیه السلام سره د هغے حکم تجدید او فرضیت ثابت شو

وَإِذْ يَرْفَعُ إِبْرٰهِمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ

او کله چه پورته کول ابراهیم علیه السلام بنیادونه د کور د الله تعالی

وَإِسْمٰعِيلُ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّكَ أَنْتَ

او اسماعیل علیه السلام - (نو دواړو وئیل) اے ربه زمونږ قبول کړے زمونږ نه - یقیناً خاص ته

السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۲۷﴾ رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ

هرڅه اورېے او په هرڅه پوهیږے - اے ربه زمونږ او کرځوے مونږ همیشه اخلاص کوونکی

او په دے طریقے سره د دواړه طرفونو د دلیلونو موافقت کیږی - او دا دعا د ابراهیم علیه السلام قبوله شوه دلیل په دے باندے سورة العمران ۹۷ او سورة قصص ۵۷ دے - وَارْزُقْ أَهْلَهُ مِنَ الثَّمَرٰتِ، دا دریمه دعا ده او دا هم قبوله شوے ده لکه په سورة قصص ۵۷ کښ دی او دا دعائیے د دے وجے نه اوغوښتله چه مغه زمکه (غیر ذی زرع) فصل والا نه ده تو خلق به ورته سرهٔ دا من نه ځنګه راجمع کیږی نو دا دُعائیے اوغوښتله چه په دے ځائے کښې خلق او سیدل او راجمع کیدل آسان شی - مَنْ آمَنَ مِنْهُمْ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ، هر کله چه د دُعا د امامت په قبولیت کښ الله تعالیٰ تخصیص اوکړو چه ظالمانو ته دغه وعده نشی رسیدلے (لَا يَنَالُ عَهْدِي الظّٰلِمِينَ) نو ابراهیم علیه السلام رزق د دنیا هم په دے قیاس کړو د دے وجے نه تخصیص د مؤمنانو ئے اوکړلو - قَالَ وَمَنْ كَفَرَ دا تعمیم د اجابت د دعا د رزق دے چه شامل شی کافرانو ته ځکه چه نعمتونه د دنیا عام دی مؤمنانو او کافرانو دواړو ته رسیږی لکه په سورة اسراء ۲۰ سورة یونس ۷ او سورة زخرف ۳۵ کښ دی - او په دے عبارت کښ تقدیر دے یعنی وَارْزُقْ مَنْ كَفَرَ او فَأُمَتِّعُهُ قَلِيلًا د دے تفسیر دے - قَلِيلًا په اعتبار د ژوند دنیوی دے چه دا لږ ژوند دے په نسبت د ژوند د قبر او حشر سره اګرچه مالونه د کافرانو ډیر وی لیکن وخت ئے لږ دے او د اهلِ ایمانو د قبر او حشر نعمتونه هم شته دے - ثُمَّ أَضْطَرُّهُ إِلٰى عَذَابِ النَّارِ دا تخویف دے کافرانو له - اضطرار به په طریقه د دیکوو رکولو او شړلو او راښکلو سره وی لکه په سورة طور ۱۳ او سورة زمر ۷۱ او سورة قمر ۴۸ کښ دی - ۱۲۷ په دے آیت کښ ذکر د آبادولو د بیت الله دے او د هغے د قبولیت دُعا

لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ

تا ته او د اولاد زموږ نه يو ډله اخلاص کوونکې تا ته

وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ

او راوخايئ موږ ته طريقې د بندګۍ زموږ. او مهرباني اوکړه په موږ باندې. يقيناً خاص ته

التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۲۸﴾ رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيْهِمْ

توبه قبلوونکې رحم کوونکې يې. اے ربه زموږ او ليږه په دوی کښ

ذکر دہ۔ وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ، قواعد جمع د قاعدةٌ ده بنياد ته وئيلے شی او په دے کښ دوه قولونه دی اول دا چه بنيادونه ابراهيم عليه السلام کينښودل او ديوالونه يې ورباندے اوچت کړل۔ دويم قول دا دے چه بنيادونه د مخکښ نه موجود وو نو ابراهيم عليه السلام د هغې د پاسه ديوالونه اوچت کړل او بِنا په دے قول سره وئيلی شويدی چه اوله بِنا د بيت الله ملائيکو کړے ده او بيا آدم عليه السلام جوړ کړيدے بيا ابراهيم عليه السلام او دا قول قرطبی ذکر کړيدے۔ او د دے قول تائيد په سورة آل عمران ۹۶ سره او په لفظ د يَرْفَعُ الْقَوَاعِدَ سره کيږی۔ وَاِسْمٰعِيْلُ دا عطف دے په ابراهيم عليه السلام باندے۔ سوال:۔ يرفعان (تثنيه) يې ولے نه وئيله؟ جواب:۔ اصل آبادی ابراهيم عليه السلام کوله او اسماعيل عليه السلام تښے ورکولے د هغه امدادئے کولو د دے وجے نه د عطف په طريقه سره يې ذکر کړو۔

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا، دا حال دے د ابراهيم او اسماعيل نه په تقدير د يَقُوْلَانِ سره۔ يعنی په وخت د عمل د آبادئ کښ د يرے د الله تعالیٰ نه يې دا دُعا غوښتله او دا د مؤمنا نو صفت دے چه د صالح عمل کولو سره سره يره کوی د عدم قبوليت نو دعا غواړی لکه په سورة مؤمنون ۶۰ کښ دی۔

اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ، دا ادب د دعا دے يعنی وسيله نيول په نومونو او صفتونو د الله تعالیٰ سره لکه چه په سورة اعراف ۱۸۰ کښ دا ادب ذکر دے او د دے آيت په تفسير کښ ابن کثير تفصيل د بِنا د بيت الله ليکلے دے۔

۱۲۸ په دے کښ دريمه دعا د ابراهيم عليه السلام ذکر کوی د پاره د تثبت په دين باندے او د پاره د جاری ساتلو د دے دين په اولاد خپل کښ۔

رَسُوۡلًا مِّنۡهُمۡ يَتۡلُوۡا عَلَيۡهِمۡ اٰيٰتِكَ

رسول دَ جنس دَ دوی نه چه بیانوی په دوی باندے اٰیاتونه ستا

وَاجۡعَلۡنَا مُسۡلِمَيۡنِ لَكَ مراد دَ دے نه دوام او تثبت دے په دین اسلام باندے. وَمِنۡ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسۡلِمَةً لَّكَ، مِنۡ دَ تبعیض ئے دَ دے وجے نه ذکر کړو چه په لَا يَنَالُ عَهۡدِي الظّٰلِمِيۡنَ سره معلومه شویده چه ټول اولادئے مسلمانان نشی کیدلے۔ ذُرِّيَّتِنَآ جمع صیغه کښ اشاره ده چه دَ ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام دواړو اولاد په وی نو عرب او غیر عرب دواړو ته شامل دے. اُمَّةً دلته په معنی دَ جماعت تابعدار سره دے او دا لفظ په قرآن کریم کښ یو پنځوس کرته ذکر دے په نهه معانیو سره، اوله معنی جماعت مسلمه عموماً لکه په دے ایت کښ، دویمه معنی جماعة الانبیاء (سورة بقره ۱۳۴)، دریمه جماعت تابع دَ نبی صلی الله علیه وسلم (سورة بقره ۱۴۳)، څلورمه جماعت دعوت ورکوونکے خیر ته (سورة العمران ۱۰۴)، پنځمه مطلق جماعت که مسلمه وی او که غیر مسلمه وی (سورة نساء ۴۱)، شپږمه مدت (سورة هود ۸) اوومه امام (سورة نحل ۱۲۰)، اتمه ملت حقه (سورة انبیاء ۹۳)، نهمه ملتِ باطله (سورة زخرف ۲۲)۔ او دَ دے امت مسلمه نوم ته اشاره ده په سورة حج ۷۸ کښ بِنَا په یو تفسیر سره۔ وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا په دے دعا کښ ئے دَ ځان سره اولاد هم جمع کړیدی اَرِنَا کښ دوه معانی دی اول په سترګو ښودل، دویم په تعلیم سره۔ مناسك جمع دَ منسك ده هر هغه ځائے ته وئیلے شی چه په هغے کښ الله تعالیٰ ته تقرب (نزدیکت) کیدے شی په عمل صالح سره که ذبح کول وی یا مونځ او طواف او سعی وغیره او دائے معنی شرعی ده او په لغت کښ هر هغه ځائے ته وئیلے شی چه انسان هغے ته په تلو راتلو سره عادت شی۔ دارنګ په لغت کښ وینځلو ته هم وئیلے شی۔ دلته اوله معنی معالِم دَ حج۔ (طواف۔ سعی۔ عرفات۔ مزدلفه۔ منیٰ او رمی دَ جمار) مراد دی. دویمه معنی مذابح یعنی څه رنګ به ذبح کوو۔ دریمه معنی ټول عبادات او دَ هغے طریقے۔ نو روستو معنی غوره ده او دا دلیل دے چه انبیاء علیهم السلام په شرع دَ عباداتو کښ دَ الله تعالیٰ تعلیم (وحی) ته محتاج دی دَ ځان نه تشریع نشی کولے۔ وَتُبۡ عَلَيۡنَا طلب دَ توبے دَ دوی دَ الله تعالیٰ نه په طریقه دَ تعبُّد (عاجزئ) سره دے اشاره ده چه دَ هر عبادت سره عموماً او دَ حج سره

وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْ ؕ

او خودته به کوی دوی ته دکتاب (قرآن) او سنت او پاکوی به دوی لره.

اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۱۲۹﴾ وَمَنْ يَّرْغَبُ

یقینًا خاص ته زورآور او حکمتونو والا یې. او څوک ته اړوی



خصوصًا کثرتِ استغفار او توبه کول پکار دی.

۱۲۹ دا څلورمه دعا د ابراهیم علیه السلام ده په باره د میعوثیت د خاتم الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم کښ چه تقریبًا دوه زره کاله روستو د قبولیت په وجود کښ راغله. او دا دعا صرف د ذریت د ابراهیم او اسماعیل علیهما السلام سره تعلق لري چه هغه عرب دي او عجم ته د هغه نبوت عام کړے دے. فِيْهِمْ ضمیر ذُرِّيَّتِنَا ته راجع دے او چه د دواړو ذریت دے نو هغوی ته امیین هم وئیلے شویدی په سورة جمعه ۲ کښ او فائده د مبعوثیت صِرف مؤمنانو ته رسیدلے ده د دے وجے په سورة العمران ۱۶۴ کښ یې مؤمنان خاص کړل نو په قومِ عرب کښ (چه اولاد د اسماعیل علیه السلام دی) بغیر د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم نه بل نبی نه دے رالیږلے شوے نو دا دعا خاص ده په هغه پورے د دے وجے نه نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی (اَنَا دَعْوَةُ اَبِيْ اِبْرَاهِيْمَ) "زه دعا یم د خپل پلار چه ابراهیم علیه السلام دے" نو فِيْهِمْ د نبی اول صفت ته اشاره شوه چه عربی دے. رَسُوْلًا دا دویم صفت دے. مِنْهُمْ په دے کښ دریم صفت ته اشاره ده چه د نوع د بشر نه دے. په دے دریواړه صفتونو باندے ایمان راوړل فرض دی په دے کښ د یو صفت نه انکار کول یا شک کول کفر دے. دا سے الوسی په تفسیر د سورة العمران کښ لیکلی دی. او په سورة العمران ۱۶۴ کښ من انفسهم وئیلے دے اشاره ده د ډیر قربت او محبت د مؤمنانو د هغه سره او د محبت د هغه د مؤمنانو سره چه ګویا که یو نفس ونه ګرځیدلی دی. کنز العمال ص۱۷۷ کښ وئیلی دی چه مِنْهُمْ نه مراد نوع د بشر ده د ابوهریره رضی الله عنه نه روایت دے چه عمر رضی الله عنه قول د زهیر بن ابی سلمٰی په باره د هرم بن سنان کښ لوستلو (شعر) لَوْ كُنْتَ فِيْ شَيْءٍ سِوَى الْبَشَرِ ÷ كُنْتَ الْمُضِيْءُ لِلَيْلَةِ الْبَشَرِ. بیا عمر رضی الله عنه ملګروته اُوئیل چه دا سے رسول الله صلی الله علیه وسلم وُو.

فائده:- شربینی د ابن عباس رضی الله عنهما روایت لیکلے دے چه ټول انبیاء د بنی اسرائیلو نه وؤ ما سیوا د لسو نه چه هغه نوح، هود، شعیب، لوط، ابراهیم اسماعیل، اسحاق، یحقوب علیهم السلام او محمد صلی الله علیه وسلم دے۔
يَتْلُوا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ، دا د نبی صلی الله علیه وسلم د دریو ذمه دارو نه اوله ذمه داری ده او مراد د دے نه دعوت او تبلیغ کول دی قرآن ته ځکه چه د تلاوت نه روستو لفظ د علی راشی نو مراد نورو خلقو نه لوستل دی دا دلیل دے چه د دعوت او تبلیغ د پاره نصاب قرآن کریم دے نو رسول الله صلی الله علیه وسلم مُبلّغِ اعظم دے۔ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ دا دویمه ذمه داری ده یعنی په دعوت د قرآن سره چه کوم خلق دینِ اسلام قبول کړی نو د هغوی د مضبوطوالی او تفصیلی ایمان د پاره تعلیم د قرآن او د سنت ضروری دے نو معلومه شوه چه رسول صلی الله علیه وسلم معلِّم اعظم هم دے۔ او د هغه د تعلیم نصاب قرآن کریم او سنت دے۔ الْحِكْمَةَ دا لفظ په قرآن کښ شل کرته ذکر دے او د دے اووه مصداقات دی، اول سنت په تفسیر د قرآن کښ لکه په دے ایت کښ د قتاده نه روایت دے۔ دویم نبوت سورة بقره ۲۵۱، دریم فهم د قرآن او د هغے اسرار، سورة بقره ۲۶۹، څلورم علم د اسرار الٰهی په وحی سره د هر یو نبی د پاره (سورة آل عمران ۸۱)، پنځم عقلی او نقلی او وحی دلیلونه (سورة نحل ۱۲۵)، شپږم قرآن او د هغے علمونه (سورة اسراء ۳۹)، اووم معرفت د حقائقو په عقل سره (سورة لقمان ۱۲)۔ دلته هم مفسرینو ډیرے معانی لیکلی دی لیکن غوره په ټولو کښ قول د قتاده او د حسن او د مقاتل او ابو مالك وغیره دے چه مراد د حکمت نه سنت (حدیث) دے چه هغه تفسیر د قرآن او شرح د احکامو ده۔ وَيُزَكِّيهِمْ هر کله چه مقصد په دعوت او تعلیم کښ عمل کول دی نو دائے دریمه ذمه داری ذکر کړله۔ تزکیه په اصل کښ پاکولو او زیاتولو ته وئیلے شی دلته مراد د شرك او کفر او د بد اعمالو او ناکاره اخلاقو نه پاکول دی دا رنګ مقصد په دیکښ په قرآن او احکامو الٰهیه باندے د عمل کولو طریقے ښودل دی لکه چه نبی صلی الله علیه وسلم په عملی طریقه مونځ، اودس، حج او نور احکام ښودلی دی دا رنګ په دے تزکیه سره خپل نفس د حب د دنیا او د غفلت او د بغض وحسد او تعصب وغیره نه ساتلے شی او د هغے د پاره د نبی صلی الله علیه وسلم

عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ط

دَ دین دَ ابراهیم علیه السلام نه مګر هغه څوک چه کم عقل کړی ځان خپل۔

وَلَقَدِ اصْطَفَیْنٰهُ فِی الدُّنْیَا ج وَاِنَّهٗ

او یقینًا غوره کړے وو مونږ دهٔ لره په دُنیا کښې او یقینًا دے به

هم اوراد، اذکار اوادعیه دَ هر حالت مناسب ښودلی دی چه دَ هغې تفصیل په احادیثو کښې موجود دے نو معلومه شوه چه نبی صلی الله علیه وسلم مرشد اعظم دے دَ دے وجے کله کله دَ صحابه کرامو نه بیعت اخستلے دے په اعمالو او اخلاقو باندے دا دلیل دے چه دَ هغه مرشد نه روستو دَ صوفیاؤ دَ سلسلو او دَ هغوی بیعتونو ته حاجت نیشته ځکه چه هغه په دلیل شرعی سره ثابت نه دی او ډیر کرته اوراد او وظیفے دَ پیرانو مریدانو لره دَ اذکارو دَ احادیثو نه غافل او منع کړی۔ دَ دے وجے نه صاحب دَ خلاصة الفتاوٰی ص۳۱ ج۴ کښې لیکلی دی۔ چا چه شیخ دَ هدایت دَ پاره او نیوؤ نو دا شخص ګمراه دے او دَ ارشاد دَ پاره شخص مقرر کول ممنوع دی دَ وجے دَ نیشتوالی دَ دلیل شرعی نه۔

**فائده:-** دَ دے مضمون ایاتونه (سورة بقره ۱۵۱ سورة العمران ۱۶۴ سورة جمعه ۲) کښې راغلی دی په دے ایت کښې ذکر دَ دعا دے او په هغه درے ایاتونو کښې استجابت دَ دے دُعا ذکر دے۔

**سوال:-** په دے ایت کښې یُزَکِّیْهِمْ روستو راوړے دے او په دغه درے ایاتونو کښې یُزَکِّیْهِمْ په یُعَلِّمُهُمْ باندے مخکښې کړے دے؟

**جواب:-** هر کله چه دعوت او تعلیم وسیله ده دَ پاره دَ عمل کولو او اهم څیز عمل کول دی نو په دے کښې اصل ترتیب ته اعتبار ورکړے شو چه علم مخکښې دے په عمل باندے او دَ دغه نورو درے ایاتونو دَ اهمیت لحاظ اوکړے شو نو عمل ئے مخکښې ذکر کړو دَ علم نه۔

اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ، دا هم توسل دے په نومونو دَ الله تعالیٰ سره۔ عزیز په صفت دَ الله تعالیٰ کښې غالب په هر چا او هر څیز باندے چه څوک ئے مقابله نشی کولے او څوک ئے دَ اراده پوره کولو نه منع کولے نشی۔ دارنګ مثال ئے نیشته۔ دارنګ هغه ذات چه دَ هغه مرتبے ته څوک نشی رسیدلے۔

فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۳۰﴾ اِذْ قَالَ لَهٗ

په اٰخرت کښ خامخا د کامیابو نه وي۔ او کله چه او وئیل ده ته

رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۳۱﴾

رب د ده اخلاص کوه (همیشه) ده او وئیل اخلاص کووم ځه د پاره د رب العالمین۔

۱۳۰ هرکله چه ملتِ ابراهیمیه ذکر شو چه هغه تعظیم د بیت الله او د حرمِ مکه او تثبت په دین اسلام باندے او تصدیق د اٰخری نبی دے نو اوس رد کوی په هغه یهودو او نصاراؤ او نورو مشرکینو باندے چه هغوی د دغه ملت نه مخ گرځوی او شرک کوی او د کعبة الله لحاظ نه کوی او اٰخری نبی باندے ایمان نه راوړی۔ او د مَنْ يَّرْغَبُ معنی اعراض کول دی په دغه معنی سره چه ذکر شوه۔ دلته رغبت په معنی د پریښودلو او اعراض کولو سره دے او مِنْ د استفهام انکاری د پاره دے په معنی د نفی سره په دلیل د اِلَّا سره۔ د رغب نه چه روستو فِی راشی تو په معنی د طلب او د مینه کولو وی او چه عَنْ راشی نو په معنی د پریښودلو سره وی۔ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ، مخکښ د سَفِهَ معنی ذکر شوې ده۔ زجاج وئیلی دی چه سَفِهَ په معنی د جهل سره دے او مضاف پټ دے جهل اَمْرَ نَفْسِهٖ۔ د ابوعبیده په نیز په معنی د اَهْلَكَ دے او اخفش وئیلی دی چه فِی پټ دے یعنی جهل فی نفسه۔ مبرد او ثعلبی وئیلی دی چه سَفِهَ پخپله متعدی دے او سَفْه لازمی دے۔ وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِی الدُّنْيَا داعلت او دلیل د مخکښ حکم دے۔ اِصْطِفَاء د ابراهیم علیه السلام په ۱۲۴ کښ ذکر شوه دا رنګ په سورة نحل ۱۲۰، ۱۲۱، ۱۲۲ او سورة نساء ۱۲۵ کښ او سورة عنکبوت ۲۷ او سورة زخرف ۲۸ کښ ذکر ده۔

وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ سوال:۔ صالح هغه چاته وئیلے شی چه نیک عمل کوی او اٰخرت خو د عمل کولو ځائے نه دے؟ جواب:۔ دلته مراد فائزین (کامیاب) دے یا جماعت د صالحینو کاملانو دے چه انبیاء علیهم السلام دی او نور توجیهات هم قرطبی ذکر کړیدی۔

۱۳۱ داعلت دے د اصطفینا د پاره۔ اَسْلِمْ مراد د دے نه استقامت او ثبات دے په اسلام باندے یا په معنی د اخلاص کولو سره دے یا په معنی د تفویض (سپارلو) د ځان دے الله تعالیٰ ته۔ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ داصفت علّت دے

وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ؕ

او وصیت کړیدے په دغے (کلمه د توحید) سره ابراهیم علیه السلام ځامنو خپلو ته او یعقوب علیه السلام هم.

يٰبَنِىَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ

چه اے ځامنو! یقیناً الله تعالیٰ غوره کړیدے ستاسو د پاره دین (توحید - اسلام)

فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ؕ ﴿۱۳۲﴾

نو مرګ دِے را نشی تاسو ته مګر په داسے حال چه مسلمانان (توحید والا) یئ -

د پاره د اسلام لله چه په دیکښ هیڅ احتمال د شرکت د غیر نیشته -

۱۳۲ په دے کښ هم رد دے په یهودیانو او نصاریٰ چه هغوی وئیل چه اسلام که چرے د ابراهیم (علیه السلام) وو نو هغه پورے خاص وو د بنی اسرائیلو د پاره دینِ اسلام نیشته لکه چه په دے زمانه کښ هغوی ځان ته مسلمانان نه وائي - نو الله تعالیٰ او فرمائیل چه په دین اسلام باندے ابراهیم او یعقوب علیهما السلام دواړو خپل اولاد ته وصیت کړے دے نو دا دین د بنی اسرائیلو او بنی اسماعیلو دواړو د پاره دے - بِهَا ضمیر راجع دے ملتِ اسلامیه ته چه دلالت کوی په هغے باندے جمله د اَسْلَمْتُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ - یا راجع دے کلمه د لا اله الا الله ته په هغے هم دغه مخکښ جمله دلالت کوی - سوال :- لفظ د وصیت ئے ذکر کړو امر ئے ذکر نه کړو؟ -

جواب :- په لفظ د وصیت کښ تاکید دے د ډیرو وجوه ته اول داچه وصیت د انسان په وخت د مرګ کښ وی نو په دے کښ ضرور اخلاص وی دویمه وجه داچه د دے نه روستو د نسخ د پاره بله خبره نه وی - دریمه داچه په داسے وخت کښ اولاد د پلار په وصیت باندے ضرور عمل کوی - بَنِيْهِ ځامن د ابراهیم علیه السلام اته وو قرطبی او خازن داسے لیکلی دی او سیوطی وئیلی دی چه دولس وو لیکن بنات (لونړه) ئے نه وے -

وَيَعْقُوْبُ د ده په ذکر کښ خصوصی رد دے په بنی اسرائیلو باندے او د ده هم دولس ځامن وو - يٰبَنِىَّ دا تفصیل د وصیت دے - الدِّيْنَ الف لام د پاره د عهد دے یعنی دینِ اسلام - فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ قرطبی وئیلی دی چه مراد په دے سره دوام او همیشوالے دے په اسلام

أَمْ كُنْتُمْ شُهَدَآءَ إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ

ایا وئ تاسو حاضر کله چه نیژدے شو یعقوب علیه السلام ته مرګ

إِذْ قَالَ لِبَنِيهِ مَا تَعْبُدُونَ مِنْ بَعْدِي

کله چه اُوئیل هغه ځامنو خپلو ته دچا بندګی به کوئ ځما نه روستو.

قَالُوا نَعْبُدُ إِلٰهَكَ وَإِلٰهَ آبَائِكَ إِبْرَاهِيمَ

هغوی اُوئیل بندګی به کوو د معبود ستا او د معبود د پلار نیکه ستا چه ابراهیم علیه السلام

وَإِسْمَاعِيلَ وَإِسْحَاقَ إِلٰهًا وَاحِدًا

او اسماعیل علیه السلام او اسحٰق علیه السلام دی. چه معبود یو دے

وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ﴿۱۳۳﴾ تِلْكَ أُمَّةٌ

او موږ به خاص الله تعالیٰ لره اخلاص کوونکی یو. دغه (انبیاء) یو ډله وه

باندے په مختصر لفظ سره چه متضمن دے تذکیر د موت لره او د دے وجه دا ده چه د انسان خو یقین دے چه مرګ به راځی خو وخت یٔے معلوم نه دے نو که یو وخت دے امتثال د امر د الله تعالیٰ پریږدی او په دغه وخت کښ په دۀ باندے مرګ راشی نو مړ به شی بغیر د اسلام نه نو لازم دا ده چه هر وخت کښ دے په عقیده او په عمل د اسلام کښ متصف او مشغول وی د پاره د دے چه په دے جمله باندے عمل اُوشی.

۱۳۳ د دے ایت نه اُوه زواجر ذکر کوی یهود او نصارٰؤ ته. په دے کښ اول زجر دے د دوی په دروغو باندے او جواب د شبهے دے چه یهود او نصارٰؤ وئیل چه ابراهیم او یعقوب علیهما السلام یهود او نصارٰی وو او یعقوب علیه السلام وصیت کړے وۀ په یهودیت او نصرانیت باندے نو په دے کښ یٔے د هغے جواب اوکړو په طریقه د زجر سره.

أَمْ كُنْتُمْ ام په معنی د بل دے. شُهَدَآءَ جمع د شهید په معنیٰ حاضر سره او كُنْتُمْ نه مراد موجوده بنی اسرائیل دی او استفهام انکاری دے یا مراد د دے نه د دوی اسلاف دی چه هغه ځامن د یعقوب علیه السلام وو او استفهام تقریری دے. إِذْ حَضَرَ يَعْقُوبَ الْمَوْتُ، سوال:۔ مرګ چه

قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ

یقیناً تیره شویده مخکښې. دوی لره به له د هغه عمل ده چه دوی کړی دی او تاسو لره به له د هغه عمل ده چه تاسو کړی دی

وَلَا تُسْـَٔلُونَ عَمَّا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿۱۳۴﴾

او تپوس به نه شي کیدے ستاسو نه د هغه بد عملونو چه دوی کول.

حاضر شي نو بیا خو خبرے نشي کیدلے؟ جواب ۱ حَضَرَ په معنیٰ د قُرُب دے یعنی کله چه قریب الموت شو (خازن). جواب ۲ مراد د موت نه اسباب د موت دی لکه په سورة ابراهیم ۱۷ کښ دا معنی ده (قرطبی).
اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِىْ، مقصد په استفهام سره اختبار (امتحان) د هغوی دے د پاره د تثبت په توحید باندے. قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَآئِكَ عطف د پاره د تعریف او تعیین دے د مغائرت د پاره نه دے او اشاره ده چه توحید د عبادت د ټولو انبیاؤ دین دے. اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ، ابراهیم اُور نیکه وؤ د هغوی او اسحاق یئے نیکه وؤ او اسماعیل یئے د نیکه رور وؤ یعنی د یعقوب علیه السلام تره وؤ دا دلیل دے چه د اَبْ (پلار) اطلاق په نیکه او په تره باندے هم کیدلے شي او اسماعیل د اسحاق نه مشر وؤ د دے وجے نه هغه یئے مخکښ ذکر کړے دے. اِلٰهًا وَّاحِدًا په دے کښ جواب د وهم دے که څوک وهم اوکړی چه عطف د پاره د مغایرت دے نو دلالت کوی په دوه اِلٰهو باندے؟ حاصل جواب دا دے چه دغه عطف د مغایرت د پاره نه دے صرف مغایرت د مضاف الیه دے. وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ دا دلیل دے چه دین د ټولو دینِ اسلام دے.
۱۳۴ په دے کښ د دوی د دویمے شبهے جواب دے او زجر دے. شبهه داوه چه دوی فخر کوؤ په خپلو نیکونو باندے چه مونږ به د هغوی په عمل سره بچ کیږو. جواب اوشو چه د هرچا ځان له عمل دے. او هر کله چه عملونه دوه قسمه دی اول عمل د خیر دے هغے ته اشاره ده په دے قول سره چه لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ یعنی د هرچا عمل د خیر صرف هغه له فائده ورکوی بل شخص په هغے سره نه خلاصیږی. دویم عمل دے د شر هغے ته اشاره ده په دے قول سره چه وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ یعنی د هرچا د بد عمل تپوس به صرف د هغه نه کیدلے شي

وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا ؕ
او دوی وائی چه شئ تاسو یهودیان یا نصاری نو لار به اوموموئ.

قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِیْفًا ؕ وَمَا كَانَ
ته ورته اُوایه بلکه مونږ تابع یو د دین د ابراهیم علیه السلام چه پوخ مؤحد وو- او نه وو هغه

مِنَ الْمُشْرِكِیْنَ ﴿١٣۵﴾ قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ
د مشرکانو د ډلے نه- او وایئ ایمان راوړیدے مونږه په الله تعالیٰ باندے

په بل چا باندے د هغے ذمه داری نیشته دے او په دے کښ یل جانب حذف (پټ) دے یعنی (وَلَا تُسْئَلُوْنَ عَمَّا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ) "د هغوی د اعمالو ستاسو نه تپوس نه کیږی"- او د اولے جملے تائید په سورة نجم کښ د وَاَنْ لَّیْسَ لِلْاِنْسَانِ اِلَّا مَا سَعٰی دے او د دویمے جملے تائید اَلَّا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِّزْرَ اُخْرٰی دے- او دا ایت دلیل دے چه انسان ته د عملونو د کسب نسبت کیدے شی خو د خلق نسبت ئے په الله تعالیٰ پورے خاص دے.

١٣۵ په دے کښ دریم زجر دے په دعوت کولو د دوی محرّف دین ته (یهودیت او نصرانیت) اوس زمانه کښ هم یهودیان د یهودیت مشن (دعوت) چلوی او نصاری د نصرانیت دعوت کوی- او د دپاره د تفصیل د قائلینو دے یعنی یهود وائی یهودیان شئ او نصاری وائی چه نصاری شئ او هر یو په هغه خپل دین کښ دعوی د هدایت کوی- هر کله چه هغوی چاته دا سے دعوت ورکوی نو هغوی ته به جواب ورکیدے شی په بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ سره د بل نه روستو نتبع پټ مراد دے او د ملتِ ابراهیمیه مصداق محکښ ذکر کړے شو. حَنِیْفًا دا حال دے یا لفظ د اَعْنِی پټ دے- حنیف د حنف نه اخستلے شوے دے او دا لفظ د اضدادو نه دے یعنی په معنی د جدائیئ او په معنی د استقامت سره دے یعنی جدا کیدونکے (اعراض کوؤنکے) د ټولو باطل دینونو نه او کلک او مستقیم وؤ په توحید باندے- د مجاهد نه روایت دے چه حنیف په معنی د مخلص سره دے او د ربیع نه روایت دے چه په معنی د متبع (تابعدار) سره دے- ابوالعالیه نه روایت دے چه حنیف هغه دے چه کعبے ته په مانځه کښ مخ کرځوی او حج د بیت الله کنی- راغب په مفردات

وَمَآ أُنْزِلَ إِلَيْنَا وَمَآ أُنْزِلَ إِلٰٓى إِبْرٰهٖمَ

او په هغه څه چه نازل کړے شویدے موږ ته او په هغه څه چه نازل کړے شویدی ابراهیم

وَإِسْمٰعِيْلَ وَإِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْأَسْبَاطِ

او اسماعیل او اسحٰق او یعقوب علیهم السلام ته او اولاد د هغه ته

وَمَآ أُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَمَآ أُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ

او هغه چه ورکړے شویدی موسٰی علیه السلام او عیسٰی علیه السلام ته او هغه چه ورکړے شویدی نورو پیغمبرانو ته

مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ ۚ

د طرف د رب د دوی نه . جدائی نه کوو په مینځ د هیچا کښ (په ایمان راوړلو کښ) د دوی نه

وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿١٣٦﴾ فَإِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ

او موږ خاص الله تعالٰی ته اخلاص کوونکی یو . پس که چرے دوی ایمان راوړو په شان

مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَإِنْ تَوَلَّوْا

د ایمان ستاسو په هغے باندے . نو لار یئے او موندله او که مخ اوړګرځوو دوی

کښ وئیلی دی چه حنیف میلان دے د ګمراهئ نه استقامت طرف ته.
ابن قیم په جلاء الافهام کښ وئیلی دی چه د حنیف معنیٰ اَلْمُقْبِلُ عَلَى اللّٰهِ وَالْمُعْرِضُ عَمَّا سِوَاهُ دے (الله تعالٰی ته توجه کوونکے او د ماسوی الله نه مخ ګرځوونکے) او لفظ حنیف په قرآن کښ دولس کرته ذکر دے او هر ځائے د ابراهیم علیه السلام په صفت کښ ذکر دے. وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ، شربینی، خازن او نسفی وئیلی دی چه په دے جمله کښ تعریض دے په یهودو او نصاراؤ باندے چه دوی مشرکان دی نو دا دلیل دے چه کتابی شخص چه شرک کوی نو هغه ته مشرک وئیلے کیږی.
۱۳۶ هر کله چه مخکښ ایت کښ ذکر شول چه دوی یهودیت او نصرانیت طرف ته دعوت ورکوؤ نو صحیح بخاری کښ راغلی دی چه (دوی د دے دعوت د پاره) تورات په عبرانئ ژبے سره لوستلو او په عربئ ژبه ئے عربو ته او مؤمنانو ته ترجمه کولو نو نبی صلی الله علیه وسلم او فرمائیل

چه ددوی تصدیق (مطلقًا) مه کوئ او تکذیب یئ هم (مطلقًا) مه کوئ بلکه
وایئ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا الاية - نو په دے ایت کښ رد دے د دعوت
د یهودو او نصاراؤ په احسن طریقے سره - دا رنګ دا جواب د شبهے د دوی
دے چه مؤمنانو باندے اعتراض کوی چه تاسو موسیٰ او عیسیٰ علیهما السلام
نه منئ ځکه چه تاسو د هغوی د دین رد کوئ دا سے اعتراض مهایمی په
تبصیر الرحمان کښ لیکلے دے حاصل د جواب دا دے چه مونږ ټول انبیاء
او هغوی ته نازل کړے شوے وحی باندے ایمان لرو او فرق په ایمان
راوړلو کښ نه کوؤ لیکن مونږ هیڅ نبی اِلٰه (حقدار د بندګئ) نه ګڼړو نو
مقصود په دے جواب کښ زجر او رد دے په یهود او نصاراؤ باندے ضمنًا چه
تاسو فرق کوئ په بعضِ انبیاؤ باندے ایمان راوړئ او په بعضِ باندے
ایمان نه راوړئ او تاسو خو بعضِ انبیاء د الله تعالیٰ سره شریک او د هغه
ولد جوړوئ تو ستاسو دعوت باطل دے - بِاللّٰهِ دا خو په ټولو ایمانیاتو کښ
مخکښ دے - وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا دا یئ د دوه وجو نه مخکښ راوړو اول دا چه ایمان
راوړل په قرآن باندے سبب دے د پاره د ایمان راوړلو په نورو کتابونو باندے
دویمه وجه دا ده چه ایمان په قرآن باندے ایمان تفصیلی دے او اهم دے
او ایمان په مخکنو کتابونو باندے ایمان مجمل دے - وَالْاَسْبَاطِ جمع د سبط
او سبط په لغت کښ تتابع (پرله پسے راتللو) ته وئیلے شی نو جماعت ته
وئیلے شی ځکه چه د هغے افراد د یو بل سره یو ځائے وی او یو بل پسے وی
یا په لغت کښ هغه او نه چه یو بیخ یئ دے او څانګے یئ ډیرے دی نو
دا رنګ دولس ځامن د یعقوب علیه السلام چه د یو اصل نه وؤ او د
هغوی نه ډیر خاندانونه خوارهٔ شول - امام بخاری وئیلی دی چه اسباط
قبائل د بنی اسرائیلو دی او دلته مراد ترینه انبیاء دی چه په بنی اسرائیلو
کښ رالیږلے شوی وؤ - وَمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى د دوی تخصیص یئ د
دے وجے نه او کړو چه اعتراض د هغوی په باره د ایمان د تورات او انجیل
کښ وؤ - اُوْتِيَ ایتاء په معنی د انزال دے لیکن ایتاء مقصد د انزال دے او
معلومه شوه چه ایتاء په معانیو کښ هم استعمالیږی لکه چه په محسوساتو
کښ استعمالیږی - وَمَآ اُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ د دے نه مراد هغه انبیاء
دی چه رالیږلے شوی وؤ د ادم علیه السلام نه تر ابراهیم علیه السلام پورے -

فَإِنَّمَا هُمْ فِي شِقَاقٍ ۚ فَسَيَكْفِيكَهُمُ اللَّهُ ۚ

نو یقیناً دوی په سخته دشمنئ کښې دی. پس خامخا به بچ به اوساتی تا ړه د دوی نه الله تعالیٰ

وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿۱۳۷﴾ صِبْغَةَ اللَّهِ ۚ

او هغه (الله تعالیٰ) هرڅه اوری په هرڅه پوهه دے. (راو وایئ قبول کړیدے مونږ) رنګ د الله تعالیٰ

فائده:- صحیح داده چه عدد د کل انبیاؤ په یقین او نص صحیح سره ثابت نه دے نو ایمان کښې تعیین د عدد کول پکار نه دی او هرچه حدیث د مسند احمد دے په روایت د ابوذر رضی الله عنه چه عدد د انبیاؤ یو لاکھ څلیریشت زره دے نو تنقیح الرواة شرح المشکوٰة کښې ئے وئیلی دی چه د دے په سند کښې علی بن زید راوی دے او هغه ضعیف دے نو شیخ البانی چه قول کړے دے په صحت د دے حدیث نو هغه قول صحیح نه دے.

لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ په دے کښې تعریضاً رد دے په یهود او نصاراؤ باندے چه هغوی فرق کولو چه بعض انبیاء ئے منل او بعض ئے نه منل. او دا سے په دے سورت ۲۸۵ او سورة العمران ۸۴ او سورة نساء ۱۵۱، ۱۵۲ کښې هم ذکر دی. سوال:- د دے سورت ۲۵۳ نه معلومیږی چه د انبیاؤ فرق په درجاتو کښې شته دے؟ جواب:- هغے ته تفاضل وئیلے شی فرق ورته نشی وئیلے کیدے. سوال:- بَيْنَ خو مفرد ته نه مضاف کیږی او أَحَدٍ خو مفرد دے؟ جواب:- أَحَدٍ چه هرکله استعمال شی د کلمے د کل سره یا په کلام سلبی کښې نو په معنیٰ د جمیع سره وی.

وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ مراد د اسلام نه اخلاص د عبادت دے د الله تعالیٰ د پاره په مقابل د شرک کښې، نو دا رد دے تعریضاً په یهود او نصاراؤ باندے چه تاسو بعض انبیاء د الله تعالیٰ سره شریکان جوړ کړیدی.

سوال:- په سورة العمران ۸۴ کښې وَمَا أُنْزِلَ عَلَيْنَا دے او دلته إِلَيْنَا دے؟ جواب:- دلته مؤمنانو ته خطاب دے د دے وجے نه قُولُوا ئے وئیلے دے او انزال په اُمت باندے د اُوچت طرفه کیږی بلکه هغوی ته رسیدل کیدے شی د دے وجے نه دلته ئے إِلَيْنَا وئیل او په سورة العمران کښې خطاب د نبی صلی الله علیه وسلم ته او په هغه باندے انزال د بره طرفه دے د دے وجے نه هلته عَلَيْنَا اُو ئیلے شو.

۱۳۷ په دے آیت کښې دعوت د ایمان شرعی دے ټولو کافرانو ته عموماً او

وَمَنۡ اَحۡسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبۡغَةً ۫ وَّنَحۡنُ لَهٗ

او څوک ډیر ښائسته دے د الله تعالیٰ نه په رنګولو کښې - او مونږه خاص هغه لره

بالخصوص یهود او نصاراؤ ته - دا عام مفسرینو لیکلی دی او شربینی لیکلی دی چه دا په طریقه د تبکیت او تعجیز سره دے لکه فَاْتُوْا بِسُوْرَةٍ مِّنْ مِّثْلِهٖ -
بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ خطاب نبی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو ته دے -
مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ په دے لفظ کښې ټول مومن بِهٖ داخل دی (الله تعالیٰ، ملائیک، رسولان، کتابونه منزله، بعث بعد الموت، تقدیر او فرق نه کول په مینځ د رسولانو او کتابونو او اخلاص په عباداتو کښې) -
سوال :- لفظ د مثل خو دلالت کوی چه د الله تعالیٰ او د هغه د رسولانو او کتابونو مثل شته دے او دا خو باطل دے ؟ - **جواب ع۱** مثل صفت دے د مصدر پټ یعنی فَاِنْ اٰمَنُوْا ایمانًا مثل ایمانکم او باء زائده ده او معنیٰ د مماثلت مخکښې ذکر شوه (مدارک) - **جواب ع۲** لفظ د مثل زیاتی دے طبری روایت کړے دے د ابن عباس رضی الله عنهما نه چه هغه به قراءت کوؤ فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ - ابن عطیه وئیلی دی چه دا په طریقه د تفسیر سره دے -
جواب ع۳ ما مصدریه دے او باء زیاتی ده (بمثل ایمانکم) - جواب ع۴ ، مثل په معنی د عین (ذات) یا په معنی د صفت دے (راغب) دا جوابونه ښکاره دلیل دے چه ایمان د صحابه کرامو معیار د ایمان د اُمت دے لکه چه س۱۳ کښې تیر شویدی - **جواب ع۵** شربینی او خازن وئیلی دی چه دا په طریقه د تعجیز سره دے یعنی که چرے د وی حاصلولے شی دین پشان د دین ستاسو نو هدایت به او مومی لیکن د دینِ اسلام پشان بل دین خو محال دے نو هدایت هم بغیر د دے دین نه محال دے -
وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا هُمْ فِیْ شِقَاقٍ ، شقاق په معنی د دشمنئ او جګړے سره دے او دا د شق نه اخستلے شویدے یعنی هریو د فریقینو په جدا جدا کښې شِق وی بغیر د شِق د بل نه - فَسَیَکْفِیْکَهُمُ اللّٰهُ کاف خطاب دے نبی صلی الله علیه وسلم ته او مفعول اول دے او هم مفعول ثانی دے ابن کثیر روایت ذکر کړیدے چه مصحف د عثمان رضی الله عنه په وخت د قتل د هغه په غیږ د هغه کښې وؤ نو پدے آیت باندے د هغه د وینے څاڅکی غورځیدلے وو ګویا که دا وعده ده د الله تعالیٰ د طرف نه په بدله اخستلو د عثمان رضی الله عنه کښې -

عٰبِدُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِی اللّٰهِ وَهُوَ

بندګي کوونکي يو - ته ورته اووايه آيا جګړه کوئ موږ سره په توحيد د الله تعالیٰ کښ او حال دا چه هغه

۱۳۸ په دے ایت کښ پنځم زجر دے په باره د رسم باطل د نصارٰی کښ او هغې ته يې دين وئيلو- صِبْغَةَ اللّٰهِ د دے نه مخکښ فعل پټ دے صَبَغنا الله (الله تعالیٰ موږ ته رنګ راکړے) يا اتبعوا يا الزموا- او صبغة نه مراد دين د الله تعالیٰ دے او فطرت د الله تعالیٰ دے چه هر انسان يې په هغې باندے پيدا کړے دے لکه چه اثر د رنګ په ظاهر باندے ښکاره کيږي نو داسے اثر د دينِ فطرت هم په مؤمن باندے ښکاره کيږي يا صبغة نه مراد تطهير د الله تعالیٰ دے په ايمان او په افتتان سره- ابن عباس رضی الله عنهما نه روايت دے چه په نصاراؤ کښ بچے پيدا شي او اووه ورځے په هغه باندے تيرے شي نو هغوی ورله په رنګ کښ غوپه ورکړي چه هغې ته معموديه رنګ وئيلے شي او ديته دوی تطهير وائي او په اسلام کښ د دے تطهير د پاره عقيقه او ختنه کول دي- کله په چه دوی داسے اوکړل نو وئيل به يې چه اوس دے خالص نصراني شو- او ابو حيان په البحر المحيط کښ ليکلي دي چه دين ته د صبغة وئيلو سبب په دوی کښ دا وو چه عيسٰی عليه السلام يوځل د يحيٰی عليه السلام ملاقات له لاړو نو هغه ته يې اووئيل چه زه تاله راغلے يم چه ستا نه رنګ حاصل کړم يعنی دين نو نصاراؤ د دے نه صِرف ظاهري رنګ مراد کړو او عيسٰی عليه السلام ته يې صابغ وئيلو او خپل عمل ته يې تغميس وئيلو او عرب هم د ديانت نه تعبير په رنګ سره کوي- لکه اوس چه عوام وائي چه فلاني پير فلانے مريد رنګ کړے دے- وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ، يعنی په دينِ فطرت (توحيد) سره چه کوم رنګ او تطهير حاصليږي نو داسے په بل دين او طريقت او علم سره نه حاصليږي- شاه عبد العزيز دهلوی په تفسيرِ عزيزي کښ ليکلي دي چه رنګ ورکول د مخلوق خو ظاهري وي يا باطني وي د ظاهري رنګ اثر خو صِرف په ظاهر باندے ښکاره کيږي او باطني اثر خو صِرف په يو يو قوّت باندے وي لکه رنګ د علمِ فلسفه صِرف په قوّتِ عقليه باندے وي او رنګ د شرک او بدعت په قوتِ وهميه باندے وي او رنګ د عادتي رسمونو رواجونو په قوتِ عاديه باندے وي او رنګ د حب د دنيا په قوت شهوانيه باندے وي او رنګ

رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۚ وَلَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ

رب زموږه او رب ستاسو دے۔ او موږ لره عملونه زموږ دي او تاسو لره

اَعْمَالُكُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ﴿۱۳۹﴾

عملونه ستاسو دي۔ او موږ خاص هغه ته اخلاص کوونکي يو۔

اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ

آيا وايئ تاسو چه يقيناً ابراهيم عليه السلام او اسماعيل عليه السلام

وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ كَانُوْا

او اسحاق عليه السلام او يعقوب عليه السلام او اولاد دَ هغه وو دوی

دَ بادشاهئ او سلطنت او اقتدار په قوت قهريه او غضبيه باندے وی او رنګ دَ دينِ فطرت (توحيد او سنت) په ظاهر باندے وی په دنيا کښ لکه "سِيْمَاهُمْ فِىْ وُجُوْهِهِمْ مِنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ" او په آخرت کښ به يَئے په لاسونو خپو او مخونو کښ سپينوالے وی او دا شان اثر دَ دے په دنيا کښ په تمام باطنی قوتونو باندے وی هر قوت دَ حق تابع چليږی مخالف رنګونه تعصب او وهم او رسم رواج په هغه باندے هيڅ اثر نشی کولے نو دَ دے وجے نه صبغة الله ته احسن اُوئيلے شو۔ وَنَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ، دا تفسير دَ صبغة الله دے ځکه چه دَ توحيد فی العبادت والطاعت اثر به په ظاهری او باطنی قوتونو باندے په دنيا کښ هم وی او په آخرت کښ به هم وی۔

۱۳۹ په دے کښ شپږم رد او زجر دے دَ دوی په محاجه باطله باندے۔ قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا، محاجّه په اصل کښ حجت پيش کول دی دَ هر طرف نه دَ پاره دَ اثبات دَ دعوے او کله استعماليږی دَ پاره دَ جګړے کولو دَ اهلِ باطل دَ طرف نه۔ او حجت په شلور معانو سره په قرآن کښ استعمال شويدے اول په معنی دَ دليل يقينی لکه سورة انعام ۸۳، دويم عذر کول لکه په سورة نساء ۱۶۵ کښ، دريم خالص جګړه کول که حق دی او که باطل وی لکه په سورة شوریٰ ۱۵ او شلورم باطل دليل او باطله جګړه کول لکه سورة شوریٰ ۱۶ کښ دلته محاجه دَ کافرانو دَ طرف نه په حجتِ باطله سره ده او دَ مؤمنانو دَ طرف نه دَ هغے جواب ورکول دی په وحی سره

هُودًا اَوۡ نَصٰرٰی ؕ قُلۡ ءَاَنۡتُمۡ اَعۡلَمُ اَمِ اللّٰهُ ؕ

یهودیان یا نصاری - ته ورته او وایه ایا تاسو ښهٔ پوهه یئ (د دعوی په حال) یا الله تعالی

وَمَنۡ اَظۡلَمُ مِمَّنۡ كَتَمَ شَهَادَةً

او څوک ډیر لوئے ظالم دے د هغه چا نه چه پټوی هغه علم (د حق)

عِنۡدَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ

چه وی د ده سره د الله تعالی د طرف نه - او نه دے الله تعالی بے خبره

یا دلته باب مفاعله د پاره د مبالغے دے د کافرانو د طرف نه - فِی اللّٰهِ مراد د دے نه توحید د الوهیت او اطاعت او اتباع د اوامرو د الله تعالی ده (ابن کثیر) -

وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمۡ، یعنی په عقیده د توحید ربوبیت کښ تاسو مونږ سره شریک یئ نو توحید ربوبیت خو مستلزم دے توحید د الوهیت لره نو توحید د الوهیت کښ ولے جګړه کوئی -

وَلَنَاۤ اَعۡمَالُنَا وَلَكُمۡ اَعۡمَالُكُمۡ، دا اعلانِ براءت دے روستو د جګړے د دعوی نه یعنی هر کله چه تاسو په توحید د الوهیت کښ مخالفت کوئی نو زمونږ او ستاسو په مینځ کښ براءت دے لکه چه په سورة یونس ۴۱ او سورة العمران ۲۰ کښ دی -

وَنَحۡنُ لَهٗ مُخۡلِصُوۡنَ، د دے مقابل حذف دے یعنی وانتم به مشرکون، او دا فرق دے د عقیدے او د اعمالو - اخلاص قرطبی وئیلی دی چه صفا کول د عمل دی د لحاظ د مخلوق نه او نور اقوال ئے هم ذکر کړیدی او راغب په مفردات کښ لیکلی دی چه اخلاص براءت دے د تشبیه او تثلیث او اشراك نه دا رنګ حقیقت د اخلاص براءت دے د هر معبود من دون الله نه -

فائده :- دلته ډیرو مفسرینو د فی الله په تفسیر کښ لیکلی دی چه په دعوی د تقرب الی الله او اصطفاء د نبوت کښ محاجه ده چه یهود او نصاری ځان د الله تعالی مقربین ګڼړی او نبوت په بنی اسرائیلو پورے خاص ګڼړی او روستو لَنَاۤ اَعۡمَالُنَا وَلَكُمۡ اَعۡمَالُكُمۡ کښ وئیلی دی چه زمونږ هم دا سے عملونه شته چه سبب د کرامت او د نبوت د پاره صحیح دی لیکن په دے تفسیر کښ وهم پیدا کیږی چه نبوت په سبب د اعمالو سره حاصلیږی او دا د عقیدے

عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿١٤٠﴾ تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ

دَهغه عملونه چه تاسو یٔے کوئ- دغه یوه ډله ده یقیناً مخکښ تیره شویده

لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ

دوی لره بدله دَهغه عملونو ده چه دوٸ کړی دی او تاسو لره بدله دَهغه عملونو ده چه تاسو کړی دی-

وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٤١﴾

او تپوس نشی کیدے ستاسو نه دَهغه عملونو چه دوی یٔے کوی -

داهلِ سنت نه خلاف دے چه نبوت کسبی نه دے بلکه موهبی دے-

١٤٠ په دے ایت کښ اُوَم زجر دے په یهودا و نصارا ؤ باندے چه هغوی نسبت دَ انبیاؤ کړے دے یهودیت یا نصرانیت ته او په دے سره یٔے خپل باطل دین حق بشکاره کوؤ-

كَانُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰی دلته او تفصیلیه دے یعنی دَ هر قول قائل جدا جدا دے نو په دے باندے رد دے په دریو طریقو سره- اوله طریقه قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ، دا استفهام تقریری دے یعنی الله تعالیٰ پوره عالم دے په باره دَ دغه انبیاؤ کښ او هغه یٔے ذکر کړے دے په سورة العمران ٦٥ تر ٦٧ کښ-

دویمه طریقه وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ، یعنی یهود او نصاراؤ ته هم علم حاصل دے په واسطه دَ تورات او انجیل سره چه دغه انبیاء یهود او نصاریٰ نه وؤ لیکن دوی دا علم پټوی- شهادة په معنیٰ دَ علم حق سره دے او عِنْدَهٗ مِنَ اللّٰهِ دواړه صفتونه دَ شهادة دی- او دریمه طریقه دَ رد وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ده تو دا هم زجر دے او کنایه ده دَ عذاب ورکولو نه- غَافِلٍ هغه چا ته وئیلے شی چه دَ بے پرواهئ دَ وجے په کارونو باندے علم نه لری-

١٤١ په دے کښ اتم زجر دے او دا یٔے مکرر راوړو لیکن فرق دا دے چه اول رد وؤ په دعویٰ کولو دَ نجات سره په عملونو دَ مشرانو باندے او په دے ایت کښ رد دے په فخر کولو سره په نسبت دَ دوی باندے یا دا چه اول کښ دَ اُمت نه عام مشران دَ دوی مراد وؤ او په دے ایت کښ مراد نرینه صِرف انبیاء دی-

سَيَقُولُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ

زر دے چه اوبه وائی بے وقوفان د خلقو نه

مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِىْ كَانُوْا

چه څه څیز اوګرځول دوی لره د قبلے د دوی نه چه وو دوی

عَلَيْهَا ؕ قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ؕ

هغے لره (مخ کرځوونکی). ته ورته اووایه خاص الله تعالی لره دے مشرق او مغرب.

يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۴۲﴾

رسوی چا لره چه اوغواړی لارے نیغے ته۔

سـ۱۴۲ **خلاصه:** د دے ایت نه تر سـ۱۶۲ پورے د دے حصے دریم باب دے په دے کښ جوابونه د دوه شبهاتو دی۔ اوله شبهه په باره د تحویل قبله کښ ده او دا شبهه ذکرده په دے لفظ سره چه مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِىْ كَانُوْا عَلَيْهَا او د دے جواب په ذکر د څلورو علتونو سره دے اول علت په دے ایت کښ دے (قُلْ لِّلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ). دویم علت په سـ۱۴۳ کښ (وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِىْ كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ الاية) دے او دریم علت په سـ۱۴۴ کښ (وَاِنَّ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ) دے او څلورم علت په سـ۱۵۰ کښ (لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ الاية) دے۔ په دے کښ اول او دریم اجمالی علتونه دی او دویم او څلورم تفصیلی علتونه دی۔ او په مینځ د دے کښ ذکر د سخت عناد د اهلِ کتابو دے او د هغوی درے ډلے ذکر دی (عنادیان۔ مداهنان او حق پرست) او بیا په سـ۱۴۷ کښ تعریف د حق دے او په سـ۱۴۸ کښ ترغیب دے تثبت ته په حق باندے په وخت د اختلاف د خلقو کښ۔ او په سـ۱۴۹ سـ۱۵۰ کښ تاکیدات دی د تحویل قبله په باره کښ او بیا ذکر د انعام خاص دے د پاره د تاکید د امر د قبلے۔ بیا څلور امر اوبونهی ذکر دی د پاره د تثبت په مخالفت د عنادیانو کښ۔ ذکر۔ شکر۔ اهتمام د صبر۔ او صلوٰة او لوئے شان ذکر کول د شهداءِ حق۔ بیا جواب د اخری شبهے دے په باره د سعی د صفا او مروه کښ چه دا امر د جاهلیت نه دے بلکه شعار د اسلام دے نو په دے باندے طعن کول جائز نه دی بیا زجر او تخویف د ټیوی

او اخروی دے پټوونکو د حق ته سرۀ د ترغیب د توبے ته او شرطونه د توبے د ۱۵۹ نه تر ۱۶۲ پورے دی۔

تفسیر: ربط د مخکښ ایت سره دا دے چه وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً سره زجر وۀ په پټولو د حق سره نو او س زجر دے په اعتراض کولو په هغه چا چه حق ښکاره کوی او په هغے عمل کوی یعنی دوی په خپله هم حق نه ښکاره کوی او نورهم د اظهارِ حق نه منع کوی۔ دا رنګ روستو ذکر د ملتِ ابراهیمیه دے د هغه ملت دوه اهم ارکان ذکر کوی یو تحویل قبله یعنی کعبه قبله جوړیدل او دویم حج (سعی د صفا او مروه)۔

سَيَقُولُ السُّفَهَاءُ مِنَ النَّاسِ، په دے کښ دوه اقوال دی د مفسرینو اول قول د عامو مفسرینو دا دے چه سَ د پاره د استقبال دے او فعل مضارع په خپله معنی سره دے او دا ایت د تحویل قبله نه مخکښ په طور د پیشنګویۍ سره نازل شوے دے نو دا اخبارِ صادق په غیب سره دلیل هم دے د صدق رسول د اثبات د پاره۔ دویم قول د بعضو دا دے چه سَ د پاره د تاکید دے او فعل مضارع په معنی د ماضی سره دے لیکن په مضارع سره ئے اشاره او کړه چه دا اعتراض د دوی د طرف نه راتلونکی وخت کښ هم جاری دے د وجے د ضد او عناد نه۔ السُّفَهَاءُ د دے تحقیق تیر شویدے او په دے کښ تصریح ده چه په عمل د نبی او د صحابوٴ باندے اعتراض کول سفاهت دے۔

مِنَ النَّاسِ، په دے کښ د دوی تذلیل ته اشاره ده اګرچه دوی اهلِ کتاب یهود او نصارٰی دی لیکن ذلیل دی د وجے د عناد کولو نه د حق سره او په دے کښ مشرکان او منافقان هم داخل دی۔ مَا وَلّٰهُمْ عَنْ قِبْلَتِهِمُ الَّتِي كَانُوا عَلَيْهَا، هُمْ ضمیر نبی او صحابوٴ ته راجع دے او قبله هغه حالت او طرف ته وئیلے شی چه انسان په وخت د مونځ کولو کښ هغے ته مخ کوی او دلته مراد د دے نه بیت المقدس دے چه روستو د هجرت نه مدینے ته نبی صلی الله علیه وسلم په امر د الله تعالٰی سره شپاړس یا اوولس میاشتے هغے طرف ته مونځونه او کړل نو بیا ورته امر راغے چه کعبه ستاسو قبله شوه۔ عَلَيْهَا، علی استقبالها یعنی دوی پاخه وو دغه قبلے ته په مخ کولو سره د وجے د امر د الله تعالٰی نه۔ قُلْ لِلّٰهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ، دا اول جواب دے په ذکر د علتِ اجمالیه سره یعنی اختیار او ملکیت د جهت الله تعالٰی د پاره دے

وَكَذٰلِكَ جَعَلْنٰكُمْ اُمَّةً وَّسَطًا لِّتَكُوْنُوْا

او دغسې جوړ کړي یئ موږ تاسو امت غوره (انصاف کوونکي) دې دپاره چه شئ تاسو

شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُوْنَ الرَّسُوْلُ

حق بیانوونکي خلقو ته او وي به رسول (صلى الله عليه وسلم)

عَلَيْكُمْ شَهِيْدًا ؕ وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِيْ

تاسو ته د حق بیان کوونکے. او نه ده مقرر کړے موږ قبله هغه طرف

كُنْتَ عَلَيْهَآ اِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَّتَّبِعُ الرَّسُوْلَ

چه ته وې په هغې باندې مګر د دې دپاره چه ښکاره کړو موږ هغه څوک چه تابعداري کوي د رسول

طرفو ته هم د هغه په اختیار کښې دی او بندګان هم د هغه په اختیار کښې دی د هغه خوښه ده چه خپلو بندګانو له د هر یو جهت امر ورکوي په دے کښې اشاره ده چه نبی صلی الله علیه وسلم بیت المقدس ته مخ کول او بیا کعبے ته مخ کرځول په خپل اجتهاد او اختیار سره نه دی کړی. داسے په ۱۱۵ کښې هم تیر شویدی لیکن فرق دا دے چه هلته عموم د مکانونو مراد وو او دلته عموم د طرفونو مراد دے۔ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ، په دے کښې هم علت ته اشاره ده چه هیڅ امر د الله تعالی د هدایت او استقامت نه بهر نیشته نو اول قبله بیت المقدس او بیا کعبه قبله مقرر کول هم د هدایت او د صراط مستقیم کلاندے داخل دی. دلته د هدایت نه مراد ایصال (رسول) دی۔

**فائده ۱:** ابن کثیر وئیلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم ته امر ورکړے شوے وو چه صخرة د بیت المقدس ته مخ کوه سره د کعبے ته نو په مکه کښې چه هغه مونځ کوؤ نو د حجر اسود او رکن یمانی په مینځ کښې به ودریدو نو کعبه به هم مخامخ وه او طرف د صخره بیت المقدس ته هم مخ راتلو نو دواړه قبلو ته به په یو ځل مخ راتللو. لیکن هر کله چه هجرت ئے اوکړو مدینے ته نو بیت المقدس د مدینے نه شمال طرف ته وو او کعبه جنوب طرف ته وه نو جمع د دواړو قبلو ته شوه کیدلے نو امر اوشو چه صرف بیت المقدس ته

مِمَّن يَنقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيۡهِ ۚ وَإِن كَانَتۡ

دَهغه چا نه چه اوړی په پوندو خپلو باندے۔ او اګر چه دا قبله بدلول

لَكَبِيرَةً إِلَّا عَلَى ٱلَّذِينَ هَدَى ٱللَّهُ ۗ

خامخا ګران دی مګر په هغه چا چه پاخه کړی وی الله تعالیٰ (په حق باندے)۔

وَمَا كَانَ ٱللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمۡ ۚ

او نه دے الله تعالیٰ چه ضائع (بربباد) کړی مونځونه ستاسو۔

إِنَّ ٱللَّهَ بِٱلنَّاسِ لَرَءُوفٞ رَّحِيمٞ ﴿١٤٣﴾

یقینًا الله تعالیٰ په خلقو باندے ډیر مهربان او رحم کوونکے دے۔

قَدۡ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجۡهِكَ فِي ٱلسَّمَآءِ ۖ

یقینًا لیدل مونږ اړول دَ مخ ستا طرف دَ آسمان ته

ځکه او غوره دا ده چه دا امر په وحی خفی سره وؤ نو شپاړس یا اوولس میاشتے روستو امر ورکړے شو دَ تحویلِ قبله کعبے طرف ته۔ او صحیح دا ده چه دا امر راغلے وؤ روستو دَ مونځ دَ ماسپخین نه او مخکښ دَ مونځ دَ ماز یګر نه اول مونځ چه نبی صلی الله علیه وسلم کعبے ته کړے وؤ نو هغه مونځ دَ ماز یګر وؤ۔ او داخبر مسجد قبلتین کښ په وخت دَ مونځ دَ ماز یګر کښ راغلو او هغوی په مونځ کښ مشغول وؤ نو په عینِ مانځه کښ هغوی تحویل اوکړو او مسجد قباء والو ته په وخت دَ مونځ دَ صبا کښ دَ مانځه نه مخکښ دا خبر او رسید لو۔

فائده ۲ ابن جریر دَ ابو العالیه نه روایت کړیدے چه قبله دَ موسیٰ علیه السلام صخره نه وه بلکه دَ صخره په خوا کښ ولاړ وؤ او کعبے طرف ته به ئے مخ کوؤ دارنګ په مسجد دَ صالح علیه السلام کښ قبله کعبے طرف ته وه نو معلومه دا شوه چه یهودیانو صخره او نصاراؤ بیت الشرق قبلے دَ ځان نه جوړے کړے وے نو دَ ټولو انبیاؤ قبله کعبه وه صرف زمونږ نبی صلی الله علیه وسلم دَ پاره بیت المقدس شپاړس یا اوولس میاشتے قبله اوګرځولے شوه۔ هاں بعض مفسرینو وئیلی دی چه دَ انبیاؤ دَ بنی اسرائیلو قبله بیت المقدس وه۔

سـ ۱۴۴ په دے آیت کښ شپږ جملے دی په اوله جمله کښ لوئے شان دَ دے

امت ذکر دے او په دویمه کښ عظمتِ شان دَ نبی صلی الله علیه وسلم او په دریمه جمله کښ تفصیلی جواب دَ شبهے دے سرۀ دَ علتِ تفصیلیه نه په څلورمه کښ شان دَ تحویل قبله ذکر کوی په پنځمه کښ جواب دَ بل سوال او شپږمه کښ صفاتِ الٰهیه مناسب دَ مخکنو جملو سره۔

وَكَذٰلِكَ، کاف دَ پاره دَ تشبیه دے او ذٰلك کښ اشاره ده هدایت او استقامت ته په صفت کَ دے اُمت او قرطبی وئیلی دی لکه چه کعبه وسط دَ زمکے دے نو دا سے تاسو هم ما ګرځولی یئ امتِ وسط۔ یا دا کاف دَ پاره دَ بیان کمال دے تشبیه نه غواړی یعنی وسطیت کَ دے امت په کمالِ درجه کښ دے۔ اُمَّةً وَّسَطًا په لغت کښ وسط په زور دَ سین سره په معنی دَ عادل دے او په حدیث مسند احمد کښ هم وسط په معنی دَ عادل دے او په معنی دَ غوره سره هم راغلی (ابن جریر) او دا په شان دَ سورة العمران ۱۱۰ دے۔ یا وسط په معنی دَ متوسط دَ یعنی تاسو په مینځ دَ تقصیر او تفریط دَ یهودیانو او دَ غلو او افراط دَ نصاراؤ کښ یئ۔ جوهری په صحاح کښ وئیلی دی چه کوم ځائے بین لفظ استعمالیږی نو هغه وَسْط دے او کوم ځائے چه بین نشی استعمالیدے نو هغه وَسَط دے۔ او هرکله چه دَ دے خطاب اول مخاطب صحابه کرام دی دَ دے وجے نه صحابه کرام ټول عادلان دی نو په هغوی کښ دَ هریو قول او عمل حجت دے په شرطونو دَ هغے سره او هرکله چه باقی امت په مجموعی حیثیت سره عادل دے نو معلومه شوه چه اجماع دَ امت حجت دَ په شرع کښ (قرطبی او کبیر)۔

لِتَكُوْنُوْا شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ، دا شهادت په دنیا کښ دے او په اٰخرت کښ هم دے۔ هرچه په دنیا کښ دے نو دَ هغے دوه طریقے دی اوله طریقه شهادت دَ دوی په مرده باندے یعنی که دَ یو مرده په باره کښ دوی شهادت اوکړی چه دا ښۀ انسان وۀ نو دَ هغه دَ پاره جنت واجب شی او په چا باندے چه شهادت اوکړی چه دا ناکاره انسان وۀ نو هغه دَ پاره اُور دَ جهنم واجب شو او دا سے په صحیح حدیث کښ هم راغلی دی او دَ دے حدیث هم اول مصداق صحابه کرام دی او بیا ورپسے هغه څوك چه دَ صحابه کرامو صحیح تابعدار وی (قرطبی)۔ دویمه طریقه دَ شهادت دعوت او تبلیغ کول دَ حق دی چه دَ هغے تائید په سورة العمران ۱۱۰ کښ دے او دا معنی سمرقندی په بحرالعلوم کښ ذکر کړے ده او هرچه شهادت دے په اٰخرت کښ نو هغه

شهادت د دے امت دے د پاره د انبیاء علیهم السلام د هغوی په دعوت او تبلیغ کولو امتونو د هغوی ته او دا په صحیح حدیث کښ د ابو سعید الخدری په روایت سره د پاره د نوح علیه السلام په مقابله د قوم د هغه کښ ذکر دے.
وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا، دلته شهادت د نبی صلی الله علیه وسلم په دوه طریقو سره دے اول په دنیا کښ په معنی د دعوت او تبلیغ کوونکے او هر کله چه په دعوت سره حجت قائم شی په اوریدونکو باندے د دے وجے نه عَلَيْكُمْ ئے اُوئیلو. دویم په آخرت کښ او په هغے کښ درے اقوال دی اول قول د عامو مفسرینو دے چه هغه په حدیث صحیح کښ دے چه نبی صلی الله علیه وسلم به روستو د شهادت کولو د خپل امت نه د هغوی تزکیه اوکړی. دویم قول د قرطبی دے چه نبی به په امت باندے شهادت ورکوی په ابلاغ باندے چه ما تاسو ته دین در رسولے دے. دریم قول هم د قرطبی دے چه شهادت به ورکوی نبی صلی الله علیه وسلم د هغوی په عملونو باندے لیکن مراد به د هغے نه صرف هغه خلق وی چه موجود وو په زمانه د نبی صلی الله علیه وسلم کښ او حاضر وو د هغه مجلسونو کښ دا معنی نه ده چه د ټول امت په عملونو به شهادت ورکوی ځکه چه د دے رد کړے ابن کثیر په تفسیر د سورة نساء ۴۱ کښ هلته به ان شاء الله د دے تفصیل راځی. او نسفی په مدارک کښ وئیلی دی چه شهادت کله د اوریدلو په ذریعے سره وی اګرچه مشاهده نه وی کړے شوے لکه دلته شهادت د امت د نورو انبیاؤ د پاره. دا رنګ شهادت د نبی صلی الله علیه وسلم په عدالت د امت باندے چه د الله تعالی نه ئے اوریدلی دی. وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنتَ عَلَيْهَا، جَعَلْنَا په معنی د شَرَعْنَا (مقرر کول په شرع کښ) دے. الْقِبْلَةَ دا مفعول اول دے او الَّتِي په معنی د الجهة التی مفعول دویم دے. الْقِبْلَةَ مراد د دے نه کعبه ده روستو د تحویل نه (ابن کثیر). **سوال**: كُنتَ دلالت کوی په زمانه ماضی باندے او حال دا چه کعبه خو قبله شوه روستو د تحویل نه؟ **جواب ۱** فراء وئیلی دی كُنتَ په معنی د انت الان دے. **جواب ۲** کعبه د نبی صلی الله علیه وسلم قبله وه مکه کښ د هجرت نه مستقلاً په نیز د بعض علماؤ یا اشتراکاً (سره د بیت المقدس نه) په نیز د بعضو. یا مراد د دینه بیت المقدس دے مکه کښ د تحویل نه نو كُنتَ په خپله معنی دے (قرطبی).

إِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَتَّبِعُ الرَّسُوْلَ مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ، داحکمت تفصیلیه دے په تحویل د قبله کښ او مراد د دے نه ابتلاء ده تو هر کله چه الْقِبْلَه په اوله توجیه سره مراد شی (کعبه) نو دا ابتلاء ده په هغه کتابیا نو چه په نبی صلی الله علیه وسلم ئے ایمان ښکاره کړے وؤ نو هغوی کښ چه کوم کسان کچه ایمان والا وؤ (یعنی منکرتیا د نبی ئے د دے وجے نه کوله چه دے زمونږ قبلے ته مخ کوی نه د وجے د حکم الٰهی او رسالت د وجے نه) نو هغوی روستو د تحویل قبله نه مرتد شول۔ او هر کله چه الْقِبْلَةَ په دویمه توجیه مراد شی نو دا ابتلاء ده په امیین عرب چه هغوی د مخکښ نه د کعبے احترام کوؤ نو په هغوی کښ هغه خلق چه منکرتیا د نبی ئے د وجے د رسالت او حکم الٰهی نه نه کوله بلکه صرف د قبلے د منکرتیا د وجے نه) نو روستو د تحویل نه هغوی مرتد شول۔ لیکن سابقینو او اولینو د مهاجرینو او انصارو تولو دواړه قبلو طرف ته مونځونه اوکړل هغوی په دے امتحان کښ کامیاب شول (ابن کثیر)۔

**سوال:**- الله تعالیٰ عالم دے په ټولو څیزونو مخکښ د وجود د هغے نه او لِنَعْلَمَ خو دلالت کوی په عدم علم مخکښ د وجود نه؟ **جواب ۱:**- قرطبی د علی رضی الله عنه نه روایت کړیدے چه مراد د علم نه رویت (لیدل) دے ځکه چه عرب د رویت په ځائے باندے علم او د علم په ځائے باندے رویت استعمالوی او دے نه علم مشاهده وئیلے شی چه داسبب د پاره د جزا ور کولو دے۔ **جواب ۲** یا لِنَعْلَمَ په معنیٰ د لنمیّز او لنظهر دے یعنی بندګانو ته ئے ښکاره کړو۔ **جواب ۳** د نسبت د الله تعالیٰ نه مراد رسول او مؤمنان دی چه هغوی ته علم حاصل شی۔ **جواب ۴:**- نسفی د ابو منصور نه نقل کړیدی چه لِنَعْلَمَ مَوْجُوْدًا بَعْدَ مَا كُنَّا نَعْلَمُ اَنَّهٗ سَيُوْجَدُ (چه علم اولرو د هغے په وجود روستو د هغے نه چه مونږ لرلو چه دا به موجود ېږی)۔ په دے توجیها تو کښ دریمه توجیه غوره ده۔

الرَّسُوْلَ، په دے لفظ کښ اشاره ده چه څوک تابعداری د نبی په وصف د رسالت سره کوی تو هغه په نسخ د احکامو سره نه مرتد کیږی۔

مِمَّنْ يَّنْقَلِبُ عَلٰى عَقِبَيْهِ، داکنایه ده د مرتد کیدلو نه د وجے د ضعیف ایمان نه لکه ګرځیدل په پوندو باندے ضعیف رفتار دے په نسبت د هغه چا چه په پوره قدم (خپه) باندے ګرځی۔

فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبۡلَةً تَرۡضٰهَا ص فَوَلِّ

نو خامخا اړوو مونږ تا داسې قبلې ته چه هغه خوښه وی ستا - نو واړوه

وَجۡهَكَ شَطۡرَ الۡمَسۡجِدِ الۡحَرَامِ ط وَحَيۡثُ

مخ خپل طرف ته د مسجد حرام ته - او کوم ځائے

مَا كُنۡتُمۡ فَوَلُّوۡا وُجُوۡهَكُمۡ شَطۡرَهٗ ط

چه یئ تاسو نو گرځوئ مخونه خپل طرف د هغې ته -

وَاِنَّ الَّذِيۡنَ اُوۡتُوا الۡكِتٰبَ لَيَعۡلَمُوۡنَ

او یقینًا هغه کسان چه ورکړے شویدي هغوی ته کتاب خامخا پوهیږی

وَاِنۡ كَانَتۡ لَكَبِيۡرَةً اِلَّا عَلَى الَّذِيۡنَ هَدَى اللّٰهُ، په داسې ترکیب کښ د نحویانو دریے اقوال دی اول قول د فراء دے چه اِنۡ نافیه دے او لام په معنی د اِلَّا سره دے۔ دویم قول د بصریانو دے چه اِنۡ مخفف دے د ثقلیه نه۔ دریم قول د اخفش دے چه وَاِنۡ وصلیه دے او ضمیر د کانت تحویلة او تولیة فعلة ته راجع دے۔ د کبیر په صله کښ چه عَلٰی راشی نو په معنی د ثِقل سره وی۔ هَدَى اللّٰهُ، مراد د دے نه هغه خلق دی چه یقین کوی په تصدیق د رسول باندے چه هغه څه راوړی دی بے شکه دی۔ او الله تعالیٰ حکم کوی څه رنګ چه یئے خوښه شی او د هغه حکمت کامله او حجت ئے تامّه دے په ټولو احکامو کښ نو داسے عقیدے والا پوخ ایمان والا وی۔ وَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيُضِيۡعَ اِيۡمَانَكُمۡ، حدیث د بخاری او ترمذی کښ ثابت ده چه خلقو تپوس اوکړو په باره د هغه کسانو کښ چه بیت المقدس طرف ته ئے مونځونه کړی وُو چه د دوی څه حال دے نو په دے جملے سره جواب اوشو چه د دوی دغه مونځونه په هغه وخت کښ د الله تعالیٰ د حکم مطابق وُو او دوی ایمان والا وُو نو دغه مونځونه برباد نه دی۔ امام بخاری وئیلی دی چه مراد د ایمان نه صلوٰة دے د قبیلے د اطلاق د کل نه په جزء باندے نو معلومه شوه چه صلوٰة جزء د ایمان دے او دا مذهب د ائمه محدثینو دے۔ لیکن په دے اطلاق کښ اشاره ده چه دغه مونځونه د وجے د ایمان نه دی نو بر باد نه دی۔

أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ

چه یقینًا دا (قبله بدلیدل) حق دی د طرف د رب د دوی نه۔ او نه دے الله تعالیٰ بے خبره

عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴿١٤٤﴾ وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ

د هغه عملونو نه چه دوی یې کوی۔ او که چرے راوړے ته هغه کسانو ته

إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ، دا دلیل دے د پاره د مخکنی جملے چه لا یضیع اه دے۔ رؤف د رأفة نه دے او فرق د رأفة او رحمت په څو وجو سره دے اول دا چه رأفة مصیبت لرے کول او ضرر زائل کولو ته وئیلے شی او رحمت ضرر زائل کولو او فضل کولو دواړو ته شامل دے۔ دویم دا چه رأفة خاص رحمت دے په خواصو بندګانو پان دے او رحمت د پاره د عوامو دے نو هر کله چه په رأفة کښ دفع د ضرر وه او هغه زیات مناسب دے د لا یضیع سره د دے وجے نه هغه یې مقدم کړو۔

۱۴۴ په دے آیت کښ شپږ جملے دی ټولے د تحویل قبله سره تعلق لری۔ په اوله جمله کښ تسلی ده نبی صلی الله علیه وسلم ته او د هغه د زړه خواهش ذکر دے۔ په دویمه جمله کښ وعده د تحویل قبله د هغه د رضا مطابق ذکر ده۔ په دریمه جمله کښ بالفعل امر ذکر دے د پاره د تحویل قبله خاص نبی صلی الله علیه وسلم ته۔ په څلورمه کښ عموم د دے ذکر دے د پاره د ټول امت که په هر ملک کښ وی۔ په پنځمه جمله کښ علتِ اجمالیه د تحویل قبله ذکر دے۔ او په شپږمه جمله کښ تخویف او زورنه ذکر ده مخالفت کوونکو ته۔

قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ، قد د پاره د تحقیق دے۔ تَقَلُّبَ ډیر او بار بار کرځول۔ وَجْهِكَ مخ چه شامل دے تظر کولو ته په سترګو پان دے۔ رَبّ په معنی د رالی دے۔ صحیح حدیث د امام بخاری کښ راغلی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم غوښتله په محبت سره چه زما قبله د کعبه وی۔ او شربینی د مجاهد نه نقل کړیدی چه دا محبت د دے وجے نه وُو چه یهود و یه اعتراض کوُو چه دا نبی زمونږ د دین مخالفت کوی او سره د دے نه زمونږ قبلے ته مخ کوی نو نبی صلی الله علیه وسلم جبرائیل ته او فرمائیل چه زه غواړم چه الله تعالیٰ زما قبله کعبه اوګرځوی ځکه چه دا قبله د ابراهیم علیه السلام ده جبرائیلؑ

اوئیل چه زما خو اختیار نیشته خو ته پخپله د الله تعالیٰ نه دعا او غواړه او جبرائیل علیه السلام بیره اوختلو نو نبی صلی الله علیه وسلم د ادب د وجے نه دُعا او نه غوښتله لیکن د انتظار د وحی په وجے سره به یې اسمان ته نظر کوؤ چه اوس به حکم د الله تعالیٰ راشی په تحویل د قبلے سره نو دا ایت نازل شو فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضٰهَا لام د پاره د تاکید د وعدے او د زمانهٔ حال د پاره راغی۔ تَرْضٰهَا دا مضارع هم په معنی د حال یا په معنی د ماضی سره ده په قرینه د هغه حدیث چه مخکښ ذکر شو۔ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ دا اول حکم دے د الله تعالیٰ په تحویل د قبلے (بیت المقدس) کعبے طرف ته۔ شَطْرَ د دے ډیرے معانی دی، نصف، طرف، قصد او جانب۔ شطر الیه په معنی د اقبل (مخامخ شو) او شطر عنه په معنی د اعراض (مخ یې واړوؤ) دے نو دا د اضداد و نه دے۔ دلته په معنی د طرف سره دے بالاتفاق۔ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ، ذکر د مسجد او مراد تری نه کعبه ده۔ ابن جریج د عطاء او هغه د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت مرفوع ذکر کړیدے چه بیت الله قبله ده مسجد حرام والو د پاره او مسجد حرام قبله ده د حرم والو د پاره او حرم قبله ده د ټولو اطرافو د عالم د پاره۔

فائده ۱ قرطبی وئیلی دی چه اتفاق دے د اهلِ علمو چه کعبه قبله ده په هر وطن او هر طرف کښ دا رنګ څوک چه هلته حاضر وی او په سترګو یې وینی نو په هغه باندے استقبال د عینِ کعبے فرض دے دا رنګ چه څوک د هغے نه غائب وی نو هغه باندے فرض دی چه هغه طرف ته به مخ کرځوی او د هغے د معلومولو د پاره د هر قسم اسباب حتی الاستطاعت استعمال کړی۔ او اصابت د عینِ کعبے د پاره د غائبینو، په دے کښ د علماؤ اختلاف دے لیکن اصح دا ده چه حتی الامکان دِ کوشش اوکړی چه جهة د عینِ کعبے دِ معلوم کړی۔ په دے وخت کښ هغه آله چه هغے ته کعبه نما یا قطب نما وئیلے شی نو هغه دِ استعمال کړے شی۔

فائده ۲ زمونږ د بعضِ مشائخو په دے ایت کښ قول دا دے چه د نبی صلی الله علیه وسلم اګرچه په زړه کښ خوښه وه چه کعبه دِ زما قبله وی لیکن د مخالفت د یهودو د وجے نه یې بیره کوله نو ظاهراً یې غوښتله چه بیت المقدس دِ همیشه زما قبله وی نو اسمان ته به یې په دے نظر کوؤ چه وحی راشی چه بیت المقدس دِ همیشه قبله وی او بدله نشی

أُوتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ اٰيَةٍ مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ

چه ورکړے شویدے ورته کتاب هر قسم دلیل تابعداری نه کوی دوی د قبلے ستا

وَمَآ أَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ وَمَا بَعْضُهُمْ

او نه ته یئے تابعداری کوونکے د قبلے د دوی او نه دی دوی

بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ

تابعدار د قبلے د بعضو او که چرے تابعداری اوکړے ته

اواستدلال ئے کړے دے په دوه طریقوسره. اوله طریقه داده چه تقلب باب تفعل دے د تکلف د پاره راځی یعنی په زړه کښ خوښ نه وُو لیکن بیائے هم (په تکلّف) سره غوښتله چه بیت المقدس د قبله وی. دویمه طریقه د استدلال داده چه تَرْضٰهَا فعلِ مستقبل دے یعنی کعبے ته مخ اوګرځوه روستو به وریاندے رضا شے. لیکن دا قول باطل دے په ډیرو وجوهو سره اول خو دا د صحیح حدیث نه خلاف دے چه بخاری کښ ذکر دے چه نبی صلی الله علیه وسلم کعبه د پاره د قبلے خوښه وه. دویم دا خو د نبی د شان نه خلاف ده چه په زړه کښ یو څیز خوښ وی او په ظاهر کښ بل څیز د الله تعالیٰ نه غواړی. دریم دا چه تفعل هر ځائے د پاره د تکلّف نه وی بلکه دلته د تکرار او کثرت د پاره دے. څلورم دا چه تَرْضٰهَا فعل مضارع ده حال او استقبال دواړو د پاره راځی او که په معنی د ماضی سره وی نو دا قول تفسیر بالرائی دے.
وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ شَطْرَهٗ، دا تعمیم د حکم د قبلے دے ټول اُمت ته په هر مکان کښ که کور وی او که مسجد وی بحر وی او که اوچه وی مشرق کښ وی او که مغرب کښ سفر کښ وی او که حضر کښ. وَاِنَّ الَّذِيْنَ أُوتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ، دا دریم جواب دے په ذکر د علتِ اجمالیه سره. یعنی د دوی په کتابونو کښ ذکر وُو چه دا اخری نبی به بیت المقدس او بیا کعبے ته مخ ګرځوی دا رنګ د دے نبی صدق او حقانیت د دوی په کتابونو کښ موجود وُو د هغے نه دوی ته دا علم حاصل دے. اَنَّهُ ضمیر راجع دے تحویل د قبله یا صدق د دے نبی ته.
وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ، په دے جمله کښ تخویف دے د پاره د منکرینو د قبلے.

أَهْوَآءَهُم مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ

دَ خواهشاتو دَ دوی روستو دَ هغې نه چه راغلې دے تا ته

الْعِلْمِ إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿١٤٥﴾

علم (پوهه دَ قرآن) یقیناً ته به په دغه وخت کښې خامخا دَ ظالمانو نه شے۔

۱۴۵ په دیکښ ذکر کوی ضد او عناد دَ اهلِ کتاب او مراد پکښ تسلی ورکول دی نبی صلی الله علیه وسلم ته۔ وَلَئِنْ لام دَ قسم داخل شوے دے په اِن شرطیه باندے۔ فرق دَ لَئِنْ او دَ لو دا دے چه دَ لو په جواب کښ فعل ماضی مثبت رائی او دَ لئِنْ په جواب کښ استقبال رائی۔ **سوال:** دلته خو په جواب دَ لَئِنْ کښ فعل ماضی نفی راغلے ده؟ **جواب:** په نیز دَ اخفش او فراء دوی دَ یو بل په ځائے استعمالیږی یعنی دلته لَئِنْ په معنی دَ لو سره دے او په نیز دَ سیبویه دَ یو بل په ځائے نه استعمالیږی لیکن فعل ماضی په معنی دَ مستقبل ده یعنی مَا تَبِعُوْا په معنی دَ لایتبعون سره دے۔

بِكُلِّ اٰيَةٍ، مراد دَ دے نه دلیل او حجت دے په تحویل دَ قبله باندے۔

مَّا تَبِعُوْا قِبْلَتَكَ، دَ وجے دَ ضد او عناد نه بحث په قبله کښ دے دَ دے وجے نه تخصیص ئے اوکړو او مراد تری نه ټول دین دے ځکه په نصوصو کښ تعبیر دَ دین نه په قبله سره کیږی لکه لا نُکَفِّرُ اهل القبلة (په عقیدهٔ دَ اهلِ سنت کښ دا عبارت وارد دے) نو مراد دَ قبلے نه دینِ اسلام دے۔ وَمَآ اَنْتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ، په دے کښ مقصد اخبار دے اُوْتُوا الْكِتَابَ ته په پوخوالی دَ نبی صلی الله علیه وسلم په دین حق او په قبله باندے یعنی دَ دهٔ نه طمع مکوئ چه دے به تاسو سره ستاسو قبله کښ اتفاق اوکړی (ابن کثیر شربینی) یا دا خبر په معنی دَ انشاء دے یعنی په معنی دَ نهی سره (قرطبی)۔

وَمَا بَعْضُهُمْ بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ په دے کښ دَ دوی تعصب او عناد دَ کورنئ ذکر دے یعنی هر کله چه په کورنئ کښ ضد او عناد کوی اګرچه یو بل ته قریب دی نو ستا سره به ضرور ضد او عناد کوی۔ یهود صخره دَ بیت المقدس ته قبله وائی او نصاریٰ بیت الشرق (چه ځائے دَ ولادت دَ عیسیٰ علیه السلام دے) ته قبله وائی او دا دواړه باطل دی۔

وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَآءَهُم مِّنْ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ، په دے کښ خطاب دے

الَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا

هغه کسان چه ورکړي دي مونږ هغوی ته کتاب پيژني حقانيت دَ دے رسول دا سے لکه چه

يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ ؕ وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ

پيژني ځامن خپل ۔ او يقينًا يوه ډله دَ دوی نه

لَيَكْتُمُوْنَ الْحَقَّ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۴۶﴾

خامخا پټوی حق لره او حال دا چه دوی پوهيږی (په حق باندے)

وقف منزل

نبی صلی الله علیه وسلم ته او مراد ترینه امت دے او مقصد په دے کښ تحذیر دَ اتباع کولو دَ کتابیانو دے او دَ هغے یۓ درے وجے ذکر کړے۔ اول اَهْوَآءَهُمْ یعنی دَ دوی قبلے دَ دوی په خواهشاتو باندے بنا دی (دلیل شرعی ورسره نیشته)۔ دویم مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ مراد دَ علم نه وحی (قرآن) دے یعنی حق تا ته ښکاره شوے دے۔ دریم اِنَّكَ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ، یعنی دَ دوی دَ اهواء موافقت کول یقینًا ظلم دے او دَ ظلم نه ځان بچ کول واجب دی دا سے په ایت نمبر ۱۲۰ کښ هم تیرشویدی په هغے کښ مِن ذکر نه دے او دلته ذکر دے او په هغے کښ مالك من الله اه وُو او دلته اِنَّكَ اِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِيْنَ دے دَ دے حکمت دا دے چه هلته مقصد دَ ایت عدم امکان دَ اتحاد او اتفاق وُو دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ یهودو او نصاراؤ سره عمومًا۔ او په دے ایت کښ مراد عدم موافقت دے په معامله دَ قبله کښ او دا مخالفت ډیرا هم وُو دَ دے وجے نه دلته ډیر تاکیدات یۓ اوکړل۔ بیضاوی وئیلی دی چه دلته اووه تاکیدات دی ۱۔ حرف لام ۲۔ قسم مقدر ۳۔ اِن ۴۔ حرف مِن ۵۔ لام په جانب دَ خبر کښ ۶۔ حکم کول په ظلم سره ۷۔ جمع صیغه دَ الظّٰلِمِيْنَ۔

تنبیه:۔ دا ایت دلالت کوی چه دَ نص صریح حکم پریښودل او بے دلیله خبرو پسے تقلید کول لوئے ظلم دے۔

۱۴۶ په دے کښ دَ تقسیم دَ پوره کولو دَ پاره دَ اهل کتابو دوه قسمونه ذکر کوی ۱۔ دَ حق تابعدار ۲۔ حق پټوونکے سره دَ علم نه۔

اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ، دا سے صیغه استعمالیږی په باره دَ نیکانو کتابیانو کښ یعنی کتاب یۓ قبول کړیدے۔ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ اَبْنَآءَهُمْ، ابن کثیر وئیلی دی

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُوْنَنَّ

چه دا حق دے د طرق د رب ستا نه مه کیږه ته

مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۴۷﴾ وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ هُوَ

د شک کوونکو نه. او د هر چا د پاره یو طرف دے هغه

مُوَلِّيْهَا فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اَيْنَ

گرځونکے دے هغے ته مخ خپل لره نو مخکښ شئ د یو بل نه نیکو کارونو ته. هر ځائے

چه دا یو مشهور مثل دے په عربو کښ چه د یو څیز د صحت د پاره وائي چه دا داسے پیژنم لکه چه خپل ځوئے پیژنم. دا رنګ قرطبي د عمر رضی الله عنه روایت ذکر کړے دے چه هغه عبد الله بن سلام نه تپوس اوکړو آیا ته محمد صلی الله علیه وسلم پیژنے لکه چه ځوئے پیژنے؟ هغه جواب ورکړو اوبلکه د ځوئي نه زیات ځکه چه الله تعالیٰ امین د آسمان امین زمکے ته راولیږلو په صفت د هغه سره نو ما اوپیژندلو او د ځوئي په باره کښ نه پوهیږم چه مور د هغه به څه کار کړے وی. ٥ ضمیر راجع دے محمد صلی الله علیه وسلم ته (شربیني). یا صحت د هغه دین ته چه نبی صلی الله علیه وسلم په هغے سره راتلل کړی دی (ابن کثیر). یا تحویل د قبلے ته (قرطبي). وَاِنَّ فَرِيْقًا مِّنْهُمْ، دا بل فریق دے سیوا د ضدیانو او د نیکانو نه یعني حق پټوونکی د وجے د مداهنت نه.

۱۴۷ په دے آیت کښ تعریف د حق دے او تحذیر دے په هغے کښ د شک کولو نه. اَلْحَقُّ مبتدا ده. مِنْ رَّبِّكَ دا خبر دے یعني د حق تعریف دا دے چه ثابت وی د طرف د رب نه په وحی جلی یا خفی سره یا دا خبر د مبتدا پټ دے. اَلْمُمْتَرِيْنَ په دے لفظ کښ ډیره مبالغه ده په نسبت د دے چه لَا تَمْتَرِ (شک مه کوه) او دا خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دے او مراد د دے نه امت دے. او مراد د دے نه شک کول دی په دے حق کښ په سبب د اختلاف د کتابیانو. یا شک کول په پټولو د دے کتابیانو حق لره (شربیني).

مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللّٰهُ جَمِيعًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ

چه یئ تاسو راببه ولی تاسو لره الله تعالیٰ یه یو ځائے - یقیناً الله تعالیٰ

عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۴۸﴾ وَمِنْ حَيْثُ

په هر څه باندے قادر دے۔ او د کوم ځائے نه

۱۴۸ په دے ایت کښ هم تاکید دامر د قبلے دے یعنی د وجے دا اختلاف د خلقو نه په دین او قبله کښ عمل په حق باندے مه پریږدئ.

وَلِكُلٍّ وِّجْهَةٌ مضاف الیه د کل پټ دے یعنی لِكُلِّ شَخْصٍ او مِلَّةٍ (د هر شخص او د هر ملت د پاره). وِجْهَةٌ نوم د هغه څیز چه هغے ته توجه کیدیشی یا په معنی د هیئت او حالت د توجه سره او دا عام دے دین او طریقے او مسلك او قبلے ته. خازن وئیلی دی چه دا لفظ منهاج او طریقے ته شامل دے.

هُوَ مُوَلِّيْهَا، هو ضمیر راجع دے کل ته. د مُوَلِّيْهَا یو مفعول پټ دے (مُوَلِّي وَجْهَهٗ اِلَيْهَا) یا ضمیر راجع دے الله تعالیٰ ته او یو مفعول ئے پټ دے (اِيَّاهُ).

په ایت کښ دوه توجیه دی اول دا چه د هر سړی او قوم او ملت د پاره یو مسلك او نخه وی چه دے هغے ته توجه کوی او هغے سره د زړه تعلق ساتی څوک د دین سره څوک د دنیا، څوک د مسجد سره څوک د منډ او او کرجے سره څوک د الله تعالیٰ سره څوک د بت او قبر وغیره سره څوک د علم د قرآن او سنت سره څوک د نورو علمونو سره څوک د سنت طریقو سره نو څوک د رسم ورواج او خرافات او بدعاتو سره او دغسے نور هم څوک د کعبے سره نو څوک د بیت المقدس او بیت الشرق سره نو دا توجیه د چا حق ده او د چا باطل ده (تفسیر عزیزی). د دے تائید دا ایت دے چه لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنْكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا (ابن کثیر). فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ یعنی په دے تیر شوی امورو کښ چه کوم جهة او تعلق د خیر وی یعنی په قرآن او سنت سره ثابت وی نو هغے ته سبقیت او کړئ او د اختلاف د خلقو د وجے نه د صحیح دین تحقیق کوئ او هغے پسے ورځئ او هغه قبلوئ. مراد د الخیرات نه امتثال دا وامرو د الله تعالیٰ دے په قبله او غیر قبله کښ. دا لفظ په قرآن کښ لس کرته راغلے دے او خیر چه اسم دے نو دا به خالی نه وی یا به خیر مطلق وی یعنی هر وخت کښ به مرغوب وی هیڅ ضرر سختی وغیره به

خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ

چه اوځې ته نو ګرځوه مخ خپل طرف د مسجد

الْحَرَامِ ۚ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا اللَّهُ

حرام ته - او یقیناً دا حق دے د طرف د رب ستا نه او نه دے الله تعالی

بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٩﴾ وَمِنْ حَيْثُ

بے خبره د هغه عملونو نه چه تاسو یئے کوئ - او کوم ځائے نه

ورسره نه وی او هغه جنت دے لکه په سورة صافات ۶۲ کښ. یا په خیر من وجه وی لکه مالونه او نعمتونه د دنیا شول لکه سورة بقره ۱۸۰ کښ دی یا په خیر وصف وی یعنی اسم تفضیل به وی لکه په دے سورت ۱۰۶ کښ.

او دویمه توجیه په آیت کښ دا ده چه لِكُلٍّ وِّجْهَةٌ یعنی د هر طرف والا که مشرق کښ دی او که مغرب کښ) مثلاً مؤمنانو د پاره یو طرف دے چه هغه قبله کعبه ده.

فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرَٰتِ مراد د دیته مونځونه کول دی په طریقه د سنت سره طرف د کعبے ته.

أَيْنَ مَا تَكُونُوا يَأْتِ بِكُمُ اللَّهُ جَمِيعًا، په دے جمله کښ دوه توجیهات دی اوله توجیه دا ده چه ډیرو مفسرینو لیکلی دی چه دا په باره د آخرت کښ دے یعنی که په هر ملك او طرف کښ یئ الله تعالی به تاسو لره په ورځ د قیامت د جزا سزا د پاره راجمع کوی. دویمه توجیه نسفی لیکلے ده چه تاسو د قبلے (کعبے) نه په هر طرف کښ یئ لیکن چه کعبے ته مخ کرځوئ په مونځ کښ نو داسے ده لکه چه تاسو په یو ځائے کښ راجمع یئ.

۱۴۹ په دے آیت کښ ذکر د حال د خروج دے د خپل کلی نه ځکه چه په خروج سره احکام بدلیږی نو وهم راغے چه کیدے شی چه په وخت د خروج کښ به د کعبے اهتمام نه وی نو دائے د تاکید د پاره ذکر کړو او تفریع د احکامو په خروج د نبی صلی الله علیه وسلم باندے بنا ده نو رامت خو د هغه تابع دے د دے وجے نه د نبی صلی الله علیه وسلم خروج یئے خاص ذکر کړو. او آیت کښ بله توجیه دا ده چه د کوم ځائے نه ته وتلے یئے په طریقه د هجرت سره یعنی مکه (مسجد حرام) نو هغے طرف ته مخ کرځوه

خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ

چه اوځے ته نو ګرځوه مخ خپل طرف دَ مسجد

الْحَرَامِ ؕ وَحَيْثُ مَا كُنْتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ

حرام ته ۔ او کوم ځائے چه یئ تاسو نو ګرځوئ مخونه خپل

شَطْرَهُ ۙ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ

طرف دَ هغے ته دِ دے دپاره چه نه وی خلقو لره په تاسو باندے

حُجَّةٌ ۙ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ ۚ

هیڅ دلیل مګر هغه کسان چه ظلم ئے کړیدے دَ دوی نه

فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي ۚ وَلِأُتِمَّ

نو مه یریږئ دَ دوی نه او او یریږئ زما نه ۔ او دِ دے دپاره چه پوره کړم

نِعْمَتِي عَلَيْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۱۵۰﴾

نعمت خپل په تاسو باندے او دِ دے دپاره چه تاسو په هدایت باندے کلک شئ۔

نو په دے کښں اسم ظاهر (الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ) ئے کیښودلے دے په ځائے دَ ضمیر باندے دپاره دَ تاکید۔ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ داعلت دے دَ مخکښں (فَوَلِّ) دپاره۔ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ داخطاب دے مؤمنانو ته دپاره دَ تسلئ ورکولو په خائننه جزا ورکولو سره۔

نٓ۱۵۰ په دے آیت کښں ئے ذکر کړے دے حال دَ خروج په طریقه دَ سفر سره او دا یو حکمت دَ تکرار دے چه اول کرت حکم وؤ په داخل دَ مسجد حرام او مکه کښں او په دویم کرت حکم دے بهر دَ مکے او مسجد حرام او مدینے نه او په دریم کرت حکم دے په باره دَ سفر کښں. یا تکرار دَ دے وجے نه دے چه دَ هر یو سره جدا جدا فائده ذکر ده دَ اول سره شهادت او علم دَ اهلِ کتابو ذکر دے او دَ دویم سره شهادت دَ الله تعالی په وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ سره ذکر دے او په دریم کښں لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ الخ فائده (دفع دَ حجت) ذکر ده۔ یا اول کرت په طور دَ ایجاب دَ حکم سره ذکر دے او دویم ځل په طریقه

د دوام د دے حکم سره او دریم ځل کښې اشاره ده چه دا حکم چرے نه منسوخ کیږی۔ او دوه کرته خطابات دی مؤمنانو ته اول خطاب کښې ایجاب د حکم دے په ټولو مؤمنانو باندے او په دویم کښې تاکید دے د پاره د دفع کولو د حجت د مخالفینو۔

لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ، دا ځلورم جواب دے په علتِ تفصیلیه سره۔ په حُجَّةٌ کښې دوه توجیه دی اول حجة په معنی د صحیح دلیل سره دے او الناس نه مراد عام دی کتابیان او غیر کتابیان۔ یعنی په تورات کښې خبر ذکر دے چه آخری رسول به کعبے ته مخ کوی او دا به د هغه ابدی قبله وی نو که چرے نبی صلی الله علیه وسلم او مؤمنان کعبے ته مخ او نه کړخوی نو یهودیان به په دوی باندے ضرور حجت قائم کوی چه تاسو آخری اُمت نه یئ ځکه چه په تاسو کښې هغه علامت موجود نه دے کوم چه په تورات کښې ذکر دے نو هرکله چه تاسو کعبے ته مخ او ګرځوئ نو د دوی حجت ختم شو۔ دارنګ غیر کتابیانو (مشرکین عرب) حجت پیش کوؤ چه په دین د ابراهیم علیه السلام کښې خو قبله کعبه ده او تاسو اے مؤمنانو د هغه د دین او قبلے نه خلاف کوئ نو هرکله چه تاسو کعبے ته اوګرځیدئ نو د هغوی حجت ختم شو۔ یا حُجَّةٌ په معنی د جګړے کولو دے ځکه چه یهودو په نبی صلی الله علیه وسلم اعتراض کوؤ چه زمونږ د دین مخالفت کوئے او حال دا چه زمونږ قبلے (بیت المقدس) طرف ته مونځ کوے او مشرکینِ مکه جګړه کوله چه دا نبی د ابراهیم علیه السلام نه مخالف دے۔ نو اوس دا جګړے ختم شوے۔ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ بِنا په اوله توجیه باندے دا استثناء منقطع ده ځکه ظلم (بے ځایه اعتراضونه کول) د جنس د حجت نه نه دی نو إِلَّا په معنی د لکن سره دے۔ او بِنا په دویمه توجیه باندے د إِلَّا استثناء متصل ده یعنی روستو د تحویل قبله نه هم عنادیان کتابیان په نبی صلی الله علیه وسلم باندے اعتراض کوی چه دے دین د آباؤ ته واوړیدلو او مشرکان هم اعتراض کوی چه معلومه شوه چه په دمه دمه زمونږ دین ته واپس راځی (شربینی)۔ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي یعنی د عنادیانو د ظلمونو او اعتراضونو او طعنونو د یرے د وجے نه عمل کول په قبله باندے پرے نږدے، بلکه زما د عظمت د یرے نه زما د حکم تابعداری کوه۔

كَمَآ اَرْسَلْنَا فِيْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ يَتْلُوْا

(پوره کوئ نعمت دا سے دی) لکه چه لیږلی دی موږ په تاسو کښ رسول د جنس ستاسو نه بیا نوی

عَلَيْكُمْ اٰيٰتِنَا وَيُزَكِّيْكُمْ وَيُعَلِّمُكُمُ

په تاسو باندے ایتونه زموږ او پاکوی تاسو او تعلیم درکوی تاسو ته

الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا

د قرآن او د سنت او تعلیم درکوی تاسو ته د هغه څه چه تاسو په هغے

ماده د خشیت په قرآن کښ اته شلو ښت کرته ۴۸ ذکر ده په اوه وجوهو سره، اوله وجه خشیت صِرف خوف اوځان ساتل دی د یو شیز ته په دے معنی سره په سورة نساء ۲۵، سورة طٰهٰ ۹۴، سورة کهف ۸۰، سورة توبه ۲۴ کښ دے او نور هغه ایا تونو کښ چه خشیة د من دون الله سره ذکر دے. دویمه وجه خشیت یعنی خوف سرهٔ د تعظیم د مخشی عنه نه او دا عبادت دے تو خاص دے په الله تعالیٰ پورے چه د هغه نه په تعظیمًا یره کیدلیشی او په دے معنی قرآن کښ ډیر کرته ذکر دے لکه سورة احزاب ۳۷، سورة مائده ۴۴ سورة توبه ۱۳، او سورة مائده ۳ او په دے معنی سره په طور د حصر سره دوه کرته ذکر دے سورة توبه ۱۸، سورة احزاب ۳۹. دریمه وجه صفت د اهلِ ایمان شپاړس کرته ذکر دے لکه سورة عبس ۹، سورة اعلیٰ ۱۰، او سورة نازعات ۴۵ وغیره. څلورمه وجه صفت د علماؤ په سورة فاطر ۲۸ کښ، پنځمه وجه صفت د انبیاؤ علیهم السلامُ په سورة احزاب ۳۹ کښ. شپږمه وجه صفت د ملائیکو سورة انبیاء ۲۸ کښ. اُومه وجه صفت د جمادا تو په سورة بقره ۷۴، سورة حشر ۲۱ کښ. قرطبی وئیلی دی چه خشیت په اصل کښ طمانیت د زړه دے چه سبب شی د ځان. بچ کولو د پاره او خوف (ګبراهټ) د زړه دے چه د هغے د وجے نه په اندامو نو کښ حِقّت (سپکوالے) پیدا شی. لیکن غوره دا ده چه خشیت د ما سوی الله نه په معنی د خوف دے سرهٔ د هیبت او ځان. بچ کولو نه او خشیت د الله تعالیٰ نه خوف دے د وجے د عظمت او کبریاء د الله تعالیٰ نه. او خوف او خشیة کله د یو بل په معنی سره هم استعمالیږی. وَلِاُتِمَّ نِعْمَتِیْ عَلَيْكُمْ دا عطف په لِئَلَّا باندے بل علت دے

تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۵۱﴾ فَاذْكُرُوْنِيْٓ اَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِيْ

نه پوهیدئ - نو یادوئ ما لره چه به یادوم تاسو لره او شکر کوئ (احسان منئ) زما

وَلَا تَكْفُرُوْنِ ﴿۱۵۲﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا

او ناشکری مه کوئ - اے ایمان والو !

د تحویل قبله د پاره - زجاج وئیلی دی چه اتمام د نعمت هدایت کول دی قبلے ته او جنت ته داخلیدل دی (قرطبی) - او خازن وئیلی دی چه اتمام د نعمت مرګ دے په اسلام باندے بیا دخول جنت ته دغه بیا دیدار الهی دے (اللهم ارزقنا هٰذه) -
وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ هغه څیز ته چه ګمراه شویدی د هغے نه نور اُمتونه یعنی کعبه (ابن کثیر) - یا مراد د تَهْتَدُوْنَ نه زیادت د هدایت دے او داعطف دے په لِاُتِمَّ باندے او بل علت دے د پاره د تحویل قبله -
۱۵۱ په ذکر د نعمت د قبلے پسے ذکر د نعمت د رسالت د اخری رسول دے نو دا متعلق دے د لِاُتِمَّ نِعْمَتِيْ سره یعنی کاف په معنی د مثل دے او صفت دے د مصدریت د پاره او ما مصدریه دے یعنی اِتْمَامًا مِثْلَ اِرْسَالِ الرَّسُوْلِ فِيْكُمْ (پوره والے د نعمت د قبلے پشان د پوره والی د نعمت د ارسالِ رسول دے) او داقول د فراء دے او د زجاج نه نقل دے چه كَمَآ اَرْسَلْنَا کښ کاف د پاره د علت دے او دا متعلق دے په روستو فَاذْكُرُوْنِيْٓ پورے او په دے ایت کښ هغه استجابت د دعاء د ابراهیم علیه السلام ذکر دے چه په ۱۲۹ کښ ذکر شوے وه -
فِيْكُمْ خطاب دے اهل مکه او عرب ته چه اولاد د اسماعیل علیه السلام دی -
او مِنْكُمْ کښ اشاره ده جنسیت د بشر ته - وَيُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ، دا تخصیص دے روستو د تعمیم نه یعنی په الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ کښ دا هم داخل دی لیکن د تاکید د احسان د پاره ئے جدا ذکر کړے دے - او مراد د دے نه اخبار د مخکنو امتونو او قِصص د انبیاء علیهم السلام او خبر دے د راتلونکی ضروری حالاتو چه دا تحول په فکر کولو سره نشی حاصلیدلے ماسیوا د وحی نه -
۱۵۲ د دے ایت نه ذکر کوی پنځه امور د پاره د تثبّت په دین باندے په وخت د اختلاف د خلقو کښ چه هغه ذکر او شکر او صبر او صلوٰة او عظمتِ شان د شهداؤ دے یعنی د هغوی د بے ادبئ نه ځان بچ کول - په دے ایت کښ دوه امرونه او یو نهی ذکر کړه - فَاذْكُرُوْنِيْٓ هر کله چه مخکښ نعمتونه ذکر شول

نو دا تفریج ده په هغې باندې کړے شوې وجې نه یې فَاذْكُرُوْ ذکر کړه۔ خازن وئیلی دی چه دا ذکر ټول، زړه او اندامونو ته شامل دے په ژبه باندې د الله تعالیٰ تسبیح او حمد او هغه اذکار کول چه په سنت سره ثابت دی او په زړه سره فکر کول په عظمت د الله تعالیٰ او په دلیلونو د وحدانیت د هغه کښې او په اندامونو سره په اعمالو او په عباداتو کښې هر وخت مشغولیدل دی۔ قرطبی وئیلی دی چه ذکر بیداری د زړه ده د پاره د منلو کوراو په ژبه ذکر ته د دے وجې نه ذکر وئیلے شی چه دلالت کوی په ذکر قلبی باندې۔ تو د دے نه معلومه شوه چه څوک په ژبه ذکر کوی او په زړه کښې یې هغې ته توجه او فهم نه وی نو هغه په حقیقت کښې ذکر نه دے۔ او د سعید بن جبیر نه نقل دے چه مراد د ذکر نه طاعت کول دی نو څوک چه د الله تعالیٰ طاعت نه کوی اگرچه ډیره تسبیح او تهلیل او لوستل د قرآن کوی نو دے ته ذکر نشی وئیلے۔ او د مفسرینو په دے مقام کښې یوولس عبارتونه دی، اول ذکر کوئ (یادوئ) ما په طاعت سره زه به یادوم تاسو په رحمت او مغفرت سره۔ دویم ذکر کوئ ما په مجاهده کولو سره زه به ذکر کووم تاسو په مشاهده (یعنی دیدار په جنت کښې) سره۔ دریم ذکر کوئ ما په دعا سره زه به ذکر کووم تاسو په قبولیت د دُعا سره۔ څلورم ذکر کوئ ما په تذلل (عاجزئ) سره زه به یادوم تاسو په تفضل (فضل کولو) سره۔ پنځم یادوئ ما په جماعت د خلقو کښې (په درس او تدریس سره) زه به یادوم تاسو په جماعت د ملائیکو کښې۔ شپږم یادوئ ما په حال د فراخئ کښې نو زه به تاسو یادوم په وخت د مصیبت ستاسو کښې۔ اووم ذکر کوئ ما په آسانتیا کښې زه به یادوم تاسو په تنگسیا ستاسو کښې۔ اتم ذکر کوئ ما سره په ژوندیتوب کښې زه به تاسو یادوم روستو د مرگ ستاسو نه۔ نهم ذکر کوئ ما په دنیا کښې زه به تاسو یادوم په آخرت کښې۔ لسم یادوئ ما په صفت د عبودیت سره (یعنی زما عبادت کوئ) زه به یادوم تاسو په مناسب صفت د الوهیت زما سره۔ یوولسم ذکر کوئ ما په صدق او اخلاص سره زه به ذکر کووم تاسو په زیات خصوصیت سره، نو په دے کښې اشاره ده چه د ذکر د الله تعالیٰ د پاره دغه یوولس صفات او حالات پکار دی۔ او لوئے ذکر په حقیقت کښې بیان د توحید د الله تعالیٰ دے چه هغه سبب دے د لوئے ثواب او د محبت د الله تعالیٰ سره۔ وَاشْكُرُوْا لِيْ د شکر تفصیل مخکښې تیر شویدے۔ نو شکر

اسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ

امداد حاصل کړئ په صبر کولو او په مونځ کولو۔ یقینًا الله تعالیٰ

مَعَ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۳﴾ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ

خاص ملګرے د صبرناکو دے۔ او مه وایئ د هغه چا په باره کښې چه اووژلی شی

فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ۭ بَلْ اَحْيَاۗءٌ

په لاره د الله تعالیٰ کښې چه دوی (عام) مړی دی۔ بلکه دوی لره یو قسم ژوند دے

وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۵۴﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ

لیکن تاسو نه پوهیږئ (د هغوی په ژوند)۔ او خامخا ازمیښت کوو مونږ تاسو باندے په لږ څیز سره

د بنده اظهار د نعمتونو د الله تعالیٰ دے په طریقه د توحید سره په ژبه باندے
(نو مخکښې نعمت د قبلے او د رسالت ذکر شو نو اشاره ده چه دا نعمتونه خلقو ته
ښکاره کړئ) او شکر کول عقیده ده په زړه کښې په انعاماتو د الله تعالیٰ چه دا نعمتونه
صرف الله تعالیٰ راکړے دی سره د طاعاتو نه په اندامونو سره۔ وَلَا تَكْفُرُوْنِ کفر
دلته ناشکری او پټولو د نعمت ته وئیلے شی او روستو د امر د شکر نه نهی د کفران ئے
ذکر دے وجه نه ذکر کړه چه شکر به په دوام او استمرار سره وی۔
۱۵۳ په دے کښې ذکر د دوه خصلتونو دے د پاره د تثبت۔ او تفصیل د استعانت
او صبر مخکښې تیر شوے دے۔
اِنَّ اللّٰهَ مَعَ الصّٰبِرِيْنَ، ابن جریر وئیلی دی چه په مصیبتونو باندے صبر کولو
سره د الله تعالیٰ رضا حاصلیږی او په مونځ کولو سره حاجات پوره کیږی او دا
مقصد د معیت د الله تعالیٰ دے د صابرینو سره۔
فائده:- په ۴۵ کښې وَاِنَّهَا لَكَبِيْرَةٌ ذکر کړے وو او دلته معیت د الله تعالیٰ
ذکر دے؟ وجه دا ده چه هلته خطاب دے بنی اسرائیلو ته نو هغوی ته ئے
د سهولت د صبر و صلوٰة علاج ذکر کړو یعنی خشوع کول، او دلته مؤمنانو ته
خطاب دے نو په هغوی کښې خشوع شته خو هغوی ته ئے بشارت ذکر کړو
په نصرت د الله تعالیٰ سره۔
۱۵۴ په دے آیت کښې ذکر د ادب دے مؤمنانو ته په باره د عظمت د شهداؤ کښې
یعنی د حق په لار کښې چه څوک شهیدان شی نو د هغه په باره کښې د اهانت کلمات

مه وایئ۔ خازن وئیلی دی چه هرکله په غزوه بدر کښ څوارلس صحابه کرام
شهید کړے شول نو خلقو به وئیل چه فلانے مړ شو او د دنیا د مزو او لذتونو
نه محروم شو نو الله تعالی دا ایت نازل کړو۔ وَلَا تَقُوْلُوْا دا معطوف دے په وَاسْتَعِيْنُوْا
باندے د يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا د لاندے خطاب دے مؤمنانو ته۔ هم داسے په
سورة العمران ۱۶۹ تا ۱۷۰ تا ۱۷۱ او په سورة حج ۵۸ تا ۵۹ کښ په باره د شهداؤ کښ ذکر
**سوال**:۔ دلته لَا تَقُوْلُوْا او په سورة العمران کښ یې ولا تحسبن وئیلے دے؟
**جواب**:۔ دلته ادب ښودل دی مؤمنانو ته په اعتبار د ژبه کولو او په زړونو
د هغوی کښ عظمت د شهداؤ موجود وؤ او په سورة العمران کښ رد دے
په منافقانو باندے او د هغوی په زړونو کښ د شهداؤ په باره کښ غلط ګمان
وؤ نو د دے وجے نه لا تحسبن یې اُوئیلو او هرکله چه په دغه ایت کښ رد وؤ
په منافقانو باندے نو د دے وجے نه هلته یې په اته وجوسره بشارات ذکر کړل۔
لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ، صحیح حدیث کښ وارد دی چه مراد د دے نه اعلاء
کلمة الله ده برابره خبره ده که دا قتل په میدانِ جهاد کښ وی او که مرابط
فی سبیل الله وی او که د دعوت د حق د وجے نه وی الوسی وئیلی دی چه
مراد یې دا دے یعنی په طاعت د الله تعالی او په اعلاء د کلمے د هغه کښ (روح المعانی)
اَمْوَاتٌ د دے مبتدا پټه ده او جمله مقوله ده د پاره د لَا تَقُوْلُوْا (هم اموات)۔
اموات جمع د میت ده او میت هغه دے چه روح یې د بدن نه بهر شی۔
**سوال**:۔ په دے جمله کښ منع ده د اطلاق کولو د میت نه په شهید باندے
او حال دا دے چه د هغه نه په قتل کولو سره روح وتلے دے لفظ د یقتل
په دے باندے دلیل دے معلومه شوه چه مړ دے او دا رنګ په ډیرو آیاتونو کښ اطلاق وریاندے
د میت شوے دے (سورة نحل ۲۱، سورة زمر ۳۰، سورة مؤمنون ۱۵) دا رنګ په
احادیثو او په اقوالو د فقهاؤ کښ اطلاق د میت په شهید باندے ذکر دے؟
**جواب**:۔ دلته نفی د یو قسم موت ده او ثابت دے هغوی لره بل قسم
موت یعنی موت حقیقی۔ د دے وجے نه فراء بغوی ذکر کړیدی کَسَائِرِ
الاموات (د عامو مړو پشان نه دی) خازن وئیلی دی بِمَنْزِلَةِ غَيْرِهِمْ مِنَ
الْاَمْوَاتِ۔ او داسے سوال په زاد المسیر کښ نقل دے او جواب یې داسے ذکر
کړے دے (داسے مړی چه ارواح یې جنتونو ته نه رسیږی او نه شی
حاصلولے د تحفو د الله تعالی نه هغه چه ژوندی یې حاصلوی) او شاه عبدالعزیز

وئیلی دی چه اموات نه مراد هغه دی چه ارواح ئې مړه دی او دَ روح مرګ
دا دے چه دَ بدن په ذریعه خو هغه لذتونه حاصلول خو چه کله بدن جدا شی
او دَ لذتونو نه محروم شی نو دا سے روح ته مړه وئیلے شی. حاصل دا دے چه
منع دَ یو خاص قسم اطلاق دَ موت نه ده او نکره لفظ هم په دے باندے دلالت کوی.
فائده ب: موت په قرآن کښ په څلور معانیو سره استعمال دے. اوله معنی
مقابل دَ قوتِ حساسه دے یعنی چه ټول حواس ختم شی او دا معنی په سورة
بقره ۲۸ او نورو ډیرو ایاتونو کښ ذکر ده. دویمه معنی مقابل دَ قوتِ عاقله
دے یعنی جهل موت دے لکه په سورة انعام ۱۲۳ کښ. دریمه معنی مقابل
دَ قوتِ نباتیه دے یعنی دَ زمکے اُوچیدل لکه په سورة اعراف ۵۷ کښ. څلورمه
معنی دَ موت غم او حزن دے چه دَ انسان ژوند خراب کړی لکه په سورة ابراهیم ۱۷
کښ موافق دَ قول دَ راغب سره په مفردات کښ. نو په نفی دَ یو معنی سره
نفی دَ بلے معنی نه لازمیږی.
بَلْ اَحْيَاءٌ دا هم خبر دے دَ مبتداء پټ دَ پاره (بَلْ هم اَحْيَاءٌ). دا نکره هم دلیل
دے چه مراد دلته یو قسم دَ حیات دے هر قسم ژوند مراد نه دے او هغه دا سے
ژوند دے چه موتِ حقیقی سره منافات نه لری او هغه حیات اخرویه
نه دے چه هغه په ورځ دَ قیامت کښ دے او هغه حیاتِ دنیویه هم نه دے
ځکه چه هغه په موت سره زائل شوے دے او دلیل په دے باندے سورة
نحل ۲۱ دے چه په دے کښ اموات غیر احیاء وئیلی دی او دلته مراد حیاتِ
دنیویه دے چه مغایر دے دَ موت نه نو معلومه شوه چه په دے ایت
کښ مراد دَ حیات نه حیاتِ برزخیه دے. او معتزله وائی چه دلته حیاتِ
اخرویه مراد دے نو دوی دَ حیاتِ برزخیه نه منکر دی او دَ احیاء معنی
کوی چه ژوندی به شی په ورځ دَ قیامت کښ لیکن په دے کښ دَ شهداؤ
هیڅ خصوصیت نیشته دے. او څوک چه وائی (بدعتیان) چه دا حیاتِ
دنیویه دے نو دا هم باطل دے لکه چه دَ مخکښ نه معلومه شوه. او دا رنګ
اقوال دَ مفسرینو او نورو علماؤ صریح دی په دے باندے چه دا حیاتِ
برزخیه دے. (ابن کثیر وائی چه فی برزخهم احیاء او دا رنګ تفسیر فتح البیان ص۲۰۲ صیانة الانسان
ص۲۰ الصارم المنکی ص۱۸۷).
فائده ع۱ حیات په قرآن کریم کښ په شپږ معانیو سره استعمال دے

اول صفت د الله تعالیٰ دے لکه سورة العمران ۲ کښ. دویم قوتِ حساسه حیوانیه لکه سورة بقره ۲۸، سورة فاطر ۲۲. دریم قوتِ نباتیه لکه سورة بقره ۱۶۴. څلورم حیاتِ اخرویه لکه سورة فجر ۲۴. پنځم قوتِ عاقله (علم) او ایمان او اتباع سنت لکه په سورة انفال ۲۴ ۴۲ سورة انعام ۱۲۳. شپږم بے غمه کیدل اولذتونه حاصلول لکه ذدے ایت په باره کښ راغب په مفردات کښ وئیلی دی. نو اثبات د یو قسم حیات مستلزم نهٔ دے نور اقسامو د حیات لره یعنی دلته آخری معنی د حیات ده نو دویمے معنے لره مستلزم نه دے.

**فائده ۲:** په باره د حیاتِ برزخیه کښ د علماءِ اهلِ سنت دوه قولونه دی اول قول، دا حیات په جسد او روح دواړو سره دے لیکن روح په جسد کښ نیشته په دلیل د سورة زمر ۴۲ او په جسد کښ الله تعالیٰ په خپل قدرت سره یو نوع د حیات پیدا کړی چه په هغے سره احساس د نعمتونو او عذابونو کولے شی. لکه چه د ظاهر د هغه احادیثونه معلومیږی چه میت په قبر کښ کینولے شی تو چاله تعمتونه ورکولے شی او څوک په ګرزونو وهلے کیږی. او دا صفات د بدن دی. دا رنګ هغه حدیث د بخاری چه دوه کسانو بانده په قبرونوکښ عذاب وو او نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل (اِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ فِي قُبُورِهِمَا وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ) الحدیث (په دوی باندے د دوی په قبرونوکښ عذاب دے او عذاب په داسے څیز کښ نه دے چه د هغے نه ځان بچ کول ګران وی). دا رنګ بل حدیث کښ راغلی دی چه سورلی د رسول الله صلی الله علیه وسلم اودریدله نو نبی صلی الله علیه وسلم اوفرمائیل چه دا د دے وجے نه چه په دے یهودیانو باندے د دوی په قبرونوکښ عذاب دے. (او په قبر کښ بدن وی روح نه وی) نو دا دلالت کوی چه بدن د پاره هم تنعیم یا تعذیب شته دے او د روح د پاره په خپل مستقر کښ تنعیم یا تعذیب دے. دویم قول دا دے چه حیاتِ برزخیه صِرف د روح د پاره دے لیکن د روح د پاره یو مثالی جسد ورکړے شی چه د هغے په واسطے سره تنعیم یا تعذیب ورکیدے شی او دا قول الوسی په روح المعانی او امام شاه ولی الله په تفهیمات کښ او مولانا اشرف علی تهانوی په اشرف الجواب ص ۳۴۴ کښ او مجدد الف ثانی په مکتوبات ص ۱۱۲/۲ کښ ذکر کړے دے او دلیل د دے حدیث صحیح دے چه امام مسلم ذکر کړے دے چه ارواح د شهدائ

په ججوروکښو مرغوکښ دی او سیل کوی په جنت کښ چه کوم ځائے یئے خوښه دی او آرام کوی هغه قندیلونو ته چه د عرش د لاندے اویزان دی ـ نو الله تعالیٰ د دوی طرف ته یو ځل ښکاره شو چه تاسو څه غواړئ دوی اُوئیل چه یاربه مونږ نور څه اُوغواړو تا مونږ ته هر څه راکړی دی بیا دوباره الله تعالیٰ دوی ته اوفرمائیل، هرکله چه دوی پوهه شول چه الله تعالیٰ مونږ بغیر د سوال نه نه پریږدی نو دوی اُوئیل مونږ غواړو چه مونږ دنیا ته واپس کړه ـ (بل روایت کښ دی) چه زمونږ ارواح زمونږ زړو جسمونو ته واپس کړه) چه قتال اوکړو ستا په لار کښ او بیا شهیدان شو ځکه چه ډیر ثوابونه د شهادت یئے اولیدل نو الله تعالیٰ ورته اوفرمائیل چه ما فیصله کړے ده چه دوی (ارواح) دنیا ته واپس نه شی تللے (ابن کثیر) نو احادیث دلالت کوی چه د دوی حیات برزخیه روحانیه دے او په نورو جسمونو سره متشکل کړے شوی دی یا یئے په نورو جسمونو کښ اچولی دی ـ

لیکن زما رائے داده (والله اعلم) چه اول قول غوره دے چه بدن سره هم د هغے مناسب معامله الله تعالیٰ کولے شی او راوحوله یئے هم نور اجسادِ مثالیه ورکړی دی د دے د پاره چه په ټولو احادیثو عمل اُوکړے شی ـ

او په شرح عقیدة طحاویه ص۴۵۰ کښ یئے وئیلی دی چه عذاب قبر د نفس او بدن دواړو د پاره دے په اتفاق د اهلِ سنت والجماعت سره او الوسی وئیلی دی چه د ډیرو سلفو مسلک دادے چه حیات د شهداؤ حقیقةً دے په جسد او په روح سره لیکن مونږ د هغے د ادراک نه عاجز یو ـ

**فائده ۳:** حیاتِ برزخیه کښ مسئله د واپس کیدلو د روح جسدِ اصلی یا جسد مثالی ته د دے تفصیل په تفسیر د سورة زمر کښ انشاءالله راځی ـ

**سوال:-** هرکله چه واپس کیدل د روح ثابت شی نو په دے سره خو حیاتِ دنیویه ثابتیږی؟

**جواب:-** دغه واپسی د روح په برزخ کښ مستلزم نه ده معروف ژوندلره او څوك چه دا مستلزم ثابتوی نو په هغه باندے د داسے خبر والتزام ثابتیږی چه هغه مخالف دی د حس او د شرع او د عقل نه (الصارم المنکی ص۱۸۶) ـ او بیا یئے په ص۱۸۷ کښ وئیلی دی، حاصل دادے چه واپسی د روح په برزخ کښ او جواب د سلام په سلام کوونکی باندے (په دے شرط چه هغه حدیث صحیح ثابت شی)

نه دے مستلزم دا سے ژوندلره لکه چه بعضِ غلطی کوؤنکو گمان کړے دے اگرچه دا یو قسم برزخیه حیات دے او ځوك چه گمان کوی چه دا پشان د حیاتِ دنیویه دے نو دا مخالف دے د نقل او د عقل نه۔

**فائده ۴ بحث د مستقر د ارواحو:۔** په حال د برزخ کښ روح جدا دے د بدن نه د دے د تائید د پاره دا بحث لیکلے کیږی او په دے کښ ډیر اقوال دی اول دا چه ارواح د مؤمنانو په جنت کښ دی او ارواح د کافرانو په اُور کښ دی۔ دویم قول، ارواح د مؤمنانو په دروازه د جنت کښ دی د جنت راحت او نعمتونه ورته رسیږی۔ دریم دا چه د قبورو په خواکښ دی او د کعب نه نقل دی چه ارواح د مؤمنانو په علیین کښ دی په اُووم اسمان کښ او ارواح د کافرانو په سجّیین کښ دی په اُومه زمکه کښ۔ ابن حزم وئیلی دی مستقر د ارواحو هغه دے چه د پیدائش د بدن نه مخکښ کوم ځائے کښ وو۔ او ابن عبدالبر وئیلی دی چه ارواح د شهداؤ په جنت کښ دی او ارواح د عام مؤمنانو د قبرونو په خواکښ دی (نور اقوالِ ضعیفه چه دی نو ما د هغے ذکر پریښودلو)۔ شرح عقیدۃ طحاویۃ ص۴۵۲ کښ وئیلی دی چه خلاصه د دلیلونو دا ده چه ارواح په برزخ کښ په تفاوت سره دی بعضِ په اعلی علیین کښ دی بعضِ په ملأ اعلی کښ دی او بعضِ په ججورو د شنو مرغو کښ دی ګرځی په جنت کښ چه کوم ځائے یے خوښه وی او بعضِ بند دی د جنت د دروازو سره۔ د دے اقوالو ذکر په مجموعة الفتاوٰی کښ د علامه لکهنوی ص۱ کښ دے او دا سے اقوال ابو حیان البحر المحیط کښ لیکلی دی۔ او د دے نه معلومه شوه چه مستقر د روح بدن نه دے۔

**فائده ۵** لکه چه د شهید په باره کښ ذکر شوه چه روح د هغه په ججورهٔ د شنے مرغئ کښ دے نو دا رنګ د هر مؤمن په باره کښ صحیح حدیث وارد دے (چه د هغے په سند کښ امام احمد او امام شافعی او امام مالك رحمهم الله دی) چه روح د هر مؤمن یو مرغئ ده چه سر یږی د جنت په اُونو کښ (ابن کثیر موطا مالك)۔

**سوال:۔** نو د شهید او د عام مؤمن په مینځ کښ فرق څه دے؟۔

**جواب:۔** روح د مؤمن په شکل د مرغئ دے او روح د شهید په ججورهٔ او په خیټه د مرغئ کښ دے نو دا افضل دے د اول نه دا رنګ روح د شهید

مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوْعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ

دَ یرے نه او دَ لوږے نه او په کمولو دَ مالونو سره

وَالْاَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ ؕ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۵﴾

او دَ نفسونو او دَ میوو سره - او زیرے ورکړه صبرناکو خلقو ته -

ګرځی په جنت کښ چه کوم ځائے یئے خوښه وی او آرام کوی په قنديلونو دَ عرش کښ او دا وصف دَ عامو مؤمنانو دَ پاره نيشته -

وَلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ، لٰكِنْ دَ دفعے دَ وهم دَ پاره راغی دلته وهم دا وُو که چرے دوی دَ پاره ژوند وے نو مونږ به دَ هغوی حرکات لیدلے او په ابدانو دَ هغوی کښ به دَ ژوند آثار ښکاره کیدلے او ابدان به یئے خاوره نه خوړلے، نو جواب او شو په دے قول سره چه حاصلِ جواب یئے دا دے چه دا داسے ژوند دے چه دَ انسانانو دَ عقل او دَ حواسو معلومولو نه اوچت دے دا صرف په وحی سره معلومیږی (بیضاوی - زاد المسیر وغیره) ابوحیان وئیلی دی چه نه پوهیږئ تاسو په کیفیت دَ ژوند دَ هغوی (بحر محیط) - نو معلومه شوه چه دا ژوند دَ دُنیا دَ ژوند په شان نه دے او دَ حقیقی ژوند دَ لوازمانو دَ پاره مستلزم نه دے یعنی اوریدل، لیدل، ګرځیدل او خبرے کول دَ دنیا والو سره نشی کولے ځکه چه دا کاروته دَ دنیا دَ ژوند سره تعلق لری او دَ دے ژوند تفصیلی کیفیت کے متشابهاتو ته دے په هغے کښ خپل عقل چلول پکار نهٔ دی -

۱۵۵ دا عطف دے دَ اِسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ په مضمون باندے په هغے کښ امر وُو په صبر سره او په دے آیت کښ ذکر دے دَ مواضعو دَ صبر چه هغه پنځه بلایا (مصیبتونه) دی -

وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ ابتلاء دَ الله تعالیٰ دَ علم حاصلولو دَ پاره نه دہ بلکه مبتلیٰ ته دَ هغه حقیقت ښکاره کول دی - او بلایا دوه قسمونه دی یو قسم بلایا تکوینیه دی چه هغے ته نوائب وئیلے شی او دویم قسم بلایا تشریعیه دی چه هغے ته احکامِ شرعیه وئیلے شی - بِشَيْءٍ دا لفظ دلالت کوی چه دا بلایا په لږ مقدار کښ دَ هر انسان دَ وس مطابق وی او دالږ والے په نسبت دَ هغه بلا دے چه دوی تری نه بچ ساتلے شویدی - مِنَ الْخَوْفِ یره دَ دشمن وغیره نه، نیشاپوری وئیلی دی چه هر مکروه چه دَ هغے انتظار کیدے شی او دَ هغے نه په زړه کښ درد

الَّذِیۡنَ اِذَاۤ اَصَابَتۡهُمۡ مُّصِیۡبَةٌ ۙ

دا هغه کسان دي کوم وخت چه اورسيږي دوی ته څه مصيبت

قَالُوۡۤا اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّاۤ اِلَیۡهِ رٰجِعُوۡنَ ﴿۱۵۶﴾

نو دوی وائي يقيناً موږ د الله تعالی يو او يقيناً موږ خاص هغه ته ورګرځيدونکي يو۔

پيدا کيږي هغې ته خوف وئيلې شي۔ وَالۡجُوۡعِ قحط او په روزئ حاصلولو کښ سختي۔ او دو مره لوږه په نبی صلی الله علیه وسلم هم راغلې وه چه په خيټو باندې ئې کتې تړلې وې د پاره د توازن د ملا۔ وَنَقۡصٍ مِّنَ الۡاَمۡوَالِ په دې کښې د امدنئ کميدل او د څاروؤ هلاکيدل او روکيدل د مالونو داخل دي۔ وَالۡاَنۡفُسِ د دوستانو او ملګرو مړه کيدل او قتل کيدل يا د بعض ملګرو مرتد کيدل۔ وَالثَّمَرٰتِ غلې او امدنئ د زمکې په سبب د قحطونو سره يا سيلابونو او ملخئ وريدلو سره دا ټول بلايا تکوينيه دي او د امام شافعي رحمة الله عليه نه الوسی او نيشاپوري نقل کړيدي چه دا بلايا تشريعيه دي يعني د خوف نه مراد خوف د الله تعالی نه دې او جوع نه مراد روژې فرض کيدل او نَقۡصٍ مِّنَ الۡاَمۡوَالِ نه زکوة او انفاق فِیۡ سَبِیۡلِ اللّٰهِ فرض کيدل دي او وَالۡاَنۡفُسِ نه مراد امراض يا ملګري په جهاد کښ شهيدا کيدل دي، وَالثَّمَرٰتِ نه مراد مرګ د اولاد دې او دا ټول بلايا (مصيبتونه) اول قسم او دويم قسم د مؤمنانو د پاره ابتلاءات دي او د کافرانو او ګناهګارو د پاره عذابونه او سزاګانې دي۔ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِیۡنَ دا عطف دې په مضمون د ماقبل باندې يعني دوی د پاره ابتلاء او بشارت دواړه دي او بشارت ئې مطلق ذکر کړو اشاره ده عموم د بشارت ته په هر قسم ثواب او خوشحالو د قبر او د حشر سره۔

۱۵۶ دا تعريف او علامت د صابرينو دې۔ اِذَاۤ دلالت کوي په عموم او تکرار باندې۔ مُّصِیۡبَةٌ هر هغه حادثه ده چه خفګان پيدا کوي مؤمن لره په نفس د هغه کښ يعني مال هلاکيدل يا اهل د هغه که ډيرو کې وي او که لوئې وي مړکيدل يا هغې ته نقصان رسيدل تر دې چه چراغ (ډيوه) د چا مړشي او په هغې باندې خفه شي نو دا مصيبت دې او په دې (چراغ مړکيدل او ديته مصيبت وئيلو کښ قرطبي يو روايت بې سنده ذکر کړيدې۔

أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ

دغه کسان دوی باندے برکات دی د طرف د رب د دوی نه

وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ ﴿١٥٧﴾

او رحمت دے۔ او دغه کسان دوی لار موندونکی دی۔

إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللَّهِ ۖ

یقیناً صفا او مروه د خاص نښو د دین د الله تعالیٰ نه دی

قَالُوٓا دغه قول په معنیٰ د اعتقاد سره واجب دے په وخت د مصیبت کښں او په ژبے سره وئیل سنت دی۔ اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّآ اِلَیْهِ رٰجِعُوْنَ، نیشاپوری وئیلی دی چه اول اقرار دے په عبودیت سره او دویم تفویض (سپارل دی) د کارونو دے الله تعالیٰ ته دا رنګ اول اشاره ده مبدء ته او دویم اشاره ده معاد ته دا رنګ اول ایمان دے په قضا د الله تعالیٰ او دویم ایمان دے په تقدیر د هغه باندے او دا رنګ وئیلے شویدی چه اول اقرار دے په اعتراض نه کولو سره په الله تعالیٰ باندے حکه چه هغه مالك او متصرف دے او دویم کښں تصدیق او تسلّی د زړه ده په جزا او ثواب د مصیبت سره په نیز د الله تعالیٰ او په دے دواړو سره د زړه صبر حاصلیږی۔

**تنبیه:**۔ دا کلمه د استرجاع (واپس کیدلو الله تعالیٰ ته) په هر مصیبت کښں وئیل ضروری دی نو تخصیص د دے په صرف اوریدلو د مرګ پورے بدعت دے۔

۱۵۷ دا تفصیل د بشارت دے د پاره د صابرینو۔ صَلَوٰتٌ قرطبی وئیلی دی صلوٰت د طرف د الله تعالیٰ نه ثناء او مدح او تشریف او برکت ورکول دی۔ او رَحْمَةٌ مصیبت لرے کول او حاجت پوره کول دی۔ او جمع د صلوٰت اشاره ده تکرار او ډیروالی د صلوٰة ته او مِنْ رَّبِّهِمْ اشاره ده عظمت د صلوات ته۔ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُوْنَ په جمله اسمیه او تعریف د مبتدا او خبر او ضمیر فصل کښں اشاره ده چه دا سے خلق په هدایت باندے پاښه دی او دهر قسم ګمراهئی نه بچ دی۔ امام بخاری د عمر رضی الله عنه نه روایت ذکر کړیدے د دے ایت په باره کښں نِعْمَ الْعِدْلَانِ وَنِعْمَ الْعِلَاوَةُ ( ښه دوه اندازی دی (صلوٰة او رحمت) او ښه سر بارے دے (اهتداء))۔

فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ

نو چا چه حج کوو د بیت الله یا ئې عمره کوله نو نشته هیڅ ګناه

عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا ؕ وَمَنْ تَطَوَّعَ

په ده باندې چه ئې راځي دې د دغې دواړو په مینځ کښې - او چا چه په خوشحالئ اوکړه

خَيْرًا ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ شَاكِرٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۵۸﴾

نیکي نو یقیناً الله تعالیٰ قبلوونکې دې او پوهه دې په هر څه -

۱۵۸ په دې ایت کښې جواب د نهې شبهې او طعن د یهودیانو دې دوی وئیل چه تاسو تعظیم کوئ د مکان د اساف او نائله (تبصیر الرحمٰن) او دا خو مکان د شرک دې او ځان ته اهل توحید وایئ حاصل د جواب دا دې چه دا مکان د شرک نه دې بلکه ځائے د شَعَآئِرِ اللّٰهِ دې لیکن مشرکانو د دې نه د شرک ځائے جوړ کړے وو۔

او ربط د دې د ماقبل سره په ډیرو وجو سره دې اوله وجه دا ده هر کله چه د هغه مصائبونه په دین کښې چه په هغې باندې صبر واجب دې طعنونه د دشمنانو دی لکه سعی د صفا او مروه نو د هغې حکم ئې ذکر کړو۔ دویمه وجه دا ده چه په تحویل قبله کښې احیاء د دین د ابراهیم علیه السلام وه نو دا رنګ سعی د صفا او مروه د اٰثارو د بی بی هاجره او اسماعیل علیهما السلام نه دې او یادداشت دې د هغه تکالیفو د تنګ او د پوازې والی د دې دواړه په دغه وادئ کښې او تضرع او عاجزی کول الله تعالیٰ ته) نو مناسب شو د ایت د ابتلاء اتو او د صبر کولو سره په هغې باندې - بله وجه دا ده چه تکالیف درې قسمه دی اول قسم هغه دی چه عقل هم پوهیږی د هغې په خائست باندې لکه ذکر او شکر د منعم نو امر په هغې باندې ذکر شو (فَاذْكُرُوْنِيْٓ اَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِيْ) او دویم قسم هغه دی چه عقل د هغې په فائده باندې نه پوهیږی بلکه قبیح ئې ګڼړی لیکن شرعے د هغې حکمتونه بیان کړی دی چه ابتلاءات او امتحانات دی او په هغې باندې صبر کول دی نو هغه ذکر شو په لَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ الخ کښې۔ دریم قسم هغه دی چه عقل د هغې په حسن او په قباحت نه پوهیږی بلکه عبث ئې ګڼړی لیکن په هغې باندې تعبداً راتلل کوی او دغه افعال

دَ حج دی خاص طور سعی کول دَ صفا او مروه تر اوس هغه ذکر کوی (نیشاپوری) او
په سبب دَ نزول دَ دے آیت کښ دوه روایات دی اول حدیث دَ عائشة رضی الله
عنها چه انصارو مخکښ دَ اسلام نه احرام او تلبیه کوله دَ پاره دَ مناة په مشلل
(قدید) مقام کښ او دَ هغے دَ وجے نه به ئے حرج گنړلو په سعی دَ صفا او مروه
کښ. دویم حدیث دَ حارث بن هشام دے چه ما سیوُی دَ عائشه رضی الله عنها نه
نورو اهلِ علمو وئیل چه سعی دَ صفا او مروه دَ جاهلیت والا عمل دے (شعبی
وئیلی دی چه په صفا باندے اساف وُو او په مروه باندے نائله وه او جاهلیت
والو به دَ دوی په مینځ کښ طواف (سعی) کوؤ او دَ دے دوا ړو استلام به ئے
کوؤ نو روستو دَ اسلام نه مسلمانانو په دغه سعی کولو کښ حرج گنړلو) او دَ
محمد بن اسحاق په کتاب السیرة کښ روایت دے چه اساف سړے وُو او نائله
ښځه وه دوی انسانان وُو لیکن په داخل دَ کعبه کښ ئے زنا اوکړله نو دَ دوی نه
گټے جوړے شوے نو قریشو کعبے ته مخامخ کیښودلے دَ پاره دَ عبرت دَ خلقو
هر کله چه زمانه ډیره تیره شوه نو هغه گټے صفا او مروه ته نقل کړے شوے
او دَ دوی عبادت شروع کړے شو دَ دے وجے نه مسلمانان دَ هغے دَ سعی نه
په حرج کښ وُو نو الله تعالیٰ دَ دے ټولو دَ شبهاتو او دَ دفع دَ حرج دَ پاره دا
آیت نازل کړو. صَفَا په لغت کښ هموارو او خویئے گټے ته وئیلے شی جمع
دَ صفاة ده یا مفرد دے. وَالْمَرْوَةَ دا مفرد دے او جمع ئے مرو ده سپینه
پړه قیدو ونکے گټے ته وئیلے شی چه دَ هغے نه اُور راوُځی. دلته مراد دَ دواړو نه
هغه خاص غرونه (غونډئ) دی چه دَ کعبے نه دَ مشرق په طرف کښ دی.
مِنْ شَعَآئِرِ اللهِ جمع دَ شعیرة ده دَ اِشعار نه اخستلے شویدے اعلام ته
وئیلے شی نو شعیره علامه خاصه (مخصوص نښه) وی دَ پاره دَ پیژندلو دَ دینِ
اسلام او هغه شامل دے ټولو مواقفو دَ حج ته او سعی او حجر اسود او
نحر، مزدلفه منیٰ عرفات او هدایا قلائد بدن لکه په سورة حج ۳۶ کښ دی او داړنګ
په سورة مائده ۲ کښ او احترام دَ میاشتو دَ حرمت وغیره دا خاص علامات دی
دَ پاره دَ دین اسلام ــــــ داړنګ دَ هر یو دین والو دَ
پاره خپل خاص علامتونه وی لکه دَ نصاراؤ صلیب او گرجه دَ هندوانو زِنار
دَ سیکانو توره، کرپان او سترے پریښودل وغیره. او په دے کښ اشاره شوه
چه دا شعائر که چرے مشرکان په شرک سره بدل کړی نو نسبت دَ شعآئر الله
ته نقصان نه رسیږی. فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِاعْتَمَرَ دا تخصیص دَ دے دَ پاره دے

چه سعی دَ صفا او مروه بغیر دَ حج او عمرے ته عبادت نشی گنړلے کیدے۔
حج په لغت کښ قصد کول او ډیر تلو راتلو ته وئیلے شی او اعتمار (عمره) په لغت کښ صرف زیارت ته وئیلے شی او دَ شریعت په اصطلاح کښ دا دواړه په خاص مناسکو (په نیت صحیحه سره) پورے خاص کړے شوی دی۔
فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ، لفظ دَ جناح په قرآن کریم کښ پنځویشت کرته ذکر دے او فعل دَ دے ماضی او امر دوه کرته ذکر دے۔ جنح (ج۔ن۔ح) په لغت کښ میلان ته وئیلے شی او په دے معنی سره په سورة انفال ۶۱ کښ دے او په اصطلاح کښ په معنی دَ گناه سره دے او دا په ډیرو ایاتونو کښ په نفی سره ذکر دے په دوه طریقو سره اول دا چه دَ دے نه روستو نفی ذکر وی لکه په بقره ۲۸۲ کښ او کله دَ دے نه روستو اثبات ذکر وی او دا په ډیر و ایاتونو کښ دے لکه په دے ایت کښ هم دے۔ او کله په معنی دَ تبعة (تاوان دنیوی او اخروی) راځی لکه په بقره ۲۳۶ کښ۔ او دلته معنی دَ نیشتوالی دَ گناه دے۔
أَنْ يَطَّوَّفَ بِهِمَا ماده دَ طوف (ط و ف) په قرآن کریم کښ یوځلویښت کرته ذکر ده په لغت کښ ډیر تلو راتلو ته وئیلے شی برابره خبره ده که چاپیره دَ یو شیز نه وی او که نه وی او هغه په ډیرو وجوهو سره دے اول دَ خدمت دَ پاره تلل راتلل په دنیا کښ لکه په سورة نور ۵۸ کښ دی یا په جنت کښ لکه په سورة واقعه ۱۷، سورة دهر ۱۹ او سورة طور ۲۴ کښ دی۔
دویم په طریقه شرعی سره دَ طواف نه مراد چاپیره گرځیدل دی لکه په سورة حج ۲۹ کښ۔ دریم په مینځ دَ دوه شیزونو کښ ډیر تلل راتلل لکه په دے ایت کښ او دے ته سعی هم وئیلے شی۔ او په دے کښ دَ علماؤ درے اقوال دی اول دا چه سعی فرض ده، دویم دا چه واجب ده، دریم دا چه سنت ده۔ غوره قول اول دے۔ **سوال**:۔ دلته ئے خو وئیلی دی چه گناه نیشته په سعی کولو کښ نو معلومه شوه چه مستحب کار دے۔ **جواب ۱**:۔ دَ عائشة رضی الله عنها جواب دے عروه ته که مراد دَ دے نه استحباب وے نو دا سے به ئے وئیلی وُو چه الایطوف بهما۔ **جواب ۲**:۔ لَا جُنَاحَ ئے دَ پاره دَ جواب دَ وهم وئیلے دے چه مسلمانانو وهم کوو چه دَ شرك دَ مشابهت دَ وجے نه په دے کښ به گناه وی نو او وئیلے شو چه گناه پکښ مه گنړئ۔
وَمَنْ تَطَوَّعَ خَيْرًا، تطوع هغه فعل دے چه دَ زړه په خوشحالئ سره او کړیشی

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا

يقيناً هغه كسان چه پټوى هغه څه چه نازل كړيدى مونږه

مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ مِن بَعْدِ مَا

چه ښكاره حكمونه دى او د هدايت خبرے دى روستو د هغے نه

بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ ۙ أُولَٰئِكَ

چه بيان كړيدى مونږ هغه د پاره د خلقو په كتاب كښ دغه كسان

يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ ۙ ﴿١٥٩﴾

لعنت كوى په دوى باندے الله تعالىٰ او لعنت كوى په دوى باندے لعنت كوونكى ۔

فرض وى او كه نفل وى (شربينى)۔ او طوع راڅى په اخلاص كولو سره تو په ديكښ اشاره ده چه هر كارخير په طوع او اخلاص سره ضرورى دے۔ فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ، شكر د الله تعالىٰ د طرف نه جزا د عمل ده زياتى د استحقاق نه۔

عَلِيمٌ عالم دے په هغه عمل چه د جزا مناسب وى۔

۱۵۹ په دے ايت كښ زجر او تخويف دنيوى دے حق پټوونكو لره۔ ربط مخكښ سره دا دے چه كتابيان چه شبهات كوى په نبى صلى الله عليه وسلم باندے نو د دوى مقصد په دے كښ حق پټول دى۔ مفسرينو ليكلى دى چه دا ايت نازل شوے دے په باره د علماؤ د يهودو كښ چه هغوى صفات د محمد صلى الله عليه وسلم او مسئله د توحيد او د رجم وغيره پټه كړے وه په تحريف لفظى يا معنوى سره۔ ليكن حكم د ايت عام دے محكه چه دا الفاظ عام دى او اعتبار عموم د الفاظو لره وى خصوص د سبب لره اعتبار نيشته۔

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا، كتمان نه مراد عدم اظهار د يو څيز دے سره د احتياج نه بيان د هغے ته او اظهار د حق ته (خازن)۔ مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ، جمع د بينة ده۔ اياتونه او دليلونه ښكاره۔ او مراد د دے هر هغه څيز دے چه نازل كړے دے الله تعالىٰ په انبياؤ باندے كه كتاب وى او كه وحى وى بغير د عقلى دليلونو نه او الْهُدَىٰ شامل دے دليلونو نقليو او عقليو دواړو ته۔ دا رنګ بينات تنزيل ته وئيلے شى او هُدَىٰ هغه فوائد دى چه د تنزيل نه معلوميږى (نيشاپورى)۔ دا رنګ بينات تورات، انجيل او قرآن دے او الْهُدَىٰ احاديث دى دليل په دے

# إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا

مګر هغه کسان چه توبه او باسي او نیک عمل کوي او بیان کوي (دهغې چه پټ کړے وي)

بانــدے حدیث د ابو هریرة رضی الله عنه دے چه که چرے نه وے دا آیت په کتاب الله کښ نو ما به تاسو ته هیڅ حدیث نه وے بیان کړے. بل حدیث د عثمان رضی الله عنه دے چه تعلیم د اودس یې اوکړو ملګرو ته بیایې اوفرمائیل که دا آیت نه وے نو ما به تاسو ته دا حدیث نه وؤ بیان کړے۔ دا دواړه روایات د بخاری دی او دلالت کوي په عموم د دے آیت بانـدے دے اُمت ته او شمول د دے بانـدے احادیثو د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته۔

مِنۢ بَعۡدِ مَا بَيَّنَّٰهُ لِلنَّاسِ فِي ٱلۡكِتَٰبِ ضمیر د ه راجع دے مَآ أَنزَلۡنَا ته او الۡكِتَٰب جنس دے په معنی د جمع کښ دے ټولو کتابونو منزّلو ته شامل دے او دا قید د مزید قباحت د پاره دے یعنی الله تعالی حق داسے واضح کړے دے چه اجمال او تلبیس او اشتباه په کښ نیشته او بیایې هم داخلق پټوي۔

أُوْلَٰٓئِكَ يَلۡعَنُهُمُ ٱللَّهُ، لعن په لغت کښ لرے کولو او شړلو ته وئیلے شي او په شریعت کښ چه نسبت یې الله تعالی ته اوشي نو مراد ترینه د خاص رحمت نه محروم کول او د قربتِ الٰهی لارے بندول دي او مستلزم دے غضب او عذاب او سخط د الله تعالی لره۔ وَيَلۡعَنُهُمُ ٱللَّٰعِنُونَ د مخلوق د طرف نه لعنت په معنی د دعاءِ شر دے که په لفظ د لعنت سره وي او که په بل لفظ سره وي او هر کله چه لعنت د مخلوق جدا دے د لعنت کولو د الله تعالی نه د دے وجے نه جدا فعل (يَلۡعَنُهُمۡ) یې ذکر کړے دے۔ ٱللَّٰعِنُونَ مراد د دے نه ملائیک او نیکان انسانان او جنات دي او بنا په یو روایت په دے کښ مهیان د اُوبو، دواب او حشرات او مارغان هم داخل دي۔ ابن کثیر وئیلي دي لکه چه د عالم حق بیان کوونکي د پاره مهیان په اُوبو کښ او مارغان په هوا کښ بښنه د الله تعالی نه غواړي نو دا رنګ په حق پټوونکي عالم بانـدے هغوی لعنتونه وائي۔ دا آیت دلیل دے چه مؤمنانو لره پکار دي چه د حق پټوونکي عالم نه تعلق پرے کړي او په هغه بانـدے لعنت اُوائي لیکن لعنت به په اعتبار د صفت د کتمان سره کوي لعنت به په معین شخص بانـدے مطلقًا نه کوي۔ او دا لعنت وئیل دي په دنیا کښ د دے وجے نه دا تخویف دنیوي دے۔

فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَاَنَا التَّوَّابُ

نو دغه کسان (اسانتیا) راولم په دوی باندے (په توبه قبلولو سره) او زه ډیر توبه قبلوونکے

الرَّحِيْمُ ﴿١٦٠﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَمَاتُوْا

رحم کوونکے یم. یقیناً هغه کسان چه کفر ئے کړے دے او مړه شی

وَهُمْ كُفَّارٌ اُولٰٓئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللّٰهِ

په حال د کفر کښ. دغه کسان په دوی باندے لعنت د الله تعالیٰ دے

وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِيْنَ ﴿١٦١﴾

او د ملائکو او د ټولو خلقو.

نمبر ۱۶۰ په دے ایت کښ ترغیب دے توبه کولو ته او حق پټوونکی عالم د پاره ئے درے شرطونه د توبے ذکر کړی دی. او که امی وی یا عالم وی بغیر د کتمان نه ئے بل ګناه کړے وی نو د هغه د توبے دوه شرطونه دی لکه په سورة العمران ۸۹ کښ او د منافق د توبے څلور شرطونه دی لکه په سورة نساء ۱۴۶ کښ دی. اول شرط تَابُوْا، توبه کول دی او په توبه کولو کښ درے شرطونه دی په زړه کښ په ګناه باندے پښیمانه کیدل او خفه کیدل او په ژبه باندے استغفار او توبه کول او په اندامونو سره د هغے عمل پریښودل. دویم شرط وَاَصْلَحُوْا دے یعنی خپل اعمال د فساد نه بچ کول یعنی په اطاعت د الله او د رسول سره عملونه کول. دریم شرط د بَيَّنُوْا یعنی ښکاره کړی هغه مسائیل چه د خلقو نه ئے پټ کړے وی په بیان سره یا په قلم سره حتی الاستطاعت یا به اظهار اوکړی د خپلے توبے خلقو ته د دے د پاره چه عوام خلق د دهٔ د تقلید د هغه عمل نه منع شی او د دهٔ پشان توبه اوکړی. فَاُولٰٓئِكَ اَتُوْبُ عَلَيْهِمْ، نسبت د توبے الله تعالیٰ ته په واپس کولو د رحمت سره او په قبلولو د توبے سره دے. وَاَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ دواړه صیغے د مبالغے دی یعنی بار بار توبه قبلوی سره د بار بار ګناه کولو او توبه کولو د بنده نه.

نمبر ۱۶۱ په دے ایت کښ تخویف اخروی دے پټوونکو د حق لره بغیر د توبے کولو نه. اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا، مراد د دے نه کفر دے په پټولو د حق سره. وَمَاتُوْا وَهُمْ كُفَّارٌ یعنی تر مرګه پورے ئے حق پټ ساتلے او توبه ئے نه ده کړے.

خٰلِدِیْنَ فِیْهَا ۚ لَا یُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ

همیشه به وی په هغې کښ نه به شي سپکولے د دوی نه عذاب

وَلَا هُمْ یُنْظَرُوْنَ ﴿۱۶۲﴾ وَاِلٰهُکُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ

او نه به دوی له مهلت ورکیدے شي - او حقدار د بندګۍ ستاسو معبود یو دے

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِیْمُ ﴿۱۶۳﴾ ع

نیشته بل معبود د حدائیتوب صفتونو والا سیوا د هغه نه . عام مهربان او خاص رحم کوونکے دے.

ع ۱۹ / ۱۱ / ۳

اُولٰٓئِکَ عَلَیْهِمْ لَعْنَةُ اللهِ وَالْمَلٰٓئِکَةِ وَالنَّاسِ اَجْمَعِیْنَ، دلته مراد لعنت دے په آخرت کښ او په النَّاس کښ د دے عالمانو (حق پټوونکو) تابعداران مریدان شاګردان هم داخل دی په دلیل د آیت د سورۃ اعراف ۳۸ او سورۃ عنکبوت ۲۵ سره او دلته لعنت د طرف د الله تعالیٰ نه د دوی جهنم ته داخلول دی د پاره د همیش والی -

۱۶۲ فِیْهَا ضمیر راجع دے لعنت ته او مراد د هغې نه جهنم دے -لَا یُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ، الْعَذَابُ کښ الف لام عهدی دی یعنی هغه عذاب چه د هغه کافر د پاره مقرر کړے شوے وی د اول وخت د دخول د جهنم نه نو په هغې کښ به کمے نه راځی بلکه زیاتیږی به اګرچه د دوی په عذابونو کښ به تفاوت وی لکه چه حدیث صحیح کښ وارد دی چه عذاب د ابوطالب به آهون عذاب وی یعنی په خپو کښ به یې کېږی د اور وی چه د هغې نه به یې دماغ خوټیږی (اللهم اجرنا من النار) - وَلَا هُمْ یُنْظَرُوْنَ، دا د نظرة نه اخستلے شوید ے یعنی مهلت او روستو والے د عذاب به نه وی بلکه د ابتداء نه به په عذاب کښ اخته شي دا رنګ مهلت به نه ورکیږی د پاره د توبے او عذر کولو. یا دا د نظر نه اخستلے شوید ے یعنی نظر د رحمت به د دوی نه نه کیږی. فائده :- ماده د لعنت په قرآن کریم کښ یو شلو یښت کرته ذکر ده او نهه اسباب د لعنت یې ذکر کړیدی، اول کفر کول (سورۃ بقره ۸۸)، دویم نقض میثاق (د وعدے ماتول) (سورۃ مائده ۱۳)، دریم دروغ وئیل (سورۃ آلعمران ۶۱)، څلورم کتمانِ حق (سورۃ بقره ۱۵۹)، پنځم ظلم کول (سورۃ اعراف ۴۴)، شپږم قطع د رحم او فساد کول (سورۃ رعد ۲۵)،

اٰدم بن نامی تکول په پاکه امتو خلقو (سورة نور ۲۳)، اتم اذی ورکول الله تعالیٰ او رسول ته (سورة احزاب ۵۷)، تهم د الله تعالیٰ بے عزتی کول (سورة مائدة ۶۴).
۱۶۳ د دے ایت نه تر ۱۷۶ پورے د دے حصے څلورم باب دے په دے کښې دویم کرت دعوی د توحید ده اولس عقلی دلیلونه دی په ذکر د احوال او کیفیاتو د اعیانو (موجوداتو) او انقلابات د هغوی دی بیا زجر دے مشرکینو د شرک فی التحلیل والتحریم ته او تخویف دے هغوی لره په براءت کولو د تابعدارو او د متبوعینو د یو بل نه په ورځ د قیامت کښې تر ۱۶۷ پورے بیا رد دے په شرک فی التحریم (حلال د الله تعالیٰ حرام کنړل) باندے او رد دے په دلیل تیولو په طریقے د مشرانو باندے او مثال دے د هغوی د پاره. بیا خاص خطاب دے مؤمنانو ته په دے مسئله کښې بیا رد دے په تحلیل د هغه څلور حرامو څیزونو چه په ټولو امتونو کښې حرام دی بیا سخت تخویف دے حق پټوونکو ته د پاره د حصول د دنیا. ربط د دے ایت د مخکښې سره دا دے چه هرکله زجر او تخویف ذکر شو حق پټوونکو د پاره نو اوس اظهار د هغه حق مسئلے کوی چه یهودیانو هغه پټوله او په شرک فی التحلیل والتحریم کښې اخته شوی وو.

**تفسیر:** په دے ایت کښې دعوی د توحید ده په دوه تعبیرونو سره سره د ذکر علت د هغے نه. اوله جمله (وَاِلٰهُكُمْ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ) په قرآن کریم کښې شپږ کرته ذکر ده او دویمه جمله دیرش کرته ذکر ده.

## تحقیق د لفظ د اِلٰه:

د اهلِ لغت د دے په معنی لغوی کښې ډیر اقوال دی اول دا چه اٰلِه په معنی د عَبَدَ دے نو اِلٰه په معنی د معبود دے په لغت کښې لیکن په عرف کښې خاص دے په معبود بالحق پورے. دویم دا د اَلِهْتُ الیه نه اخستلے شوے دے په معنی د سکون او ارام نو اِلٰه هغه ذات دے چه په هغه سره او د هغه په ذکر سره زړونو ته سکون او ارام حاصلیږی.
دریم د اَلِهْتُ الیه نه دے په دے معنی چه په سختئ کښې هغه ته فزع او فریاد کوی، نو اِلٰه هغه ذات دے چه په هره سختئ کښې هغه ته فریاد کیدیشی. څلورم دا د اَلِهَ الفصیل نه اخستلے شوے دے یعنی مینه کول د بچی د مور سره نو اِلٰه هغه ذات دے چه عابد د هغه سره د زړه مینه کوی. پنځم دا د لَاهَ يَلِيْهُ نه اخستلے شوے دے په معنی د پرده کولو سره نو اِلٰه هغه ذات دے

چه د عقلونو او د نظرونو نه (په دنیا کښې) پرده کښې دے یعنې پټ دے۔ شپږم
دا د وَلِهَ یولِه نه اخستلے شوے دے حیرانتیا ته وئیلے شي نو الله هغه ذات دے
چه تمام مخلوق حیران دے د هغه په کبریاء او عظمت د شان کښې۔ اُوم دا د
وَلِهتُ اِلَیْهِ نه اخستلے شویدے په معنی د التجاء او طلب کولو د حاجت نو
الله هغه ذات دے چه هغه ته حاجات پیش کولے شي د پاره د پوره کولو.
رومی په مثنوی کتاب صفحه ۱۳ دفتر ۴ کښې دا قول د سیبویه نه نقل کړے دے۔ معلومه
شوه چه الله تعالیٰ اِله دے په دے ټولو معانو سره۔ او په اصطلاح د قرآن
کښې د اِله دوه اطلاقات دی اول عام اطلاق دے لکه په سورة انعام ۴۶ او
په سورة نمل کښې د ۶۰ نه تر ۶۴ پورے او په سورة قصص ۷۱ ۷۲ کښې
د دے ټولو حاصل دا دے چه نظام چلوونکے او تصرفات کوونکے او حاجات
پوره کوونکے الله تعالیٰ دے او د دے په تائید کښې قول د شیخ عبدالقادر
جیلانی دے چه" هغه څوک چه ته په هغه باندے اعتماد کوے او د هغه نه
یره کوے او د هغه نه اُمید ساتے نو هغه اِله دے" (الفتح الربانی صفحه ۵۲ ۵۷)۔ او
دویم اطلاق د اِله په معنی د حقدار د عبادت او د دعا او د اطاعت دے دا د
قرآن کریم په ډیر آیاتونو کښې مراد دے۔
د دے په دواړو جملو کښې فرق دے په څو وجو سره اوله وجه دا ده چه اوله
جمله کښې توحید صراحتًا دے او رد د شرک ضِمنًا دے او په دویمه جمله
کښې رد د شرک صراحتًا دے او توحید په کښې ضمنی دے دویمه وجه دا ده چه
په اوله جمله کښې د الله اوله معنی ده او په دویمه جمله کښې د اِله دویمه معنی
ده۔ دریمه وجه دا ده چه په اوله جمله کښې ذکر د الله اکبر او د هغه د توحید
دے او په دویمه جمله کښې جواب د وهم دے په باره د اصغر اله کښې۔ څلورمه
وجه دا ده چه په اوله جمله کښې نفی د تعدد مقصد دے او په دویمه جمله
کښې اثبات د وحدت مراد دے۔ پنځمه وجه دا ده چه په اوله جمله کښې اثبات
د توحید دے په زمانه ماضی او حال کښې او په دویمه جمله کښې اثبات د
توحید دے په زمانه استقبال کښې۔
وَاحِدٌ، ابن جریر وئیلی دی چه وحدت په څلور قسمه دے اول وحدت
جنسی (نوعی) دویم هغه چه تقسیم او تجزی نه قبلوی دریم په معنی د
مثل او اتفاق لکه چه وئیلے شي چه دا دوه څیزونه یو دی. څلورم هغه چه

نظیر او شبیه یې نه وی، دلته اخری معنی مراد ده. او نیشاپوری وئیلی دی چه
الله تعالیٰ واحد دے په ذات کښ قسیم یې نیشته او واحد دے په صفاتو کښ
شبیه یې نیشته او واحد دے په کارونو کښ شریک یې نیشته. او خازن
وئیلی دی چه واحد په صفت کښ د الله تعالیٰ کښ دا دے چه نظیر یې نیشته لیس
کمثله شیٔ او واحد دے په الوهیت او ربوبیت کښ. او د توحید معنی دا ده
چه شریک او قسیم او شبیه نفی کړی. الرَّحْمٰنُ الرَّحِیْمُ دا دوه نور خبرونه
دی د پاره د اِلٰهُکُمْ یا خبر دے د مبتدا پټ د پاره. یا بدل دے د هو ضمیر
نه د هغې صفت نشی کیدے. او دا دواړه دلیل دے د پاره د مخکښ جملې یعنی
ورکوونکے د لویو نعمتونو او د اصولو د هغې (چه رحمٰن دے) او ورکوونکے د
وړو او د باریکو او د جزئیاتو او فروعو د نعمتونو (چه رحیم دے) الله تعالیٰ دے
او د هغه نه سیوا چه څه دی تو یا نعمتونه دی یا منعم علیهم دی او هغه
مخلوق دی حقدار د الوهیت نشی کیدے.

فائده ۱: نسفی وئیلی دی چه هُوَ په اِلَّا هُوَ کښ په محل د رفع (پیښ) کښ
دے ځکه چه بدل دے د محل د لَا اِلٰهَ نه چه هغه رفع ده او په محل د نصب
کښ نه دے ځکه چه په بدلیت کښ اعتماد په دویم (بدل) باندے وی او
نصب (زور) دلالت کوی چه اعتماد په اول باندے وی. او قرطبی اشاره کړې
چه اِلَّا د پاره د استثناء دے. هغه وئیلی دی چه دا نفی او اثبات دے اول یې
کفر دے او اخر یې ایمان دے په معنی د لا معبود الا الله دے. (لیکن دا
قول صحیح نه دے د قرطبی د شان سره مناسب نه دے).

فائده ۲: په خبر د لا کښ دوه قولونه دی، اول قول د اکثر علماؤ دے
چه خبر د لا پټ دے نو بعضو لفظ د وجود وئیلے دے او بعضو لفظ د لنا
او بعضو لفظ د بحق. او دویم قول د رازی او نورو اهل علمو دے چه تقدیر
د خبر ته حاجت نیشته ځکه چه مقصد نفی د مطلق اِلٰه ده په وجود او
امکان د واړو کښ او دا حاصلیږی په نفی ماهیت د اِلٰه حق سره بغیر د
الله تعالیٰ نه. اول قول والا وئیلی دی چه مشرکانو په ماهیت او امکان
کښ بحث نه دے کړے بلکه د دوی جګړه په وجود کښ ده او بلاغت کښ
رعایت د مخاطب وی نو د دے وجے نه دلته فی الوجود یا موجود لفظ پټ
دے. لیکن زما په نیز دویم قول غوره دے ځکه چه خالص توحید دا دے

إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ
یقینًا شته دے په پیدائش د اسمانونو او د زمکه کښ

وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي
او په تلو راتلو د شپه او د ورځ کښ او په کیشتو کښ هغه چه

تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ
چلیږی په دریاب کښ په سبب د فائدے د خلقو

وَمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَّاءٍ
او په هغه څیز کښ چه راوروَلے دی الله تعالیٰ د اسمان د طرف نه څه اوبه

فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ
نو تازه کړیده په هغے سره زمکه روستو د اوچوالی د هغے نه او خواره کړیدی

فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ وَّتَصْرِيفِ الرِّيٰحِ
په هغے کښ هر قسم ژندہ سر او په ګرځیدو د هواګانو

چه نفی د امکان د غیر الله اوکړے شی۔
فائده ۳ په کلمه د اِلَّا کښ دوه قولونه دی اول قول د اکثرو دے چه اِلَّا استثنائیه دے نو اول نفی ده بیا په استثناء سره اثبات دے لکه چه مخکښ قول د قرطبی ذکر شویدے او د بعضِ علماؤ قول دا دے چه اِلَّا صفتیه دے په معنی د غیر باندے دے او دا قول د سیبویه او کسائی او جمهورو نحویانو ذکر دے په تفسیر د لوکان فیهما آلهة الا الله لفسدتا (انبیاء ۲۳) کښ دلته هم زما په نیز دویم قول غوره دے ځکه چه اول قول باندے معنی دا ده چه نیشته دا سے الله چه د هغه نه الله مستثنیٰ وی او داخو توحید نه دے دارنګ په اول لَا اِلٰهَ سره کفر لازمیږی او په الا الله سره ایمان او دا هم د توحید خالص سره منافات لری او هر کله چه د غیر په ځائے باندے لا قائم دے او په هغه باندے اعراب نشی راتلے نو اعراب د رفع په لفظ الله باندے جاری کړے شو۔ د دے کلمے توحید د تشریح

وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ

او د وريځو چه تابع کړے شوے دي په مينځ د اسمان

وَالْأَرْضِ لَآيَاتٍ لِّقَوْمٍ يَعْقِلُونَ ﴿۱۶۴﴾

او د زمکه کښ (په حکم د الله تعالیٰ) خامخا دليلونه د توحيد دي د پاره د هغه قوم چه عقل نه کار اخلي۔

د پاره د زرکشي او ابن رجب رسالے ليکلي دي او رازي په تفسير کښ ښه شرح کړيده۔

۱۶۴ په دے کښ عقلي دليلونه دي د پاره د اثباتِ توحيد او دا استدلال دے په احوالو او انقلاباتو د لس څيزونو سره۔ اول او دويم په دے لفظ کښ دي چه اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ په لفظ د خلق کښ اشاره ده د اسمانونو او د زمکے احوالونه۔ احوال د اسمانونو اوچت والے د هغے دے او بے د ستنو نه اودريدل او نيشتوالے د تفاوت (عيب او نقصان) او محفوظ ساتل د راپريوتلونه او د شيطانانو نه دي او په هغے کښ احوال د نمر، سپوږمئ او د ستورو وغيره۔ او احوال د زمکے دا دي غوړول د هغے فراخي د هغے پښان د فراش او د مهد جوړول او په هغے کښ اُونے، نهرونه، غرونه، دريابونه، معدنيات، لارے او سړکونه وغيره۔ دريم او څلورم په وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ کښ دي يعني اختلاف د دوی په تلو د يو او راتللو د بل سره او په تيارو او رڼا کښ او زياتيدل او کميدل د ورځو او د شپو او د شپے خوبونه او ارام او د ورځے معاش د پاره ګرځيدل او نورے ډيرے فائدے۔ پنځم وَالْفُلْكِ الَّتِيْ تَجْرِيْ فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ، په دے کښ احوال د فلك دي يعني وړے کشتئ او لانچونه او لوئے جهازونه او چليدل د هغوی په مخ د اوبو او نه غرقيدل دا رنګ احوال د بحر په هغے کښ لؤلؤ او مرجان قيمتي کانړي او مهيان وغيره۔ بيضاوي وئيلي دي چه مقصد دلته استدلال دے په احوالو د بحر سره ليکن الفلك ئے اول ذکر کړو ځکه هغه ذريعه ده د پاره د حصول د منافعو د درياب نه او بحر ئے روستو ذکر کړو۔ او بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ شامل دے تجارتونو او عباداتونو ته او په دے لفظ کښ اشاره ده چه سفر (سورلي) د درياب بغير د فائدے د تجارت يا عبادت نه منع دے او حديث کښ د هغے نه منع راغلے ده۔ شپږم وَمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَآءِ مِنْ مَّآءٍ احوال او فائدے د اُوبو د باران ته اشاره ده۔ د مخلوق د پاره څښکل او په هغے سره طهارت

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ

او بعضے دَ خلقو نه هغه څوک دی چه ګنړی

دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ

سیوا دَ الله تعالی نه شریکان مینه کوی دَ هغوی سره پشان دَ مینے دَ الله تعالی سره

حاصلول او جامے وغیره وینځل. اُوم فَاَحْيَا بِهِ الْاَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا، احوال او فائدے دَ بوټو او وُنو یعنی دَ هغے نه میوے او غلے پیدا کول او دَ میوو او غلو نه مختلف طعامونه جوړول. فَاَحْيَا دا احیات په معنی دَ قوتِ نباتیه زیاتیدلو دے او مَوْت نه مراد او چیدل او قوتِ نباتیه کمزورے کیدل دی. اتم وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَآبَّةٍ، دا عطف دے په ما انزل باندے یا عطف دے په احیاء باندے یعنی دَ بارانو تو دَ وجے نه په ټوله زمکه کښ ښاروی او حشرات او نور ځناور پیدا کړی دی او خوارهٔ کړی دی او احوال او فائدے دَ دوابو او دَ هغوی اقسام او دَ هغے دَ ویښتو او دړئ او پشم نه فائدے اخستل او دَ هغوی دَ څرمتو او غوښو او هډوکو نه منافع پیدا کول. نهم او لسم وَتَصْرِيفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ، احوال دَ هواګانو او دَ هغے اقسام یعنی بادِ قبول چه هغے ته صبا وائی او دَ مشرق طرف نه رائحی او بادِ دبور دَ هغے مقابل دے او هغه په عذاب پورے خاص دے او بادِ شمال چه دَ قطب دَ طرف نه رائحی او بادِ جنوب دَ هغے مقابل دے. او لفظ تصریف کښ دَ دے اقسامو او دَ دے اطرافو او صفاتو ته اشاره ده چه بعضے دَ رحمت دَ پاره دی او بعض دَ عذاب دَ پاره دی. او احوال دَ سحاب دَ هغے قسمونه دی یعنی سپینے، تورے، سرے خرے، نرئ او غټے لاندے باندے او دَ هغے ګرځیدل مختلف طرفونو ته. الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَآءِ وَالْاَرْضِ، دا صفت دَ ریاح او سحاب دواړو دَ پاره دے یا صرف دَ سحاب دَ پاره دے. مراد دَ دینه بغیر دَ تعلق دَ دینه دَ اسمان او زمکے سره او چلیدل په حکم دَ الله تعالی سره دی. لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُوْنَ، دا اسم دَ اِنَّ دے مراد دَ ایات نه ښکاره دلیلونه دی په توحید دَ الله تعالی باندے. ټول اقسام دَ توحید دَ دے دلیلونو نه معلومیږی دا رنګ دا دلالت کوی په اثبات دَ وجود دَ الله تعالی باندے هم دَ پاره دَ ردکولو په دهریانو باندے. دا ایت مشتمل دے په دلیلو تو علویه

وَالَّذِیْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰہِ ؕ

او ایمان والا خه کلک دی په مینه دَ الله تعالیٰ کښې.

وَلَوْ یَرَی الَّذِیْنَ ظَلَمُوْٓا اِذْ یَرَوْنَ

او که پوهیدے هغه څوک چه شرک ئے کړیدے کله چه اووینی دوی

الْعَذَابَ ۙ اَنَّ الْقُوَّۃَ لِلّٰہِ جَمِیْعًا ۙ

عذاب لره په دے خبره چه یقیناً ټول طاقت دَ یو الله تعالیٰ دے

وَّاَنَّ اللّٰہَ شَدِیْدُ الْعَذَابِ ﴿۱۶۵﴾

اوداچه یقیناً الله تعالیٰ سخت عذاب والا دے (نو دوی به شرک نه وے کړے)

سفلیه، وسطیه، زمانیه، برّیه، بحریه، مائعات، حیوانات، نباتات او جمادات وغیره بیان دے۔

۱۶۵ روستو دَ ذکر دَ واضح دلیلونو دَ توحید نه زجر ورکوی شرک کوؤنکو ته په شرک فی التحلیل والتحریم سره۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ یَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰہِ، مصداق دَ الناس دلته اهل کتاب او مشرکین اُمیین دواړه دی۔ او اَنْدَادًا جمع دَ نِدّ ده دَ دے تفسیر مخکښې تیر شوے دے احبار او رهبانو او اوثانو ټولو ته شامل دے۔ لیکن غوره دا ده چه دلته مراد هغه اهل کتاب دی چه هغوی دَ خپلو ملایانو او پیرانو تقلید شرکی کوؤ په تحلیل او تحریم کښې لکه په دے قول دَ الله تعالیٰ کښې اتخذوا احبارهم ورهبانهم اربابا من دون الله" (سورة توبه) او دا قول ځکه غوره دے چه یُحِبُّوْنَهُمْ کښې ضمیر دَ عقلاؤ دے او وصف دَ محبت هم په دے باندے دلالت کوی او په ورځ دَ قیامت کښې براءت کول دَ یو بل نه هم په دے باندے دلیل دے (البحر المحیط)۔ نو مراد دَ انداد نه دلته شرکاء دی په اطاعت کښې او دا سے تعمیم ابن جریر او نیشاپوری او امام رازی هم لیکلے دے۔ یُحِبُّوْنَهُمْ، نیشاپوری وئیلی دی چه محبت کوی دَ هغوی عبادت کولو سره او هغوی ته نزدیکت حاصلولو سره او دَ هغوی تابعداری او تعظیم او هغوی ته عاجزی کول نو محبت کول دَ دوی عام دی عبادت کولو او اطاعت کولو ته یعنی هغوی ته سجدے لګوی او په تحلیل او تحریم کښې دَ هغوی

اطاعت کوی - كَحُبِّ اللّٰهِ په دے کښ اضافت دَ مصدر دے مفعول ته فاعل ئے
پټ دے چه هم ضمیر دے او په هغے کښ دوه احتمالونه دی اول دا چه ضمیر
راجع دے مشرکانو ته او تشبیه په ثبوت دَ محبت کښ ده یعنی مشرکان هم دَ
الله تعالیٰ سره محبت کوی کله کله دَ هغه عبادت او تعظیم کوی او دُعا گانے ترینه
غواړی دَ هغه په نوم باندے نذرونه ورکوی او دا سے محبت دوی دَ اندادو
سره هم کوی. یا دا تشبیه ده په وجوب دَ محبت کښ یعنی پشان دَ وجوب دَ
محبت دَ الله تعالیٰ په دے خلقو باندے. دویم احتمال دا دے چه ضمیر دَ هم
پټ راجع دے مؤمنانو ته یعنی محبت دَ مشرکانو دَ خپلو اندادو سره مشابه
دے دَ محبت دَ مؤمنانو دَ الله تعالیٰ سره لیکن اول احتمال غوره دے ځکه
چه محبت دَ مؤمنانو روستو جمله کښ ذکر دے. كَحُبِّ اللّٰهِ ابن قیم الجوزیه
فرمائیلی دی چه حب الله درے قسمه دے محبت فی الله او محبت لِله دا دواړه
صفت دَ مؤمن دے او دریم محبت مع الله دے چه دا مصداق دَ حب الله دَ مشرک
دے چه په محبت دَ الله تعالیٰ کښ انداد دَ هغه سره شریک کنړی - وَالَّذِيْنَ
اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ په دے جملے سره تمیز ذکر کوی دَ محبت دَ مؤمنانو دَ الله
تعالیٰ سره او محبت دَ مشرکانو دَ الله تعالیٰ سره او دَ دے دَ پاره ډیر وجوه
ابوحیان او نورو مفسرینو ذکر کړی دی اول اقراد دَ مؤمنینو دے الله تعالیٰ
دَ محبت شرعی دَ عبادت سره. دویم معرفت دَ دوی دے موجب (سبب)
دَ محبت الٰهیه. دریم محبت دَ دوی الله تعالیٰ سره په حال دَ غیبوبیت کښ. څلورم
شهادت دَ الله تعالیٰ دوی لره په دے محبت سره په دے قول کښ چه
يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ (مائده ۵۴). پنځم توجه دَ مؤمن ده الله تعالیٰ ته په
سختئ او فراخئ دواړو کښ. شپږم دَ محبت دَ الله تعالیٰ انتقال نه کوی
دَ بل چا محبت ته په هیڅ وخت کښ. اُوم منل دَ حکمونو دَ الله تعالیٰ دی
په هر وخت کښ. اتم واسطے او وسیلے نه نیسی او شفعاء نه جوړوی په
مینځ دَ الله تعالیٰ او دَ خپلو ځانونو کښ. او دَ دے ټولو حالتونو ضد مشرکانو
لره ثابت دے دَ دے وجوهو نه محبت دَ مؤمن ډیر سخت او پوخ دے دَ
الله تعالیٰ سره - وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ ظَلَمُوْٓا په دے کښ تخویف دے په عذاب
سره او اشاره ده چه دا مشرکان دَ الله تعالیٰ پوره قوت او سخت عذاب
نه منی دَ دے وجے نه شرک کوی - لَوْ دا شرطیه دے دَ تمنا دَ پاره نه دے

إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا

کله چه جدائی به اوکړی هغه خلق چه تابعداری ئے کړے شویده (دهغی کسانو نه چه دوی تابعداری ئے کړیوه)

وَرَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴿١٦٦﴾

او دوی به اووینی عذاب لره او پرے به شی (ختم به شی) د دوی تعلقات د یو بل سره۔

ځکه الله تعالیٰ د تمنا کولو نه پاک دے۔ یَرَی په دے کښ دوه توجیه دی اول داچه
دا د رؤیت د سترګو نه اخستلے شوے دے یو فاعل غواړی او یو مفعول۔
دویم داچه دا د رویت علمیه نه اخستلے شوے دے په معنی د علم دے یو فاعل
او دوه مفعول غواړی۔ الَّذِينَ ظَلَمُوا، فاعل د یَرَی دے۔ ظلم نه مراد شرک
دے په اتخاذ د انداد سره۔ إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ، د دے نه مخکښ مفعول د یَرَی
پټ دے په اوله توجیه سره یعنی (حال انفسهم) او اِذْ متعلق دے په حال
پورے اِذْ چه داخل شی په مضارع باندے نو په معنی د اِذَا سره وی او اِذَا
وقتیه مصدریه دے۔ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا، په اوله توجیه کښ د دے نه مخکښ
جزاء د لَو پټه مراد ده یعنی لَعَلِمُوا او أَنَّ الْقُوَّةَ الخ مفعول دے د پاره د لَعَلِمُوا
او دالیل او علم په ورځ د قیامت کښ مراد دے او دا قول د عطاء نه روایت
دے۔ قوت په معنی د قدرت او تمکّن سره دے یعنی قدرت په هر څیز
باندے خاص الله تعالیٰ لره دے د دوی شرکاء د هغه سره شریک نه شی
کیدے۔ وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ، دا عطف دے په ان القوة باندے او شدید
العذاب نه مراد شدت د عذاب او همیشوالے دے د پاره د مشرکانو۔ او په
دویمه توجیه (چه رؤیت په معنی د علم سره شی) نو أَنَّ الْقُوَّةَ معطوف علیه
او معطوف قائم دے په ځائے د دوه مفعولونو د یَرَی د پاره او جزاء په آخر
کښ پټه مراده ده یعنی (لَمَّا أَشْرَكُوا او لَمَّا اتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ أَنْدَادًا)۔
۱۶۶ إِذْ دا بدل دے د إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ نه یعنی وخت د لیدلو د عذاب
وخت د براءت د الهو د دوی دے او په دے کښ دفع د یو وهم ده هغه
دا دے چه آیا د دوی نه به عذاب د دوی دا الهه دفع کړی؟ جواب او شو چه
هغوی به ترینه براءت اوکړی عذاب ترینه نشی دفع کولے۔
تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا، براءت وئیلے شی ځان د ذمه وارئ او تاوان نه بچ کول۔
الَّذِينَ اتُّبِعُوا عام دے ملائیکو او جنات او صالحینو او ناکاره متبوعینو ته

وَقَالَ الَّذِيْنَ اتَّبَعُوْا لَوْ اَنَّ لَنَا كَرَّةً

او اوبه وائی تابعداران د دوی ارمان دے چه وے مونږ لره دوباره تلل دنیا ته

فَنَتَبَرَّاَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا ؕ كَذٰلِكَ

نو جدائی به اوکړو مونږ د دوی نه لکه چه دوی جدائی اوکړه زمونږ نه۔ دغسې

يُرِيْهِمُ اللّٰهُ اَعْمَالَهُمْ حَسَرٰتٍ عَلَيْهِمْ ؕ

خائی به دوی ته الله تعالیٰ عملونه د دوی د پاره د افسوسونو په دوی باندې

وَمَا هُمْ بِخٰرِجِيْنَ مِنَ النَّارِ ﴿۱۶۷﴾ ع

او نه به وی دوی وتونکی د اور نه۔

(یعنی ناکاره ملیان او پیران) او دا قول ابن کثیر او قرطبی ذکر کړے دے۔ نو براءت د نیکانو په اظهار د عدم علم د هغوی سره دے په اعمالو د مشرکانو باندے او براءت د بدانو انکار کول دی د ګمراه کولو د تابعدارونه او په هغوی باندے د زور کولو ته۔ او د اول تصدیق په سورة فاطر ۱۴ او سورة احقاف ۵ ۶ او سورة مریم ۸۲ او سورة یونس ۲۸ ۲۹ کښ دے او د دویم تصدیق په سورة سبا ۳۱ ۳۲ او سورة ابراهیم ۲۱ ۲۲ او سورة عنکبوت ۲۵، سورة ص ۶۰، سورة احزاب ۶۸ کښ دے۔ مِنَ الَّذِيْنَ اتُّبِعُوْا، مراد د دے نه مریدان شاګردان او مقلدین د هغوی دی او اتباع نه مراد دلته تقلید (بے دلیله تابعداری) دے۔ وَرَاَوُا الْعَذَابَ، دا جمله حال دے یا عطف دے په تبرء باندے۔ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْاَسْبَابُ، مراد د اسباب نه حیلے او طریقے د خلاصئ دی د عذاب نه یا مراد د دے نه تعلقات د دوستانے او د پیرئ مریدئ او شاګردئ استاذئ دی چه هغه ټول به ختم شی۔

۱۶۷ په دے کښ ذکر د ارادے د براءت کولو د تابعدارو نه د خپلو متبوعینونه هر کله چه د دوی د براءت مطلب دا دے چه د هغوی تابعداری او عبادت کول پریږدئ او د هغے ځائے خو دنیا ده د دے وجے نه دوی دنیا ته واپسی غواړی۔ كَمَا تَبَرَّءُوْا مِنَّا دلته تشبیه په نفس براءت کښ ده اګرچه طریقے د براءتونو د دوی او ځایونه د براءتونو جدا جدا دی او دا تمنا او وعده د دوی په دروغه سره ده په دلیل د سورة انعام ۲۸ سره۔

كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ، كه يُرِيهِمْ د اراءتِ علمی نه وی نو حَسَرَاتٍ دریم مفعول دے او که رؤیتِ بصری نه وی نو دا حال دے او په معنیٰ کښ ندامت کولو دے یا مفعول له دے. أَعْمَالَهُمْ مراد د دے نه د دوی ټول اعمالِ سیئه دی لکه شرک کول، انکار د قرآن نه، انکار د رسول او د هغه د اتباع نه او انکار کول د قیامت نه. او نورے کوتاهئ کول په حقوقو د الله تعالیٰ کښ یعنی د دے ټولو اعمالو په ناکاره عاقبتونه دوی ته شکاره کړی نو دوی به د هغے په کولو باندے پښیمانه شی لکه په سورة حجر ۲ کښ افسوس کول دی په توحید منلو پسے او په سورة انعام ۲۷ کښ افسوس کول دی په خپل تکذیب او انکار د ایات الله نه او په سورة فرقان ۲۷ کښ افسوس کول په انکار او مخالفت د رسول نه او په سورة انعام ۳۱ کښ افسوس په انکار د قیامت او په سورة زمر ۵۶ کښ افسوس کول په کوتاهئ د حقوق الله پسے دی او د دے افسوسونو د وجے نه قیامت ته یوم الحسرت وئیلے کیږی.

وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ په دے سره وهم دفع کوی چه په دے حسرتونو کښ دوی ته فائده رسیدلے شی یا د اُور د جهنم نه وتلے شی نو جواب او شو چه نه.

**فائده:-** د عابدانو او معبودینو او تابعینو او متبوعینو د براءت متعلق درے قسمه ایاتونه دی اول قسم هغه معبودان چه صالحین دی هغوی عابدانو ته هیڅ امر د خپل عبادت نه دے کړے او د هغوی د حال نه خبر هم نه دی دا په ډیرو ایاتونو کښ دی سورة یونس ۲۸، ۲۹، سورة نحل ۸۶، ۸۷، سورة مریم ۸۱، ۸۲، سورة فرقان ۱۷، ۱۸، سورة قصص ۶۴، سورة سبا ۴۱، ۴۲، سورة احقاف ۵، ۶ او ۲۸. دویم قسم هغه معبودان چه ګمراه دی او خپلو مقلدینو ته یې لار د ګمراهئ ښودلے ده دا هم په ډیرو ایاتونو کښ دی. سورة اعراف ۳۸، ۳۹، سورة ابراهیم ۲۱، ۲۲، سورة شعراء ۹۶، ۹۷، سورة قصص ۶۲، ۶۳، سورة عنکبوت ۲۵ سورة احزاب ۶۷، ۶۸، سورة سبا ۳۱، ۳۲، سورة صافات د ۲۸ نه سورة ص ۵۹، ۶۰، سورة مؤمن ۴۷، ۴۸. دریم قسم دا ایاتونه چه دواړه قسمونو ته شامل دی د هغے نه یو دا ایت کریمه دے لکه چه دا ابن کثیر او قرطبی نه نقل کړے شو نو په دے ایت کښ رد دے په تقلید جامد باندے.

يَآأَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ

اے خلقو خورئ (حلال گنرئ) دَ هغے نه چه په زمکه کښ دی

حَلٰلًا طَيِّبًا ۖ وَّلَا تَتَّبِعُوا خُطُوٰتِ

حلال پاک او تابعداری مه کوئ دَ قدمونو (طریقو)

الشَّيْطٰنِ ۚ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ﴿١٦٨﴾

دَ شیطان۔ یقیناً دے ستاسو دَپاره دُشمن ښکاره دے۔

سـ۱۶۸ ربط هر کله چه مخکښ ئے رد او کړو په شرك فی التحلیل والتحریم بانډے په سبب دَ تقلید شرکی سره نو اوس تردید کوئ په تحریم لغیرالله بانډے۔ ابوحیان وئیلی دی چه دا آیت نازل شوے دے په رد دَ هرهغه چاچه حرام گنړی په خپل ځان بانډے هغه څیزونه چه الله تعالیٰ نه دی حرام کړی او دَ دے ډیر اقسام دی اول قسم په طریقه دَ جحود او انکار بانډے یعنی انکار کوی دَ تحلیل دَ الله تعالیٰ نه او په خپل خواهش بانډے څیزونه په ځان بانډے حرام گنړی۔ دویم قسم هغه څیزونه چه نسبت ئے خپلو معبودانو ته کوی او په ځان بانډے ئے حرام گنړی لکه بحیره سائبه وصیله او حام او دَ دے دَ استعمال او خوراك نه ځان بچ ساتی ځکه چه دَ ضرر دَ معبودانو نه په زړه کښ ویره کوی۔ دریم قسم هغه څیزونه چه دَ رهبانیت دَ وجے په ځان بانډے حرام گنړی۔ مزیدار حلال خوراك او ښکلے پوشاك په ځان بانډے حرام گنړی لکه چه بعض پیران بخپله هم داسے کوی او په خپلو مریدانو بانډے هم حراموی۔ دا آیت په صیغه دَ يَآأَيُّهَا النَّاسُ سره دے ټولو ته شامل دے او په سورة مائده سـ کښ صِرف په آخری قسم بانډے رد دے چه سره دَ دعوے دَ ایمان نه دَ رهبانیت دَ وجے څیزونه حراموی دَ دے وجے نه هلته ئے په يَآأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا سره ذکر کړے دے۔ په دے سورت کښ دا يَآأَيُّهَا النَّاسُ دویم کرت دے په اول کښ رد وؤ عموماً په شرك فی العبادات بانډے نو په دے آیت کښ رد دے په عموم سره په شرك فی التحلیل والتحریم بانډے۔ كُلُوا په امر کښ مراد ایجاب دَ اکل نه دے بلکه ایجاب ئے دَ اباحت

إِنَّمَا يَأْمُرُكُم بِالسُّوءِ وَالْفَحْشَاءِ

یقیناً حکم کوی (په وسوسو سره) تاسو ته په بدو وینا کانو او په ناکاره کارونو

ک دے حرام کړے شوے څیزونو یعنی (حرام یَے مه ګنړئ).
مِمَّا فِي الْأَرْضِ، من تبعیضیه دے ځکه چه د ټولو څیزونو خوړل نشی کیدے یا مِن ابتدائیه دے. حَلٰلًا مفعول دے د کُلُوا یا حال دے د مَا فِي الْأَرْضِ نه.
طَيِّبًا، په حلال او طیب کښ ډیر اقوال دی اول دا چه په نیز د امام مالك رح د دواړو یوه معنی ده تو طیب تاکید دے د پاره د حلال. دویم دا چه په نیز د امام شافعی رح طیب په معنی د لذت والا دے نو کوم خوراک چه سخا شوے وی د هغے نه منع شویٰ. دریم زمخشری وئیلی دی چه طیب هغه دے چه پاك وی د هرے شبهے نه. څلورم سجاوندی وئیلی دی چه حلال هغه دے چه شرعے د هغے اجازت ورکړے وی او طیب هغه دے چه طبیعت یَے بنه ګنړی. پنځم حلال هغه دے چه مفتی فتوٰی ورکړی د هغے د حِل د پاره او طیب هغه دے چه زړه شهادت اوکړی د هغے د حلالوالی (البحر المحیط). شپږم حلال هغه دے چه ټول جنس یَے حلال وی او طیب هغه دے چه حق د بل چا ورپورے متعلق نه وی (نیشاپوری). اُوم حلال هغه دے چه شرعے د هغے اجازت ورکړے وی او طیب هغه دے چه بدن او عقل ته ضرر او نقصان نه ورکوی (ابن کثیر). وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطٰنِ، په دے کښ اشاره ده چه د الله تعالیٰ حلال لره حرامول د شیطان اتباع ده نو دا ګناهِ کبیره او شرك دے. خُطُوٰتِ جمع د خطوة ده هغه مقدار ته وئیلے شی چه د دواړو خپو تر مینځه وی په وخت د رفتار کولو کښ. دلته د عموم د لفظ د وجے نه قرطبی وئیلی دی چه ماسیوی د سنتو او د شرائعو نه دا ټولو بدعاتو او ګناهونو ته شامل دے او وئیلی دی چه په کوم څیز باندے شریعت ورود نه وی کړے نو هغه شیطان ته منسوب وی ابن جریر په سند سره د ابو مجلز نه روایت کړے دے چه مراد د دے نه نذرونه کول دی په ګناهونو کښ.
إِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ، دا لفظ لازمی دے په معنی د ښکاره دشمنئ والا یا متعدی دے یعنی دشمنی ښکاره کوونکے -

# وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۶۹﴾

او دا چه جوړوئ په الله تعالیٰ باندے هغه خبرے چه تاسو پرے پوهه نه لرئ۔

ف ۱۶۹ دا دلیل دے د هغه د دشمنئ د ښکاره والی۔ او د شیطان د وسوسئ درے اقسام په ترتیب سره ذکر کړی دی۔

اول اَلسُّوْٓءِ عام دے هر ګناه صغیره او کبیره ته۔ ګناه ته سوء د دے وجے نه وئیلے شی چه په عاقبت کښ د هغے کوؤنکے خفه کوی۔ دویم اَلْفَحْشَآءِ خاص دے په هغے پورے چه سره د شرعے د نهی نه عقل هم هغه بد ګنړی لکه غلا، زنا، دروغ او بهتان وغیره۔ او قرطبی وئیلی دی چه اَلسُّوْٓءِ هغه ګناهونه دی چه حد په کښ نه وی مقرر شوے او فحشاء هغه دی چه په هغے باندے حد شرعی مقرر وی۔ دریم وَاَنْ تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ، دا د ټولو نه زیات قبیح دے ځکه الله تعالیٰ ته د هغه څیز نسبت کول چه د هغه نه ثابت نه وی په وحی سره دا اعظم ګناه دے او دا خاص طریقه د وسوسے د شیطان ده چه هغه خائسته کول کوی د ګناهونو په دروغه نسبت کولو سره الله تعالیٰ ته یعنی ګناه لره طاعت ښکاره کوی۔ او تَقُوْلُ عَلَى اللّٰهِ د هر مشرک او بدعتی طریقه ده د تَقُوْلُوْا په صله کښ عَلٰی دلالت کوی په دروغو جوړولو باندے۔ لَا تَعْلَمُوْنَ، معلوم شرعی هغه دے چه په وحی جلی یا خفی سره ثابت وی نو چه په وحی سره ثابت نه وی او د هغے نسبت کوی الله تعالیٰ ته یا د هغه رسول ته نو دا ډیره غټه ګناه ده۔ لفظ د اِنَّمَا چه د حصر د پاره دے دلالت کوی چه وسوسے د شیطانانو د دے درے څیزونو نه بهر نه دی۔

سوال:۔ یَاْمُرُکُمْ دلیل دے چه شیطان هر یو کار په صیغه د امر سره ذکر کوی او حال دا دے چه دا سے نه ده بلکه اکثر وخت د فرائضو او واجباتو نه منع کوی؟۔

جواب ۱ بیضاوی وئیلی دی چه امر کنایه ده د خائسته کولو او د هغے د صفت کولو نه۔

جواب ۲ امر په اصل کښ طلب ته وئیلے شی نو شیطان د هر ګناه او د اغواء د انسان طلب کوی نو تاویل کولو د امر ته ضرورت نیشته۔

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ

او هغه وخت چه اُوئیلے شي دوی ته تابعداري اوکړئ دَ هغه څه چه نازل کړیدي الله تعالیٰ

قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ

دوی وائي (نه) بلکه تابعداري کوو مونږ دَ هغې طریقې چه موندلي دي مونږ په هغې باندے

آبَاءَنَا ۗ أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ

مشران خپل - اګر چه وو دا مشران دَ دوی داسے چه نه پوهیدل

شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾ وَمَثَلُ الَّذِينَ

په هیڅ څیز باندے او نه ئې لار موندلے وه - او حال (دَ دعوت کوونکي) کافرانو

ربط: روستو دَ تردید دَ شرک نه رد دے په دلیل دَ مشرکانو په عمل دَ مشرانو خپلو - وَإِذَا قِيلَ، إِذَا او صیغه دَ مجهول دَ قیل دَ تعمیم دَ پاره دي یعني په هر وخت کښ هر څوک چه دوی ته داسے دعوت ورکړی - لَهُمْ په دیکښ دَ مفسرینو درے اقوال دی - اول دا چه ضمیر راجع دے مَن یتخذ من دون الله اندادا ته - دویم دا چه راجع دے النَّاس ته په يَا أَيُّهَا النَّاسُ کښ - دریم قول دا دے چه راجع دے یهودیانو ته چه هغوی ته نبی صلی الله علیه وسلم دَ دینِ اسلام دعوت ورکړو نو هغوی اُوئیل چه زمونږ مشران ښه عالمان او غوره خلق وُو مونږ دَ هغوی تابعداري کوُو نو دا ایت نازل شو او دَ دے دریو اقوالو په مینځ کښ اختلاف نیشته ځکه چه دَ مَن یتخذ من دون الله او دَ الناس مصداق هم یهودیان وُو - اتَّبِعُوا مَا أَنزَلَ اللَّهُ، مراد دَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ نه وحي جلي او خفي دواړه ده - او وحي خو دلیل دے په شرع کښ او په دلیل پسے تللو ته اتباع (په شرع کښ) وئیلے شي او مَا أَنزَلَ اللَّهُ کښ توحید ایمانیات تحلیل او تحریم او ټول دین داخل دے - قَالُوا بَلْ دا لفظ دَ اضراب (اعراض) دَ پاره دے یعني دَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ اتباع نه کوُو بلکه نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا دَ الفاء نه مراد موندل دي او دا لفظ اکثر په امورِ معقوله کښ استعمالیږی - آبَاءَنَا راغب وئیلي دي چه مراد دَ دے نه دَ دوی علماء دي صِرف پلاران نیکونه مراد نه دی - أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ، همزه دَ پاره دَ استفهام توبیخي دے او واو په نیز دَ زمخشري حالیه دے او په نیز دَ ابن جریر دَ پاره دَ عطف دے او

عبارت کښ لفظ دَ یتبعونهم دَ وَلَوۡ نه مخکښ پټ دے۔ اولَوۡ وصلیه دے جزاء نه غواړی یا شرطیه دے جزاءئے پټه ده اول قول غوره دے ځکه په دیکښ مبالغه او تعمیم دے۔ ابوحیان وئیلی دی چه دا رد دے په اتباع دَ ابا ؤ دَ دوی باندے په هر حال کښ خوچه بے دلیله وی حتّٰی که چه په داسے حالت کښ خو اتباع دَ دوی بالکل مناسب نه ده چه هغه حالت دَ لَا یَعۡقِلُوۡنَ اه دے۔

لَا یَعۡقِلُوۡنَ شَیۡئًا، مراد دَ دے نه علم دَ حق دے لیکن شَیۡئًا ئے عام دَ پاره دَ مبالغے وئیلے دے۔ وَلَا یَهۡتَدُوۡنَ، اهتداء نه مراد په وحی سره تلل او تابعداری کول دی یعنی علم دَ حق او عمل دَ حق پکښ نیشته۔

فائده: داسے ایاتونه چه په هغے کښ دا استدلال دَ جاهلانو ذکر دے دادی سورة مائده ۱۰۴ او سورة لقمان ۲۱ او سورة زخرف ۲۲ ۲۳۔

سوال:۔ په دغه دریوایاتونو کښ وجدنا ذکر دے او په دے ایت کښ اَلۡفَیۡنَا نو دَ دے څه حکمت دے؟۔

جواب:۔ الفاء خاص دے په امور معقوله پورے او وجدان عام دے په امور محسوسه او معقوله دواړوکښ استعمالیږی نو په دے سورت کښ مخکښ محبت دَ انداد و ذکر شو او محبت امر معقولی دے دَ دے وجے نه اَلۡفَیۡنَا ذکر شو او په هغه نورو سورتونو مکیو کښ هم مخکښ امور معقوله دَ ایمان ذکر دی او سورة مائده کښ ورسره امور محسوسه (بحیره سائبه وغیره) ذکر دی نو هلته ئے دَ وجدنا عام لفظ ذکر کړو۔

سوال:۔ سورة مائده کښ لا یعلمون ذکر دے او دلته لَا یَعۡقِلُوۡنَ ؟۔

جواب:۔ دَ دے دَ مخکښ پشان جواب دے چه علم عام دے دَ امور محسوسه او معقوله دواړو ته شامل دے او سورة مائده کښ دواړه څیزونه ذکر وو او عقل خاص دے په امور معقوله پورے او محبت امر معقول دے نو دلته ئے لَا یَعۡقِلُوۡنَ ذکر کړو۔

سوال:۔ دلته او سورة لقمان او زخرف کښ مَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ ذکر دے او سورة مائده کښ ورسره والی الرسول ذکر دے؟

جواب:۔ ځکه چه په دے سورت او لقمان او زخرف کښ ایمان او امور دَ عقیدے ذکر وو دَ هغے دَ پاره مَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ مناسب دے او سورة مائده کښ اعمال او جزئیات او آداب ذکر دی نو دَ هغے دَ پاره دَ مَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ سره

والی الرسول هم مناسب دے۔
**فائده ع۲:** د دے ایت په تفسیر کښ ډیرو مفسرینو په تقلید باندے رد او تفصیل لیکلے دے سمرقندی حنفی په تفسیر بحرالعلوم کښ وئیلی دی "نَهَاهُمْ عَنِ التَّقْلِيْدِ وَاَمَرَهُمْ بِالتَّمَسُّكِ بِالْحُجَّةِ" (منع کړیدی دوی لره د تقلید نه اوحکم ئے کړیدے دوی ته په حجت باندے په دلیل نیولو سره)۔ ابن عطیه په المحرر الوجیز کښ وئیلی دی او قرطبی هم د هغه نه نقل کړے دے چه قُوَّةُ اَلْفَاظِ هٰذِهِ الْاٰيَةِ تُعْطِى اِبْطَالَ التَّقْلِيْدِ" (پاښه الفاظ د دے ایت فائده رکوی چه تقلید باطل دے)۔ ابو حیان اندلسی وئیلی دی چه په دے ایت کښ دلیل دے په بدئ د تقلید باندے او د ابن عطیه نه نقل دے چه اجماع منعقد ده په ابطال د تقلید باندے په عقیده وکښ (البحر المحیط)۔ او الوسی وئیلی دی چه په دے ایت کښ منع ده د تقلید نه د هغه چا د پاره چه قدرت لری په فکر کولو او هر چه اِتباع ده د بل چا په دینی کارونو کښ روستو د علم نه په دے دلیل سره چه دا حق دے نو دا په حقیقت کښ اتباع ده د مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ او نه دے تقلید مذموم۔ او قرطبی په پنځمه مسئله کښ لیکلی دی چه تقلید طریقه د علم نه ده او نه دا رسوونکے دے علم ته نه په اصولو کښ او نه په فروعو کښ او جاهل حشویه او ثعلبیه وئیلی دی چه دا طریقه د پیژندلو د حق ده او واجب ده۔ نو د دے وجے نه زه هم د تقلید د مسئلے په باره کښ په اختصار سره شپږ مباحث ذکر کوم۔
**مباحث په تقلید کښ:۔ اول بحث** په معنی لغوی او عرفی د تقلید کښ دے۔ قرطبی وئیلی دی چه دا په لغت کښ اخستلے شویدے د قلادے د تعبیر نه یعنی کله چه په غاړه د اوښ کښ رسئ واچولے شی د هغه د راخکلو د پاره هغے ته قلاده وئیلے شی نو ګویا که مقلد خپل ټول اختیار ورکړیدے هغه چا ته چه دے راکاږی کوم خوا چه اوغواړی او قرآن کریم کښ قلائد نه مراد هغه څاروی دی چه د هغوی غاړے ته څه امیل واچولے شی او حرم مکه ته بوتلے کیږی۔ او کله په معنی د الزام د عمل راځی په بل چا باندے لکه چه وئیلے شی چه قَلَّدَهُ الْعَمَلَ (کار ئے د هغه په ذمه او په غاړه کړو) او په عرف کښ د دے ډیر تعبیرات دی۔ قرطبی وئیلی دی حقیقت د تقلید قبلول د قول دی بغیر د حجت نه۔ دویم، اعتقاد د صحت د فتوے د هغه چا د

چه صحت دَ قول دَ هغه معلوم نه وی. په اوله معنیٰ کښ چه بغیر دَ دلیل نه صفت اوکړځی دَ قول نو دغه تقلید تول مذموم دے ځکه چه بے دلیله قول قبلول په شریعت کښ حرام دی الله تعالیٰ فرمائیلی دی وَلَا تَقْفُ مَا لَيْسَ لَكَ بِهٖ عِلْمٌ سورة اسراء ۳۶ اوکه بغیر دَ دلیل نه متعلق شی په قبول پورے نو بیا تقلید منقسم کیږی دوه قسمونو ته اول محمود دویم مذموم لکه چه روستو ذکر کیږی. او ابن خویز منداد نه ابن قیم نقل کړی دی چه تقلید رجوع کول دی داسے قول ته چه دَ قائل په هغے باندے حجت نه وی او دا منع دے په شریعت کښ. او په بل ځائے کښ یئے وئیلی دی چه هر هغه څوک چه ته دَ هغه دَ قول تابعداری کوے بغیر دَ دے نه چه په تا باندے دَ هغه قول واجب وی په دلیل واجبوونکی سره نو ته دَ هغه مقلد یئے (رسالة التقلید لابن قیم). او ابن امیر الحاج په التقریر والتحبیر شرح دَ تحریر دَ ابن همام کښ وئیلی دی چه تقلید عمل کول دی په قول دَ هغه چا باندے چه دَ هغه قول حجت نه دے په شرع کښ بغیر دَ دلیل نه او مراد دَ دے نه عمل شرعی دَ جواز او عدم جواز دے او دا تعریف جامع مانع دے. ځکه په دے سره عمل کول په قول دَ طبیب په باره دَ علاج کولو کښ خارج شو ځکه چه هغے ته عمل شرعی نه وئیلے کیږی دارنګ تعلیم ورکول دی دَ استاذ بچو ته نو هغے ته امر تعلیمی وئیلے شی دَ جواز او عدم جواز سره یئے تعلق نیشته. دارنګ عمل کول دَ قاضی په قول دَ شاهدینو عدلینو (په بعضِ احکامو کښ) او په قول دَ یو شاهد عادل (په بعضِ احکامو کښ) خارج شو ځکه چه قول دَ شاهد حجت شرعی دے. دارنګ عمل کول په آیت قرآنیه او په حدیث صحیح مرفوع باندے تقلید نه دے بلکه هغه خو حجت شرعیه دے. دارنګ عمل کول په قول دَ صحابی باندے تقلید نه دے ځکه قول دَ صحابی په خپلو شرطونو سره حجت دے په شرع کښ په نیز دَ اهلِ سنت والجماعة سره هاں عمل په قول دَ تابعی باندے په دے کښ اختلاف دے دَ اهلِ علمو نو کوم خلق چه دَ تقلید دَ اثبات دَ پاره دلیل نیسی په قبولیت دَ قول دَ طبیب بے دلیله یا په قول دَ معلم (استاذ) یا په قبولیت دَ قول دَ ګواهانو یا په قبولیت دَ قول دَ صحابی نو دا خلق دَ تقلید په معنیٰ باندے نه پوهیږی یا دوی تلبیس کوی.

**سوال:**:- د امام شافعیؒ نه په یو مسئله کښې نقل دے چه ما تقلید کړے د عمر رضی الله عنه او ما تقلید کړیدے د قول د عثمان رضی الله عنه ؟-

**جواب:**:- ابن قیم په اعلام الموقعین ص ۱۲۲/۲ کښې وئیلی دی چه د امام شافعی مراد په دے کښې تقلید معروف نه دے بلکه په معنی د اتباع دے- او اتباع په لغت کښې تلل دی په عمل د بل چاپسے که خیر وی او که شر وی او د شرعے په اصطلاح کښې اتباع عمل کول دی په حجت شرعیه باندے هاں کله اتباع په ځائے د تقلید او تقلید په ځائے د اتباع کښې مجازًا استعمالیږی- لکه په دے ایت کریمه کښې د الله تعالیٰ د طرف نه امر دے په اتباع د مَا اَنْزَلَ اللهُ سره او باطل پرستو هم خپل عمل ته اتباع وئیلی دی لکه بَلْ نَتَّبِعُ مَا اَلْفَيْنَا اه- او دا سے فرق ابن قیم په اعلام ص ۱۶۸/۲ کښې او ابن ابی العز په رسالة الاتباع ص ۲۳ کښې ذکر کړے دے-

**دویم بحث په اقسامو د تقلید کښې**:- اهلِ علمو د تقلید څلور قسمونه لیکلی دی تقلید محمود او تقلید مذموم مطلق تقلید او تقلید شخصی- د اول قسم دپاره څلور مصداقات دی- اول مصداق تقلید کول د داسے عالم چه خپل کوشش ئے خرچ کړے وی په اتباع د مَا اَنْزَلَ اللهُ کښې لیکن پټ پاتے شی د دهٔ نه بعضِ مسائل نو دے په هغے کښې تقلید اوکړی د هغه چاچه د دهٔ نه زیات عالم وی- دویم مصداق تقلید کول دی د بعضِ اهلِ علمو په داسے مسائلو کښې چه په هغے کښې نص نه وی نو تقلید اوکړی د قول د مصداق، د هغه چاچه د دهٔ نه زیات عالم وی او دے ته وئیلے شی تقلید په غیر منصوصی مسائلو کښې چه هغے ته مجتهدات او قیاسیات هم وئیلے شی دا دواړه ابن قیم په اعلام ص ۲۴۱/۲ کښې لیکلی دی- دریم مصداق، تقلید کول د یو عالم د بل عالم په یو حادثه کښې چه دهٔ باندے په هغے کښې دلیل پټ پاتے شوے وی او جد وجهد اوکړی لیکن مطلوب ته اونه رسیږی او وخت تنګ وی هسے نه چه یو عبادت تر ینه فوت شی- څلورم مصداق، تقلید د هغه عامی ادامی چه هیڅ نصوص نه پیژنی نو تپوس کوی د داسے عالم نه چه په دغه زمانه او علاقه کښې لوئے او پوهه عالم وی او اکثر خلق (مسلمانان) په هغه باندے متفق وی نو عمل اوکړی د هغه په قول باندے لیکن شرط د دے دا دے چه روستو دهٔ ته معلومه شی چه دغه قول د دلیل شرعی نه مخالف دۀ نو

واجب ده په دهٔ باندے چه هغه په پریږدی نوکه پریږدی یے نو ځکه تقلید محمود دهٔ او که هغه نه پریږدی نو دا تقلید مذموم دے (قرطبی او ابن ابی العز او امام ولی الله دهلوی)

او تقلید مذموم دَ یاره نهٔ مصداقات دی- اول اعراض کول دَ مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ نه مطلقاً او اکتفاء کول په قول دَ خپلو مشرانو باندے- دویم تقلید کول دَ هغه چاچه تقلید کوونکے نه پیژنی چه دغه عالم اهل دے چه دَ دهٔ په قول باندے دِے عمل اوکړے شی- دریم روستو دَ ښکاره کیدلو دَ دلیل او حجت نه په خلاف دَ قول دَ مقلّد کښ بیا هم دَ هغه تقلید نه پریږدی- ابن قیم وئیلی دی دا دریے واړه قسمونه په دے ایت کښ داخل دی- څلورم تقلید کول دَ هغه ملا یانو مشرانو چه دَ هغوی ګمراهی ښکاره وی نو دا ایت صراحتاً په هغے باندے دلیل دے- پنځم مقلّد ګمان کوی چه زما امام (مقلّد) دَ خطایئ او غلطئ نه پاك او معصوم دے- شپږم چه مقلِّد خپل امام په مرتبه دَ شارع کښ کنړی چه اختیار دَ جواز او عدم جواز دَ هغه سره دے او په دے باندے ایت دَ سورة شوریٰ دلالت کوی چه اَمْ لهم شرکاء شرعوالهم من الدین مالم یاْذن به الله- اُوم عمل په یو حدیث صحیح باندے نه کوی په دے عذر سره چه زمونږ دَ امام په مذهب کښ دا نیشته لکه اشاره په تشهد کښ نه کوی په دے عذر سره چه زمونږ امام یا زمونږ اُستاد دا نه کوله او دغسے نور- اتم دَ یاره دَ عمل کولو په قول دَ خپل امام او استاد باندے دَ نصوصو بعید تاویلات کوی یا هغه نصوص نه منسوخ وائی بغیر دَ دلیل نه (دا روستنی مصداقات مولانا تقی په رساله دَ تقلید کښ لیکلی دی) او دا رنګ امام ولی الله په حجة الله البالغه ص۱۵۵ کښ دا سے لیکلی دی- نهم یو حنفی جائز نه ګنړی چه دَ یو شافعی عالم نه دَ څه مسئلے تپوس اوکړی دا رنګ بر عکس او دا رنګ اقتداء دَ حنفی په شافعی امام پسے جائز نه ګنړی یا نکاح په مینځ دَ حنفیه ښځے او شافعی سړی کښ جائز نه ګنړی- او دا اقسام دَ دے زمانے په اکثرو عوامو او په متعصبینو علماؤ کښ موجود دی

او تقلید مطلق هغه دے چه یو شخص په تقلید کولو سره نه معیّن کوی لیکن که چرے په مذموم طریقو سره تقلید کوی نو مذموم دے

اوکه محمود طریقو سره تقلید کوی نو محمود دے۔

او تقلید شخصی او دَ دے بل نوم تقلید جامد دے، دَ دے دا معنی نه ده چه په یو مسئله یا دوه مسئلو کښ دَ یو شخص تقلید اوکړی او نورو مسئلو کښ دَ بل شخص تقلید کوی بلکه دَ دے معنی ابن قیم ذکر کړے ده چه دَ یو شخص معین هر قول او عمل باندے عمل کوی که دَ قرآن او سنت سره موافق وی نو قرآن او سنت قبلوی او که دَ هغے نه مخالف وی نو قرآن او سنت ته رجوع نه کوی بلکه په مختلف عذرونو او بهانو سره دَ هغه خپل امام وغیره قول له ترجیح ورکوی (اعلام الموقعین ص۱۷۰/ج۲ ص۲۳۴/ج۲) دا رنګ هر کله چه دوئ ته یو حدیث صحیح ثابت شی او دَ هغے مخالف بل دغسے حدیث (دَ صحت په لحاظ سره) موجود نه وی لیکن دَ دوئ امام دَ هغے موافق قول نه وی کړے نو دے وائی چه زما امام زما نه ښه پوهیدلو چه هغه په دے حدیث باندے عمل نه دے کړے نو زه هم نه کوؤم۔ دا رنګ صرف خپل امام په حق باندے ګڼړی او نور امامان ټول خطا ګڼړی او دَ هغوی دَ اقوالو نه نفرت کوی۔ که ځا سوچ اوکړو نو اکثر عوام او متعصبین به په دے طریقه باندے اوموہی بلکه صرف دَ مذهب امام نه بلکه دَ خپل پیر او شیخ او امیر په باره کښ هم دا سے عقیده کړی۔

**دریم بحث۔** دلیلونه دَ پاره دَ جواز دَ تقلید:- اول په سورة نساء ۵۹ دویم په سورة نساء ۸۳ دریم په سورة توبه ۱۲۲ څلورم په سورة نحل ۴۳ پنځم په سورة انبیاء ۷ کښ دی لیکن انصاف دا دے چه په ټولو آیاتو کښ اتباع دَ دلیل یا دَ تقلید محمود مراد ده دا رنګ کوم دلیلونه چه دَ اثبات دَ تقلید شرعی دَ پاره پیش کولے شی نو هغه تقلید دَ صحابه کرامو دے او مخکښ ذکر شوه چه تقلید دَ صحابی تقلید معروف نه دے بلکه اتباع ده۔ بعضو کسانو دَ تقلید شخصی دَ اثبات دَ پاره حدیث دَ بخاری پیش کړے دے چه په هغے کښ طواف الوداع په حائضه باندے واجب وئیلی دی او مدینے والو دَ زید بن ثابت په قول باندے عمل کړے وؤ او قول دَ ابن عباس رضی الله عنهما باندے عمل نه کوؤ لیکن په دے سره تقلید نه ثابتیږی ځکه چه دا اتباع دَ قول دَ صحابی ده دویم په دے سره تقلید شخصی خو قطعاً نشی ثابتیدلے ځکه دَ دے حدیث په آخر کښ راغلی دی چه دوی ته ام سلمه رضی الله عنها حدیث مرفوع پیش کړو (چه حائضے ته طواف الوداع معاف دے) نو مدینے والو قول

دَ زید بن ثابت پرېښودلو بلکه زید بن ثابت رضی الله عنه هم دَ خپل قول نه رجوع اوکړله.
**څلورم بحث.** دلیلونه دَ منع کولو دَ تقلید:- اول دلیل دا ایت دَ سورة بقره اودَ سورة مائده ۱۰۴ اودَ سورة لقمان ۲۱ اودَ سورة زخرف ۲۲، ۲۳ او محکمین اقوال دَ مفسرینو دَ دے ایت په شرح کښ ذکر کړے شوی دی چه هغوی وئیلی دی چه دا ایت دلالت کوی په منع دَ تقلید باندے.- دویم دلیل بقره ۱۶۵ اودَ هغه ایت تفسیر هم تیر شوے دے (هلته یئے اوګورئ).- دریم دلیل سورة نساء ۶۱ په دے ایت کښ دَ منافقانو دا صفت ذکر دے چه هغوی ته دعوت دَ قرآن او سنت ورکړے شی نو هغوی ترینه مخ ګرځوی او دَ تقلید بهانه کوی.- څلورم دلیل سورة اسراء ۳۶ دَ هغے تفسیر په هغه ځائے کښ ذکر کړے شوے دے چه دَ لا تقف یو معنی منع ده دَ تابعدارئ کولو نه او ما لیس لك به علم کښ دَ علم نه مراد دلیل شرعی دے یعنی بے دلیله خبرے پسے تابعداری مکوه او دَ دے وجے نه تقلید ته علم نشی وئیلے کیدے او مقلد باندے دَ عالِم اطلاق نه کیږی یعنی (چه مقلد وی نو هغه عالم نشی کیدے او چه عالم وی نو هغه به مقلد نه وی) (اعلام الموقعین ص۷/۱ او ص۴۵/۱).- پنځم دلیل سورة اعراف ۳ دے نو دَ ایت په تفسیر کښ مفسرینو لیکلی دی چه مراد دَ ما انزل الله نه کتاب الله او سنت رسول الله صلی الله علیه وسلم دے او اتخاذ الاولیاء نه مراد دَ قرآن او سنت نه چه تجاوز او کړی او دَ بل چا اتباع کوی نو دا تقلید دے ځکه چه په دے حالت کښ پرېښودل دَ دلیل دی او دَ بل چا بے دلیله خبره منل دی.- شپږم دلیل سورة توبه ۳۱ او دَ دے په تفسیر کښ مفسرینو روایت دَ عدی بن ابی حاتم دَ ترمذی ذکر کړے دے چه حاصل یئے دا دے چه دلته دَ اتخاذ ارباب نه مراد حلال ګڼړل دَ هغه څیزونو دی چه حلال کړی دی ملایانو او پیرانو او حرام ګڼړل دَ هغه څیزونو چه حرام کړی دی ملایانو او پیرانو بغیر دَ دلیل شرعی نه.
او ابن عبد البر په جامع بیان العلم کښ وئیلی دی چه بدی ذکر کړے ده الله تعالیٰ دَ تقلید په ډیر ځایونو کښ دَ کتاب الله نه او دَ هغے نه یئے دا ایت کریمه هم شمار کړے دے.- او الوسی هم دَ دے ایت په تفسیر کښ بدی دَ تقلید ذکر کړیده.
**پنځم بحث.** احادیث او اقوال دَ مجتهدینو په منع کولو دَ تقلید کښ دی.
**حدیث اول:-** دارمی په سنن کښ حدیث مرفوع ذکر کړے دے چه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه ډیره زیاته چه زه یره کوم دَ هغے په خپل

امت پاتے دے نو هغه درے شیزونه دی زَلَّت (لغزش یعنی په یو مسئله کښ خوئیدل) د عالم او جګړے د منافق په قرآن سره او حرص د دنیا چه څټونه د خلقو قطع کوی۔ ابن قیم ذکر دے په شرح کښ وئیلی دی چه د لغزش د عالم نه یره کول په سبب د تقلید کولو د هغه په دغه لغزش کښ ده ځکه که تقلید ئے نه وے کړے نو د زَلَّت د عالم یره به نه وه ځکه چه زَلَّت خو ګناه نه دے۔

حدیث دویم:- بیهقی د حماد بن زید نه نقل کړی دی چه هلاکت دے تابعدارو لره د لغزشو د عالم ته چا تر ینه تپوس اوکړو چه څه وجه ده اے ابوالعباس نو هغه جواب اوکړو چه عالم یو خبره په خپلے رائے سره کړے وی نو روستو د هغے نه حدیث د نبی صلی الله علیه وسلم واؤری نو مخکنئ رائے پریږدی او حدیث پسے روان شی او تابعداران (تقلید کوؤنکی) د هغه په زړه رائے پاتے عمل کوی۔

حدیث دریم:- د ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل دے (چه هر صبا عالم شه یا متعلم شه او إمّعه مه ګرځه بیا ئے تفسیر د إمّعه اوکړو چه هغه څوک چه دین ئے د رجالو (عامو سړو) تابع کړے وی (رسالة التقليد لابن قیم)۔

حدیث څلورم:- چه الله تعالی علم د دین قبضه کوی په قبض کولو د علماؤ سره نو هر کله چه عالم پاتے نشی پاتے ئے نکړی نو خلق به جاهلانو پسے روان شی نو ګمراه به شی او نور خلق به هم ګمراه کړی (نور احادیث هم په دے باب کښ ډیر شته دے)۔

اقوال د ائمه مجتهدینو په رد د تقلید کښ:- قول د امام ابوحنیفه رحمه الله حلال نه دی هیچا لره چه عمل اوکړی په قول زمونږه څو پورے چه نه وی معلوم کړے هغه دلیل چه مونږ د هغے اخستل کړی وی۔ او وئیلی ئے دی چه حرام دے په هغه چا باندے چه نه پیژنی زما دلیل چه فتوی ورکوی زما په خبرو باندے ځکه چه مونږ بشر یو نن یوه خبره اوکړو او صباله د هغے نه رجوع کوؤ (رد محتار مشهور په فتاوی شامی ص۶۳/۱ ورسم المفتی ص۴/۱ واعلام الموقعین ص۳۰۹/۲) او دارنګ هغه وئیلی هر کله چه اُومومئ تاسو زما یو قول چه مخالف وی د کتاب او سنت نه نو په دیوال باندے ګوذار کړئ۔ دارنګ هغه وئیلی دی هر کله چه یو حدیث صحیح ثابت شی نو هغه زما مذهب دے۔ او شامی د علامه دمیری نه نقل کړی دی چه

بنا په دے قول بانده هرکله چه یو حدیث صحیح ثابت شی خلاف د قول د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه نه تو عمل به په حدیث بانده کولے شی او قول د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه به پریښودلے شی او په دے سره د هغه د مذهب نه خروج نه لازمیږی (شامی ص ۱۵۴ / ج ۱) او داسے اقوال د امام ابو یوسف رحمة الله علیه نه نقل کړے شوی دی۔ د امام شافعی رحمة الله علیه قول امام بیهقی د هغه نه نقل کړے دے چه مثال د هغه چاچه علم بے دلیله طلب کوی پشان د حال د شپے د خشاك راټولوونکے دے کیږے د خشاك به ئے تړلے دے کیدے شی چه په هغے کښ یو اژدها ماروی او دے اوچیچی او دے پرے پوهه نه وی۔ دا رنګ هغه وئیلی دی که تیر شوی وی عمل د یو امام بیا تاسو او مومئ خبر د نبی صلی الله علیه وسلم چه مخالف وی د عمل د هغه امام نه تو ضروری به خپل عمل پریږدئ د وجے د حدیث د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه۔ دا رنګ هغه وئیلی دی هرکله چه ته یو سنت او موے نو واجب دے په تا بانده خپل عمل پریښودل (چه خلاف وی د هغه سنت نه) او دا رنګ واجب دے په خلقو بانده پریښودل د هر هغه عمل چه د سنت نه خلاف وی (رساله ص ۴۲۴ ص ۴۲۵)۔

او قول د امام مالك رحمة الله علیه۔ هغه وئیلی دی چاچه پریښودلو قول د عمر رضی الله عنه د وجے د قول د ابراهیم نخعی نه (مثلاً) نو د دهٔ نه به طلب د توبے کیدے شی نو څه رنګ حال دے د هغه چاچه پریږدی قول د الله تعالیٰ او د رسول د هغه د وجے د قول د ابراهیم نخعی او د هغه د مثل نه۔ دا رنګ هغه وئیلی دی چه هرڅوك چه وی نو د هغه د قول او د عمل نه څه اخستلے شی او څه پریښودلے شی ماسیوا د خاوند د دے قبر نه (اشاره وه قبر د رسول الله صلی الله علیه وسلم ته او دے دغه وخت مسجد نبوی کښ ناست وو)۔ او قول د امام احمد بن محمد بن حنبل رحمة الله علیه دهٔ امام ابو داؤد ته وئیلی دی چه زما او د امام مالك او امام ثوری او امام اوزاعی تقلید مکوه او اخستل د هغه ځائے نه کوه چه د وی د هغے نه اخستل کړے وی۔ او وئیلی دی کموالے د فقاهت د سړی دا دے چه په دین کښ د نورو خلقو تقلید کوی۔ دا رنګ ابوداؤد وئیلی دی چه ما امام احمد ته او وئیل چه د امام اوزاعی ډیره تابعداری او کړم او که د امام مالك نو هغه راته جواب را کړو

چه د دے کسانو تقلید مه کوه او تابعداری کوه د هغے چه د نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه د صحابه کرامو نه نقل راغلے وی او بیا تابعی چه دے په هغه کښ د هر سړی اختیار دے (اعلام الموقعین ص۸۳/۲) دا رنګ د نورو ائمه او اهلِ علمو اقوال په دے باب کښ ډیر نقل کړے شویدی۔

**شپږم بحث۔ جوابات د بعضِ شبهاتو د مقلدینو:۔** اوله شبهه آیت د سورة بقره او مائده او لقمان او زخرف او توبه خو په باره د ګمراهانو مشرانو (احبار او رهبانو) کښ دی نو تقلید د امامانو د هدایت خو په هغے قیاس کول جائز نه دی؟ جواب دا دے ابن قیم په رسالة التقلید او ابن ابی العز حنفی په رسالة الاتباع کښ دا سے جواب کړے دے چه تشبیه په اعتبار د کفر د یو او ایمان د بل سره نه ده بلکه تشبیه په اعتبار د تابعدارئ کولو ده بغیر د حجت او دلیل شرعی نه۔ مثال دا دے لکه چه څوک د چا تقلید په کفر کښ اوکړی او بل کس ئے په فسق و فجور کښ اوکړی دا رنګ بل کس ئے په یو مسئله کښ تقلید اوکړی او حال دا چه هغه په هغه مسئله کښ خطا شوے وی نو په دے کښ هر یو ملامته دے په دغه تقلید بے دلیله باندے اګرچه په مراتبو د ملامتیا کښ به تفاوت وی۔ دویم جواب دا دے چه محشی په لفظ د لوکان کښ مونږ اشاره اوکړه چه لو وصلیه دلالت کوی په ثبوت د حکم باندے په محذوف په طریقه د ترقئ سره یعنی "أَيَتَّبِعُونَ الْآبَاءَ أَصْحَابَ الْهِدَايَةِ بِغَيْرِ دَلِيلٍ فَكَيْفَ إِذَا اتَّبَعُوهُمْ وَهُمْ ضَلَالٌ" (آیا دوی تابعداری د مشرانو کوی چه هدایت والا دی لیکن بغیر د دلیل نه او دا جائز نه دی نو څه رنګ به جائز شی چه د ګمراهانو تقلید کوی)۔

دویمه شبهه:۔ په سورة ق ۳۷ کښ لمن کان له قلبٌ نه مراد مجتهد دے او القی السمع نه مراد مقلد دے او په سورة ملک ۱۰ کښ نسمع نه مراد تقلید دے او نعقل نه مراد اجتهاد دے نو معلومه شوه چه مسلمان به یا مجتهد وی یا به مقلد وی؟ جواب دا دے چه په دے آیاتو کښ مجتهد مطلق معروف یا مقلد عرفی مراد کول تحریف قرآن ته نزدے قول دے ځکه چه په اول آیت کښ قلب نه مراد عقل دے یعنی تدبر او فکر په قرآن کریم کښ کوی برابره خبره ده که مجتهد وی او که محقق عالم وی او القی السمع نه مراد قرآن اوریدل دی د بل چا نه او هغے ته توجه کول او په هغے باندے عمل کول دی

او په قرآن باندے عمل کولو ته تقلید وئیل جهل دے ځکه چه قرآن کریم خو اول او اعلیٰ حجت دے د سورۃ ملك د ایت هم دغه تفسیر دے۔
دریمه شبهه:- ډیرو علماؤ مفسرینو محدثینو فقهاؤ تقلید کړے دے او اثبات د تقلید ئے کړے دے؟ جواب د دغه علماؤ تقلید محمود دے جامد او شخصی نه دے۔ اوله وجه دا ده چه هغوی په ډیرو مسائلو کښ د یو مذهب نه بل مذهب ته انتقال کړے دے او په هغے ئے فتوے ورکړی دی او د دے مثالونه بے شماره دی مقام د تفسیر د دے ګنجائش نه لری او د هیڅ منیب عالم نه داخبره پټه نه ده۔ دریمه وجه د ډیرو علماؤ عبارتونه په رد د تقلید کښ ثابت دی اګرچه هغوی مقلدین وو د هغوی نه د بعض احناف و علماؤ اقوال ذکر کووم۔ اول قول د علامه عینی حنفی دے چه آفت د هر څیز هغه تقلید دے۔ او په یو مسئله کښ رد کوی په صاحب هدایه باندے چه دا قول خطائی د دۀ د دے وجے نه ده چه دے پوره خبر نه لری په کتابونو د حدیث باندے او د دے آفت نه دے مګر تقلید دے (بنایه شرح هدایه ص ۱/۳۱ ج ۴/۱۳۵)۔
دویم قول د ابن عابدین شامی چه حنفی دے،"ځان او باسه د تیارے د تقلید نه او د حیرانتیا د وهمونو نه او درا حاصل کړه په چراغ د تحقیق سره (ردالمحتار ص ۱/۳۴۲)۔ دریم قول د علامه زیلعی دے چه رد کوی په صاحب هدایه باندے وائی چه لیکن شیخ تقلید کړے دے د دے جاهل نو مقلد غفلت کړے دے او مقلد جهل کړے دے (نصب الرایه ص ۳/۲۲۸)۔ څلورم قول د ابن امیرالحاج دے، هغه وئیلی دی چه وجوب د تقلید د معین مجتهد په دے باندے هیڅ حجت نیشته نه د شریعت د جهت نه او نه د عقل د جهت نه۔ او وئیلی ئے دی که التزام اوکړی یو شخص د یو مذهب معین لکه ابو حنیفه او شافعی رحمهم الله چا وئیلی دی لازمیږی او چا وئیلی دی چه نه لازمیږی او اصح دا ده چه نه لازمیږی (التقریر والتحبیر ص ۳/۳۵۰)۔ پنځم قول د ابو بکر جصاص (مفسر) دے هغه وئیلی دی چه تاکید کړے دے الله تعالیٰ د هغه خبرے چه په عقلونو کښ ده چه نفی د تقلید ده او اثبات د نظر دے ځکه چه الله تعالیٰ په قرآن کریم کښ امر کړے دے په نظر او استدلال سره (فاعتبروا یا اولی الابصار) او اعتبار نظر او استدلال ته وئیلے شی (فصول فی علم الاصول ص ۳/۳۷۴)
شپږم قول د شاه ولی الله دهلوی دے وئیلی ئے دی چه د اسبابو د تحریف نه

تقلید د غیر معصوم دے او حقیقت د هغے دا دے چه یو عالم د امت اجتهاد اوکړی په یو مسئله کښ نو د هغه تابعداران گمان اوکړی چه دا قطعی او یقینی قول دے نو صحیح حدیث د هغے د وجے نه رد کوی او دا تقلید غیر دے د هغے نه چه امتِ مرحومه په هغے باندے اتفاق کړے دے (حجة الله البالغه ص ۲۲/۱)۔ او دا رنګ ډیر اقوال دی چه د هغے نه صراحتاً معلومیږی چه دا علماء د تقلید جامد شخصی قائل نه دی۔

څلورمه شبهه:- بعض مقلدین وائی چه د تقلید شخصی په پریښودلو سره اتباع هوٰی لازمیږی یعنی د خپل خواهش په بناء خان له آسان قول تلاش کوی که د هر امام قول وی او د هوٰی تابعداری کول سبب دے د گمراهئ د پاره؟ جواب دا ملازمه بالکل ثابت نه ده داسے په ډیر شاذ نادر یو شخص وی چه د خواهش پرستئ په وجه (بغیر د لحاظ د دلیل شرعی مرجح نه) کله په یو قول او کله په بل قول پسے ځی بلکه محققین د ډیرو علماؤ اقوال مونږ ذکر کړل چه هغوی د دے ملازمے هیڅ تصور هم نه دے کړے لیکن د دے په مقابله کښ د تقلید شخصی مفاسد و نه کتل پکار دی د هغے اوله مفسده دا ده چه تقلید شخصی نه شرک فی الاطاعة د پیدا کیدلو یره ده ځکه چه د خپل امام اطاعت په ځان داسے واجب گنړی لکه د الله تعالیٰ او د هغه د رسول د اطاعت پشان۔ دویمه مفسده په تقلید شخصی سره د قرآن او حدیث عزت او احترام د زړه نه کم شی بلکه اوځی ځکه که یو طرف ته قول د امام وی او بل طرف ته قرآن او حدیث وی نو د قرآن او حدیث پریښودلو د پاره قسم قسم حیلے او بهانے او تاویلات لټوی لیکن د امام قول پریښودلو د پاره تیار نه وی۔ د تقلید شخصی په وجے سره چه څو مره تعصب او ډله بازی او حسد او تفرق پیدا شوے دے چه د هغے نه انکار نشی کیدلے د یو امام مقلد د بل مذهب مقلد امام پسے مونځ کول جائز نه گنړی او د بل مذهب د کتاب نه ډیر نفرت کوی تر دے پورے چه د بل امام د مذهب په باره کښ د توهین الفاظ استعمالوی او د دے ډیر مثالونه دی او د دے تعصب نه تحاسد او تباغض پیدا شی او د هغے نه کذب بیانی په یو بل باندے او بهتان تراشی هم پیدا کیږی۔ نو د دے مفاسدو چه په انصاف سره د تقلید شخصی د منافعو سره موازنه اوکړے شی نو د قانون د اثمهما اکبر من نفعهما

كَفَرُوا كَمَثَلِ الَّذِي يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ

پشان دَ هغه کس دے چه چغې وهي ښاروو ته چه نه اوري هيڅ

إِلَّا دُعَاءً وَنِدَاءً صُمٌّ بُكْمٌ عُمْيٌ

مګر بلنه او چغه . دوی کاڼه دی چاړا ګان دی ړانده دی

فَهُمْ لَا يَعْقِلُونَ ﴿۱۷۱﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا

پس دوی عقل نه لري . اے ایمان والو

په تقاضا سره د تقلید شخصی نه توبه کول ضروری دی۔

۱۷۱ دا ایت متعلق دے د وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ سره او ذکر د علت دے د پاره د نه قبلولو د کافرانو دعوت د داعی لره یا متعلق دے د اَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ اه سره او زجر دے په استدلال کولو د عمل د اباؤ بے عقلو سره۔

وَمَثَلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مثل په معنی د وصف او د حال دے۔ اَلَّذِيْنَ كَفَرُوْا مراد دے نه عنادیان کافران دی چه د اتباع د مَا اَنْزَلَ اللّٰهُ نه انکار کوی۔ كَمَثَلِ الَّذِيْ يَنْعِقُ، نعق اواز کول د شپونکی دی خپلو ښاروو ته او په غین سره اواز د کارغه ته وئیلے شی۔ بِمَا لَا يَسْمَعُ، مراد د دے نه ښاروی دی یعنی ګډے بیزے غوان اوښان وغیره۔ اِلَّا دُعَاءً وَّنِدَاءً، دعا د پاره د لنزدے اواز کولو او ندا د پاره د لرے اواز کولو دے۔ په دے تمثیل کښ دوه اقوال مشهور دی اول دا چه دا مثال دے د پاره د دعوت کوونکی عنادیانو کافرانو ته د هغوی په نه قبلولو کښ لیکن عبارت کښ تقدیر دے یعنی مَثَلُ دَاعِيَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا۔ یا كَمَثَلِ بَهَائِمِ الَّذِيْ يَنْعِقُ۔ حاصل د مثال دا دے لکه چه یو شپونکے ګډو بیزو ته اواز وکوی نو هغه ښاروی صِرف د دهٔ اواز او چغه اوری خو په نور معنی او مقصد ئے نه پوهیږی نو دا رنګ دا منکرین اواز د قرآن او د حدیث په وخت د دعوت کښ اوری لیکن د هغې په معنی او مقصد باندے نه پوهیږی او علت د نه پوهیدلو ورپسے جمله صُمٌّ بُكْمٌ اه ده۔ دویم قول دا دے چه دا مثال د هغه چا دے چه تقلید کوی د اباؤ او د هغوی د حقیقت نه خبر نه وی لکه چه ښاروی د شپونکی د اواز په حقیقت باندے نه پوهیږی نو دا رنګ دا مقلدین د خپلو متبوعینو د حال او حقیقت نه خبر نه لري چه په هغوی کښ عقل او

كُلُوا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ

خورئ د پاک حلال هغې نه چه درکړی دی موږ تاسو ته

وَاشْكُرُوا لِلّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۷۲﴾

او شکر کوئ د الله تعالیٰ که تاسو خاص هغه له بندګی کوئ۔

علم او هدایت وګواکه نه ګو نو عبارت په اصل کښ داسے دے چه مَثَلُ اِسْتِدْلَالِ الَّذِیْنَ كَفَرُوْا بِاٰبَآئِهِمْ كَمَثَلِ الَّذِیْ اه مثال د دلیل نیولو د کافرانو په خپلو مشرانو باندے داسے دے لکه اواز د شپونکی خپلو ځارو ته نو دا هم عبث دے او هغه هم عبث دے ځاروی هم په حقیقت د اواز باندے نه پوهیږی او دا کافران هم د خپلو مشرانو په حقیقت باندے نه پوهیږی۔ دلته دریم قول د بعض مفسرینو دادے چه دا مثال د بلنے او مدد غوښتلو د مشرکانو دے د الٰهه باطله نه لیکن په دے توجیه کښ اشکال دادے چه په دے کښ استثناء ده د اوریدلو د دعا او نداء او د دوی الٰهه خو هیڅ نه اوری نو بیا ئے جواب کړے شوید ے چه دا تشبیه د مرکب ده د مرکب سره۔ په دے کښ د هر لفظ تشبیه مراد نه وی۔ صُمٌّ بُكْمٌ عُمْیٌ د دے تفسیر مخکښ تیر شوے دے۔

فَهُمْ لَا یَعْقِلُوْنَ سوال:۔ مخکښ ئے لَا یرجعون ذکر کړیدے او دلته لَا یَعْقِلُوْنَ؟

جواب:۔ هلته زوال د نور ذکر شوے وو نو مناسب د هغے سره داوه چه دغه خلق رنړا ته واپس نشی کرځیدلے او دلته مسئله د دلیل نیولو وه او دلیل نیول عقلی مسئله ده د هغے د پاره عقل پکار دے او په دوی کښ عقل نیشته۔

۱۷۲ په دے کښ خاص خطاب دے روستو د خطاب عام نه په باره د اتباع د شرعے په تحلیل او تحریم کښ۔ او دا خطاب په دے سورت کښ دریم خطاب دے۔ لکه ځنګه چه عام خطاب کښ تردید د هغه مشرکانو وو چه حلال د الله تعالیٰ په ځان باندے حرام ګنړی نو دا رنګ په مؤمنانو کښ بعض کسان ګمان کوی چه توسع په خوراکونو کښ او د مزو او خوندونو خوراکونه کول ممنوع دی نو الله تعالیٰ دوی ته خطاب اوکړو چه دا منع مه ګنړئ۔

كُلُوْا مراد د دے نه مطلق انتفاع ده که په خوراک سره وی او که په بلے طریقے سره وی او مقصد دادے چه دا خوراك او انتفاع په ځان باندے حرام

إِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ

یقیناً حرام کړیده الله تعالی په تاسو باندے مرداره اووینه (بہیولے شوے)

وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ

اوغوښه د خنزیر اوهرهغه څیزچه اواز کړے شوےوی په هغے باندے د پاره د (نذر د) غیرالله.

فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ

پس هغه څوک چه مجبوره شو د دے خوراک ته اونه وو دے طلبګار د مزے اونه وو د حد نه تیرونکے

فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ (۱۷۳)

نو نیشته هیڅ ګناه په ده باندے. یقیناً الله تعالی بخنه کوونکے رحم کوونکے دے.

مه کنړئ. مِنْ طَيِّبَاتِ مَا رَزَقْنَاكُمْ، طیبات دلته حلال اولذات والا خوراکونو ته شامل دے اورزق عام دے په نیز د اهل سنت حلال اوحرام دواړو ته شامل دے. وَاشْكُرُوا لِلَّهِ، په هر نعمت باندے شکر کول حتی الوسع واجب دی او معنی د شکر مخکښ تیره شوے ده. إِنْ كُنْتُمْ إِيَّاهُ تَعْبُدُونَ، کوفیان وائي چه اِنْ په معنی د اِذْ دے او بصریان وائي چه په خپله معنی سره دے خو ترغیب د پاره ئے ذکر کړے دے. په دے کښ اشاره ده چه په حلال حرام کښ د الله تعالی اطاعت کول او د الله تعالی شکر ادا کول عبادات دی. اللباب دمشقي ذکر کړیدی که تاسو اراده لرئ د بندګئ کولو د الله تعالی نو د هغه شکر کوئ ځکه چه شکر سر د عبادت دے. او په حدیث د مسلم کښ ذکر دی چه الله تعالی مؤمنانو ته هغه خطاب کړے دے کوم چه ئے خپلو رسولانو ته کړے دے چه هغه په سورة مؤمنون ۵۱ کښ دے.

۱۷۳ هرکله چه مخکښ ایاتونو کښ تردید وُو په تحریم د ما احل الله باندے نو اوس ردکوی په تحلیل د ما حرم الله (حلال ګنړل د هغے چه الله تعالی حرام کړیدی) او د مقابل د هغه طیبات دے چه مخکښ ایت کښ ذکر دوُ. اِنَّمَا دا حرف په حصر باندے دلالت کوئ لکه چه په سورة انعام ۱۴۵ کښ په نفی او اثبات سره ذکر دے. او کله صرف د تاکید د پاره استعمالیږی. حَرَّمَ عَلَيْكُمُ فاعل د تحریم الله تعالی دے الْمَيْتَةَ، مرداره هغه ذی روح څیز دے چه روح ترینه جدا کړے شی بغیر د ذبح شرعی نه او د هغے بعض افراد ئے په سورة مائده ۳ کښ ذکر کړی دی. او

دادلالت کوی چه خوراك او هرقسم انتفاع په مردارے سره اخستل جائزنه دی ماسیوۍ د هغے ته چه په نص سره ئے تخصیص کړے شوی وی. لکه مهیان او ملخان او ویښته د مردارے او وړئ د هغے او هډوکی د هغے (چه صفا کړے شوی وی). وَالدَّمَ مراد د دے نه وینه مسفوح (بهولے شوے) ده په دلیل د سورة انعام ۱۴۵ سره او په حدیث سره د دے نه خاص کړے شوی دہ وینه منجمدہ چه هغه کبد (جګر - اینه) او طحال (تورے) دے او بعض علماؤ لیکلی دی چه هغه وینه چه روستو د ذبحے نه انښتے وی په غوښه او وازدے پورے. وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ لحم په لغت کښ صرف غوښے ته وئیلے شی او په عرف کښ لحم وازدے او هډوکو ته هم شامل دے قرطبی وئیلی دی چه دا شامل دے ټول بدن د خنزیر ته ماسیوا د ویښتو د هغه نه صرف د ګنډلو د پاره لیکن مراد د دے نه په ځائے د ګنډلو د ستنے استعمالول دی د تار په ځائے استعمال مراد نه دے. وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ، د دے جملے په تفسیر کښ د مفسرینو درے اقوال دی اول قول ربیع او ابن زید نه ابن جریر روایت کړے دے چه مراد د دے نه هغه ځاروے دے چه په وخت د ذبح کښ په هغه باندے نوم د غیرالله واخستلے شی او دیته د ډیرو مفسرینو میلان دے او بنا په دے قول باندے مَا خاص دے په مذبوحه پورے او اهل په معنی د ذُبِحَ دے او بِهٖ کښ باءزیاتی ده یا أُهِلَّ په معنی د آواز کولو دے او بِهٖ په معنی د فِي وَقْتِ ذَبْحِهٖ دے او لِغَيْرِ اللَّهِ کښ لام په معنی د باء دے او اسم لفظ پټ دے یعنی ذُبِحَ بِاسْمِ غَيْرِ اللَّهِ، او دغه مفسرینو د دے تفسیر وجه دا ذکر کړیده چه د مشرکین عرب عادت دا وو چه په وخت د ذبح کښ هغوی نوم د غیرالله ذکر کولو نو په دے جمله کښ رد اُوشو هغوی په عادت باندے. او دا مسئله خو اتفاقیه ده چه مذبوحه په نوم د غیرالله باندے حرام ده قطعًا صرف د مکحول او بعضو نورو نه روایت دے چه کتابی شخص اګرچه ذبح اوکړی په نوم د غیرالله باندے نو دا جائز ده په دلیل د طعام الَّذِينَ اوتوا الکتاب حل لکم لیکن نورو علماؤ لکه نیشاپوری په قول د مکحول وغیره باندے رد کړے دے او وئیلی ئے دی چه طعام الذین اه مقید دے په دے آیت سره. او دویم قول ابن جریر د قتاده او مجاهد او ضحاك او ابن عباس نه روایت کړے دے چه مراد د دے نه هر هغه ځاروے دے چه ذبح کړے شی د پاره د (تقرب) د غیرالله اګرچه د غیرالله نوم ئے پرے نه وی ذکر کړے او د دے

قول دَ تائید دَ پاره قول دَ قرطبی دَ ابن عطیه نه ابن کثیر روایت کړیدے چه دَحسن
بصری نه تپوس اوکړے شو چه یوزنانه (جینئ) دَ خپلو ګوډو وادهٔ جوړ کړی
(په لوبو کولو کښ) او په هغے کښ اُوښه حلاله کړی؟ نو هغه په جواب کښ اُوئیل
چه دا به نه خوړلے کیږی ځکه دا دَ صنم (بت) دَ پاره ذبح کړے شوه (اګر چه
نوم دَ بت یئے وربانسے نه دے ذکر کړے)۔ اوبل تائید دَ دے روایت دَ عائشه رضی الله عنها
دے چه دَ هغے نه تپوس اوکړے شو دَ هغه څارو چه عجمیان (مشرکان) یئے په
خپلو اخترونو کښ ذبح کوی او مسلمانانو ته یئے هدیه لیږی تو هغے اوفرمائیل
چه هغه څاروی چه په دغه ورځے ذبح کړے شی نو دَ هغے نه خوراك مه کوئ
(په دے کښ په ذبیحه بانسے توم دَ غیرالله ذکر کړے نه دے لیکن تقرب دَ غیرالله
مقصد وی)۔ دریم تائید دَ دے قول دَ رازی او نیشاپوری دے چه علماؤ وئیلی
دی که چرے یو مسلمان یو څاروے ذبح کړی او قصد اوکړی په ذبح دَ هغے
سره تقرب غیرالله ته نو دا شخص مرتد شو او ذبیحه دَ دهٔ مذبوحه
دَ مرتد شوه (اګرچه نوم دَ غیرالله یئے وربانسے نه دے ذکر کړے)۔ څلورم
تائید قول دَ ابن عاشور دے په تفسیرالتحریر والتنویر کښ چه دَ اُهِلَّ سره
لفظ دَ تقرب متضمّن دے او دَ دے فائده دا ده چه هر هغه څاروے
حرام دے چه تقرب دَ غیرالله په هغه کښ مقصد وی برابره خبره ده
که نوم دَ متقرب الیه (غیرالله) یئے په هغے بانسے ذکر کړے وی یا نه وی ذکر
کړے۔ او پنځم تائید قول دَ علی رضی الله عنه دے په باره دَ هغه اوښانو کښ چه
فرزوق ذبح کړی وو چه دا هم په ما اهل به لغیرالله کښ داخل دی نو
خلقو پریښودل اګرچه په هغے بانسے په وخت دَ ذبح کښ بسم الله وئیلے شوے
وه خو خلقو هغه پریښودل (البحرالمحیط)۔ او دا قول شاه عبدالعزیز په
تفسیر فتح العزیز کښ او عبدالحق دهلوی په تفسیر حقانی کښ غوره
کړے دے۔ او دوی تصریح کړے ده چه په داسے څاروی بانسے (چه دَ پاره
دَ تقرب غیرالله وی) که په وخت دَ ذبح کښ نوم دَ الله تعالیٰ ذکر کړے شی
نو فائده نه ورکوی بلکه حرام به وی۔ او ثناءالله امرتسری هم په تفسیر
ثنائی کښ دَ دے قول تائید کړے دے او داسے تفصیل تفسیر ترجمان القرآن
بلطائف البیان دَ نواب صدیق حسن خان کښ ذکر دے۔ او بنا په دے قول
بانسے مَا لفظ اګرچه خاص دے په څاروی پورے لیکن اُهِلَّ په خپله عامه

معنی سره دے یعنی آواز اوچتول (نامزدکول). اولِغیرالله کښی لام د پاره د تقرب دے او مراد د تقرب نه عبادت (نذرکول) دے۔ دریم قول دا دے چه مراد د دے نه هر هغه څیز دے (که څاروے دی یا نقد دی یا بل څه خوراك وغیره دی) چه په هغے باندے نوم د غیرالله په طریقه د تقرب (نذر) سره ذکر شی۔ او دا قول نواب صدیق حسن خان په تفسیر ترجمان القرآن کښی او شاه عبدالعزیز په فتح البیان کښی او نورو متأخرینو مفسرینو (مؤحدینو) غوره کړے دے۔ او فتح المجید شرح د کتاب التوحید ص۱۵۲ کښی ذکر کړے دے او په هغے کښی ئے تصریح کړیده چه دغه خوراکونه وغیره په مَآ اُهِلَّ کښی داخل دی۔ بِنا په دے باندے لفظ د مَا په خپل عموم باندے حمل دے او بِهٖ کښی بآء په معنی د عَلٰی ده او لِغیرالله کښی لام د پاره د تقرب (نذر) دے۔

فائده ۱: مراد د نامزدکولو او نسبت کولو نوم د غیرته په طریقه د ملکیت سره نه دے لکه چه وئیلے کیږی چه دا څیز د فلانی شخص دے بلکه مراد د نسبت نه په طریقه د تقرب او تعبّد سره دے یعنی په نذرکولو سره، نو کوم څاروے چه د میلمه په میلمستیا کښی ذبح کړے شی په دے نیت سره چه هغه ئے اوخوری نو دا په دے کښی داخل نه دے او کوم چه په نیت د نذر د غیرالله سره دی یا په نیت د فخر او لوبیٔ کولو سره یا په تعظیم د یوے ورځے سره دی یا په تعظیم د یو امیر کښی دی نو هغه په مَا اُهِلَّ کښی داخل دی اګرچه په وخت د ذبح کښی په هغے باندے بسم الله اُوئیلے شی۔

سوال:۔ ډیر جاهلان وائی چه په کوم څاروی د ذبح په وخت کښی نوم د غیرالله ذکر کړے شی نو صرف هغه په دے آیت سره حرام دے او نور حرام نه دی او دلیل پیش کوی په اولے معنی سره چه عامو مفسرینو دلته ذبح په اسم د غیرالله سره خاص کړے ده؟ -جواب ۱: دا قول خطاء دے چه ډیرو مفسرینو اوله معنی مراد کړے ده بلکه د دویم قول پنځه تائیدات او د ډیرو مفسرینو اقوال ما ذکر کړل نو دعوٰی د تخصیص د اولے معنی غلطه ده۔ جواب ۲: چه کومو مفسرینو ذبح په اسم د غیرالله ذکر کړے ده نو هغه ئے صرف په اعتبار د عادت د مشرکین عرب سره وئیلی دی یعنی په اعتبار د سبب د نزول د آیت سره په رد د هغه مشرکانو کښی۔ لیکن علمائ تصریح کړیده چه په قرآن کریم کښی سببِ نزول لره اعتبار نیشته بلکه عموم د الفاظو لره

اعتبار دے تو لفظ د مآ اُهِلَّ عام دے۔ جواب ع۳ که دغه قول د مفسرینو په تفسیر او تخصیص باندے حمل شی نو دا تحریف ته نزدے کیږی لکه چه شاه عبدالعزیز په تفسیر فتح العزیز کښ وئیلی دی چه اول خو لفظ د مآ صریح دے په عموم کښ (په نیز د بعض نحویانو) یا مشترک دے په مینځ د عموم او خصوص کښ نو په منابوحه پورے خاص کولو د پاره قرینه نیشته دویم دا چه لفظ د اهلال په لغت او محاوره د عربو کښ صرف د آواز اوچتولو د پاره دے د ذبح په معنی باندے چرته د عربو په شعر او نثر کښ نه دے استعمال شوے او دریم دا چه به کښ بآء زیاتی کول یا په معنی د فی وقتِ ذبحه پټ راویستل، څلورم لام په لغیرالله کښ په معنی د بآء باندے اخستل، او پنځم لفظ د اسم پټ راویستل په دے سره کلام الله د بلاغت نه خارجیږی او تحریف معنوی ته نزدے کیږی نو معلومه شوه چه اوله معنی د مفسرینو صرف په طور د تمثیل ده په طریقه د تخصیص او تفسیر سره نه ده۔

سوال:- ابن جریر په تاریخ طبری ص ۱۸۱/ج۲ کښ او سیرة ابن هشام په ص ۳۲۶/ج۲ کښ دواړو په روایت د محمد بن اسحاق سره بغیر د سند نه ذکر کړی دی چه نبی صلی الله علیه وسلم ابوسفیان ته حکم اوکړو چه کوم سره زر او کالی وغیره د لات بت د پاره جمع کړے شوی دی نو هغه واخله او د عروه قرضه په هغے سره ادا کړه دا رنګ په طبقات ابن سعد ص ۳۳۱/ج۲ کښ په لفظ د قالوا سره بے سنده روایت کښ ذکر کړی دی چه علی رضی الله عنه خزانه د فلس (بت) راواخستله، نو دا روایات دلالت کوی چه نذرونو ته د غیرالله (چه ښاروی نه وی) د هغے نه مسلمانانو فائده اخستلے شی؟ جواب ع۱ مخکښ په دریم قول کښ ثابت شوه چه لفظ د مآ عام او شامل دے هر قسم نذرونو د غیرالله ته نو د دغه ایت په مقابله کښ دا سے بے سنده احادیث هیڅ اعتبار نه لری۔

جواب ع۲ د ابن جریر په سند کښ ابن حمید او ابن اسحاق راویان دی او دا دواړه د محدثینو په نیز ضعیف دی۔ جواب ع۳ په دغه روایاتو کښ د نذر کولو تصریح نیشته بلکه هغه صرف د لات او فلس د مرمت او د آبادئ او د خدمتګارو د پاره خلقو مالونه جمع کول چه په هغوی باندے خرچ کړے شی۔ جواب ع۴ هغه مالونه د کافرانو حربیانو وو نو هغه په طور د غنیمت سره حاصل کړے شوے وو لکه نور حرام مالونه چه د کافرانو نه

په غنیمت کښې حاصل شي تو هغه مسلمانانوله جائز دي۔
(تنبیه)؛ فائده:- په داسې بې سنده روایاتو سره استدلال کول او د نذرونو د غیرالله ته د استفادې اجازت ورکول یقیناً د شرک طرف ته خلق راکاږي چاچه لیکلي دي هغوی اجتهادي غلطي کړې ده او د دې وجې نه فقهاؤ په داسې نذرونو باندې سخت تردید کړې دے او د هغې نه استفاده کول یې حرام گنړلي دي۔ لکه په کتاب البحرالرائق ص۲۹۸/۲ او درمختار او د هغې متن ص۱۷۵/۳، مجموعة الفتاوی د عبدالحئ لکهنوی ص۲۸۱/۱ ص۸۹/۲ ص۲۹۹/۲ ص۱۲۴/۲، تفسیر مواهب الرحمان ص۵۷/۳، تفسیر فتح البیان ص۲۷۵/۱، جلد ۳۳/۲ مائة مسائل للشاه محمد اسحاق ص۲۷، مظاهرالحق شرح مشکوٰة ص۴۲/۱ ص۴۵/۱، فتاوی عزیزیه ص۳۳ ص۴۴ ص۵۲
او د ﴿مَا أُهِلَّ﴾ ډیرې معانی د مفسرینو نه او علماؤ نه نقل دي بعض خاص دي او بعض عام دي د هغې تفصیل دا دے (۱) ﴿أُهِلَّ بِهِ﴾ یعنی ارید به (العمدة ص۸۰) لابی محمد مکی متوفی ۴۳۷)۔ (۲) مَا ذُبِحَ لِغَيْرِ اللهِ۔ وَ مَا ذُكِرَ عَلَيْهِ اسْمُ غَيْرِ اللهِ (تفسیر درمنثور ص۱۶۷/۱)
(۳) ما ذبح لتعظیم غیرالله واکرامه (فتاوی عزیزی ص۵۶)۔ ماذبح لغیرالله۔ وماذکر غیراسم الله (تفسیر ابن ابی حاتم ص۲۸۳/۱ او داسې په تفسیر ماوردی ص۱۸۵/۱ کښې هم دي
(۴) شیخ الاسلام ابن تیمیه رح په دقائق التفسیر جلد ۳ ص۱۳۲ کښې وئیلي دي معنی د دې د ماتکلم به لغیرالله وما نطق به لغیرالله اگرچه په اصل کښې رفع الصوت ته وئیلې شي لیکن حکم په اوچت آواز او ښکته آواز سره نه بدلیږي هرکله چه عادت د مشرکانو رفع الصوت وؤ د دې وجې نه یې کلام د هغوی په عادت سره راوړې دے (۵) أَهَلَّ تَكَلَّمَ بِهِ وَ اسْتَهْلَلْنَا۔ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللهِ (بخاری ص۲۱۲/۱) په دې معانیو کښې اوله معنی او څلورمه معنی هر نذر د غیرالله ته شامل ده چه څاروې وي او که غیرڅاروې وي او که مذبوح وي او که غیرمذبوح وي او دغسې فقهاءِ حنفیه لیکلي دي لکه چه روستو ذکر کیږي۔
مال د مشرکانو۔ د دوی مونځونه او قربانئ او نور تقربات وؤ د پاره د غیرالله۔
(۱) غایة الامانی فی الرد علی النبهانی ص۳۱/۲ او تفصیل په ص۳۱۲/۲ (۲) اغاثة اللهفان ص۳۰۵/۱ (۳) رد په نذر د غیرالله باندې په تفصیل سره حاشیة الطحطاوی علی الدرالمختار ص۴۷/۱ (۴) رد په نذر د پاره د قبرونو البلاغ المبین ص۲۹) (۵) دارنگ جلاء العینین ص۴۹۰ ص۵۰۳ (۶) دارنگ منهاج التاسیس فی الرد علی ابن جرجیس ص۲۱۱ (۷) رد په نذر د پاره د اهل قبور (روح المعانی ص۶۷/۱۳) ص۲۱۲/۱۷

(۸) الابداع (ص۸۹) (۹) مجموعة الفتاوی لعبد الحیٔ ص۸۹/۲ ص۲۹۹/۲ ص۱۵۱/۲ ص۳۹۰/۲ ص۱۰۵/۳ ص۱۲۴/۳ (۱۰) رد المحتار شامی ص۳۷۹/۳ - (۱۱) سیف الله علی من کذب علی اولیاء الله ص۶۹ تالیف صنع الله الحلبی المکی (۱۲) البحر الرائق ص۵۲۰/ج۲ (۱۳) تیسیر العزیز الحمید ص۲۰۳ فیه تفصیل -(۱۴) تلخیص کتاب الاستغاثة لشیخ الاسلام ص۹۰ ص۲۹۷ (۱۵) رساله زیارة القبور للبرکوی (ص۷ ص۲۲ ص۲۹ ص۵۲) (۱۶) مجالس الابرار ص۱۱۹ -(۱۷) کشاف القناع عن متن الاقناع (فقة الحنابله) ص۲۷۶/ج۶ (۱۸) الفروع لابن مفلح الحنبلی (ص۳۵۹/ج۶) (۱۹) الدین الخالص لصدیق حسن خان ص۱۸۹/ج۲ ص۱۹۱/ج۲ ص۴۸/ج۴ ص۵۰/۴ ص۵۲/۴ ص۵۶/۴ ص۶۵/۴ ص۶۶/۴ (۲۰) مدارج السالکین ص۳۴۵/ج۱ (۲۱) مغنی المحتاج للشربینی (فقیه الشافعیة) ص۳۷/ج۴ (۲۲) مجموعة الفتاوی لشیخ الاسلام ص۳۱۹/ج۲۴ ص۳۰۷/ج۲۶ ص۷۷/ج۲۷ ص۱۴۶/ج۲۷ (۲۳) فتح المعین شرح شرح ملا مسکین علی الکنز ص۴۵۰ (۲۴) اقتضاء الصراط المستقیم ص۶۷۱/ج۲ ص۷۰۸/ج۲ ص۷۴۰/ج۲ (۲۵) الروض الندی شرح کافی المبتدی (حنبلی) ص۵۰۲ (۲۶) غمز عیون البصائر (ابن نجیم مصری) ص۲۳۱ (۲۷) الفتاوی الحامدیه (ص۳۱) (۲۸) شفاء الصدور لمرعی بن یوسف الکرمی (ص۶۶ ص۶۷)-

**فائده ع۲** په دے ایت کښ ترقی ده په باب تحریم کښ یعنی دَمینه (مردارے) نه دوه څیزونه مستثنیٰ دی او دَ دم (وینے) نه هم دوه څیزونه مستثنیٰ دی لکه چه مخکښ ذکر شویدی او دَ لحم خنزیر نه هم یو څیز مستثنیٰ دے لیکن دَ مَآ اُهِلَّ لِغَیْرِ اللهِ نه دَ هیڅ څیز استثناء نیشته. مهائمی په تبصیر الرحمٰن کښ لیکلی دی چه دَ مَآ اُهِلَّ خبث ډیر زیات دے نو دَ هغے په هیڅ جزء کښ جواز نیشته اگر چه خوړونکے گمان کوی چه په دے سره محبت دَ الله تعالیٰ سره پیدا کیږی۔

**فائده ع۳** داسے ایت په سورة مائده ۳ او سورة انعام ۱۴۵ او سورة نحل ۱۱۵ کښ هم راغلی دے په دے ایت کښ یئے بِهٖ په لِغَیْرِ اللهِ باندے مخکښ ذکر کړے دے او په دغه درے ایاتونو کښ بِهٖ یئے دَ لِغَیْرِ اللهِ نه روستو راوړے دے، وجه دا ده چه بآء دَ بِهٖ دَ تعدیت او تتمے دَ اهل دَ پاره ده او لِغَیْرِ اللهِ کښ سبب دَ حرمت ذکر دے نو سورة بقرة کښ دا جمله اول ده نو دَ اصل عبارت (دَ لفظ) لحاظ په کښ اوکړے شو او روستو سورتونو کښ دَ مقصد دَ لحاظ دَ وجے نه یئے لِغَیْرِ اللهِ مخکښ راوړے دے۔

سوال:- اِنَّمَا دَ پاره دَ حصر دے نو حصر دَ تحریم یئے په څلورو اشیاؤ کړے دے او حال دا دے چه دَ څلورو نه علاوه خو په قرآن او حدیث کښ نور مطعومات

اوغیر مطعومات محرمات هیر ذکر دی؟ - جواب ع۱ الوسی او ابو حیان وغیرهما
وئیلی دی چه دا حصر اضافی دے یعنی تا سوائے مشرکانو چه کوم حلال څیزونه
حرام کړئ او ائے مؤمنانو تا سو چه بعضِ مستلذات (د لذت څیزونه) او
وسعت په خوراکونو کښ پشان د حرام کړئ نو دغه حرام نه دی بلکه حرام
داورئ د هغې نه ځان اُوساتئ او د هغې نه ئے څلور ذکر کړل - جواب ع۲ دلته
مقصد حصر د حرامو مطلقاً نه دے بلکه هغه حرام ماکولات مقصد دو چه
په ټولو اسمانی دینونو کښ حرام دی او هغه دا څلور دی او رد دے په
یهودیانو او نصاراؤ او مشرکانو باندے چه هغوی د دے اتفاقی حرامو نه
مخالفت کوی -

فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ، اضطرار یعنی مجبوره کیدل د دوه وجونه وی
اول وجه دا چه یو ظالم اکراه (زور) اوکړی په یو مسلمان باندے په خوړلو
د دے څیزونو سره او د بچ کیدلو هیڅ ذریعه نه وی - دویمه وجه سخته لوږه
ده چه د هغې ذکر په سورة مائده ۳ کښ شته دے - بَاغٍ وَّلَا عَادٍ، د دے دواړو
په مینځ کښ فرق دے په څو وجوهو سره ۱ بَاغٍ نه وی حلال کڼونکے هغې
لره مطلقاً - عاد نه وی د ځان سره توخه جوړوونکے (مقاتل) ۲ بَاغٍ نه وی
تجاوز کوونکی د مقدار د حلال نه، عاد قصور نه کوی په هغه اندازکښ چه
د هٔ لره حلال وی یعنی بالکل پرېږدی تر دے پورے چه هلاک شی
(اللباب للدمشقی) - ۳ بَاغٍ نه وی جدا کیدونکے د جماعت د مسلمانو نه
عاد نه دی مبتدع مخالف د سنت نه (سهل) - ۴ بَاغٍ نه وی خوړونکے بے
ضرورته عاد نه وی ځان مړه کوونکے (حسن - قتاده) ۵ بَاغٍ نه وی طلب
کوونکے د هغې په وخت د وجود د حلال کښ، عاد نه وی تجاوز کوونکے د حد نه -
۶ بَاغٍ نه وی ظلم کوونکے په ملګری باندے چه هغه له ورنکړی او هغه هلاک
شی، عاد نه وی تجاوز کوونکے د بندش د لوږے نه (الوسی) - ۷ بَاغٍ نه وی
طلب کوونکے د لذت د هغې، عاد او نه ورسیږی حد د موړوالی ته - ۸ بَاغٍ نه وی
بغاوت کوونکے په امیر المؤمنین باندے - عاد نه وی خلاف کوونکے د طریقے
د حق پرستو نه (نیشاپوری) -

فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ سوال :- اضطرار خو منافی دے د وجوب سره نو نفی د ګناه ته
څه حاجت دے؟ جواب ع۱ مراد د دینه رفع د حرج او د تنګوالی ده او دا شامل دے

إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنْزَلَ اللَّهُ

یقیناً هغه کسان چه پټوي هغه چه نازل کړیږي ے الله تعالی

مِنَ الْكِتَٰبِ وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا

دَ خپل کتاب نه او حاصلوي په هغې سره قیمت لږ (ئتوله دُنیا)

أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ

دغه کسان نه اچوي دوي (نه خوري) په خیټو خپلو کښ

إِلَّا النَّارَ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ يَوْمَ الْقِيَٰمَةِ

مگر اور او خبرے به نه کوي دَ دوي سره الله تعالی په ورځ دَ قیامت

وَلَا يُزَكِّيهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٤﴾

او نه به پاکوي دوي لره- او دوي دَ پاره درد ناک عذاب دے۔

واجب او مستحب او مباح ټولو ته (نیشاپوري)۔ جواب ع۲ په دے کښ اشاره ده که چرے بے ارادے دَحد نه تجاوز اوکړي او ډیره اوخوري نو په هغې کښ گناه نیشته دے۔

غَفُورٌ کښ هم اشاره ده که دَچا نه بے ارادے زیاتوالے اوشي په خوراك کښ نو هغه بخنه کوي- رَّحِيمٌ په حال دَاضطرار کښ جائز کول دَ حرامو رحمت دَ الله تعالی دے۔

فائده:- په سورة مائده ۳ کښ ئے اضطرار خاص کړیدے په حالت دَ مخمصه پورے په ذکر کښ او په دے سورت او سورة انعام او نحل کښ اضطرار مطلق ذکر کړے دے. وجه دا ده چه سورة انعام او نحل مکی سورتونه دی او سورة بقره دَ مدینے ابتدائي سورت دے نو په دغه زمانو کښ دَ اسلام غلبه نه وه حاصل شوے دَ دے وجے نه دَ کافرانو دَ طرف نه دَ اکراه حال هم پیښیدلو او سورة مائده دَ غلبهٔ اسلام (فتح مکه) نه روستو نازل شویدے هغه وخت دَ اکراه دَ کافرانو نه څه یره نه کیدله صِرف دَ لوږے خطره وه دَ دے وجے نه سورة مائده کښ ئے مخمصه خاص ذکر کړله۔

۱۷۴ روستو دَ تفصیل دَ حلال او حرام نه سخت زجر او تخویف اخروي دے

د دغه مسائلو پټوونکو ته د وجے د حرص د دنیا او د خوراکونو نه. إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ
مَا أَنزَلَ اللَّهُ، دمشقي وئيلي دي چه مراد د کتمان نه تاويلات باطله دي چه هغه ته
تحريف معنوی وئيلے شي. يا مراد د کتمان نه نه ښکاره کول دي عوامو ته د
مَا أَنزَلَ اللَّهُ - مَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَٰبِ په ۱۵۹ کښ يے مَا أَنزَلْنَا وئيلي دی؟
وجه دا ده چه هلته مسئله د قبلے او د حج او د ملتِ ابراهيميه مراد وه او د هغے نه
د اهلِ کتابو مخالفت ډير وو د دے وجے نه د هغے د اهتمام د پاره أَنزَلْنَا صيغه د
جمع متکلم او بينات او هُدًى يے ذکر کړو او دلته مخکښ ۱۷ کښ د عوت مَا أَنزَلَ
اللَّهُ ته ذکر شو او زجر ذکر شو چه څوك د تقليد د ابا وُ د وجے نه مَا أَنزَلَ اللَّهُ
پريږدی نو دلته زجر ور کوی هغه ملايانو ته چه دغه ما انزل د عوامو ته
پټوی. مِنَ الْكِتَٰبِ، مِن بعضيه کښ اشاره ده چه ټول کتاب يے نه دے پټ
کړے په دليل د سورة مائده ۶۸ او انعام ۹۱ سره. وَيَشْتَرُونَ بِهِۦ ثَمَنًا قَلِيلًا
د دے تفسير مخکښ تير شوے دے. په ۱۵۹ کښ يے دا جمله نه وه ذکر کړے
ځکه چه کتمان دوه قسمه دے اول کتمان د وجے د مداهنت يا د عناد او حسد نه
او دويم د وجے د حرص دنيوی نه دے نو په هغه ايت کښ اول قسم مراد وُو او
دلته دويم قسم مراد دے او هر کله چه دين پټول د دنيا د امدن د وجے نه ډير
لوئے خساست دے د دے وجے نه په دے مقام کښ يے تخويف سخت ذکر
کړو په ذکر د اوو قسمونو د عذاب سره - أُولَٰٓئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ
په لفظ د فِي بُطُونِهِمْ کښ دوه فائدے دی اوله دا چه صِرف اکل کلمه په معنی
د اخستلو راځی لکه يَأكلون الربوا او لفظ د فِي بُطُونِهِمْ دليل دے چه دلته
حقيقي معنی مراد ده يعنی خوراك کول. دويمه فائده دا ده چه دا اشاره ده
په مړه خيټه خوراك کولو ته. او په دے کښ د دوی لوئے قباحت شان ته اشاره
ده چه دوی اخرت د دنيا په خوراکونو بانداے برباد کړے دے. إِلَّا النَّارَ مراد
د دے نه حرام دی يعنی ذکر د مسبب او مراد تريته سبب دے يا حقيقةً اُور مراد
دے يعنی په جهنم کښ به اُور خوری او دا سے سزا د هغه کسانو هم ده چه د
يتيمانو مال په ظلم سره خوری لکه په سورة نساء ۱۰ کښ. وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللَّهُ
يَوْمَ الْقِيَٰمَةِ، دا کنايه ده د غضب او خفګان د الله تعالیٰ نه يا دا چه د دوی د
خوشحالئ خبرے به نه کوی او د دوی د حسرت او د غم خبرے به کوی
چه هغه سوال او حساب کول دی (اعراف ۶) يا دا چه بالکل به د دوی سره

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ

دا هغه کسان دي چه اخستې ده ګمراهي په بدل د هدایت کښې

وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ فَمَا أَصْبَرَهُمْ

او عذاب په بدل د بخنه کښې . پس څه عجیبه صبر دے د دوی

عَلَى النَّارِ ﴿١٧٥﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّ اللَّهَ نَزَّلَ

په اور باندے . دا (عذاب) پدے وجه دے چه الله تعالیٰ نازل کړیدے

خبرے هم نه کوی او تپوس او حساب به په واسطه د ملائکو سره کوی او د دے تائید په سورة مؤمنون ۱۰۸ کښ دے. وَلَا يُزَكِّيهِمْ په دے کښ ډیر وجوه دی اول دا چه د دوی ثنا او تعریف به نه کوی. دویم دا چه د دوی اعمال به نه قبلوی دریم دا چه د دوی ناکاره اعمال به نه پاکوی یعنی د دوی توبه نه قبلوی. او قرطبی او دمشقی وئیلی دی چه دا آیت هغه مسلمانانو ته هم شامل دے چه دین د الله تعالیٰ پټوی.

۱۷۵ دا هم د مخکښ آیت سره تعلق لری. هر کله چه په دنیا کښ احسن څیز هدایت او علم دے او اقبح څیز ګمراهی او جهل دے او په آخرت کښ اقبح څیز عذاب د جهنم دے او احسن څیز مغفرت الهی دے نو په دنیا کښ هم د دوی خسران ښکاره دے او په آخرت کښ هم خسران ښکاره دے او دا اوله مبادله مستلزم ده دویمے مبادلے لره. فَمَا أَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ په دے جمله کښ هم پنځه اقوال دی. اول قول د سیبویه او د ډیرو نحویانو دے چه دا صیغه د تعجب ده او مراد د دینه تعجیب د بندګانو دے یعنی اے بندګانو تاسو د دوی نه تعجب اوکړئ. دویم قول د حسن او فراء او کسائی دے چه أَصْبَرَ په معنی د أَجْرَءَ دے یعنی څه څیز زړه ور کړیدی دوی لره په اور باندے چه داسے عملونه کوی چه اور ته روان دی او پرواه نه لری. دریم قول د زجاج دے أَصْبَرَهُمْ په معنی د أَبْقَاهُمْ یعنی څه څیز دوی باقی پاتے کړیدی په عملونو د اور د جهنم باندے. څلورم قول د ابوالبقاء دے چه مَا نافیه دے یعنی نیشته صبر د دوی په اور باندے. پنځم قول د اخفش دے چه مَا موصوله دے او اصبر فعل ماضی صله ده او مجموعه مبتدا دے او خبر ئے پټ دے یعنی هغه څیز چه دوی له ئے صبر ورکړے دے په اور د جهنم ډیر ناکاره

الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ۗ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا

كتاب د حق د پاره (او دوی پکښ اختلاف کوی) - او یقیناً هغه کسان چه اختلاف ئې کړیدے

فِى الْكِتٰبِ لَفِىْ شِقَاقٍ بَعِيْدٍ ﴿۱۷۶﴾ ع

په كتاب كښ خامخا په دشمنئ لرے كښ دی (د حق نه) -



او قبیح دے (دمشقی اللباب) -

۱۷۶ په دے کښ سبب د تیرشوی عذابونو ذکر کوی - ذٰلِكَ اشاره ده تیرشوی عذابونو ته او بِاَنَّ متعلق دے په مُستحقّ پټ پورے او بآء سببیه ده او بِالْحَقِّ نه روستو لفظ د اُخْتُلِفُوْا پټ مراد دے ځکه چه صِرف انزال د کتاب سبب د عذاب نه دے او قرینه په دے باندے روستو جمله ده - وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِى الْكِتٰبِ مراد د کتاب نه تورات دے او مراد د اختلاف نه اختلاف کول دی د یهودو او نصاراؤ په دلالت د تورات کښ په نبوت د عیسٰی علیه السلام او په قباحت د هغه کښ - یا مراد د اختلاف نه مخالفت کول د دوی دی د خپلو مشرانو نه په باره د عمل کولو کښ په تورات باندے (قرطبی) - یا مراد د اختلاف نه وارث کیدل د دوی دی د تورات روستو د مشرانو نه (ابو مسلم او دمشقی) - یا مراد د کتاب نه قرآن دے او اختلاف د یهودیانو دا دے چه څوک تربنه مطلقًا انکار کوی او څوک وائی چه دا خاص دے په امیین عرب پورے اهلِ کتاب په دۀ سره مخاطب نه دی او اختلاف د مشرکانو خو ډیر دے چا وئیل شعر دے چا وئیل سحر دے چا وئیل چه کهانت دے افتراء ده وغیره - یا مراد د کتاب نه جنس کتب الٰهیه دی او اختلاف نه مراد اختلاف کول دی په مقصدونو د کتابونو الٰهیو کښ چه څوک توحید نه منی څوک قیامت نه منی څوک رسالت نه منی - لَفِىْ شِقَاقٍ بَعِيْدٍ، مراد د دینه مشاقه او ډیر اختلافات د دوی دی په کورنئ کښ د یهودیانو او نصاراؤ او مشرکینِ عرب - یا مراد د دینه مشاقه ده د آخری رسول او قرآن نه په ډیرے سختئ سره - بَعِيْدٍ کښ اشاره ده چه په دے شقاق سره د حق نه دومره لرے دی چه هغه په هیڅ طریقه نه قبلوی او دا د دوی ضد او عناد ته اشاره ده -

---

یا الله تعالٰی د دے تفسیر لیکونکو ته ګناهونه معاف کړے - آمین